بسم الله الرحمن الرحیم

# د کتاب پیژندنه

د کتاب نوم: سپیڅلی نبوي سیرت(الرحیق المختوم)
مؤلف:صفي الرحمن مبارکفوري
مترجم: سلطان محمود صلاح
کمپوز: د القلم کمپوز ځانګه

## بسم الله الرحمن الرحيم

# ددې پښتو چاپ په اړه

**نحمده و نستعينه ونستغفره و نعوذ بالله من شرور انفسنا و سيئات اعمالنا من يهده الله فلا مضل له و من يضلله فلا هادي و نشهد ان لا اله الا الله وحده لا شريک له ، له الملک و له الحمد و هو على کل شيئ قدير. اما بعد:**

درونډ لوستونکی نیکمرغه دی چې د داسې یوه کتاب لوستلو ته یې اراده کړیده چې د مخلوقاتو د سردار او نبیانو (علیهم السلام) د امام حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) د مبارک ژوند په هکله د قدر وړ معلومات وړاندې کوي.

انسان د خپل فطرت په حکم تل د ګټې، خیر، آرامۍ، نیکمرغۍ او برې په تکل کې وي، خو متاسفانه ډېر کسان خپل دا هدف نه شي موندلی، د برې ساحل ته د رسیدو په تمه د سفر په پیل یا جریان کې د سمندر د وژونکو څپو ښکار شي، په تیارو سر او ډوب شي.

یوازې هغه څوک به اصلي هدف ته رسیږي، د سعادت او فلاح په درشل به پل ږدي چې د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) اواره او سیده لاره ونیسي او تر وروستي منزله یې د همغه د هدایاتو مطابق تعقیب کړي.

د کائناتو پروردګار راته څرګنده کړیده چې له اسلام نه پرته نورې ټولې لارې کږې، تیاره او وروستی منزل یې بدمرغي او تباهي ده. قرآنکریم فرمایي: ((**ان الدين عند الله الاسلام**...)). د خدای په نزد غوره او مقبول دین اسلام دی.

که وغواړو د اسلام لنډ تعریف وکړو، نو ویلی شو: هغه دین چې حضرت محمد (صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د الله تعالی له لوري راوړی، بیا یې پخپلو اقوالو،

افعالو، اخلاقو اوصفاتو د عمل په ډګر کې ټکی په ټکی عملي کړی، د قرآن او سنت په بڼه کې يې د ځمکې اوسيدونکو ته په ميرات پريښی تر څو تر قيامته د هر بنده په هر موقف مکان او مقام کې چې وي لارښوونه وکړي.

نو که څوک نجات او برى، خير او ښيګڼه غواړي، بايد مسلمان شي، او که څوک غواړي ربښتونی مسلمان وي، نو بايد د حضرت محمد (صلى الله عليه واله وصحبه وسلم) په سپيڅلي شريعت ايمان او عمل ولري.

د مطلوب ايمان او مقبول عمل لپاره دکائناتو د سردار حضرت محمد (صلى الله عليه واله و صحبه وسلم) په مبارک سنت او سيرت سيي پوهه درلودل ډير ضروري او حتمي دي.

دا کتاب (سپيڅلی نبوي سيرت) چې د هند مشهور عالم الشيخ صفي الرحمن مبارکپوري (رحمه الله) په عربي ژبه د (الرحيق المختوم) په نوم ليکلی بيا يې اردو ته هم پخپله اړولی دی، د حضرت محمد (صلى الله عليه و آله وصحبه وسلم) د مبارک ژوند په مختلفو اړخونو د پوهيدو لپاره ډيره سوچه او غني چينه ده.

د خوښی ځای دی چې پښتو ژباړه يې د دوهم ځل لپاره پداسې حال کې چاپ ته سپارل کيږي چې د لومړي چاپ ډيري غلطۍ پکې اصلاح شويدي. د لومړي ځل لپاره کتاب هغه وخت چاپ ته وسپارل شو چې زه د شهادت ورځپاڼې د مسئول مدير په توګه پدې ونه توانيدم کتاب ته مراجعه وکړم، د تصحيح چارې يې هم نورو ورونو سرته رسولې وې نو څه داسې غلطۍ وې پکې چې بايد تصحيح شوې وای.

دا دی د رحمان خدای په توفيق سره پدې بريالی شوم، کتاب ته له سره مراجعه وکړم او په نوې بڼه يې د سيرت قدرمنو مينه والو ته وړاندې کړم.ددې چاپ نوي شيان او زياتونې دا دي:

- ټول کتاب له سره کمپوز شوی.
- ټيرې طباعتې غلطۍ تصحيح شوې .
- د ځينو عباراتو ژباړه تجديد او سمه شوې.
- د احاديثو اصلي نصوص را نقل شوي.

له خدای تعالی نه سوال کوم دا عمل مې پخپل کرم سره قبول کړي، او همدا ارزښتمن اثر د لوستونکو د علمي تندې د خړبولو او سم عمل وسيله او د آخرت توښه وګرځوي.له رحمان خدای نه د مغفرت او له لوستونکو نه د دعا په هيله. و صلى الله على سيدنا محمد و على آله واصحابه و من تبعهم باحسان الى يوم الدين. په احترام

سلطان محمود صلاح
حیات آباد ـ پېښور
پنجشنبه ۱۳۸۶/۸/۱۰=۲۰۰۷/۱۱/۱م

# د مترجم سريزه

**الحمدلله، الحمدلله الذي أرسل رسوله بالهدى و دين الحق ليظهره على الدين كله، و الصلاة و السلام على سيدنا و مولانا محمد و على آله و أصحابه أجمعين .**

شکردی چې رحیم خدای یو ځل بیا د دې توفیق راکړ چې د حضرت محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د سیرت له کتابونو نه یو بل کتاب په پښتو وژباړم او د اسلام په ګناه ځورول شوي افغان ولس ته یې نذرانه کړم .

دا یو واقعیت دی چې هیڅوک تر هغې پورې د ایمان دعوی نه شي کولی تر څو پورې یې چې د الله تعالی او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) احکامو ته د اطاعت غاړه نه وي ایښې. مسلمان هغه دی چې اسلام یې د ژوند د قانون په حیث منلی او عملی کړی وي. اسلام هغه دین دی چې الله تعالی د خپلو بندګانو لپاره غوره او خوښ کړیدی. همدغه غوره دین الله تعالی د خپل افضل او وروستي پیغمبر حضرت محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پواسطه مونږ ته رالیږلی دی. حضرت محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د الله تعالی دین په پوره اخلاص او امانت سره لومړی پخپل ځان عملي کړی او بیا یې امت ته رسولی دی. د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مبارک سیرت یعنی د هغه اقوال، افعال او اخلاق، د اسلامي مقدس دین مکمله او عملي نمونه ده. که څوک غواړي ریښتونی مسلمان وي باید د خپل ژوند په هره لویه او وړه کې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اطاعت او پیروي وکړي. الله تعالی فرمایي: ((**وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ...**)) (المائدة:۹۲) **[د الله او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اطاعت وکړئ.]**

د الله تعالی او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اطاعت فرض دی. مسلمان باید د الله تعالی دا حکم په بشپړه توګه عملي کړي، خو دا باید له یاده ونه

باسو چې د دې الهي حکم پوره تعمیل هغه وخت ممکن دی چې مسلمان د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په مبارک سیرت خبر او پدې هکله پوره علم ولري، ځکه حضرت محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د الله تعالی رسول او داسې بنده ؤ چې د اسلام له نیغې لارې نه یې د یوه ویښته په اندازه هم انحراف ندی کړی. د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ژوند یا د اسلام عملي بڼه او شکل، له عائشې (رضي الله عنه) نه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د اخلاقو او ژوند په هکله پوښتنه وشوه هغې په ځواب کې وفرمایل: ((**کان خلقه القرآن**)) یعنې د رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اخلاق او عملي ژوند قرآن و،د هغه مبارک ژوند د قرآنکریم عملي نمونه او مثال و. نبوي سیرت د اسلامي دین عملي توضیح او بیان دی. سیرت مو د رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له شخصیت نه خبروي، د قرآنکریم بشپړ او صحیح تفسیر راته بیانوي او د ژوند په ټولو برخو کې د هدایت داسې ډیوې راته بلوي چې که اقتدا پسې وکړو نو دنیوي او اخروي نیکمرغي به مو په برخه شي. الله تعالی فرمایي:

((لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ)) (الاحزاب : ۲۱)

د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په شخصیت کې د تاسو لپاره ډیره نیکه نمونه ده.

په تاسف سره باید اعتراف وکړو چې زمونږ هیوادوال که څه هم له اسلام سره ډیره مضبوط تړاو لري، خو د سیرت د زده کړې او پوهې په اړه یې مطلوبه او لازمه توجه نده کړې. کیدای شي ډیرو افغانانو د سیرت کتابونه لوستلي او مطالعه کړي وي، خو ډیر کم به داسې وي چې د سیرت کتاب یې پدې نیت لوستی وي چې د خپل دین احکام ورنه زده کړي او څه چې لولي هغه پخپل ژوند کې پلی کړي، همدا وجه ده چې زه له درنو لوستونکو نه هیله کوم چې ددې کتاب له لوستلو نه مخکې پدې هکله خپل تصور تصحیح او برابر کړي. د دې کتاب او د سیرت د نورو موثقو کتابونو لوستلو ته پدې نیت ملا وتړي چې له همدې مبارک سیرت نه د خپل دین احکام زده کړي، همدا یې د لارې مشال وي اوپه مکمله توګه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په مبارک قدم پل کیږدي. سیرت باید د نورو تاریخي کتابونو حیثیت ونلري، چې یوازې په تیرو واقعاتو د خبریدو او پوهیدو لپاره ویل کیږي، بلکه د سیرت لوستنې او زده کړې هدف باید خپل ژوند د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ژوند په شان برابرول اوعیارول دي. مسلمانان مکلف دي د خپل رسول (صلی

الله عليه و اله و صحبه و سلم) پيروي وکړي، الله تعالی امر کوي: ((قُلْ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمْ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ)).(آل عمران: ۳۱)

[ووايه اې محمده (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! که چيرې تاسې له الله تعالی سره محبت کوئ نو زما (محمد(صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) متابعت وکړئ تر څو الله تعالی هم محبت درسره وکړي اوګناوې مو وبښي.]

دا هم يو واقعيت دی چې زمونږ په ټولنه کې د زياترو ناخوالو عوامل له اسلام نه بې خبري او ليرې والی دی . نو اې زما څوريدليه wروره! ته که د ژوند په هره مرحله کې قرار لرې، او اجتماعي موقف دې که هرڅه وي کولی شې په همدې کتاب سره چې اوس ستا په لاس کې دی خپلې ډيرې ستونزې حل کړې، ځکه دا کتاب د هغه رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سيرت دی چې اطاعت يې د کاملې نيکمرغۍ او بشپړې برياليتوب ضامن دی. زه ځان نيکمرغه او بختور شميرم چې الله تعالی توفيق راکړ چې د صفي الرحمن مبارکپوري ((الرحيق المختوم)) نومی کتاب له عربي نه په پښتو وژباړم. دا ژباړه مې لومړی ځل په ۱۹۹۱ کال کې پيل کړې وه، خو د ژوندنيو ستونزو له امله ايله په ۲۰۰۲ کال کې بشپړ شوه، او دا ده اوس دالله تعالی په فضل سره دکتاب په بڼه کې ستاسې مخې ته قرار لري. په ژباړه کې مې تر ډيره حده له احتياط او دقت نه کار اخيستی د شعرونو په ترجمه کې مې د همدې کتاب له اردو نسخې نه استفاده کړې، خو بيا هم د اشتباهاتو امکان نه شم ردولی. دکتاب په کمپوز او تصحيح کې د خواجه محمد اسحق او سيد سليمان هاشمd مرستې دقدر وړ دي. الله تعالی دې ټولو ته لا زيات توفيق ورپه برخه کړي. و صلی الله تعالی علی سيدنا محمد وعلی آل سيدنا محمد و أصحابه و بارك وسلم عليهم أجمعين .

سلطان محمود صلاح

پيښور

۲۰۰۲/۱۰/۱۰

# د ا کـتـا ب

## الحمدلله رب العالمين، والصلاة و السلام على عبده و رسوله محمد افضل الرسل و خاتم النبيين، و على آله و صحبه و من اهتدى بهديه الى يوم الدين . و بعد

دا هغه کتاب دی چې د سيرت ليکنې د هغه نړيوالې سيالۍ لپاره مې ليکلی و چې د رابطة العالم الاسلامي له اړخه تنظيم شوې وه. د دې سيالۍ اعلان د نبوي سيرت له لومړي کنفرانس نه وروسته وشو، کوم چې د ۱۳۹۲ هـ قمري کال د ربيع الاول په مياشت کې د پاکستان د حکومت له خوا جوړ شوی و.

الله تعالى دې کتاب ته داسې مقبوليت او برى ليکلی و چې ما يې د ليکلو په مهال تمه نه درلوده، په سيالۍ کې يې لومړی مقام وګاټه، عامو او خاصو داسې خوښ کړ چې رشک ( غبطة) ورباندې کيږي.

خبره داسې وه چې زه د رابطې له خوا د مسابقې په اعلان پخپل وخت خبر نه شوم، وروسته مې چې خبر واورېد، نو په سيالۍ کې د ګډون څه فکر مې ونکړ، بلکه پدې اړه مې وړانديز هم ونه مانه، خو تقدير پکې ورګډ کړم.رابطې د ليکنو د تسليمولو لپاره د ۱۳۹۷هـ.ق کال د محرم مياشتې لومړۍ نېټه ټاکلې وه. د سيالۍ له اعلان نه تر دې نېټې پورې له تقريبا نهو مياشتو نه څو مياشتې له ما نه هسې ضايع شوې وې، او پاتې موده راته ددې ډول ليکنې لپاره کافي نه ښکاريده. خو چې اراده وکړه نو له الله سبحانه وتعالى نه مرسته وغوښته، متې مې بډ وهلې تر څو ليکنه بشپړه او پخپل وخت وليږل شوه.

هغه وخت نه يوازې دا چې وخت کم و، بلکه زه په نورو مصروفيتونو هم بوخت وم، د ليکنې لپاره کافي مصادر په لاس کې نه وو، او موجودو منابعو ته مراجعه هم ستونزمنه وه. زما هيله دا وه چې له ډېر دقت نه کار واخلم، زياتې او اضافي خبرې را نه وړم، او تر وسه د موضوع حق ادا کړم. د ليکنې په مهال مې څو داسې موضوع تر نظر تير شول چې خالي او ناکافي راته ښکاريدل او ددې وړ وو چې بايد بشپړ او زياتونه پکې وشي، خو هغه ددې کار د تر سره کولو جوګه نه وم، بس دومره مې کولی شوای چې په لاس کې موجود مواد تسويد او ترتيب کړم او بيا يې له مراجعې او تدقيق پرته کافي او نقل کړم.

نو په زړه کې مې دا پاتې شوه چې بايد هغه کمبود پوره شي، او د لازمو زياتونو هيله

مې همداسې نیمه خوا وه ، ورځې او کلونه تېر شول، فرصت را نه لاړ. وروسته به مې په کتاب کې ګوتې وهلې، څه به مې مخکې او څه وروسته کول، ځنې عبارتونه به مې بدلول، څه به مې پکې زیاتول، او دا ټول که څه هغه څه ه وو کوم چې د لیکنې په مهال مې سترګې پرې لګیدلې وې ، خو بیا هم ګټور او مهم دي ان شاء الله . همدا راز اوس پدې بریالی شوم تر ډیره حده پخواني مصادر وګورم چې له امله یې د هغو نویو مراجعو له احتیاج نه خلاص شوم کومې چې د لیکنې په وخت کې مې مراجعه ورته کړې او حواله مې یې ورکړې وه، دا دی پدې چاپ کې دا هم ورزیاتوم.
دا تمه مې هم درلوده چې د کتاب په اړه علمي او ارزښتناک ملاحظات تر لاسه کړم، تر څو د موضوعات په اصلي محتوی کې ګټه ورنه واخلم، خو پدې برخه کې چې کوم ملحوظات را رسیدلي هغه یو هم د موضوعاتو تر جوهر او اصل پورې اړه نلري، ټول د جانبي امورو په هکله دي چې څه ګټه ورنه نشي کیدلی، بلکه ځنې ملاحظات خو بالکل غلط او دومره بې اساسه دي چې متخصصین خو څه کوې باید عام ځیرونکي یې هم په خوله رانه وړي.
دا چاپ به چې زیاتونې او بدلونونه پکې شوې له مخکنیو چاپونو نه زیات ګټور او غوره وي ان شاء الله. او همدا اصلي اوقانوني چاپ دی . دا کتاب تر اوسه څو ځله د رابطې له خوا او څو ځله د مؤلف په اجازه د یو شمیر ورونو له خوا چاپ شویدی، خو په لس ګونو طبعې یې داسې دي چې د مؤلف له اجازې پرته په غیر قانوني توګه چاپ شوې ، خپروونکو د کتاب ښه شهرت ته کتلي او چاپ کړی یې دی، ځینو خو دومره جرات کړی چې د کتاب ټول حقوق یې هم دځان لپاره محفوظ بللي، الله تعالی دې هدایت ورته وکړي، او دا توفیق دې ورکړي چې د هغې ورځې له راتګ نه مخکې چې نه دوستي شته پکې او نه سوداګري، ټول حقوق پخپلو حقدارانو وسپاري.
و صلی الله علی خیر خلقه محمد و علی آله و صحبه و بارک وسلم.

۱۸ ربیع الاول ۱۴۱۵هـ ق
۲۲ اګست ۱۹۹۴م
صفي الرحمن مبارکپوري
الجامعة الاسلامیة ، المدینة المنورة

# د ښاغلي دکتور عبد الله عمر نصيف خبرې

الحمد لله الذي بتعمته تتم الصالحات، و اشهد ان لا اله الا الله وحده لا شريک له، و اشهد ان محمدا عبده و رسوله و صفيه و خليله، ادى الرسالة و بلغ الامانة و نصح الامة و ترکها على المحجة البيضاء ليلها کنهارها، صلى الله عليه و على آله و صحبه اجمعين، و رضي الله عن کل من تبع سنته و عمل بها الى يوم الدين، و عنا معهم بعفوک و رضاک يا ارحم الراحمين. اما بعد:

[ټولې ستاينې هغه الله لره دي چې په نعمت سره يې نيکۍ سرته رسيږي، شاهدي وايم چې له الله پرته بل د عبادت وړ معبود نشته، الله يوازې دی، شريک نلري، او شاهدي وايم چې محمد يې بنده او رسول، او غوره او خليل دی. محمد (صلى الله عليه وسلم) خپل رسالت ادا کړی، امانت يې رسولی ، امت ته يې نصيحت کړی، او پداسې سپين غولي يې پريښی چې شپه يې له ورځ داسې رڼا ده، د الله درود دې وي پر محمد (صلى الله عليه وسلم) آل او اصحابو يې. الله دې راضي وي له هغه نه چې تر قيامته دهغه د سنت پيروي کوي او عمل ورباندې کوي. اې ارحم الراحمين خدايه! مونږ هم له خپلې عفوې او رضا نه برخمن کړه.]

سپيڅلی نبوي سنت هغه ذخيره او توښه ده چې تر قيامته به پاتې وي، خلک به يې په هکله خبرو او ليکنو کې سيالۍ او مسابقې کوي، د موضوعاتو په اړه يې د خبرو، کتابونو او ليکنو لړۍ د رسول (صلى الله عليه وسلم) له بعثت نه پيل شوې او تر هغې به دوام لري تر څو قيامت قايم شي. دا سنت هغه مشال دی چې د ژوند تر پايه د مسلمانانو لپاره لاره روښانه ساتي، د سلوکياتو، افعالو، اقوالو، له خدای سره اړيکو، له کورنۍ، خپلوانو، ورونو، امت او ټول بشريت سره د اړيکو په برخه کې عملي قدوه او نمونه ورته وړاندې کوي.

الله تعالی فرمايلي: {لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُو اللهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللهَ كَثِيراً} [الأحزاب: ۲۱]. [يقينا د تاسو هر هغه چا لپاره په رسول الله کې ډېره غوره اسوه ده، چې د الله او آخرت هيله لري او الله ډېر يادوي.]

له حضرت عائشة (رضوان الله عليها) نه چې د رسول (صلی الله عليه وآله وسلم) د اخلاقو په هکله پوښتنه وشوه ، نو ويې فرمايل: (كان خلقه القرآن) قرآن يې اخلاق و.

پدې کې شک نشته څوک چې برى او نجات غواړي، نو په ټولو دنيوي او اخروي چارو کې به د الهي منهج پيروي کوي او د رسول (صلی الله عليه وسلم) په قدمونو به پل ږدي، نبوي سيرت به د خپل فکر او تدبر اساس ګرځوي او پدې ايمان پيدا کوي چې دا الهي منهج چې رسول (صلی الله عليه وسلم) د ژوند په ټولو برخو کې په عملي توګه پلی کړى، هغه خزانه ده چې د هر چا لپاره د هدايت ضمانت کوي،پدې کې د مشرانو،کشرانو، قومندانانو، افرادو، حاکمانو، محکومينو، وعظ کوونکو، وعظ اوريدونکواو مجاهدينو ټولو لپاره لارښوونې او هدايت شته. د ژوندانه په هر ډګر کې بشپړې لارښوونې لري، په سياست، حکومت، اقتصاد، اجتماع، انساني اړيکو، اخلاقو او نړيوالو اړيکو کې د هدايت اوچت ځلی او نيکه قدوه ده.

مسلمانان چې لدې سيده لارې او الهي منهج نه د ليرې والي او انحراف له امله د جهالت او وروسته والي په کنده کې لويدلي، بايد بيرته خپلې اصلي لارې ته راوګرځي، سپيڅلي نبوي سيرت ته مخه کړي، په تعليمي نصاب کې يې شامل کړي.

او پدې پوه شي چې دا سيرت تش تاريخ او فکري تسکين نه دی ، بلکه دا الله تعالی ته د عودت او رسيدو لار ده. پدې سره انسانان اصلاح کيږي، دا د خلکو د نجات او برى لار ده، او دا د الله تعالی د کتاب عملي ترجمه، تصوير او تمثيل دی، او دا هغه نظام دی چې په تطبيق سره يې مسلمان او مؤمن د ژوند په ټولو چارو کې د الهي شريعت تابع او خاضع ګرځوي.

دا کتاب [الرحيق المختوم] د مؤلف محترم الشيخ صفي الرحمن المباركفوري له خوا يوه غوره او د ستاينې وړ هڅه ده. محترم مؤلف د رابطة العالم الاسلامي غوښتنې ته په ځواب سره د نبوي سيرت په هغه مسابقه کې ګډون وکړ، کومه چې په **۱۳۹۲**هـ ق کال کې د همدې ادارې له خوا تنظيم شوې وه. او لکه چې د کتاب د لومړي چاپ په

مقدمه کې د رابطې پخواني عمومي سکرتر محترم الشیخ محمد علي الحرکان (رحمه الله، و جزاه الله عنا خیر الجزاء) ویلي دغه کتاب په همغه مسابقه کې لومړی مقام وګاټه.

خلکو ډیر خوښ کړ، زیاتې ستاینې یې وشوې، د لومړي چاپ ټولې نسخې خلاصې شوې، له ما نه یې وغوښتل د دریم چاپ لپاره څه ولیکم، چې دادی دا لنډه مقدمه مې ولیکله، له الله عزوجل نه سوال کوم چې دا عمل د خپل ذات لپاره خاص کړي، مسلمانانو ته یې د ګټې، خیر او غوره بدلون وسیله وګرځوي، او امت ته بیرته هغه له لاسه وتلی برم او د بشریت د مشرتابه مقام ورکړي، تر څو امت ددې الهي قول عملي مصداق شي چې فرمایي: {كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ} [آل عمران: ۱۱۰]. [تاسو هغه غوره امت یاست چې د خلکو لپاره پیدا شوي یئ، په نیکۍ امر او له بدۍ نه نهی کوئ، او په الله ایمان لرئ.]

و صلی الله علی المبعوث رحمة للعالمین، رسول الهدی و مرشد الانسانیة الی طریق النجاة والفلاح، و علی آله و صحبه و سلم. والحمد لله رب العالمین.

دکتور عبدالله عمر نصیف
د رابطة العالم الاسلامي عمومي سکرتر (پخوانی)
د سعودي عربستان د مجلس الشوری د رئیس مرستیال

# د محترم الشيخ محمد بن علي الحركان خبرې

الحمد لله رب العالمين، خالق السموات و الارض، و جاعل الظلمات و النور، و صلی الله علی سيدنا محمد خاتم الانبياء والرسل اجمعين، بشر و انذر و وعد و اوعد، انقذ الله به البشر من الضلالة، و هدی الناس الی صراط مستقيم، صراط الله الذي له ما في السموات و ما في الارض الا الی الله تصير الامور. و بعد:

[ټولې ستاينې هغه الله لره دي چې د عالميانو پروردګار دی. د آسمانونو او ځمکې، تيارو او رڼا پيدا کونکی دی، د الله تعالی درود دې وي زمونږ پر سردار د ټولو نبيانو او رسولا پر خاتم محمد باندې، هغه چې زيری راوړونکی او ويرونکی و، وعده کونکی او ګواښونکی، الله تعالی په همده سره بشريت له ګمراهۍ نه وژغوره او د همده په واسطه يې خلک نيغې لارې ته هدايت کړل، د هغه الله لارې ته چې د آسمانونو او ځمکې واکمني له همده سره ده، ياده دې وي چې هر څه د الله لوري ته ورتلونکي دي.]

الله سبحانه و تعالی چې خپل رسول ته د شفاعت حق او لوړه درجه ورکړه، مسلمانانو ته له ده سره د محبت امر او هدايت وکړ، او د ده پيروي يې د الهي محبت نښه وبلله، الله تعالی فرمايي:

{قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ}[آل عمران: ٣١].

[ورته ووايه که چيرې له الله سره محبت لرئ ، نو زما (محمد) پيروي وکړئ ، الله به له تاسو سره محبت وکړي او ګناوې مو دربښي.]

همدا هغه اسباب دي چې له امله يې زړونه له رسول (صلی الله عليه وسلم) د محبت هيله من کيږي، او د هغه په لټه پسې په حرکت راځي چې رسول (صلی الله عليه وسلم) ته د وصول او رسيدو سبب کيږي. د اسلام له لمر څرک نه را پديخوا مسلمانان د رسول اکرم (صلی الله عليه وسلم) د محاسنو په بيان او سپيڅلي سيرت په خورولو کې

سیالي او مسابقې کوي. د رسول (صلی الله علیه وسلم) اقوال، افعال او لوړ اخلاق د هغه سیرت دی، ام المؤمنین حضرت عائشة (رضي الله عنها) يې د اخلاقو په هکله وايي: (**کان خلقه القرآن**). قرآن دمحمد (صلی الله علیه وسلم) اخلاق و. او معلومه ده چې قرآن خو د الله کتاب او بشپړ کلمات دي، او څوک چې پدې لوړ مقام کې قرار ونیسي په رښتیا چې هغه له ټولو خلکو نه غوره، اکمل، او له ټولو نه د زیات محبت حقدار دی.

له رسول (صلی الله علیه وسلم) سره د همدې مسلسل او دوامدار محبت له امله وه چې په ۱۳۹۲هـ.ق کال کې د پاکستان له خوا د سپیڅلي نبوي سیرت لومړنی اسلامي کنفرانس جوړ شو، او هملته وه چې رابطة العالم الاسلامي د سیرت په هکله دمسابقې اعلان وکړ او ژمنه یې وکړه چې پدې برخه کې لیکل شویو لومړنیو پنځو کتابونو یا څیړنو ته به د یو سل او پنځوس زره سعودي ریالونو په اندازه جایزه ورکوي. خو د کتاب یا څیړنې لپاره یې دا شروط وټاکل:

١. بحث یا لیکنه باید بشپړه وي، او تاریخي پيښې پکې د واقع کیدو د نیټې په اساس ترتیب شوې وي.
٢. څیړنه باید په زړه پورې وي او مخکې نه وي خپره شوې.
٣. څیړونکی باید ټول هغه مخطوطات او علمي مصادر ذکر کړي، کوم چې په لیکنه کې یې استفاده وره کړې وي.
۴. لیکونکی باید خپل بشپړ ژوند لیک ولیکي، تعلیمي سویه وښیي او که تالیفات ولري نومونه یې واخلي.
۵. لیکنه دې په ښه او واضح خط ولیکل شي، که ټیپ شي غوره به وي.
٦. لیکنې په عربي ژبه او یا نورو ژوندیو ژبو د منلو وړ دي.
٧. د بحث د منلو نیټه د ۱۳۹۲ هـ کال د ربیع الثاني له لومړۍ نیټې نه پیل او ۱۳۹۷هـ.ق دمحرم په لومړۍ پای ته رسیږي.
٨. لیکنې په بنده لفافه کې په مکه کې د رابطة العالم الاسلامي عمومي سکرتریت ته سپارل کیږي، او د ادارې له خوا ځانګړې مسلسله شماره ورکول کیږي.
٩. بحثونه به پدې برخه کې له لویو علماوو نه جوړه شوې کمیټه ګوري.

دې اعلان هغه علماء مسابقې ته وهڅول چې الله تعالی د خپل رسول (صلی الله علیه وسلم) محبت ور په برخه کړیدی. د رابطې دفتر تیاري ونیوله چې په عربي، انګلیسي، اردو او یا

کومه بله ژبه لیکل شوې لیکنې به مني.
ورونږ خپل بحثونه ولیکل او مونږ یو سل یو اویا بحثونه راورسیدل، لدې جملې نه۸۴ بحثونه په عربي ، ۲۴ په اردو ، ۲۱ په انګلیسي، یو په هوساوي او یو په فرانسوي ژبه لیکل شوی و.
رابطې د لویو علماوو کمیټه جوړه کړه تر څو دا بحثونه او لیکنې وګوري، او په درجه یې برابرې کړي. هغه لیکنې او بحثونه چې د جائزې وړ وبلل شول پدې ترتیب دي:

۱. د لومړۍ جائزې ګټونکی د هند له الجامعة السلفية نه الشيخ صفي الرحمن المباركفوري وپیژندل شو او د جائزې اندازه یې پنځوس زره ریاله وه.
۲. دوهمه جائزه د د دکتور ماجد علي خان چې د هند د نوي ډیلي له الجامعة الملية نه دی، په برخه ورسیده او اندازه یې څلویښت زره ریاله کیږي.
۳. دریمه جائزه په پاکستان د الجامعة الاسلامية رئيس دکتور نصير احمد ناصر وګټله او دا دیرش زره ریاله وه.
۴. څلورمه جائزه د مصر استاذ حامد محمود محمد منصور لیمود و ګټله او د هغې اندازه شل زره ریاله وه.
۵. پنځمه جائزه د سعودي عربستان د مدینې منورې استاذ عبد السلام هاشم تر لاسه کړه او هغه لس زره ریاله وه.

د بریالیو پنځو څیړونکو نومونه د رابطې له خوا په هغه اسلامي کنفرانس کې اعلان شول چې د ۱۳۹۸هـ.ق په شعبان میاشت کې د پاکستان په کراچۍ ښار کې جوړ شوی و. همدا راز د بریالیو نومونه په ټولو اخبارونو کې هم خپاره شول.
په همدې مناسبت د رابطې عمومي سکرتریت پخپل دفتر مکه مکرمه کې د مکې د امارت د وکیل شهزاده سعود بن عبد المحسن بن عبد العزیز تر لارښوونې او اشراف لاندې یوه لویه غونډه را وبلله. او همدلته د۱۳۹۹کال د ربیع الاول په دوولسمه نیټه د هفتې په سهار شهزاده سعود د مکې مکرمې د امیر شهزاده فواز بن عبد العزیز په استازیتوب جائزې ګټونکو ته وسپارلې.
په همدې غونډه کې رابطې اعلان وکړ چې دا بریالي بحثونه به چاپوي او په څو ژبو به یې خپروي، د همدې ژمنې په اساس دا دی د چاپ لړۍ د همغه بحثونو د سر په ګل سره پیلوو. دا د هند د سلفیه جامعې د شیخ صفي الرحمن مبارکفوري بحث دی، څکه همده لومړی مقام ګټلی و. ورپسې نورې لیکنې او بحثونه په خپل ترتیب سره چاپ ته سپارو. له

الله تعالی نه سوال کوو چې زمونږ ټولو اعمال خالص دځان لپاره  قبول کړي، انه نعم المولی و نعم النصیر.

و صلی الله علی سیدنا محمد و علی آله و صحبه وسلم.

محمد بن علي الحرکان
د رابطة العالم الاسلامي عمومي سکرتر

# د مؤلف خبرې

الحمد لله الذي أرسل رسوله بالهدي ودين الحق ليظهره على الدين كله، فجعله شاهدًا ومبشرًا ونذيرًا، وداعيًا إلى الله بإذنه وسراجًا منيرًا، وجعل فيه أسوة حسنة لمن كان يرجو الله واليوم الآخر وذكر الله كثيرًا. اللهم صل وسلم وبارك عليه وعلى آله وصحبه ومن تبعهم بإحسان إلى يوم الدين، وفجّر لهم ينابيع الرحمة والرضوان تفجيرا.

وبعد:

[ټوله ثنا هغه الله لره ده چې خپل رسول يې له هدايت او حق دين سره راليږلی، تر څو پر ټولو اديانو برلاسي ورکړي، نو هغه يې شاهد، زيری ورکونکی او ويرونکی، د خدای په امر د خدای لوري ته بلونکی او روښانونکی چراغ ګرځولی، او د هغو کسانو لپاره يې نيکه قدوه ګرځولی کوم چې الله ډير يادوي او په الله او آخرت پوري زړونه تړي. يا خدايه! پر رسول(صلی الله عليه وسلم) درود، سلام او برکت وکړه، په آل، اصحابو او دقيامت تر ورځې پيروانو يې هم همدا پيرزوينه وکړه، د رحمت او رضا چينې ورته را وخوټوه.]

د رخې (غبطې) او خوښۍ ځای دی چې رابطة العالم الاسلامي په پاکستان کې د سپيڅلي نبوي سيرت د کنفرانس په پای يعنې د ۱۳۹۲هـ کال د ربيع الاول په مياشت کې د سيرت په اړه د ليکنې او څيړنې نړيواله مسابقه اعلان کړه، تر څو په سپيڅلي سيرت کې تر ټولو غوره بحث وليکل شي، او تر څو ليکونکي تشويق او وهڅول شي او خپلې فکري هڅې ترتيب او تنظيم کړي. زه فکر کوم چې دا ډير ارزښتناک کار دی. ځکه که څير شو نبوي سيرت ـ على صاحبها مايستحق من الصلاة والسلام ـ هغه يوازينې منبع او چينه ده چې د اسلامي ټولنې ژوند او بشريت نيکمرغي ورپوري تړلې ده.

زما نيکمرغي ده چې پدې مبارکه مسابقه کې پخپلې ليکنې سره ونډه اخلم، خو چيرته زه او چيرته دا مقام چې د سيد المرسلين، سيد الاولين والاخرين په ژوند رڼا واچوم. زه هغه څوک يم چې ټوله نيمکرغي او نجات مې پدې کې وينم چې د هغه له نور نه رڼا واخلم تر څو په تيارو کې ورک او هلاک نه شم، او زه هغه عاجز يم چې په ژوند يې له امت نه يم ، مرم به او امتي به يې وم، او دهمده په شفاعت سره به مې الله تعالی ګناوې راته ببښي.

پدې کتاب کې زما اسلوب هسې دی چې د رابطې د شروطو له پوره کولو سره سره مې پوره اعتدال مراعات کړی، له سترې کونکي اوږدوالي او مخل يا ناقصونکي لنډوالي نه مې ځان ساتلی. ځينې موضوعات مې داسې مخې ته راغلي چې په هکله يې د مصادرو تر منځ داسې اختلاف وجود درلود چې جمع او توفيق يې ممکن نه و ، پداسې حالت کې مې له ترجيح نه کار اخيستی او هغه څه مې په کتاب کې ليکلي چې له څيړنې، تدقيق او نقد نه وروسته راجح او قوي راته ښکاره شويدي، خو د ترجيح دلايل او وجوهات مې له اوږدوالي نه د ويرې له امله نه دي ذکر کړي.

د رواياتو د منلو او ردولو په اړه مې د محققو امامانو له ليکنو نه استفاده کړيده، او د صحيح، حسن او ضعيف په پيژندلو کې مې د دوی پر حکم او فيصلو باور او تکيه کړيده، ځکه وخت د نور تدقيق او بحث اجازه نه راکوله.

په ځينو ځايونو او موضوعاتو کې مې يو شمير دلايلو او د ترجيح وجوهاتو ته اشاره کړيده، او دا په هغه ځای کې چې ويريدلی يم لوستونکي حيران نه شي، عجيبه ورته ښکاره نه شي، او يا په هغه موضوع او ځای کې چې ليدلي مې دي لومړنيو او وروستنيو ټولو هسې خبره کړيده او په داسې څه يې اتفاق کړی چې صحيح نه دی. والله ولي التوفيق.

اللهم قدر لي الخير في الدنيا والآخرة انک انت الغفور الودود ، ذو العرش المجيد.

صفي الرحمن المبارکفوري

بنارس۔ هند

# دعربو موقعيت اوقومونه

نبوي پاک سيرت په حقيقت کې له هغه رسالت (پيغام) نه عبارت دی کوم چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) بشري ټولنې ته راوړی، او په هغه سره يې خلک له تيارو نه رڼا او د بندګانو له عبادت نه ديوه الله (جل جلاله) عبادت ته رابللي دي.
د دې سپيڅلي سيرت ريښتونې اوحقيقي څيره تر هغې پورې په سيي توګه نه شي څرګنديدی ترڅو د دې رسالت نښې او آثار له هغه نه مخکنيو شيانو او حالاتو سره نه وي پرتله شوي، نو له همدې کبله مونږ د کتاب په لومړني فصل کې له عربي قومونو له اسلام نه وړاندې د هغوی له تطور او بدلون، او له هغې وضعې او حالاتو نه خبرې کوو په کومه کې چې محمد(صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په نبوت مشرف شوی و.

## د عربو موقعيت

العرب په لغت کې دښتو، ډاګونو او هغه وچو ځمکو ته ويل کيږي چې نه پکې اوبه وي او نه بوټي. عربي جزيره او د دې سيمې اوسيدونکي له ډيرې پخوا زمانې راهيسې پدې نامه ياديږي. د دې جزيری لويديځ ته سره بحيره او د سينا ټاپوزمه، ختيځ ته خليج او د عراق جنوبي زياتره برخې، جنوب ته عربي بحيره چې له بحرالهند نه امتداد مومي، او شمال ته يې شام اوعراق (که څه هم هلته د پولو په هکله اختلاف وجود لري) پروت دی. مساحت يې د يو مليون متر مربع او يو ميليون او دری سوه زره ميله مربع تر منځ اټکل شويدی. داجزيره د طبيعي جغرافيايي موقعيت له پلوه ډيره ارزښتناکه ده. چارچاپيره ئې داسې پراخه او ارتې دښتې او ريګستانونه دي چې دې جزيرې ته يې د يوې داسې پخې کلا بڼه ورکړيده چې پردي ورباندې په آسانۍ سره تسلط او قبضه نشي لګولی، او همدا وجه ده چې ددې سيمې خلک له ډيرې پخوا زمانې راهيسې پخپلو ژوندونو او کارونو کې آزاد او خود مختاره دي. که دا دښتې او ريګستانو نه نه وای نو بيا د عربو له وسه نه وه پوره چې د خپلو پولو نه اخوا پرتو دوو لويو امپراطوريو حملې او يرغلونه په شا وتمبوي او يا د هغوی له تسلط نه آزاد پاتې شي.
له بله پلوه دا جزيره د نړۍ د مشهورو وچو په مينځ کې پرته ده او له هغو ټولو سره د

وچې او اوبو له لارې ترل شویده، پدې معنی چې په شمال کې له افریقا، شمال ختیځ کې له اروپا، او لویدیځ کې له عجمو، منځني او نژدې ختیځ او همداسې له هند او چین سره لاره لري. همدا راز د اوبو له لارې له دې ټولو وچو نه کښتۍ او بحري جهازونه سیخ سیده د دې جزیرې بندرګاه ته راتلی شي.
او د همدې جغرافیایي موقعیت له برکته د عربي جزیرې شمالي او جنوبي برخو په تیره زمانه کې د مختلفو ولسونو لپاره د ورکړې راکړې (تجارت) فرهنګ، دیانت، هنر، فن او علم د یوه لوی مرکز حیثیت درلود.

## عربي قومونه

تاریخ پوهانو عربي قومونه د عربو د اصل او نسل په اساس په دریو برخو ویشلي دي:
**۱ ـ** ( البائدة ) **له مینځه تللي عربان:** دا هغه پخواني عربان دي چې په هکله یې پوره تاریخي معلومات په لاس ندي راغلي، او دا لکه د عاد، ثمود، طَسْم، جَدِیس، عِمْلاق، أُمَیْم، جُرْهُم، حَضُور، وَبَـــار، عَبِیل، جاسم، حَضْرَمَوت او نور قومونه.
**۲ ـ** عاربة **عربان:** دوی د یَشْجُب بن یَعْرُب بن قَحْطان اولاده ده، او قحطاني عربان ورته ویل کیږي.
**۳ ـ مستعرب عربان:** دوی د اسماعیل (علیه السلام) اولاده ده او عدناني عربان بلل کیږي.

**د** عاربة **عربانو (قحطان پښنه)** اصلي ځای یمن دی. **د سبأ بن یشجب بن یعرب بن قحطان** له اولادې نه زیاتې قبیلې لري، **خو دوې قبیلې یې حِمْیَر بن سبأ، او کَهْلان بن سبأ ډیرې مشهورې دي**، او نورې یوولس یې دومره شهرت **نلري**. او دغه عربان د **سبأ له اولادې نه پرته نورې قبیلې نلري.**
الف: **حِمْیَر بن سبأ**، چې مشهورې کورنۍ یې :

۱ ـ **قُضَاعة:** او له هغې نه **بَهْراء، َبلِيٌّ، القَیْن، كَلْب، عُذْرَة** او **وَبَرَة** منځته راغلې.

۲ ــ السَّكاسك: دا د بنو زيد بن وائلة بن حمير كورنۍ ده، او د زيد لقب سكاسك و. او دوی د كِنْدة له سكاسك نه بيل قوم دی.

۳ ــ زيـــد الجمهـــور: او پښې يې حمير الأصغر، سبأ الأصغر، حضور، او ذو أصبح دي.

ب: كَهْلان بن سبأ، مشهورې كورنۍ يې دا دي:

هَمْدان، أَلْهَان، الأشْعَر، طيئ، او مَذْحِج [له مذحج نه: عَنْس او النَّخْع]، او لَخْم [له لخم نه: كندة، او له كندة نه : بنو معاوية، السَّكُون او السكاسك]، او جُذَام، عاملة، خَوْلان، مَعَافِر، او أنمار [او له أنمار نه: خَثْعَم، بَجِيلَةَ، او له بجيلة نه: أحْمَس] او الأَزْد، [او له الأزد نه: الأوس، الخزرج، خُزَاعة او د جَفْنَة اولاده چي د شام پاچايان وو او آل غسان شهرت لري].

د كهلان كورنۍ پخوا له يمن نه وتلې او د جزيرې په مختلفو برخو كې خورې شويدي زياتره يې له عرم سيلاب نه مخكې هغه وخت له يمن نه ووتلې كله چې روميانو مصر او شام ونيول او د يمن په تجارتي بحري لارو يې هم قبضه ولګوله، د وچې لارې يې هم ګډې وډې كړې. ددې تر څنګ د كهلان او حمير كورنيو خپل مينځي جګړې او مقابلې هم د دې سبب شوې چې كهلان وطن پريږدي او د حمير قبيله پخپل ځای پاتې شي.

## د كهلان قبيلې مهاجرين په څلورو برخو ويشلی شو:

۱ - ازد – دوی د خپل مشر عمران بن عمرو مزيقباء په امر خپل وطن پريښود، لومړی په يمن كې د ننه له يوه ځای نه بل ته تلل، راتلل، د حالاتو د معلومولو پخاطر يې د څار ګروپونه استول تر څو په پای كې د شمال په لور لاړل او مختلفې كورنۍ يې په مختلفو سيمو كې ميشتې شوې چې تفصيل يې داسې دی:

ثعلبه بن عمرو په حجاز كې د ثعلبيه او ذي قار تر مينځ واړول او كله يې چې اولادونه لوی شول او شميره يې ډيره شوه نو مدينې ته ننووت او هملته ميشت شو، اوس او خزرج او د حارثه بن ثعلبه اولاده له همدې (ثعلبه) قبيلې څخه دي.

حارثه بن عمرو (خزاعه) او اولاده يې په ظهران كې ځای په ځای شول، وروسته يې په

مکه حمله وکړه او د مکې اصلي اوسيدونکي (جرهميان) يې له مکې نه وايستل او دوی پکې ميشت شول.

عمران بن عمرو او اولاده يې عمان ته لاړل، همدوی د عمان ازديان دي.

د نصر بن ازد کورنۍ په تهامه کې ميشته شوه او دوی ته ازد شنوءه وايي.

جفنه بن عمرو او اولاده يې شام ته ورسيدل او همك‌لته ميشت شول، جفنه په شام کې د غساسنه پاچايانو پلار و، دوی ته غساسنه ځکه ويل کيږي چې مخکې لدينه چې شام ته لاړ شي په حجاز کې يې د غسان په نامه مشهورې چينې تر خوا اړولي وو او همدې چينې ته د نسبت په اساس غساسنه وبلل شول.

**۲ـ لخم او جذام** – دوی د ختيځ او شمال په لوري لاړل. او **د لخم** له کورنۍ نه يو هم په حيره کې د مناذره پاچايانو پلار نصر بن ربيعه و.

**۳ـ بنو طيئ** – د ازد کورنۍ له وتلو وروسته بنو طيئ د شمال په لور وخوځيدل تر څو د اجا او سلمی نوميو غرونو تر مينځ ځای په ځای شول چې وروسته دا دواړه غرونه د طيئ د غرونو په نامه مشهور شول.

**۴ـ** کِنده- دوی لومړی بحرين ته لاړل، خو وروسته مجبور شول چې حضرموت ته ولاړ شي، هلته يې هم ګذاره ونشوه نجد ته لاړل او هلته يې لوی حکومت جوړ کړ، خو هغه هم ډير ژر له مينځه لاړ.

د حمير يوه قبيله (قضاعه) هم له يمن نه ووتله او د عراق د سرحدي برخو په السماوه نومي کلي کې ميشته شوه[1] خو پدې کې اختلاف شته دی چې قضاعه له حمير څخه وه او که نه.

## مستعرب عربان

د مستعربه عربانو نيکه حضرت ابراهيم (عليه السلام) اصلا د عراق د (ار) نومي ښار ګوټي اوسيدونکي و. (ار) د فرات سيند په لويديځه غاړه له کوفې سره نژدې پروت دی، په اوس وخت له ځمکې کيندنې او څيړنې وروسته د نوموړي ښارګوټي او د ابراهيم (عليه السلام) د کورنۍ او د دوی د ټولنيزې او ديني وضعې په هکله زيات

---

(1). د نوموؤو قبيلو د هجرت او نورو تفصيلاتو په هکله د الخضري تاريخ الامم الاسلاميه نومي کتاب ۱/۱۱-۱۳ او د قلب جزيره العرب کتاب ۲۳۱ او ۲۳۵ مخ ته مراجعه وکؤه. د نوموؤو قبايلو د هجرت د نيتګيګ او عواملو په هکله تاريخي منابع پخپل مينځګ کي زيات اختلافات لري خو مونږ دلته له زيات دقت او خګيؤنيګ وروسته هغه خګه رانقل کؤيدي چيګ د دليل له پلوه راته سيي او پياوؤي شګکاره شويدي.

معلومات په لاس راغلي دي.[۲]

څرګنده ده چې ابراهیم (علیه السلام) د عراق له (ار) نومي ځای نه حاران یا حران او له هغه ځای نه فلسطین ته تللی و او همدغه ځای یې د خپل دعوت لپاره مرکز ټاکلی و پدې ملک کې د ننه او بهر یې ډېر سفرونه کړیدي[۱]. یو ځل مصر ته تللی و هلته چې د وخت د فرعون له فریب او مکر سره مخ شوی و، فرعون غوښتل چې د ابراهیم (علیه السلام) ښځې حضرت ساره ته ضرر ورسوي، خو الله تعالی د هغه دا چل او ول ناکام کړ، فرعون پدې پوه شو چې ساره له خپل خدای (جل جلاله) سره څومره نژدې او ټینګې اړیکې لري، همغه وه چې خپله لور (هاجر)[۲] یې ساره ته د خادمې او نوکرې په صفت ورکړه او بیا ساره هغه (هاجر) ابراهیم (علیه السلام) ته په نکاح ورکړه.[۳]

ابراهیم (علیه السلام) بیرته فلسطین ته راستون شو او هلته الله تعالی له هاجر نه زوی ورکړ، دغه وخت له ساره سره څه ضد پیدا شو او ابراهیم (علیه السلام) یې دېته اړ یوست چې هاجر او وړوکی زوی یې (اسماعیل علیه السلام) له دې ځای نه وباسي، نو ابراهیم (علیه السلام) هغوی دواړه له ځان سره بوتلل او د بیت الله شریف سره خوا کې تر هغې لوی ونې لاندې یې ځای په ځای کړل چې په هغه لږ اوچت شانته ځای چې شا او خوا یې د سیلاب اوبو وهلي و ولاړه وه، هغه وخت په مکه کې هیڅوک هم نه اوسیدل ځکه هلته نه اوبه وې او نه واښه.

ابراهیم (علیه السلام) هاجر او اسماعیل (علیه السلام) ته لږ څه اوبه او یوه کمه اندازه خواړه (خرما) پریښودل او خپله بیرته فلسطین ته ستون شو، څو ورځې لانه وې تیرې شوې چې د دوی د څښاک اوبه او خواړه خلاص شول په همدې وخت کې د الله تعالی په فضل او کرم سره د زمزم چینه را وخوټیده او پدې ترتیب سره رحیم خدای د دوی د څښاک او خوراک تدبیر وکړ. دا کیسه اوږده او مشهوره ده.[۴]

وروسته د یمانیه قبیلې خلک (دوهم جرهمیان) راغلل او د اسماعیل (علیه السلام) د مور په اجازه په مکه کې میشته شول. ویل کیږي هغوی لدینه مخکې د مکې په شا او خوا درو کې اوسیدل.

---

[۲] تفهیم القران د سید ابو الاعلی مودودي لیکنه ۱/ ۵۵۳-۵۵۴-۵۵۵-۵۵۶

[۱] تفهیم القران ۱/۱۰۸

[۲] مشهوره دا ده چې (هاجر) وینځګه وه خو سر محقق او لیکوال قاضي محمد سلیمان المنصور پوري دا ثابته کؤیده چې (هاجر) د فرعون لور وه، او هغه وینځګه نه بلکه آزاده وه. رحمة للعالمین ۲/ ۳۶-۳۷.

[۳] رحمة للعالمین ۲/ ۳۴ . د تفصیل لپاره صحیح بخاري ۱/ ۴۷۴ وګوره.

[۴] صیح البخاري کتاب الانبیاء ۱/ ۴۷۴ –۴۷۵ ته مراجعه وکؤه.

د بخاري شريف له روايت نه دا په ډاګه کيږي چې يمانيان له اسماعيل (عليه السلام) نه وروسته خو مخکې لدينه چې هغه ځوان شي په مکه کې ميشت شوي وو، پداسې حال کې چې لدينه وړاندې به هم هغوی پدې دره باندې تيريدل.[1]

ابراهيم (عليه السلام) به کله کله د اسماعيل (عليه السلام) او حضرت هاجر د ليدو پخاطر مکې ته تشريف ووړ، خو دا نده معلومه چې څو ځله مکې ته تللی دی، تاريخي مصادرو مکې ته د ابراهيم (عليه السلام) يوازې څلور سفرونه ذکر کړيدي:

١- قرآنکريم فرمايي چې الله تعالی ابراهيم (عليه السلام) ته داسې خوب وروليد چې خپل زوی اسماعيل (عليه السلام) ذبح کوي، نو هغه هم د الله تعالی د دې امر د تعميل لپاره اقدام وکړ: (**فَلَمَّا أَسْلَمَا وَتَلَّهُ لِلْجَبِينِ** (١٠٣) **وَنَادَيْنَاهُ أَنْ يَا إِبْرَاهِيمُ** (١٠٤) **قَدْ صَدَّقْتَ الرُّؤْيَا إِنَّا كَذَلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ** (١٠٥) **إِنَّ هَذَا لَهُوَ الْبَلَاءُ الْمُبِينُ** (١٠٦) **وَفَدَيْنَاهُ بِذِبْحٍ عَظِيمٍ**) (الصافات: ١٠٣– ١٠٧)

[ترجمه: ((او کله چې غاړه کيښوده (دواړو حکم د الله ته) او وايې چاوه دغه (اسماعيل) پر ښي اړخ دده او غږ وکړ مونږ ده ته داسې چې اې ابراهيم! په تحقيق رښتيا کړ تا خوب (خپل او ومو مانه هغه له تا) بيشکه مونږ همداسې (نيکه جزا لکه د ابراهيم نېکه) جزا ورکوو (نورو محسناتو نيکو کارانو ته، بيشکه چې هم دا ذبحه خوا مخوا دا ابتلا ازموينه وه ښکاره او فديه مو ورکړه دغه (اسماعيل) ته په مذبوحې لويې سره)).]

په سفر التکوين (بايبل) کې راغلي چې اسماعيل (عليه السلام) له اسحاق (عليه السلام) نه (١٣) ديارلس کاله مشر و، او د نوموړې کيسې له سياق نه داسې معلوميږي چې دا پيښه د اسحاق (عليه السلام) له زيږيدو نه مخکې واقع شويده ځکه د اسحاق (عليه السلام) د پيدا کيدو زيری د کيسې په پای کې راغلی دی.

لدې کيسې نه دا ثابتيږي چې د اسماعيل (عليه السلام) له ځوانيدو نه مخکې ابراهيم (عليه السلام) لږ تر لږه يو ځل مکې ته سفرکړيدی. او د پاتې دريو نورو **سفرونو** تفصيلات يې بخاري شريف د ابن عباس (رضي الله عنهما) په روايت را نقل کړيدي چې لنډيز يې داسې دی[2]:

٢- کله چې اسماعيل (عليه السلام) ځوان شو او له جرهميانو نه يې عربي ژبه زده

---

[1] البخاري ج١/٤٧٥

[2] البخاري ج ١/٤٧٥ - ٤٧٦

کړه، د جرهميانو مينه ورسره پيدا شوه، نو يوه ښځه يې ده ته په نکاح ورکړه، دغه وخت يې مور (حضرت هاجر) وفات شوه. په همدې وخت کې حضرت ابراهيم (عليه السلام) هم د دوی د احوال او ليدو پخاطر مکې ته راغی، اسماعيل (عليه السلام) يې ونه موند، له ښځې نه يې دده او د ژوند د حال، احوال په هکله پوښتنه وکړه، ښځې يې له ژوند نه ډيرې ګيلې او شکوې وکړې، نو ابراهيم (عليه السلام) ورته وويل کله چې اسماعيل (عليه السلام) راغی ورته ووايه چې د دروازې ته درۍ دې بدله کړه. اسماعيل (عليه السلام) چې راغی د پلار په مقصد پوه شو، نو خپله دا ښځه يې طلاقه کړه، او د جرهم قبيلې د مشر مضاض بن عمرو له لور سره يې واده وکړ.[1]

۳ - د اسماعيل (عليه السلام) له دوهم واده نه وروسته ابراهيم (عليه السلام) يو ځل بيا مکې ته راغی، خو دا ځل يې هم خپل زوی ونه وليد، له ښځې نه يې د حال او احوال پوښتنه وکړه هغې د الله تعالی حمد او ثنا ويله او پخپل ژوند يې شکر يوست، نو ابراهيم (عليه السلام) ورته وويل:اسماعيل (عليه السلام) ته ووايه چې د خپلې دروازې ته درۍ دې ټينګه ساته، او پخپله بيرته فلسطين ته ستون شو.

دريم ځل چې کله ابراهيم (عليه السلام) مکې ته راغی اسماعيل (عليه السلام) زمزم اوبو ته نژدې تر يوې لويې ونې لاندې غشي جوړول، کله يې چې خپل پلار وليد ورپاڅيد يو له بل سره يې د مينې او محبت څرګندونه وکړه. د دوی دا ليدنه له ډيرې مودې جدايۍ وروسته شوې وه، ډيره ګرانه ده چې دومره اوږده موده دې د ابراهيم (عليه السلام) په شان مشر، مهربان او مشفق پلار د خپل زوی جدايي وزغملی شي، او يا دې د اسماعيل (عليه السلام) په شان نيک صالح، او مطيع زوی له خپل پلار نه بيل او جدا و اوسيدلی شي!! همدا ځل دوی دواړو (عليهما السلام) کعبه شريفه جوړه کړه او ابراهيم (عليه السلام) د الله تعالی په امر خلکو ته د حج کولو بلنه او دعوت ورکړ.

الله تعالی اسماعيل ( عليه السلام) ته د مضاض له لور نه دولس زامن ورکړل چې نومونه يې دادي[2]:

نابت يا نبايوط، قيدار، ادبائيل، مبشام، مشماع، دوما، ميشا، حدد، يتما، يطور، نفيس، قيدمان، بيا له دوی نه دولس کورنۍ جوړې شوی، يو څه موده ټول په مکه کې

---

[1] قلب جزيره العرب ص. ۲۳۰

[2] قلب جزيره العرب.

اوسيدل او د يمن، شام او مصر تر مينځ يې تجارت کاوه، بيا وروسته دا کورنۍ په ټوله عربي جزيره او حتی چې له جزيرې نه اخوا هم خورې شوې لدې معلوماتو نه علاوه د قيدار او نابت له اولادې پرته د نورو په هکله څه نور معلومات په لاس کې نشته.

انباطي تمدن د حجاز په شمال کې ډير پرمختګ وکړ،هغوی هلته يو پياوړی حکومت جوړ کړ (بطراء) د دوی پايتخت و، هيچا يې هم مقابله نشوای کولای، تر څو روميان راغلل او هغوی يې له مينځه يوړل. سليمان ندوي له ډير بحث او څيړنې وروسته وايي چې د آل غسان پاچايان او انصار (اوس او خزرج) د ال قحطان له اولادې څخه نه وو، بلکه هغوی د نابت بن اسماعيل (عليه السلام) له اولادې څخه دي[1].

د قيدار بن اسماعيل (عليه السلام) اولاده په مکه کې پاتې شوه، تر څو عدنان او وروسته يې زوی معد پيدا شول د عدناني عربو د نسب سلسله تر همدې ځايه پورې په سيي توګه محفوظ ده. عدنان د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يوويشتم نيکه دی. په يوه حديث شريف کې راځي: کله به چې رسول الله (صلی الله عليه وسلم) د خپل نسب شجره ويله نو چې عدنان ته به ورسيد توقف به يې وکړ او نور نومونه به يې نه يادول ويل به يې:(**کذب النسابون**). شجره ويونکو دروغ ويلي دي[2].

يو شمير عالمان له عدنان نه پورته هم د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د نسب د شجرې ويل روا بولي ځکه هغوی پدې هکله دا مخکې ياد شوی حديث ضعيف بولي، دوی وايي چې د عدنان او ابراهيم (عليه السلام) تر مينځ څلويښت پلرونه (پوشته) تير شويدي.[3]

ويل کيږي چې (معد) يو زوی درلود چې (نزار) نوميده، د نزار څلور زامن پيدا شول چې له هغوی نه د (اياد)، (انمار)، (ربيعه)، او (مضر) څلور لويې کورنۍ جوړې شوې، خو ربيعه او مضر ډيرې لويې او د زياتو ښنو درلودونکې کورنۍ دي. د ربيعه کورنۍ ښنی دا دي: اسد بن ربيعه، عنزه، عبدالقيس، د وائل دوه زامن (بکر، تغلب) حنيفه او نورې.

مضر قبيله په دوو لويو کورنيو قيس عيلان بن مضر او الياس بن مضر باندې ويشل شويده، بيا له قيس عيلان نه بنو سليم، بنو هوازن، بنو غطفان، او له غطفان نه عبس، ذبيان، اشجع او غني بن اعصر، او له الياس بن مضر نه تميم بن مره، هذيل بن

(1). تاريخ ارض القرآن ۲/ ۷۸ تر ۸۲
(2). الطبري ۱۹۱/۱ تر ۱۹۴. الاعلام ۲/۵
(3). رحمة للعالمين ۲/۷- ۸ -۱۴- ۱۵-۱۲ - ۱۷

مدرکه، بنو اسد بن خزيمه او د کنانه بن خزيمه کورنۍ، او له کنانه نه د قريشو قبيله چې د فهر بن مالک بن النضر بن کنانه له اولادې څخه دي جوړه شويده.
بيا قريش په مختلفو کورنيو ويشل شويدي چې مشهورې يې د جمح، سهم، عدي، مخزوم، تيم، زهره او د قصي بن کلاب کورنۍ دري واړه پښنې يعنی (عبدالدار بن قصي، اسد بن عبدالعزى بن قصي، او عبدمناف بن قصي) کورنۍ دي.
د عبدمناف کورنۍ څلور پښنې لري چې عبد شمس، نوفل، المطلب، او هاشم نوميږي، او د همدې هاشم له کورنۍ نه الله تعالی خپل رسول حضرت محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) بن عبدالله بن عبدالمطلب بن هاشم د رسالت لپاره غوره کړيدی.[1]
رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) فرمايلي:
**((إن الله اصطفى من ولد ابراهيم اسماعيل، واصطفى من ولد اسماعيل كنانه، واصطفى من بني كنانه قريش، و اصطفى من قريش بني هاشم و اصطفاني من بني هاشم))** .(رواه مسلم عن وائله بن الاسقع، باب فضل نسب النبي (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ٢٤٥/٢ و الترمذي ٢٠١/٢.) [الله تعالی د ابراهيم (عليه السلام) له اولادې نه اسماعيل (عليه السلام) او د اسماعيل (عليه السلام) له اولادې نه کنانه او له بني کنانه نه قريش، او له قريشو نه بني هاشم او له بني هاشم نه يې زه غوره کړی يم.]
له عباس بن عبدالمطلب (رضي الله عنه) نه روايت دی چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) فرمايي:**((إن الله خلق الخلق فجعلني من خير فرقهم و خير الفريقين، ثم تخير القبائل فجعلني من خير القبيلة، ثم تخير البيوت فجعلني من خير بيوتهم، فأنا خيرهم نفسا و خيرهم بيتا))**.(رواه الترمذي باب ماجاء فی فضل النبي (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ٢٠١/٢.
[الله تعالی مخلوق پيدا کړ، نو زه يې په له ټولو نه غوره فرقه او ډله کې وګرزولم، بيايې د هغوی په دوو غوره ډلو کې هم له هغې ډيرې غورې ډلې نه وګرزولم، بيايې قبيلې غوره کړې او زه يې په له ټولو نه غوره قبيله کې

[1]. محاضرات تاريخ الامم الاسلامية للخضري بك ۱۴/۱-۱۵

وګرزولم، بیايې کورنۍ غوره کړې زه يې له ټولو نه په غوره کورنۍ کې وګرزولم، نو زه د خپل ذات له پلوه او د خپلې کورنۍ له اړخه (یعنی له دواړو خواوو نه) له ټولو نه غوره او بهتر یم.]

او کله چې د عدنان اولاده زیاته شوه، نو د عربي وطن په مختلفو برخو کې خواره شول. عبدالقیس، د بکر بن وائل او د تمیم څنې کورنۍ بحرین ته لاړې، بنوحنیفه بن صعب بن علي بن بکر یمامه ته لاړل او په حجر نومي ځای کې میشته شول، د بکر بن وائل نورې کورنۍ له یمامه، بحرین سیف کاظمه، خلیج او ان د عراق تر شا او خوا سیمو لکه ایله او هیت پورې ورسیدلې، د تغلب څنې کورنۍ د فرات په جزیره او نور یې له بکر سره میشته شول، بنو تمیم د بصرې په دښته کې واړول.

بنوسلیم مدینې ته نژدې د القرى له درې نه تر خیبره او له خیبر نه د مدینې تر ختیځ، او د مدینې له ختیځ نه تر جبلین او پدې ترتیب سره ان تر حره نومې سیمې پورې خواره شول. ثقیف په طائف او هوازن د مکې په ختیځ د اوطاس په برخه کې چې د مکې او بصرې په لاره کې پرته ده ځای په ځای شول. بنو اسد د تیماء په ختیځه او د کوفې په لویدیځه خوا کې میشت شول، د دوی او تیماء تر مینځه د طي قبیلې بحتر نومې کورنۍ اوسیدله، د دوی له ځای نه تر کوفې پورې د پنځو شپو مزل و. ذبیان کورنۍ د تیماء سره خوا کې تر حوران پورې پرته وه. د کنانه کورنۍ په تهامه او د قریشو ښنه په مکه او شا او خوا سیمو کې پاتې شول، خو هغوی ډیر خپل مینځي اختلافات درلودل، اتفاق يې نه درلود بلکه تیت او پرک و تر څو چې قصي بن کلاب څوان شو، او دوی ې سره متحد او یو موټی کړل، د نفاق اور يې ګل کړ، او خپل قوم يې د یووالي په رسۍ سره وتاړه، او د همدې اتفاق او وحدت له برکته هغوی د قدر، مقام او منزلت خاوندان شول[1].

---

[1]. محاضرات تاریخ الامم الاسلامیة للخضري بك ۱/۱۵-۱۲

# د عربو حکومت او امارت

کله مو چې وغوښتل له اسلام نه وړاندې د عربو له حال او احوال نه خبرې وکړو، نو لازمه مو وليده چې د عربو د حکومت، امارت، قومونو او مذهبونو د تاريخ په هکله هم لنډ شانته معلومات وړاندې کړو، تر څو د اسلام د ظهور په وخت کې د وضعې څرګندونه او پيژندنه راته آسانه شوې وي. د اسلام له لمر څرک نه مخکې عربي واکداران په دوه ډوله وو، يو ډول يې داسې تاج لرونکي پاچايان وو چې په حقيقت کې يې پوره استقلال او آزادي نه درلوده، بل ډول د قبائلو او کورنيو مشران وو چې د پاچايانو په شان د پوره صلاحيت او امتيازاتو خاوندان وو، او زيات شمير يې د پوره استقلال درلودونکي هم وو، او کيدای شي چې يو شمير نورو به يې د کوم پاچا تابعيت هم درلود. د يمن، آل غسان او الحيره پاچايان تاج لرونکي او نور پاتې بې تاجه پاچايان وو.

## د يمن پاچايي

په يمن کې د العاربه عربو له مينځ نه تر ټولو لومړی پيژندل شوی قوم د سبا قوم دی. د (اور) په څمکه کيندنه چې پدې وروستيو کې شوې څنې داسې معلومات په لاس راغلي دي چې له ميلاد نه (۲۵) پيړۍ مخکنيې زمانه پورې اړه لري او د ددی قوم (سباء) يادونه هم پکې شويده. د دوی د تمدن پرمختګ او واکمنۍ وسعت او پراختيا له ميلاد نه يوولس (۱۱) پيړۍ مخکې شروع شويدی .

د دوی واکمني په لاندې ډول په مختلفو مرحلو ويشلی شو:

<u>۱_ له ۶۵۰ ق. م نه مخکې پيړۍ</u>، پدې وختونو کې د دوی پاچايان د ((مکرب سبا)) په نامه يادېدل، پايتخت يې د (صرواح) ښار و چې لا تر اوسه پورې يې د مارب ښار لويديځ لوري ته د يوې ورځې مزل په اندازه ليرې مسافه کې نښې نښانې ليدلې کيږي او د (خريبه) په نامه يادول کيږي. د يمن په تاريخ کې مشهور بند (سدمارب) هم په همدې دوره کې جوړ شويدی. ويل کيږي چې د سبا قوم د واکمنۍ لمن دومره پراخه وه چې د عربي وطن په د ننه او بهر کې يې ډيرې مستعمرې درلودې.

<u>۲_ له ۶۵۰ ق.م نه تر ۱۱۵ ق.م پورې</u>، پدې دوره کې د دوی پاچايان د سبا د پاچايانو

په نامه یادیدل، او د مکرب لقب یې پرېښود پایتخت یې له صرواح نه مارب ته انتقال کړ، او اوس هم د صنعاء ختیځې خواته شپیته (۶۰) میله لیرې د دې ښار (مارب) نښې نښانې لیدل کیږي.

**۳** ـ له **۱۱۵**ق. م نه تر **۳۰۰**م پورې، پدې دوره کې حمیر قبیلې د سبا پاچایانو ته ماتې ورکړه او د (مارب) په ځای یې د (ریدان) ښار خپل پایتخت وټاکه دا ښار وروسته د (ظفار) په نامه ونومول شو، ځنې آثار یې تر اوسه پورې (یریم) ته نژدې د مدور په غره باندې باقي پاتې دي. د هغوی انحطاطه (ځوړتیا) له همدې دورې نه پیل شوه، تجارت یې له ناکامۍ سره مخ شو ځکه چې لومړی د حجاز پر شمال انباطیانو خپل تسلط ټینګ کړ او د سبا قوم یې له دې ځایه ویوست ورپسې رومیانو په مصر، سوریې او د دوهم ځل لپاره په شمالي حجاز باندې له تسلط او واکمنۍ وروسته بحري تجارتي لارې هم تر خپل کنترول لاندې راوستلی، او لدې نه علاوه د مختلفو قبیلو خپل مینځي اختلافات هم د دې سبب شول چې ال قحطان د ورکې او تباهۍ په څنډه ودریږي او له خپل وطن نه بې وطنه او در په در شي.

**۴** ـ له **۳۰۰**م کال نه تر اسلامي لمر څرک پورې- پدې دوره کې هغوی له ډول ډول ستونزو، کودتا ګانو، او خپل مینځي جنګونو سره لاس او ګریوان وو، تر څو دوی خپل هر څه حتی آزادي هم له لاسه ورکړه. په همدې وخت کې رومیان عدن ته ننوتل، حبشیانو د دوی په مرسته او د همدان او حمیر قبیلو له داخلي جګړو نه په استفادې سره په (**۳۴۰**)م کال کې د لومړي ځل لپاره یمن ونیو چې تر (**۳۷۸**م) پورې له همدوی سره و.

وروسته یمنیانو بیرته خپله آزادي وګټله، خو پدې وخت کې د مارب په بند کې درزونه پیدا شول تر څو په **۴۵۰** یا **۴۵۱**م کال کې هغه لوی سیلاب چې قرآنکریم د سیل العرم په نوم یاد کړی راوبهید، هر څه یې په مخه کړل او ډیره تباهي او بربادي یې جوړه کړه.

په (**۵۲۳**م) کال یهودي مشر ذو نواس د نجران پر مسیحیانو سخته حمله وکړه او غوښتل یې هغوی په زور او جبر سره له مسیحیت نه واړوي، خو کله چې هغوی دا ونه منله نو ذونو اس ورته د اور کندې وایستلې او هغه مسیحیان یې پکې ورواچول.

همدې کیسې ته قرآنکریم د (البروج) په سورت کې اشاره کوي فرمایي:

**((قُتِلَ أَصْحَابُ الأُخْدُودِ * النَّارِ ذَاتِ الْوَقُودِ * إِذْ هُمْ عَلَيْهَا قُعُودٌ * وَهُمْ عَلَى مَا يَفْعَلُونَ بِالْمُؤْمِنِينَ شُهُودٌ * وَمَا نَقَمُوا مِنْهُمْ إِلاَّ أَنْ يُؤْمِنُوا بِاللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ * الَّذِي**

لَهُ مُلْكُ السَّمَوَاتِ وَالأَرْضِ وَاللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ)) (البروج: ٤ _ ٩ )

[ترجمه : مړه دې شي کندې ایستونکي، اور ډېر خس و خاشاك لرونکی.کله چې دوی پر هغوی ناست وو، او هغه څه يې ليدل چې پر مسلمانانو يې کول. اوله هغوی نه يې بدله نه اخيسته مگر ددې چې هغوی په عزيز او حميد خدای ايمان درلود، هغه خدای چې د اسمانونو او ځمکې پاچايي ورسره ده او الله پر هر څه شاهد او خبر دی.]

او د همدې پيښې په نتيجه کې نصرانيان د خپل انتقام پخاطر د روم د امپراطور تر مشرۍ لاندې په عربو باندې د تسلط او د خپلې واکمنۍ د پراختيا په تکل کې شول، حبشيان يې راپورته کړل، بحري قوت (کښتۍ او جهازونه) يې ورته برابر کړل، بالاخره اويا زره (۷۰۰۰۰) حبشي سپاهيان په يمن وروختل او په (**۵۲۵**م) کال يې يمن ونيو او ارياط يې حاکم وټاکل شو. نوموړی تر يو وخته د يمن حاکم و، تر څو د خپلو لښکرو د يوه قوماندان (ابرهه) له لاسه ووژل شو. ابرهه د قدرت واگې پخپل لاس کې ونيولې، او دا همغه ابرهه دی چې د مکې دورانولو لپاره يې لښکرې را ايستلې وې، دی او لښکر يې د اصحاب الفيل په نامه شهرت لري.

د الفيل له پيښې نه وروسته يمنيانو له فارسيانو نه د مرستې غوښتنه وکړه او بالاخره يې د يوې کلکې مقابلې په نتيجه کې حبشيان له خپل وطن نه وشړل او په (**۵۷۵**م) کال يې د معديکرب بن سيف ذي يزن الحميري تر مشرۍ لاندې خپله آزادي اعلان کړه، او معديکرب يې پاچا وټاکل شو.

نوموړي يو شمير حبشيان د خپل خدمت او چوپړ لپاره له ځان سره وساتل تر څو يوه ورځ د همدې حبشي خدمتګارانو له خوا ووژل شو او دده په مرگ سره د ذي يزن د کورنۍ حکومت هم پای ته ورسيد.

وروسته کسری په صنعاء کې فارسي والي مقرر کړ او يمن د فارس يو ولايت اعلان شو، دې سلسلې تر (۶۳۸م) کال پورې دوام درلود، خو په همدې کال فارسي والي باذان اسلام راوړ او پدې ترتيب سره په يمن باندې د فارس تسلط او واکمني ختمه شوه[1].

---

[1]. د زياتو معلوماتو لپاره مراجعه وکړئ تفهيم القرآن **۱۹۵/۴** تر **۱۹۸** او تاريخ ارض القران ج**۱۳۳/۱** مخ ته د کتاب تر پايه. د کلونو د تعيين په هکله تاريخي روايات يو له بل سره أير توپير لري، حگنيگ ليکوالان واييگ چيگ دا تگوليگ هسيگ پخوانة کيسيگ دي، نه نور څه.

## د حیره پاچایي

له کومې ورځې نه چې لوی قوروش په (۵۵۷-۵۲۹ ق.م) کې فارسیان سره یو کړي وو له همغې ورځې نه په عراق او شا او خوا سیمو کې د فارسیانو حکومت چلیده، دا وخت د دوی د زور او دبدبې وخت و هیچا یې هم مقابله نشوای کولای تر څو په (۳۲۶ ق. م) کال کې اسکندر مقدوني د فارسیانو پاچا (لومړنی دارا) ته ماتې ورکړه، او پدې ډول سره دا دولت تجزیه شو، ملک الطوایفی وربانديږ حاکمه شوه. دا لړۍ تر (۲۳۰م) پورې جاري وه، په همدې وخت کې قحطانیانو هجرت وکړ او د عراق ځنې کلیوالې سیمې یې ونیولې، وروسته عدنانیان راغلل او له دوی سره له کشمکش او جنجال وروسته یې د فرات جزیرې څه برخې قبضه کړې.

فارسیان د دوهم ځل لپاره له (۲۲۶م) کال نه را پدیخوا د ساساني دولت د بنسټ ایښودونکي (اردشیر) په دوره کې د قدرت خاوندان شول. نوموړي فارسیان سره متحد کړل او په ګاونډیو عربانو یې قبضه ولګوله، په نتیجه کې د قضاعه قبیلې خلک مجبور شول چې شام ته لاړ شي، حیره او انبار هم د اردشیر تر ولکې لاندې راغلل.

د ارد شیر په دوره کې په حیره او د عراق او عربي جزیرې په کلیوالو سیمو کې د میشته قبیلو لکه مضر او ربیعه والي جذیمه الوضاح نومیده. ارد شیر پوهیده چې په عربو باندې حکومت کول او د هغوی له حملو نه ځان ساتل تر هغه پورې ممکن ندي تر څو یې پر دوی داسې یو څوک نه وي ګمارلی چې له قومي او ملي قوت نه برخمن وي، په قوم کې ځای ولري او وکولی شي چې له رومیانو سره د مقابلې په وخت د دوی مرسته لاسته راوړي، او هم د عراق عربان د روم تر قبضې لاندې شام کې اوسیدونکو عربانو په مقابل کې ودروي. همدا راز د الحیرې له والي سره به د فارسي لښکرو یو غونډ هم موجود و، تر څو د حکومت په خلاف د صحرا نشینو عربانو د پاڅون په ټکولو کې ورنه کار واخلي. جذیمه د (۲۶۸م) کال په شا او خوا کې مړ شویدی.

د جذیمه له مرګ نه وروسته د سابور بن اردشیر په دوره کې عمرو بن عدي بن نصر اللخمي- د لخمیانو د لومړني حاکم په توګه د حیرې والي وټاکل شو. لخمیانو تر هغې پورې په حیره باندې حکومت کاوه تر څو قباذ بن فیروز د فارس واکدار وټاکل شو، پدې وخت کې مزدک هم را پیدا شو، نوموړي د فساد، فحشاء او اباحیت لور ته بلنه پیل کړه، قباذ او نورو ډیرو د مزدک دا بلنه ومنله، وروسته قباذ د حیرې مشر المنذر بن ماء السماء ته لیک واستاوه او هغه یې هم دې نوي دعوت ته راوباله، خو هغه د

خپل غرور له کبله دا غوښتنه ونه منله، نو قباذ هغه عزل او په ځای یې د مزدکي مذهب یو پیرو حارث بن عمرو بن حجر الکندي د حیرې والي مقرر کړ.
له قباذ نه وروسته د فارس مشري د کسری نوشیروان په غاړه ولویده، نوموړي له مزدکي مذهب سره ډیر کینه درلوده، مزدک او د هغه ډیر پیروان یې ووژل، منذر یې بیرته د حیران والي وټاکه، حارث یې راوغوښت خو هغه دارکلب ته وتښتید او بیا هملته مړ شو.
له منذر بن ماء السماء نه وروسته حکومت له همدوی سره و، تر څو د نعمان بن منذر دوره پیل شوه پدې وخت کې زید بن عدي العبادي د نعمان په خلاف یوه توطئه جوړه کړه او د همدې توطئې په نتیجه کې کسری ورباندې په غوصه شو او هغه یې راوغوښت خو نعمان لومړی په پټه سره د آل شیبان مشر هاني بن مسعود ته ورغی، خپل مال او اولاد یې له هغه سره پرېښودل، بیا دکسری په لور وخوځیده، کسری هغه بندي کړ په بندیخانه کې مړ شو، او د ده پر ځای یې ایاس بن قبیصه الطائي د حیرې والي وټاکه. او هغه ته یې امر وکړ چې له هاني بن مسعود نه د نعمان مال وغواړي، خو هاني دا ونه منله چې د نعمان مال ورکړي، نو کسری د هاني په خلاف د جګړې اعلان وکړ او خپلې لښکرې یې د ایاس په مشرۍ د هغه په لور ور مرش کړې، پدې ترتیب سره د ذي قار په سیمه کې د دواړو خواوو تر منځ سخته جګړه ونښته چې په پای کې بنو شیبان بری وموند او فارسیانو ماتې وخوړه، او دا لومړی ځل ؤ چې عربو عجمانو ته ماتې ورکړه. دا پیښه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له ولادت نه لږه موده وروسته واقع شویده، رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په حیره باندې د ایاس بن قبیصه د حکمرانۍ له پیل نه اته میاشتې وروسته زیږیدلی دی. په ایاس پسې د حیرې ولایت یوه فارسي نژاده شخص ته وسپارل شو، خو په (۶۳۲م) کال کې د حیرې ولایت بیرته د آل لخم کورنۍ ته په لاس ورغی او منذر چې په معرور سره مشهور و والي وټاکل شو، خو د ده د ولایت لا اته میاشتې نه وې پوره شوی چې د خالد بن الولید (رضي الله عنه) تر مشرۍ لاندې اسلامي لښکرې ورباندې وروختلې.(۱)

## د شام حکومت

(1). محاضرات تاریخ الامم الاسلامیة للخضري بك ۲۹/۱ تر ۳۲ پورې.

کله چې عربانو له خپل اصلي ټاټوبي نه کوچیدل پیل کړل، نو د قضاعه کورنۍ ځنې پښې لکه بني سلیح بن حلوان چې بنو ضجعم بن سلیح یې له اولادې نه وو، د شام په پولو کې میشته شوې. رومیانو دا کورنۍ د ځان کړې او غوښتل یې په دوی سره له یوې خوا د صحرا او وچې د عربانو مخه ونیسي او له بل پلوه د فارس په مقابل کې ورنه ګټه واخلي. پدې ترتیب سره یې د هغوی لپاره بیل پاچا وټاکه، د دوی پاچایي د دوهمې میلادي پیړۍ له پیل نه تقریبا تر پایه پورې دوام درلود، تر ټولو مشهور پاچا یې زیاد بن الهبوله و. او د دوی د پاچایۍ لړۍ هغه وخت پای ته ورسیده کله چې د آل غسان کورنۍ ضجاعمه ته ماتې ورکړه، او پدې سره د رومیانو له خوا د شام پاچایي هم آل غسان ته وسپارله شوه، نوموړې کورنۍ د رومیانو د مزدورانو په صفت تر (۱۳) ه کال پورې د شام په عربانو حکومت وچلاوه، خو په نوموړي کال د حضرت عمر (رضي الله عنه) د خلافت په دوران کې د یرموک د غزا په نتیجه کې د دوی حکومت پای ته ورسید، او د دوی وروستی پاچا (جبله بن الایهم) اسلام راوړ او له مسلمانانو سره یو ځای شو[1].

## د حجاز پاچایي

ترڅو چې اسماعیل (علیه السلام) ژوندی و د مکې مشري او د بیت الله شریف مسئولیت له همده سره و،[2] خو کله چې هغه د (۱۳۷) کلونو په عمر له دنیا نه رحلت وکړ،[3] نو دا مسئولیت یې زامنو نابت وریسې قیدار او په بل روایت قیدار بیا نابت په غاړه واخیست. او له دوی نه وروسته د مکې مشري د دوی نیکه مضاض بن عمرو الجرهمي ته وسپارله شوه، خو د اسماعیل (علیه السلام) اولاده که څه هم مشري له نورو سره وه د ډیر قدر او عزت خاوندان وو ځکه د دوی پلار او نیکه کعبه شریفه جوړه کړې وه.[4]

د وخت په تیریدو سره د اسماعیل (علیه السلام) د اولادې نوم او نښان مخ په ورکیدو شو، جرهمیان هم د بخت نصر له دورې مخکې کمزوري شول، او په همدې وخت د مکې په سیاسي آسمان کې د عدنان د کورنۍ ستوری وځلید. په ذات عرق کې په عربانو باندې د بخت نصر د تیري په هکله را نقل شوی روایت هغه چې وایي پدې

(1). نفس المصدر ۳۴/۱ و ارض القرآن ۲/ ۸۰-۸۲
(2). قلب جزيرة العرب ص ۲۳۰-۲۳۷
(3). سفر التكوين ۱۷:۲۵
(4). قلب جزيرة العرب ۲۳۰- ۲۳۷ ابن هشام ۱/۱۱۱-۱۱۳ ابن هشام یوازېګ د نابت له مشرة نه یادونه کؤیده

پيښه کې د عربو مشر د جرهم له قبيلې څخه نه و، زمونږ د يادې شوې خبرې پخلاوی کوي.[(۱)]

د عدنان کورنۍ د بخت نصر د دوهمې حملې (۸۷ ۵ ق .م) په وخت کې يمن ته وتښتيدلې، برمياه (عليه السلام) چې د اسرائيلو نبي و، معد له ځان سره شام ته بوتلا، او کله چې د بخت نصر فشارونه کم شول معد بيرته مکې ته راستون شو، خو هغه وخت په مکه کې له جرهميانو نه يوازې جرشم بن جلهمه پاتې وو،معد د هغه له لور سره واده وکړ او له هغې نه يې زوی (نزار) پيدا شو.[2]

نوره د جرهميانو وضعه هم مخ په خرابيدو شوه، څوک به چې مکې ته راتلل نو دوی به ورباندې ظلمونه کول دکعبې ټول مال ئې ځان ته خاص کړ[3]. دې کار عدنانيان په غوصه کړل،او کله چې د خزاعه قبيلې خلک په مرظهران نومې منطقه کې ميشته شول او ويې ليدل چې د جرهميانو او عدنانيانو وضعه ښه نده، نو له همدې وضعې نه په استفادې او د عدنان قبيلې دځينو کورنيو په مرسته يې د جرهميانو په خلاف جګړه پيل کړه، بالاخره يې د دوهمې ميلادي پيړۍ په نيمايي کې جرهميان له مکې نه وشړل او د مکې مشرې دوی په غاړه واخيسته.

جرهميانو چې کله مکه پرېښوده، نو ځنې شيان يې د زمزم په څاه (کوهي) کې واچول او خوله يې ورپټه کړه.ابن اسحاق وايي:عمرو بن الحارث بن مضاض الجرهمي[۴] دکعبې شريفې دوې هوسۍ [4] او حجر اسود دواړه د زمزم په کوهي کې ښخ کړل او بيا له خپلو ملګرو سره د يمن په خوا وخوځيده.

د مکې پرېښودل جرهميانو ته ډېر غم اوخفګان باعث وو پدې هکله عمرو داسې وايي :

كأن لم يكن بين الحجون الى الصفا  أنيس و لم يســـمر بمـــكة سامر

---

[(۱)]. قلب جزيرة العرب ص. ۲۳.

[2]. رحمة للعالمين۲/۴۸.

[3]. قلب جزيرة العرب ص ۲۳۱.

[٤]. دا هغه مضاض الجرهمي نه دی کوم چې د اسماعيل (عليه السلام) په کيسه کې يې يادونه شويد.

[۴]. مسعودي وايي: په تيره زمانه کې به فارسيانو کعبې ته پيسې او جواهرات اهداء کول. پدې لړ کې ساسان بن بابک دوې د سرو زرو هوسۍ جواهرات، تورې او ډېر نور سره زر اهداء کړي وو. عمرو بيا دا ټول شيان د زمزم په کوهي کې واچول او پکې ښخ يې کړل.مروج الذهب ۱/ ۲۰۵.

**بلى نــحن كــنا أُهلها فأُبــادنا صروف الليالي والجدود العواثر**[1]

د شعر ترجمه داسې کیږي:

[ته به وایې چې دحجون او صفا ترمنځ هیڅوک نه وو (آشنا اودوست نشته) اونه دمکې د شپې له خوا جوړو شویو محفلوکې کوم کیسه ویونکی د شپې کیسې ویلې دي.مونږ د دې ځای اوسیدونکي وو، خو د وخت ناکردو اوخرابو قسمتونو اونیمه خوا نصیبونو تباه او برباد کړو.]

اسماعیل (علیه السلام) په شلمې قبل المیلاد پیړۍ کې تیر شوی وُ. نو پدې سره ویلی شو چې جرهم قبیله تقریبا یوویشت پیړۍ په مکه کې اوسیدلی،او د شلو پیړیو په شا اوخوا کې یې حکومت ورباندې کړی دی.پدوی پسې د مکې مشري د خزاعه کورنۍ ته رسیدلې، خو دری لاندیني مسئولیتونه له مضر کورنۍ سره پاتې شوي وو:

١ـ له عرفات نه مزدلفې ته د خلکو لیږدول او په (یوم النفیر) (یعنی دذي الحجې دیارلسمه ورځ) له منی نه د تللو اجازه ورکول.دا وظیفه د بنوالغوث بن مره چې د الیاس بن مضر له کورنۍ څخه و په غاړه وه.دوی ته صوفه ویل کیدل،د(یوم النفیر) په ورځ به تر هغه پورې بل هیڅوا هم جمرې نه ویشتلې ترڅو به چې د صوفه یوه کس جمرې ویشتل نه وو پیل کړي، اوکله به چې خلک له جمرې ویشتلو فارغ شول، نو د صوفه خلکو به د عقبې دواړه خواوې ونیولې او تر هغې به بل چاته دتګ اجازه نه وه ترڅو به چې دوی تړول نه ووتللي،او چې دوی به تړول لاړل نو بیا به یې نورو خلکو ته د تګ اجازه ورکړه، د صوفه له ختمیدو وروسته دا میراث د تمیم قبیلې د بنوسعد بن زید مناه کورنۍ په برخه ورسید.

٢ـ د نحر (قربانۍ) یا لوی اختر په سهار له مزدلفې نه منی ته تلل، دا دنده د بني عدوان په غاړه وه .

٣ـ د الاشهرالحرام وروسته، مځکې کول چې دا د بني کنانه قبیلې د بني تمیم بن عدي کورنۍ وظیفه وه.[2] هغه وخت هم دوی د الاشهرالحرام احترام درلود، پدې میاشتو کې به ئې جګړې نه کولې، خوکله به چې جګړه روانه وه نو بیا به یې داسې فیصله کوله چې دا میاشتی به وروسته کړو،یعنی اوس به جګړې ته ادامه ورکړو او بیا به راتلونکې میاشتې الاشهرالحرام وګرځوو.

په مکه باندې د خزاعه کورنۍ مشري دری سوه (٣٠٠) کاله دوام وموند[1]. د دوی په

---

[1]. ابن هشام ١/١١٤-١١٥.

[2]. ابن هشام ١/٤٤-١١٩-١٢٠-١٢٢.

١. یاقوت/ د مکة لفظ

دوره کې عدنانيان په نجد، بحرين او د عراق شا او خوا کې خواره شول، د قريشو ځنې کورنۍ لکه حلول او حرم او د بني کنانه مختلفې پښې د مکې په څنډو کې پاتې شوې خو دوی د قصي بن کلاب تر وخته د مکې اوکعبې شريفې په کارونو کې هيڅ ونډه نه درلوده[۲].

د قُصي په هکله ويل کيږي چې دوی لا د مور په غيږ کې و چې پلار يې مړشو، موريې د بني عذره کورنۍ له (ربيعه بن حرام) نومي سړی سره واده وکړ او ورسره د هغه اصلي وطن يعنی د شام سرحدي سيمې ته لاړه، خو کله چې قصي ځوان شو بيرته مکې ته راستون شو، پدې وخت کې دمکې مشر د خزاعه کورنۍ حليل بن حبشه و. قصي د هغه له لورحبي سره واده وکړ[۳]، خو کله چې حليل مړ شو نو د خزاعه او قريشو ترمنځ جګړه ونښته، په پای کې دمکې اوکعبې شريفې ټول کارونه قصي پخپله غاړه واخيستل.

د دې جګړې د اسبابو په هکله درې روايتونه رانقل شويدي:

۱_ کله چې قُصي د مال او ډيرو سړيو خاوند شو، حليل مړ شو نو ده ځان د مکې اوکعبې شريفې د مشرۍ لپاره تر خزاعه او بني بکر نه غوره وباله، او ويل به يې:. څرنګه چې قريش د اسماعيل (عليه السلام) د اولادې مشران دي نو بايد دا مشري هم له دوی سره وي، پدې هکله يې له قريشو او بني کنانه سره خبرې اترې اومشورې وکړې هغوی د ده دا خبره ومنله او په يوه اتفاق يې خزاعه او بني بکر له مکې نه وايستل [۴].

۲_ بل دا- د خزاعه په ګومان _حليل وصيت کړی و چې دمکې اوکعبې شريفې مشري به قصي ته سپارل کيږي.[۵]

۳_ حليل دکعبې شريفې مشري خپلې لور (حبي) ته سپارلې وه او ابو غبشان خزاعي يې ورته وکيل نيولی و. او پدې سره دکعبې شريفې مشري د حبي په نمايندګۍ د ابو غبشان په غاړه وه، خوکله چې حليل مړ شو نو قصي دا مشري له ابو غبشان نه په يوه ژي (مشک) شرابو واخيستله، خو خزاعه پدې قانع نه شول، او غوښتل يې قصي له کعبې شريفې نه منع کړي، نو قصي هم د دوی د مقابلې لپاره د قريشو اوبني کنانه

۲. محاضرات تاريخ الامم الاسلامية للخضري بک ۳۵/۱. ابن هشام ۱۱۷/۱.
۳. ابن هشام ۱۱۷/۱-۱۱۸.
۴. ابن هشام ۱۱۷/۱-۱۱۸.
۵. ابن هشام ۱۸۸/۱.

خلک راټول کړل ترڅو خزاعه بېخي له مکې نه وشړي او هغوی هم ټول پدې خبره کې له قصي سره موافق شول[١].

په هر حال کله چې حلیل مړ شو صوفه خپل کارونه سرته رسول،یو وخت قصي له قریشو اوکنانه سره یوځای له عقبې سره د دوی مخې ته ودرید او ورته ویې ویل : د دې کار د سرته رسولو لپاره مونږ له تاسو نه غوره یو او په همدې سره ونښتل په پای کې قصي ورباندې بریالی شو، او پدې سره خزاعه او بنوبکر د قصي خوا پرېښوده، قصي هم د هغوی په خلاف د جګړې تیاري ونیوله. سخته جګړه پیل شوه دواړو طرفونو ته زیات ځاني اومالي تاوانونه واوښتل بالاخره په سوله راضي شول او د بني بکر کورنۍ یوغړی (یعمر بن عوف) یې مینځګړی وټاکه او هغه داسې فیصله وکړه: د مکې او کعبې شریفې د مشرۍ لپاره قصي له خزاعه نه غوره او مناسب دی قصي که څوک وژلي د هغه وینې ورته ښښل شویدي، خو خزاعه او بنوبکر به د وژل شویو کسانو دیت ورکوي، اوکعبه دې قصي ته پرېښووله شي. نوموړی دهمدې فیصلې له امله له همدې ورځې نه په شداخ ونومول شو[٢].

پدې ترتیب سره قصي د پنځمې میلادي پیړۍ په نیمائې برخه یعنی (۴۴۰م) کال کې د مکې او کعبې شریفې مشري په غاړه واخیسته[٣].او په همدې سره په مکه باندې د خزاعه مشرۍ پای وموند او د قریشو او قصي د مشرۍ دوره پیل شوه. قصي خپل قوم د مکې له شاوخوا نه راټول کړ، هرې قبیلې ته یې بیل بیل ځایونه وټاکل،او النساه، آل صفوان، عدوان او مره بن عوف ته یې خپلې خپلې دندې هم وروسپارلې، ځکه ده دا په ځان پور باله چې باید پوره یې ادا کړي[۴].

د قصي بل مهم کار دا و چې دکعبې شریفې شمال ته یې دارالندوه (د مشورو کوټه) جوړه کړه، د دې کوټې دروازه جومات ته راختلې وه، قریش به دلته د خپلومهمو مسائلو د حل و فصل لپاره راټولیدل. هغوی دې کوټې ته په ډېره درنه سترګه کتل، ځکه د همدې کوټې له برکته د دوی په منځ کې یووالی راغلی و،او همدلته به د دوی لویې لویې پیښې په ښې طریقې سره حل کیدلې[١].

---

[١]. رحمة للعالمين ٢/٥٥.

[٢]. ابن هشام ١/١٢٣-١٢٤.

[٣]. قلب جزيرة العرب ص ٢٣٢.

۴ . ابن هشام ١/١٢۴-١٢۵.

[١]. ابن هشام ١/١٢۵. محاضرات تاريخ الامم الاسلامية ١/٣٢. اخبار الكرام ص ١۵٢.

## قصي پخپله دا تشريفاتي دندې په غاړه لرلې

۱_ د دارالندوه مشري- دلته به قريشو د خپلو مهمو مسايلو په هکله بحثونه کول، او همدلته به يې دخپلو لوڼو ودونه تر سره کول (د ودونو عقد او تړون به همدلته ترسره کيده).

۲_ اللوا (بيرغ) - د جګړې جنډه به له ده پرته نه پورته کيدله .

۳_ الحجابه (ساتنه) - د کعبې شريفې دروازه به يوازې ده پرانستله،اوهمده به يې خدمت او سرپرستي کوله .

۴_ سقايه يعنې حاجيانو ته اوبه ورکول- دوی به د حاجيانو لپاره په خرما اوميزو سره خوږې شوې اوبه برابرولې او د حج په وخت کې به يې حاجيانو ته ور څښلې[۲].

۵_ حاجيانو ته خوراک ورکول (رفاده الحاج)- دا هغه خوراک و چې دوی به حاجيانو ته د ميلمستيا په دود ورکاوه. قصي په قريشو باندې دا لازمه کړې وه چې د حج په موسم کې څه اندازه مال ده ته ورکړي تر څو هغه ورباندې بې وسه حاجيانو ته خوراک برابر کړي[۳].

دا ټولې دندې د قصي په غاړه وې، نوموړی لا ژوندی و چې زوی يې عبدمناف د مقام او منزلت خاوند شو، خو عبدالدار چې له هغه نه مشر و پدې خوښ نه و، نو ځکه قصي ورته وويل:اې عبدالداره! زه به تا په قوم کې مطرح کوم که څه هم هغوی له تانه تکړه او عزتمن دي او له تانه يې ميدان ګټلی دی او که څه هم هغوی ستا ورور له تا نه غوره بولي، په همدې اساس يې عبدالدار ته د دارالندوه، حجابه،اللوا او السقايه او الرفاده مسئوليتونه وسپارل. د قصي خبره به هيچا هم په ځمکه نه غورځوله، د هغه هر امر که په ژوند و او يا پس له مرګه داسې و لکه د دين حکم او امر،او همدا وجه وه چې د ده له مرګه وروسته هم د ده امر په ځای پاتې شو او زامنو يې بيله کوم مخالفته عمل ورباندې کاوه، خوکله چې عبدمناف هم مړ شو نو بيا د هغه زامنو د خپل تره (عبدالدار) له زامنو سره د دې دندو په سر اختلاف پيل کړ.

پدې ډول قريش په دوو برخو وويشل شول،او نژدې وه چې د دواړو ډلو ترمنځ جګړه ونښلي، خو بالاخره سوله وشوه او دا منصبونه يې سره وويشل. د السقايه او الرفاده مسئوليت د عبدمناف زامنو په غاړه واخيست، دارالندوه، اللوا او الحجابه له بني

---

[۲]. محاضرات تاريخ الامم الاسلامية ۳۲/۱.

[۳]. ابن هشام ۱۳۰/۱.

عبدالدار سره پاتې شول. بیا بنو عبدمناف هم پخپل منځ کې پچه واچوله (قرعه اندازي يې وکړه) او دا وظيفه د هاشم بن عبدمناف په برخه ورسيده.
کله چې هاشم مړ شو نو دا وظيفه يې ورور المطلب بن عبدمناف ته وسپارله شوه،او له هغه نه وروسته عبدالمطلب بن هاشم بن عبدمناف ددې منصب لپاره غوره کړای شو. دا دنده (د السقايه او الرفاده مسئوليت) د عبدالمطلب له زامنو سره و، چې اسلام راغی او پدې وخت دا وظيفه د عباس بن عبدالمطلب (رضي الله عنه ) په غاړه وه[1].
قريشو لدېنه علاوه نورمنصوبه او وظيفې هم درلودلی چې پخپل منځ کې يې سره ويشلې وې،او يوه دموکراتيک دولت ته ورته اداره يې جوړه کړې وه، او د اوسنۍ زمانې پارلماني تشکيلاتو ته ورته تشکيلات يې درلودل .

او هغه ادارې او دندې عبارت دي له :

۱ـ الايسار- د ويش پخاطر د بوتانو په غشو باندې قرعه اندازي (پچه اچول) دا دنده د بني جمح په غاړه وه .
۲ـ تحجيرالاموال - بوتانوته وړاندې شويو او اهداء شويو نذرونو اوقربانيو تنظيمول، د شخړو، دښمنيو او داسې نورو مسايلو هوارول، دا دنده او مسئوليت له بني سهم سره و.
۳ـ شوری - چې مسئوليت يې د بني اسد په غاړه و.
۴ـ الاشناق - د ديتونو او جريمو تنظيمول، دا د بني تيم دنده وه .
۵ـ العقاب - د ملي بيرغ وړل او اوچتول، دا د بني اميه وظيفه وه.
۶ـ القبة – د لښکرو برابرول او د آسونو مشري، دا د بني مخزوم مسئوليت و.
۷ـ السفارة - دا دنده د بني عدي په غاړه وه[2].

# دنورو عربانو حکومت

لکه مخکې مو چې وويل د عربو قحطاني او عدناني قبيلو د عربي جزيرې مختلفو

---

[1] . ابن هشام ۱/۱۲۹-۱۳۰-۱۳۱-۱۳۲-۱۳۷-۱۴۲-۱۷۸-۱۷۹.
[2] . تاريخ ارض القرآن ۲/۱۰۴-۱۰۵-۱۰۶.

برخو ته هجرت وکړ، او عربي خاوره د دوی ترمنځ وويشل شوه. بيا هغه قبيلې چې حيرې ته نژدې وې په حيره کې د عربي پاچايانو ترظاهري نفوذ او اغيزې لاندې وې،او هغه چې د شام له پولو سره پرتې وې هغوی د غساسنه پاچايانو تر حکم لاندې وې. خو حقيقت دا و چې هغوی عملاً د دې پاچايانو تابعيت نه درلود بلکه دا تش په نوم تابعيت و، مگر هغه قبيلې چې د جزيرې په مينځنيو برخو او ميرو کې اوسيدلې هغوی په پوره ډول آزادې اومستقلې وې. دې قبيلو بيل بيل رئيسان درلودل، هره قبيله لکه د يوه وړوکي دولت غونډې وه چې د سياسي تشکيل اوجوړښت اساس يې په قومي يووالي او د پرديو نه د وطن د دفاع په اړوند په مشترکه ګټو باندې ولاړ و. د هرې قبيلې مشر لکه پاچا داسې و، ټولو به په سوله اوجنګ کې ورنه اطاعت کاوه، نظر به يې هرچا قبلاوه، او خپلې غوښتنې به يې لکه د يوه ديکتاتور په شان پر خلکو تحميلولې او کله به که کوم مشر په غوسه کيده، نو بيا به ډيرې تورې له تيکيو وتلې وې او چا به د پوښتنې جرات هم نه درلود چې دا ولې؟

خو يوشې چې مشران به يې له عادي خلکو سره معاملې ته اړ ايستل هغه د مشرۍ او قدرت لاسته راوړلو پخاطر د تربرونو تر مينځ مسابقه او مقابله وه، هر يوه به زيار ايست چې په ميلمه پالنه، شجاعت، حلم او زغم کې له نورو نه وړاندې شي، تر څو د خلکو خصوصاً شاعرانو چې د قوم د ژبې حيثيت يې درلود په مينځ کې ځای پيدا کړي. رئيسانو خاص او فوق العاده حقوق درلودل، رئيس به د غنيمت په مال کې د المرباع (د غنيمت څلورمه برخه) او الصفی (هغه چې له ويش نه مخکې يې رئيس د ځان لپاره اخلي) النشيطه ( هغه چې رئيس ته په لاره کې مخکې لدې چې د دښمن قوم عسکري مرکز ته ورسيږي په لاس ورځي) او الفضول يعنی هغه چې له ويش نه اضافي پاتې شي، يعنی هغه څه چې په جګړه مارو پوره نه ويشل کيږي لکه له ويش نه اضافه شوی آس، اوښ او نور....) په نامه برخې درلودې.

يو شاعر وايي:

**لك المرباع فينا و الصفايا و حكمك و النشيطة و الفضول**

دا څيزونه مخکې توضيح شويدي.

سيـا سي حـا لـت

د عربانو د مشرانو په هکله مو خبرې وکړې، اوس بايد په مجموعي توګه د هغوی په

سياسي حالت باندې هم لږ شانته رڼا واچوو. د هغو دريو سيمو کومې چې له پولو سره نژدې وې سياسي حالت ډير خراب اوګډوډ و، هلته خلک په دوو برخو بادار او غلام او يا حاکم او محکوم ويشل شوي وو، هره ګټه او وټه به د بادارانو خصوصاً پرديو لپاره وه او هر تاوان او جريمه به د غلامانو (محکومانو) په برخه وه، په بل عبارت په هغه ځای کې رعيت لکه يوزراعتي فارم داسې و چې ټول حاصلات به يې د حاکمانو او واکدارانو په مزو، چړچو، ظلمونو اوتيريو کې خرڅيدل، خو رعيت به ډول ډول ربړونه اوکړاوونه ګالل، که هر څو به وربانديې زور، زياتی کيده خو هغوی د شکوې او شکايت حق اوجرئت نه درلود. په ټولنه کې ظلم او استبداد حکومت کاوه، د هيچا حقوق خوندي نه وو. دې برخوته څيرمه پرتې قبيلې هم مذبذبې او بې ارادې وې کله به د خپلې هوی او هوس په اساس عراق ته اوکله به شام ته ورګډې شوې. د جزيرې په مينځ کې پرتې قبيلې هم يوله بل نه بيلې اوجدا وې، قومي، نژادي، او ديني تعصب وربانديې مسلط و، له دوی نه يوکس وايي :

**و ما أنا إلا من غزية إن غوت غويت، وإن ترشد غزية أرشد**

[زه هم د غزيه قبيلې يوغړی يم که هغه په غلطه لاره ځي زه هم په غلطه ورسره روان يم او که سمې لارې ته شي نو زه هم ورسره په سمه لار روان وم.]

هغوی داسې څوک نه درلودل چې د دوی له استقلال او آزادۍ نه تاييد او ملاتړ وکړي، او يا د مشکلاتو او سختيو په وخت مخ ورواړوي اويا په بده ورځ د دوی په ښه راشي

خو دا وه چې هغه وخت خلکو دحجاز حکومت ته په درنه سترګه کتل، اوهغوی يې د ديني مرکز مشران ګڼل. د حجاز حکومت په حقيقت کې د ديني او دنيوي مشرۍ او زعامت يوګډ شکل و، او له حرم نه بهرعربو ته يې د ديني مشرتابه حيثيت درلود، خو په حرم کې د ننه او شاوخوا نژدې برخوکې يې د يوه داسې حکومت بڼه درلوده چې کعبې شريفې ته د راتلونکو(زيارت کونکو) خلکو د امورو مشري او د ابراهيمي شريعت جاري کول او تطبيق يې په غاړه و. دې حکومت د نننې دور پارلمان ته ورته تشکيلات او ادارې درلودې، خو په هيڅ صورت هم دا يو پياوړی او مضبوط حکومت نه و، او خپلې دندې يې په ښه توګه سرته نه شوای رسولی بلکه په خپلو کارونو کې ډير پاتې راغلی و، چې د حبشيانو د تيري په ورځ دا خبره ښه په ډاګه شوه .

# دعربو دينونه اومذهبونه

زيات شمير عربو د اسماعيل (عليه السلام) بلنه منلې وه ،او د هغه د پلارحضرت ابراهيم (عليه السلام) دين ته يې غاړه ايښې وه، يوازې د الله تعالی عبادت يې کاوه ، خو د وخت په تيريدو سره ورو ورو له نيغې لارې بې لارې کيدل، خپل اصلي دين يې هير کړ، يوازې توحيد او د ابراهيمي دين ځنې شعائر يې ساتلي وو ترڅو د خزاعه قبيلې مشر عمرو بن لحي راپيداشو. نوموړی په ديانت، خيرات ورکولو او نيکۍ سره مشهورٔ خلکو ډير احترام ورته درلود، او د ستر عالم په سترګه ورته کتل. يو وخت هغه شام ته سفر وکړ که ګوري چې هلته خلک د بتانو عبادت کوي، دا کار يې خوښ شو او داسې ګومان يې وکړ څرنګه چې دا د رسولانو او آسماني کتابونو د نازليدو وطن دی نو دا بت پرستي به هم حق وي، او د همدې ګومان په اساس يې له ځان سره يو بت چې ((هبل)) نوميده راوړ او دکعبې شريفې په منځ کې يې ودراوه، او نور د مکې خلک يې هم دې شرک او بت پرستۍ ته راوبلل، هغوی د ده دا بلنه ومنله، لږ موده وروسته د حجاز خلکو هم د شرک لاره خپله کړه او د کعبې له مشرانو سره په بت پرستۍ کې شريک شول.(١)

د هغوی (عربانو) تر ټولو پخوانی بت (منات) و، چې د سرې بحيرې په څنډه قديد ته نژدې د المشلل په سيمه کې پروت و(٢). وروسته يې (لات) نومی بت په طائف کې ودراوه، او بيا يې په وادي النحله نومې سيمه کې د (العزی) په نامه بل بت نصب کړ. همدا درې د دوی تر ټولو ستر بتان وو، وروسته شرک او بت پرستي په ټول حجاز کې خوره شوه. وايي: چې عمرو بن لحي يو پيری ملګری کړی و، هغه ورته وويل: چې د نوح (عليه السلام) د قوم بتان (ود، سواع، يغوث، يعوق او نسر) په جده کې ښخ شويدی، نو عمرو ورغی او هغه يې راوايستل او تهامه نومې منطقې ته يې راوړل او بيا يې د حج په وخت کې په مختلفو قبيلو وويشل هغوی بيا له ځان يووړل.

لنډه دا چې بتان دومره ډير شول چې هر قبيلې بلکه هر کور بيل بيل بت درلود، مسجد حرام يې هم له بتانو ډک کړی و، او کله چې رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و

---

(1). مختصر سيره الرسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) للشيخ محمد بن عبدالوهاب ص ١٢

(2). صحيح البخاري ٢٢٢/١.

صحبه و سلم) مکه فتحه کړه د کعبې شريفې په شا او خوا کې ( ۳۶۰) بتان موجود وو، رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) هغه ټول دړې وړې کړل، او بيا يې امر وکړ چې دا ټوټې دې د باندې وايستل شي، او پدې ترتيب سره هغه ټول له مسجد نه د باندې وسوځيدل او توري ايرې شول.[1]

دا خلک چې ځانونه يې د ابراهيم (عليه السلام) د دين پيروان بلل، پدې ترتيب سره د جاهليت په لومو کې راګير او په شرک او بت پرستۍ کې تر ستوني پورې ډوب شول.

هغوی د بتانو په عبادت کې ډول ډول رسمونه او رواجونه درلودل، چې زياتره يې د عمرو بن لحي له خوا رواج شوي وو، دوی داسې عقيده درلوده چې هغه څه چې عمرو بن لحي رواج کړی يو حسنه بدعت دی نه دا چې دا د ابراهيم (عليه السلام) په دين کې بدلون وي.

## په جاهلي ټولنه کې د بت پرستۍ ځنې مراسم:

۱ ـ هغوی به د مشکلاتو او سختيو په وخت کې بتانو ته مخ کاوه، له بتانو نه به يې مرسته غوښتله او د هغوی په نامه به يې نارې وهلې، د خپلو حاجتونو د پوره کولو سوالونه به يې ورنه کول، او دا عقيده يې درلوده چې دا بتان الله تعالی ته د دوی شفاعت کوي، او د دوی اړتياوې پوره کولی شي.

۲ ـ له بتانو به يې طواف کاوه زارۍ او سجدې به يې ورته کولې.

۳ ـ بتانو ته د تقرب او نژديوالي پخاطر به يې قربانۍ کولې، د بتانو په نامه او لپاره به يې مالونه (څاروي) حلالول، الله تعالی دا دواړه ډوله قربانۍ او حلالول داسې يادوي: ((وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ)) ( المائدة–۳)

[ترجمه: او (حرام دي) هغه چې حلال کړی شوي وي (په نامه د کوم ځای يا شي).]

بل ځای فرمايي: ((وَلا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرْ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ)) (الأنعام–۱۲۱)

[ترجمه: او مه خورئ تاسې له هغې (مردارې) چې نه وي ياد کړی شوی نوم د الله پر هغې باندې (عمداً).]

۴ ـ بتانو ته د تقرب پخاطر به يې له خپل خوراک او څښاک نه يوه اندازه د بتانو په نامه کوله.

همدا راز د هغوی په حاصلاتو او څارويو کې به هم د بتانو لپاره خاصه برخه وه، عجيبه خو لا دا وه چې هغوی عادت درلود چې لدې شيانو نه به يې يوه برخه د الله

[1]. مختصر سيرة الرسول لمحمد بن عبد الوهاب ص۱۳ - ۵۴.

تعالی لپاره هم ټاکله، خو بیا د دوی په وړاندې او د دوی په عقیده داسې علتونه او اسباب موجود وو چې د هغې له امله به یې د الله تعالی لپاره ټاکل شوې برخه د بتانو په نامه ګرزوله، خو داسې به کله هم نه پیښیدل چې د بتانو برخه د الله تعالی لپاره وګرزوي، الله تعالی پدې هکله فرمایي: ((وَجَعَلُوا لِلَّهِ مِمَّا ذَرَأَ مِنْ الْحَرْثِ وَالأَنْعَامِ نَصِيباً فَقَالُوا هَذَا لِلَّهِ بِزَعْمِهِمْ وَهَذَا لِشُرَكَائِنَا فَمَا كَانَ لِشُرَكَائِهِمْ فَلا يَصِلُ إِلَى اللَّهِ وَمَا كَانَ لِلَّهِ فَهُوَ يَصِلُ إِلَى شُرَكَائِهِمْ سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ)) (الأنعام– ١٣٦)

[ترجمه: او مقرر کړې دي دغو (مشرکانو) الله تعالی ته له هغه شي چې پیدا کړیدی الله تعالی هغه له کښته او چارپایانو یوه برخه، نو وایي دوی دا برخه د الله لپاره په زعم د دوی سره، او دا (بله برخه) د پاره د شریکانو زمونږ ده، نو هغه برخه چې وي د پاره شریکانو د دوی، پس (هغه) نه رسیږي الله ته، او هغه برخه چې وي د پاره د الله نو هغه رسیږي شریکانو د دوی ته (چې بتان دي ډیر) بد دی هغه حکم (انصاف) چې کوي یې دوی.]

۵ ـ بتانو ته د هغوی د تقرب بله طریقه دا وه چې د بتانو په نامه به یې پخپلو مالونو او کښتونو کې نذرونه ایښودل، الله تعالی فرمایي: ((وَقَالُوا هَذِهِ أَنْعَامٌ وَحَرْثٌ حِجْرٌ لا يَطْعَمُهَا إِلاَّ مَنْ نَشَاءُ بِزَعْمِهِمْ وَأَنْعَامٌ حُرِّمَتْ ظُهُورُهَا وَأَنْعَامٌ لا يَذْكُرُونَ اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهَا افْتِرَاءً عَلَيْهِ ...)) (الانعام – ١٣٨)

[ترجمه: او وایي دوی چې (دغه برخه د بتانو) که چارپایان دي او (که) کښت ممنوع (حرام) دی چې نه به خوري له دې مګر هغه څوک چې زمونږ خوښ وي په ګومان د دوی او ځینې چارپایان دي چې حرامې کړی شویدي شاګانې د دوی (له سوریدلو) او ځینې نور چار پایان دي چې نه یادوي دغه (مشرکان په وخت د ذبح کې) نوم د الله پر دوی بلکه نوم د بتانو پرې یادوي او نسبت کوي د دغو احکامو الله ته، په طریقه د دروغ تړلو په الله پسې.]

۶ ـ لدې ډول نذرونو نه د البحیره، السائبه، الوصیله، او الحامه په نامه یاد شوي نذرونه- ابن اسحاق وایي: البحیره د السائبه لور (بچې) ته وایي: السائبه هغې اوښې ته ویل کیده چې په مسلسله توګه به یې لس جونګیانې وزیږولې، نو بیا به نه څوک ورباندې سپریدل، او نه به یې وړۍ اخیستل روا وو، شیدې یې له میلمنو پرته بل چا نه خوړلې، او که چیرته به یې یوولسمه جونګۍ هم راوړه، نو د هغې جونګۍ غوږ به

يې څيراوه او له مور سره به يې همداسې آزاده خوشې کوله، نو بيا به پدې هم نه څوک سپريدل، نه به يې وړی اخيستل کيدلې او شيدې به يې هم يوازې ميلمنو خوړلې او دې ډول اوښې ته البحيره ويل کيدله چې د سائبه لور به وه، او الوصيله هغې ميږې ته ويل کيدله چې په مسلسله توګه به يې په پنځو خيټو کې لس وری چې نر وری به بالکل نه و پکې راوړې، نو بيا به دوی ويل اوس دا ميږه وصيله شوه، او لدينه وروسته به دې ميږې که هر څه راوړل هغه به يوازې نارينوو خوړلی شوی او ښځو نه شوای کولی هغه وخوري، خو که به ورنه کوم وری مړ پيدا شو او يا به ورنه کوم يو مرداريده نو هغه بيا ښځو او نرو ټولو ته روا و. حام هغه وينده اوښ ته ويل کيده چې اوښو ته په ورخوشي کيدو سره به يې په مسلسله توګه لس جونګۍ رازيږولې وې او هيڅ نر جونګی به نه و پکې، نو بيا به د دې وينده شا محفوظه وه، نه به څوک ورباندې سپريدل، نه به يې وړی اخيستل کيدلې، يوازې په اوښو کې به خوشی و، يوازې همدا کارئې چې اوښې به يې ورته نيولې او بس. الله تعالی د جاهليت دا طريقې ردوي او فرمايي: ((مَا جَعَلَ اللَّهُ مِنْ بَحِيرَةٍ وَلا سَائِبَةٍ وَلا وَصِيلَةٍ وَلا حَامٍ وَلَكِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ وَأَكْثَرُهُمْ لا يَعْقِلُونَ )). (المائدة-١٠٣)

[ترجمه: نه دي روا کړي الله هيڅ بحيره او نه سائبه او نه وصيله او نه حام، او ليکن هغه کسان چې کافران شويدي تړي دوی پر الله دروغ (بهتان) او ډير له دوی ځنې نه پوهيږي (په حق او باطل).]

بل ځای فرمايي:

((وَقَالُوا مَا فِي بُطُونِ هَذِهِ الأَنْعَامِ خَالِصَةٌ لِذُكُورِنَا وَمُحَرَّمٌ عَلَى أَزْوَاجِنَا وَإِنْ يَكُنْ مَيْتَةً فَهُمْ فِيهِ شُرَكَاءُ)). (الأنعام:١٣٩)

[ترجمه: او وايي چې هغه شی چې په ګيډو د دې چارپايانو کې دي خالص دي لپاره د نارينوو زمونږ، او حرام کړی شويدي پر ښځو زمونږ، او که وي هغه مرداره نو دوی (نر او ښځې) پکې شريکان دي.]

د دې ډول څارويو (نذرونو) د توضيح په هکله نور روايتونه او تفسيرونه هم موجود دي[١]. سعيد بن المسيب وايي چې دا ډول څاروي يوازې د دوی د طاغوتيانو (باطلو معبودانو) لپاره وو[٢].

په صحيح البخاري کې مرفوعاً روايت دی چې عمرو بن لحي لومړنی کس و چې اوښه

---

(1). ابن هشام ٨٩/١-٩٠.

(2). صحيح البخاري ٤٩٩/١

يې سائبه ونوموله (البته په تيرو شرطونو سره)[1].
عربانو به دا ټول کارونه د بتانو پخاطر تر سره کول، ځکه د دوی دا عقيده وه چې بتان به دوی له الله تعالی سره نژدې کوي او د دوی شفاعت به ورته کوي. قرآنکريم دي ته اشاره کوي او فرمايي:((مَا نَعْبُدُهُمْ إِلاَّ لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللَّهِ زُلْفَى)). (الزمر:٣)
[ترجمه: وايي :نه کوو عبادت ددوی مګر د پاره د دې چې نژدې کړي دوی مونږ طرف د الله ته نژدې کول...]
((وَيَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ مَا لا يَضُرُّهُمْ وَلا يَنْفَعُهُمْ وَيَقُولُونَ هَؤُلاءِ شُفَعَاؤُنَا عِنْدَ اللَّهِ)). (يونس:١٨)
[ ترجمه :اوعبادت کوي دغه (کفار) غير له الله (جل جلاله) د هغو بتانو چې نه شي رسولی هيڅ ضرر دوی ته (که يې عبادت ونکړي) اونه نفع رسولی شي دوی ته (که يې عبادت وکړي) اووايي دغه (کفار) چې دغه بتان شفاعت کوونکي زمونږ دي په نزد دالله.]
مشرکينو به ازلام (دپال اچولوغشي) هم استعمالول، ازلام د زلم جمع ده او زلم هغه غشي ته ويل کيږي چې بڼکه نه وي ورباندې لګيدلی. ددوی ازلام (غشي) درې ډوله وو:
يو ډول يې دا وو چې (نعم) او (لا) وربانديې ليکل شوی و، او کله به يې چې غوښتل سفر وکړي، يا نکاح وتړي اويا دېته ورته بل کوم کار ترسره کړي، نو د کار له پيل نه مخکې به يې پدې غشي سره پال اچاوه که به (نعم) راووت، نو هغه مطلوب کار به يې کاوه اوکه (لا) به راووت نو بيا به يې هغه کار تر يوه کاله پريښوده، ترڅو بيا د بت په وړاندې پال واچوي. په بل ډول يې يوازې المياه (اوبه) او الديه (ديت) ليکل شوي و، او دريم ډول يې دا و چې (منکم) او (من غيرکم) او (ملصق) به وربانديې ليکل شوي و او دا به يې هغه وخت استعمالاوه چې د چا د نسب په هکله به څه شک او شبهه پيدا شوه نو نوموړی کس به يې له سلو اوښانو سره د(هبل) مخې ته بووه، اوښان به يې (قداح) پال اچوونکي ته ورکول، هغه به ټول غشي سره ګډوډ کړل بيا به يې يو ورنه راوکيښ، نوکه به (منکم) راووت نو هغه سړی به بيا د دوی له عزتمندو څخه شميرل کيده، اوکه به (من غيرکم) راووت نو هغه به بيا د دوی حليف (ملګرى) يعنی د دوی

[1]. نفس المصدر

په ترون کې شامل و، او که ((ملصق)) به راووت، نو هغه به بیا د دوی په منځ کې پخپل حالت پاتې و او خپل منزلت به یې درلود خو هم نسب اوحلیف به نه شمیرل کیده[1].

دېته ورته یوه بل رواج قداح (د قمارغشي) او میسر(قمار وهل) هم د مشرکینو په منځ کې عمومیت درلود دا د قمار یو ډول و، چې د غشي په راوتلو سره به هغوی د قمار اوښ حلالاوه اود هغه غوښه به یې وربانديې ویشله[2].

هغوی د کاهنانو، نجومیانو اوعرافینو په خبرو هم ایمان اوعقیده درلوده،کاهن هغه چا ته ویل کیږي چې د راتلونکو پیښو او حالاتو په هکله خبرې کوي چې داسې به وشي، او دا به نه کیږي، دا او هغه به هسې او داسې شي.کاهن ادعا کوي چې په پټو شیانو خبر لري، او ځنې خو یې لا داسې وایي چې: زما پیریان ملګري دي، هغوی ټول معلومات راته راوړي، او ځنې نور یې وایي چې له پټو او غیبي شیانو نه زما خبرې زما د خپل علم او پوهې په اساس ولاړې دي، او نور یې وایي چې مونږ د پوښتونکي د خبرو یا کار او یا وضعې او حالت د مقدماتو او اسبابو په نظر کې نیولو په اساس د راتلونکو پیښو په هکله معلومات ورکوو او دې ډول کاهن ته عراف ویل کیږي، او دا داسې دی لکه څوک چې ووایي: زه کولی شم د غلا، د غلا شویوڅیزونو او د غلا د ځای په هکله معلومات ورکړم. نجومي هغه ته ویل کیږي چې د راتلونکو پیښو او حالاتو په هکله د ستورو حرکت او وختونو ته د کتلو په اساس څه معلومات وړاندې کوي[3]. څوک که د نجومیانو په خبرو باور لري نو هغه په حقیقت کې په ستورو باندې ایمان لري، او په ستورو باندې د هغوی د ایمان یوشکل دا و چې هغوی په الانواء (ستورو راختلو) باندې داسې عقیده درلوده چې ویل به یې د فلاني ستوري د راختلو په وجه راباندې ووریدل[4].

په مشرکینوکې (طیره) یعنې بد شاګوم نیول هم رواج و. د دې اصلي حقیقت او شکل داسې و چې کله به کوم مشرک د کوم کار سرته رسولو نیت وکړ نو کومې هوسۍ او یا مرغه ته به ورغی او هغه به یې له خپله ځایه پورته کړه، وبه یې شاړه، نوکه هغه

[1] . محاضرات تاریخ الامم الاسلامیة للخضري ۵۲/۱. ابن هشام ۱۵۲/۱-۵۳.

۲ . ددې طریقه داسې وه چې قمار وهونکو به یو اوښ حلال کړ، بیا یې په لسو یا آته ویشتو برخو وویشه، وروسې به یېپه غشو سره پچه واچوله. دا غشي به داسې وو چې پر ځینو به هیڅ نښه نه وه، بې نښانه به وو او پر ځینو به د وړلو (بري) نښه وه. د چا په نامه به که د بري یا وړلو غشی راووت، نو هغه به کامیاب و، خپله برخه به یې اخیستله او که د چا په نوم به بې نښانه غشی راووت، نو هغه بۀ قیمت ادا کاوه او بایلیې به یې وه.

۳ . مرقاة المفاتیح شرح مشکاة المصابیح ۲/۲-۳.

۴ . د صحیح مسلم شرح نووي باب کفر من قال مطرنا بالنوء، کتاب الایمان ۵۹/۱.

هوسۍ يامرغه به ښۍ خوا ته لاړه مطلوبه کار به يې تر سره کاوه، او که به کيڼې خوا ته لاړه نو بيا به يې له هغه کار نه ډډه کوله او دا به يې بدشاګوم باله. همدا راز هغوی ته به که په لاره کې مرغه يا کوم حيوان مخی ته ورغی نو هغه يې هم په بد شاګون نيوه. همدېته ورته د هغوی يو بل کار دا و چې د سويې د ښنګري هډوکي به يې په غاړو کې اچول يا ځوړندول، او همدا راز هغوی ځنې ورځې، مياشتې، ځاروي،کورونه او ښځې او داسې نور شيان په بد شاګون نيول. هغوی د بيماريو په ساري بودن يـعـنـې يو له بل نه په لږيديدو هم عقيده درلوده او پدې يې هم باور درلود چې دوژل شوي شخص روح تر هغه وخته نا کراره وي تر څو يې انتقام نه وي اخيستل شوی، روح يې لکه د بوم په شان ګرزي، په دښتو او ډاګونو کې الوزي را الوزي، تنده او يا اوبه راکړئ، اوبه راکړئ چيغې وهي، خوکله يې چې انتقام واخيستل شي نو بيا آرام او ځای په ځای شي[1].

## پـه ابـراهـيـمـي ديـن کې د قـريـشو بـدعـتـونـه

دا وو د هغه وخت د جاهليت د پيروانو ځنې عادتونه، خو لدې سره سره هغوی د ابراهيمي مقدس دين ځنې شعائر هم ساتلي وو، لکه د بيت الحرام احترام او درناوی ، طواف، حج، عمره، په عرفات او مزدلفه دريدل او په حج کې قرباني کول، خو پدې شيانو کې يې هم ځنې بدعتونه رواج کړي وو. لدې ډول بدعتونو نه ځنې دا وو:

قريشو به ويل: مونږ د ابراهيم (عليه السلام) اولاده، اهل حرم، د بيت الله مشران او د کعبې اوسيدونکي يوو، هيڅوک هم زمونږ په شان منزلت او حقوق نلري. همدا راز دوی ځانونه الحمس (ډيرغيرتي اوګرمجوش) بلل، او دا عقيده يې درلوده چې هغوی بايد د حرم شريف له حدودو نه د باندې ونه وزی، او د همدې عقيدې له امله وه چې په عرفات به نه دريدل، يعنې عرفات ته به نه تلل او نه به يې ور نه افاضه کوله، بلکه همدلته مزدلفه کې به پاتې کيدل او له هماغه ځای نه (مزدلفې) نه به يې افاضه کوله (بيرته به راتلل)[2]. قرآنکريم د دې بدعت اصلاح کوي او فرمايي:

((ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ...)). (البقرة :١٩٩)

[ترجمه : بيا راکوزيږئ (اې قريشو د طواف د پاره) له هغه ځايه (عرفات څخه) چې

---

١. صحيح بخاري ٨٥١/٢-٨٥٧، مع حواشيه للشيخ احمدعلي السهارنفوري.

٢ . ابن هشام ١٩٩/١. صحيح البخاري ٢٢٢/١.

راکوزیږي نور خلک (مزدلفې ته)]
دوی به دا هم ویل: چې د حمس (قریشو) لپاره نه ښایي د احرام په وخت کې کروت جوړ کړي او غوړي ویلې کړي (ځینې وایي کروت خوړل به یې نه ښه نه ګڼل) . لکه چې دا هم ورته مناسبه نده د وړیو په کوټو (د سنیو په خیمو) کې ننوزي، باید د څرمنې له خیمې پرته د بل شي ترسیوري لاندې و نه دریږي[1]. د دوی یو بل بدعت دا و چې ویل به یې اهل الحل (د حرم شریف نه باندې خلکو) ته دا نده روا چې په حرم کې د ننه هغه خوراک وخوري کوم چې دوی له ځان سره له حل نه حرم ته راوړی وي، خو پدې شرط چې د حج او یا عمرې لپاره راغلي وي[2]. دوی اهل الحل (له حرم نه د باندې اوسیدونکي) پدې مکلف کړي وو چې هغوی باید پخپل لومړني طواف کې د الحمس (قریشو) جامې واغوندي، او که دا جامې یې پیدا نکړی شوای نو بیا به نارینه وو لوڅ لغړ طواف کاوه، ښځو به هم ټولې جامې ایستلې وې او یوازې مخصوص ځایونه به یې په یوه ټوټه سره پټ کړي وو او یا دا چې یو وړوکی‌خلاص کمیس به ئې اغوستی و او د طواف په دوران کې به یې دا شعر وایه :

اليوم يبدو بعضه أو كله و مابدا منه فلا أحله

[نن ورځ د شرمګاه څه برخه او یاټول ښکاري، خو هغه چې ښکاري زه هغه ته د کتلو جواز نه ورکوم.]

الله تعالی دا خرافات باطل اعلانوي اوفرمایي: ((يَا بَنِي آدَمَ خُذُوا زِينَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ)).(الأعراف:۳۱)

[ترجمه :اې زامنو د آدمه ! واخلئ تاسې ښایست خپل په نزد (د وخت) د هرلمانځه ].

خوکه کوم سړي او یا ښځې به ځان لدې قانون نه اوچت وباله او پخپلو (له حل نه راوړل شویو) جامو کې به یې طواف وکړ، نو له طواف نه وروسته به یې دا جامې ایسته اچولې او بیا به هیڅا هم نه استعمالولې [3]. د هغوی بل ډول بدعت دا و چې د احرام په دوران کې به خپلو کورونو ته د دروازو له لارې نه ننوتل بلکه دکورونو په شا کې به یې غټ غټ سوري جوړول اوله همغې لارې نه به کورته داخلیدل او بیرته به له همغه لارې نه وتل، او دا ددوی په نظر یونیک عمل و، خو قرآنکریم لدې کار نه نهی کوي او فرمایي : ((وَلَيْسَ الْبِرُّ بِأَنْ تَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ ظُهُورِهَا وَلَكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقَى وَأْتُوا

---

[1] . ابن هشام ۲۰۲/۱.
۲ . ابن هشام ۲۰۲/۱.
[3] . ابن هشام ۲۰۲/۱-۲۰۳. صحیح البخاري ۲۲۲/۱.

**الْبُيُوتَ مِنْ أَبْوَابِهَا وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ))** (البقرة:١٨٩)
**[ترجمه :او نه ده نيکي (دا کار) چې راځئ تاسې کورو ته د شا له لوري او ليکن (خاون) دنيکی هغه څوک دی چې ويرېږی (له الله (جل جلاله) په ترک د مخالفت، او راځئ کورونو ته له طرفه د دروازو د هغوی، او ويرېږئ له الله (جل جلاله) څخه د دې لپاره چې تاسې خلاص شئ (دالله تعالی له عذاب نه) او پخپل مراد ورسيږئ.]**
د عربي جزيرې زياتره برخې پدې جاهليت، بت پرستی، او خرافاتو کې راګير وې، يهوديت، نصرانيت، مجوسيت، او د ستورو نمانځنه هم لدې لارې نه عربو ته ننوتې ده.

په عربي جزيره کې د يهودانو لږ ترلږه دوې دورې د يادولو وړ دي:
<u>لومړۍ</u>: په فلسطين باندې د بابليانو او آشوريانو له قبضې وروسته د فشار او زور په نتيجه کې ديهودانو هجرت، بخت نصر پاچا په ( **٥٨٧**ق .م) کې د يهودانو هيکل (معبد) او کورونه وران کړل، زيات شمير يهودان يې ونيول له ځان سره يې بابل ته بوتلل، بله برخه يې مجبورشول له فلسطين نه حجاز ته هجرت وکړي چې د حجاز په شمالي برخو کې ميشته شول[١].
<u>دوهمه</u>: دا مرحله په (٧٠م) کال کې د روماني تيطس (تايتس) ترمشرۍ لاندې په فلسطين باندې د روميانو له تسلط نه پيليږي، روميانو د هغوی (يهودانو) هيکل وران کړ، او د دوی د زيات فشار په وجه ځنې يهودي قبيلې حجاز ته لاړې او په يثرب، خيبر، او تيماء کې ځای په ځای شوې او هلته يې کلياو کورونه جوړکړل، نو ويلی شو چې يهودان له اسلام نه وړاندې او د اسلامي دين په لومړيو وختونو کې په سياسي ډګر کې يومطرح قوت او ځواک وو. کله چې اسلام راغی نو هغه وخت يهودي مشهورې قبيلې دا وې: خيبر، نضير، مصطلق، قريظه او قينقاع، خو سمهودي د وفاء الوفاء نومي کتاب په (١۶۶) مخ کې ليکي چې د يهودي قبيلو شمير له شلو نه زيات و[٢].
يمن ته يهوديت د تبان اسعد ابو کرب په لاس داخل شويدی، نوموړی د جګړې لپاره يثرب ته تللی و او هملته يهودي شو، او کله چې بيرته راته نو له ځان سره يې دوه يهودي پوهان چې له بني قريظه قبيلې څخه وو يمن ته راوستل. پدې ترتيب سره په

[١] . قلب جزيرة العرب ص ٢٥١.
٢ . قلب جزيرة العرب.

یمن کې هم یهودیت خور شو، او کله چې د اسعد زوی یوسف ذو نواس د یمن مشر وټاکل شو د نجران په مسیحیانو یې حمله وروړه، هغوی یې یهودیت ته راوبلل، خو چې هغوی یهودیت ته غاړه ږیټه نکړه نو یوسف ذو نواس د اورکندې وایستلې او هغوی یې پکې وسیځل. ویل کیږي چې پدې پیښه کې تقریباً له شلو نه ترڅلوېښتو زرو پورې نارینه، ښځې، ماشومان او زاړه (بوډاګان) سیځل شویدي. دا پیښه د (۵۲۳م) کال د اکتوبر په میاشت کې واقع شویده[1]. او قرآنکریم هم د البروج په سورت کې ورته اشاره کړیده.

خو نصراني دین عربي جزیرې ته د حبشې او رومیانو د تسلط او واکمنۍ له لارې ننوتی دی، حبشي حکومت په لومړي ځل په (۳۴۰م) کال کې یمن ونیو چې تر (۳۷۸م) کال پورې ورسره و[2]. د مسیحي دین دعوت هم په همدې وخت کې پدې سیمه کې خور شویدی او دې وخت ته نژدې کلونو کې یو زاهد او دکرامت خاوند چې فیمیون نومیده نجران ته راغی د سیمې خلک یې د مسیحیت په لور وبلل، خلکو هم چې دده صدق او کرامت ولید نو بلنه یې ومنله اومسیحیان شول[3].

او هغه وخت چې حبشیانو یمن ونیو او ابرهه هلته خپل حکومت ټینګ کړ نو مسیحي دین پدې خاوره کې زیات خور شو، ډیر پیروان یې پیداکړل، ان تر دې چې ابرهه په همغه ځای کې دده په خوله کعبه جوړه کړه غوښتل یې عربان هم باید لدې وروسته په یمن کې دده کعبې ته د حج لپاره ورشي.

او د دې پخاطر چې خلک دده کعبې ته راشي قصد یې وکړ بیت الله شریف ورانه کړي، خو الله تعالی د هغه دا توطئه شنډه کړه او هغه یې له دنیوي او اخروي شرم او رسوایۍ سره مخ کړ. همدا راز له روم سره خوا کې میشته قبیلو لکه غساسنه، تغلب اوطئ او د حیرې پاچایانو هم مسیحي دین ومانه.

مجوسیت په هغو عربانو کې رواج درلود کوم چې له فارس سره نژدې پراته وو لکه د عربو په عراق، بحرین، الاحساء، حجر او د عربي خلیج (خلیج فارس) په نژدې څنډوکې میشته خلک.

همدا راز یمن ته هغه وخت مجوسیت لاس اوږد کړ کله چې فارس ورباندې قبضه ولګوله. پاته شوه د صبائي مذهب خبره، هغه معلومات چې په عراق او نورو سیمو کې له ځمکې کیندنې نه لاسته راغلي وایي چې صبائیت د کلدانیانو دین و، د شام زیاتره

[1] تفهیم القرآن للسید مودودي ۲۹۷/۲-۲۹۸. ابن هشام ۲۰/۱_۲۱_۲۲_۲۷_۳۱_۳۵_۳۲.

[2] . تفهیم القرآن ۲۹۷/۲.

[3] . ابن هشام ۳۱/۱تر ۳۴.

خلک او همداراز یمنیان ډیر پخوا د دې دین پیروان وو خو کله چې یهودیت او نصرانیت خور شو او زور یې وموند، تقریباً د دې دین اثر کمزوری اوپیروان یې کم شول خو لاتر اوسه هم په عراق او د عربي خلیج په څنډو کې د ځینو خلکو په منځ کې چې له مجوسیانو سره ګډ شوي او یا د هغوی ګاونډیان وو د دې دیانت ځنې آثار، نښې او نښانې لیدلې کیږي[1].

## دیني حالت

دا وو له اسلامي لمر څرک نه مخکې ځنې عربي ادیان او مذهبونه، چې ټول له خپلې اصلي لارې نه بې لارې، شکل او څیره یې بلکل بدله شوې وه.هغه مشرکان چې ځانونه ئې د ابراهیمي دین پیروان بلل د ابراهیم (علیه السلام) له دین نه بالکل په بله خواتللي وو، د دین اوامر، نواهي او ټول فضیلتونه یې هیر کړي وو، ټول تر ستوني پورې په ګناهونو کې ډوب وو، په مینځ کې یې لکه د بت پرستانو په شان خرافات، بې اساسه عادات او رواجونه خواره شوي وو، او همدې خرافاتو د هغوی د ژوند ټولې (سیاسي، ټولنیزې، دیني) برخې تر خپل تاثیر او اغیزې لاندې راوستې وې.

یهودیت هم په ریا کارۍ او استبداد بدل شوی و. د هغوی مشران لکه خدایان داسې ګرزیدلي وو، په خلکو به یې د خپلې خوښې حکمونه چلول. تر دې چې د هغوی د پټو خیالاتو او د شونډو د ښوریدو او خوځیدو حساب به یې هم ورسره کاوه.

د قدرت او پیسو په غم کې ډوب وو، هر څه یې یوازې د همدې پخاطر وو، دین او دیني احکام یې د پیسو او قدرت په مقابل کې هیڅ بلل، دا مادي هدف به یې چې پوره کیده نور نو د څه شي غم نه و ورسره. دا فکر به هم نه و ورسره چې الحاد او کفر خور شو، او د هغه دین احکام تر پښو لاندې کیږي د کوم په هکله چې الله تعالی امر کوي چې هر څوک باید د هغه احترام او پیروي وکړي.

له نصرانیت نه داسې یو دین جوړ شوی و چې پوهیدل ورباندې ګران وو، دې دین د انسان او الله تعالی تر مینځ یو عجیب غوندې ترکیب جوړ کړی و او پدې سره دا هم یو باطل او وثني (مشرکانه) دین ګرزیدلی و.

په همدې دین متدینو عربانو باندې یې هم اغیزه کمه وه، ځکه د دې دین لارښوونې

---

[1]. ارض القرآن ۱۹۳/۲ تر ۲۰۸.

او د دوی عادات او رواجونه ډېره سره ليرې او مختلف وو او په څه چې دوی عادت شوي وو هغه يې د دين پخاطر نه شوای پرېښودای.
همدا راز د عربو د نورو اديانو پيروان هم لکه مشرکين داسې وو، د هغوی زړونه، عقيدې عادات او رواجونه ډېر سره ورته او نژدې وو .

# د عربي جاهلي ټولنې څونمونې

د عربي جزيرې د اوسيدونکو د سياسي او ديني وضعې په هکله مو څه نا څه خبرې وکړې، اوس غواړو د دې خلکو د ژوند پر ټولنيزه او اقتصادي برخه هم لږ شانته رڼا واچوو:

## ټولنيز حالت

په عربو کې د مختلفو طبقاتو او بيلا بيلو عاداتو او حالاتو درلودونکي خلک موجود وو، په اشرافي کورنيو کې د سړي اړيکې له خپل کور او خپلې ښځې سره ډيرې ښې او پر مخ تللې وې. ښځو يې پوره آزادي درلوده، خبرې او نظريات يې زيات منل کيدل، په ټولنه کې ډير د قدر او احترام په سترګه ورته کتل کيدل، ان تردې چې د ښځې پخاطر دا هم کيدای شوای تورې له تيکيو ووزي او ډيرې وينې تويې شي او که چا به غوښتل په کرم (سخا) او شجاعت کوم چې د عربو په وړاندې تر ټولو لوړ او اوچت صفات شميرل کيدل د ځان ستاينه وکړي، نو هغه به هم زياتره ښځې ته په خطاب سره د ځان ستاينه او صفت کاوه. همدا راز د ښځې له وسه دا هم پوره وه چې مختلفې قبيلې د سولې له لارې سره را ټولې کړي، او دايې هم کولی شوای چې د هغوی په مينځ کې د جګړې اور بل کړي، خو لدې ټولو سره سره د کورنۍ مشري او صلاحيت له نارينه سره و. ښځې او سړي به د واده او نکاح له لارې يو له بل سره اړيکې ټينګولې، خو ښځې پخپل سر واده نه شوای کولی بلکه واده به يې د مشرانو تر نظر لاندې او د هغوی په خوښه ترسره کيده.

دا و د اشرافي کورنيو ټولنيز حالت، خو په نورو کورنيو کې ښځې او نارينه داسې سره ګډ شوي وو چې له فساد، فحشا، او فتنو پرته بل نوم نه شو ورباندې ايښودی. ابو داود له حضرت عايشې (رضي الله عنها) نه په روايت سره وايي: د جاهليت په دوران کې نکاح په څلور ډوله وه : يو ډول يې د اوسنۍ نکاح په شان وه، يوه سړي به د بل

کس لور يا خور او... ورنه غوښتله هغه به موافقه کوله او نکاح به يې تړل کيدله. بل ډول نکاح داسې وه چې کله به د کوم سړي ښځه له حيض نه پاکه شوه نو ميړه به يې ورته ويل: لاړه شه له فلاني سړي سره يو ځای شه (زنا ورسره وکړه) او خپل ميړه به يې بيا تر هغه نه ورسره يو ځای کيده تر څو به يې له هغه بل سړي نه حمل نه وڅرګند شوی او کله به يې چې حمل ښکاره او ثابت شو نو بيا به يې که زړه غوښتل ورسره يو ځای کيده به، دا نکاح د استبضاع په نامه ياديدله او دا صرف د اولاد پيدا کيدو پخاطر ترسره کيدله. دريم ډول داسې وه چې له لسو نه کم کسان به له يوې ښځې سره يو ځای شول، او کله به چې ښځه حامله شوه او بيا به يې اولاد پيدا شو نو څو ورځې وروسته به يې دا ټول کسان راوغوښتل، هغوی به راغلل هيچا هم سر غړاوی نه شوای کولی بيا به دې ښځې ورته ويل: پوهيږئ چې څه مو وکړل، دادی زما اولاد پيدا شو، نو دا ستا زوی دی اې فلانيه! له همغو کسانو نه به يې د کوم يوه نوم واخيست، دا ماشوم به نور د همغه سړي زوی و. څلورم ډول نکاح داسې وه چې زيات شمير خلک به له يوې فاحشې ښځې سره يو ځای کيدل، هغه داسې فاحشې وې چې د کورونو په دروازو به يې جنډې درولې وې ترڅو خلک پوه شي چې دا د فاحشې کوردی اوبې تشويشه ورشي خو کله به يې چې اولاد پيدا شو نو بيا به يې څيره پيژندونکی راووست او هغه به د خپلې تجربې په اساس دا ماشوم يوه کس ته منسوبوه نو همغه ماشوم به د همغه سړي زوی و، د اعتراض او انکار حق يې نه درلود، خو کله چې الله تعالی محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په نبوت مشرف کړ نو د نکاح دا ټول ډولونه يې باطل کړل، او نن ورځ يوازې اسلامي نکاح شته او بس.[1]

داسې هم پيښيدل چې خلکو به د تورې او نيزې په زور ښځې د ځان کولې، کله به چې څوک په جګړه کې بريالی شو نو د ماتې خوړلي دښمن ښځې به يې نيولې او د ځان لپاره به يې روا بللې، او د دې ښځو اولاد به د مرګ تر ورځې د شرم او خجالت ژوند تيراوه.

د جاهليت پدې دوره کې هر چا حق درلود چې بې شميره ښځې ولري، د ښځو لپاره څه حد او اندازه نه وه، په يوه وخت کې د دوو خويندو نکاح هم دوی روا کړې وه، زوی د پلار له طلاقې شوې او يا کونډې ښځې سره (چې ميره يا ميرنۍ موركيږي) نکاح کولی شوای. (د نساء سورت ۲۲= ۲۳ ايت).هغه وخت د طلاق حق له نارينه سره

---

[1]. ابو داود، كتاب النكاح، باب وجوه النكاح التي كان يتناكح بها اهل الجاهلية.

و، خو کومه تاکلې شميره او حد يې نه درلود[۲].

زنا خو دومره زياته وه چې دهرې طبقې خلک ورباندې مبتلا وو، ډيرکم کسان به داسې وو چې لدې مرض نه يې ځان ساتلی وي، خو بيا هم آزادې او اصيلې ښځې د وينځو په نسبت ښې اوغوره وې. داسې ښکاري چې د جاهليت زياتو پيروانو زنا د ځان لپاره شرم اوعيب نه ګاڼه، ابو داود له عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده نه روايت کوي وايي : يوسړی پاڅيد او ويې ويل: يارسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! دا فلانی سړی زما زوی دی، د جاهليت په وخت کې مې د هغه له مور سره زنا کړيده. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: ((**لا دعوة في الاسلام، ذهب امر الجاهيلة الولد للفراش، وللعاهر الحَجَرُ**)) يعنې په اسلام کې دا ډول دعواګانې ځای نلري، د جاهليت خبره پای ته رسيدلې ماشوم د هغه چا دی چې مور يې د هغه ښځه او يا وينځه وي، او د زنا کار لپاره تيږې (کاڼي) دي.

همدا راز د عبدالرحمن بن زمعه چې د زمعه د وينځې زوی و په سر چې د سعد بن ابي وقاص (رضي الله عنه) او عبد بن زمعه ترمنځ کوم اختلاف اوجنجال تير شوی د هغه کيسه هم مشهوره ده[۱]

د جاهليت پدې دوره کې د زوی او پلار اړيکې هم ډول ،ډول وې، ځينو به ويل :

**انمـــــــــــــا اولادنا بيننا اکبادنا تمشي علی الارض**

[زمونږ اولادونه زمونږ په ځمکه ګرزيدونکي زړونه دي.]

خو داسې پلرونه هم وو چې خپلې لوڼې به يې د شرم او يا فقر له امله ژوندۍ ترخاورو لاندې کولې،او د بې وسۍ په وجه يې خپل اولادونه په قتل رسول (قرانکريم:الانعام:**۱۵۱**. النحل:**۵۸-۵۹**.الاسراء: **۳۱**. التکوير:**۸**). خو دا جرم ډير عام ځکه نه و چې هغوی به تل په جګړو کې بند وو، او د دښمن د مقابلې لپاره يې زامنو ته زياته اړتيا درلودله .

له ورونو، د تره له زامنو او نورو تربرونو سره به اړيکې ډيرې ټينګې اونژدې وې، هغوی په قومي تعصب کې نوم درلود، د قوم پخاطر به هم مړه وو او هم ژوندي، د ټولنيز نظام اساس او تهداب يې په قوميت، نژاد پرستۍ، او خپلولۍ سره ولاړ و.

---

۲ . ابو داؤود باب نسخ المراجعة بعد التطليقات الثلاثة. مفسرينو د (الطلاق مرتان) آيت په شان نزول کې همدا خبره کړيده.

۱ . ابو داؤود باب الولد للفراش.

عقيده يې داسې وه چې سړی بايد د قوميت په اساس په حق او باطل دواړو کې له خپلوانو سره ودرېږي، خو د مقام او قدرت په سر به کله کله د يوه پلار د زامنو ترمنځ هم جګړې پيښېدلې لکه د اوس او خزرج، او يا عبس او ذبيان او يا بکر او تغلب خپل مينځی جګړې. لکه اشاره مو چې وکړه هرڅه د قوميت په اساس وو، نو له همدې کبله د مختلفو او بيلابيلو قبايلو ترمنځ هيڅ ډول اړيکې او همکاري نه وه، بلکه د هغوی ټول توان او قوت به يو د بل سره په مقابله اومسابقه کې خرڅېده، خو کله کله به دا دښمني د ديني، خرافاتي او يا نورو عاداتو په وجه کېدله، او داسې به هم پيښېدل چې د همکارۍ، تعاون، اطاعت او دوستۍ داسې تړون وشي چې څو بيلا بيلې قبيلې او کورنۍ سره يوځای کړي. لدې نه علاوه د حرام مياشتې هم د دوی د ژوند او ژوندينو اړتياوو د پوره کولو لپاره ډېرې مهمې او ارزښناکې وې، دا مياشتې د دوی لپاره غټ رحمت او طلايي فرصت و. لنډه دا چې د هغوی ټولنيز نظام ډېر کمزوری اوګډوډ و، خلکو د څارويو په شان ژوند درلود، جهل، ناپوهي، خرافات او بې ديني هرلوري ته خوره وه، ښځه لکه د حيواناتو په شان خرڅېدله، ځنې وخت به له ښځې سره له حيوان نه هم بده رويه کېدله، د خلکو په منځ کې کوم قانون او نظام وجود نه درلود، او هغه تش په نامه حکومتونه که موجود هم وو خو د هغوی لومړنی او وروستنی کار او هدف د ملت له خزانو او پيسو نه د خپلو خېټو او جيبونو ډکول، او د ملت د وينې په قيمت له دښمنانو سره جګړې کول وو.

## اقتصادي حالت

د عربو اقتصادي حالت او نظام د هغوی د ټولنيز نظام تر بشپړې اغيزې لاندې و، د دوی د ژوندنيو اړتياوو د پوره کولو تر ټولو ستره وسيله تجارت و، او دا خو ښکاره ده چې امن نه وي نو تجارت به څنګه ترسره کيږي، هغه وخت امن او امان بالکل وجود نه درلود، جګړې به يوازې د حرام په مياشتو کې بنديدلې او په همدې مياشتو کې به د عربو مشهور بازارونه لکه عکاظ، ذي المجاز، مجنه او نور پرانيستل کيدل.

صنعت خو ډېر کمزوری و، يوازې په يمن، حيره، د شام په سرحدي برخو کې د ټوکر اوبدلو (په لاس سره) څرمنو رنګولو او آش ورکولو او داسې نورو صنعتونو رواج درلود، خو د جزيرې په منځنيو برخو کې کرهڼه او مالداري هم وه، د عربو ټولې ښځې په سنې او بدلو او جوړولو بوختې وې، خو څرنګه چې هر څه په جګړو کې په مصرف رسيدل نو ځکه خلک له لوږې، فقر، او نيستۍ سره لاس او ګريوان وو.

## اخلاق

هیڅوک لدینه انکار نه شي کولی چې د جاهلیت پیروان د ډیرو سپکو اخلاقو، خرابو عاداتو او رواجونو درلودونکي وو، خو لدینه هم انکار نه شي کیدلی چې لدې سره سره دوی ځنې داسې نیک او غوره اخلاق او عادات هم درلودل چې هر چاته د ویاړ او فخر وړ دي، د مثال په توګه :

١ـکرم (سخاوت): هغوی په کرم او سخاوت کې یو له بل سره سیالي کوله، د هغې دورې نیمایي شعرونه پدې هکله ویل شویدي چې یا یې پکې ځان پدې صفت ستایلی او یا یې د همدې صفت له کبله د بل چا ستاینه کړیده. کرم او سخاوت ډیر عمومیت درلود چا ته به چې په ډیره یخنۍ او لوږه (نیستۍ) کې هم میلمه راغی او هغه (کوربه) به له یوې اوښې پرته چې ټول ژوند به یې وربانديې روان و بل څه نه درلودل خو بیا به یې هم د کرم او سخا په حکم خپله لوږه او سخته ورځ هیروله او خپله یوازینۍ اوښه به یې میلمه ته حلالوله. د هغوی د کرم له آثارو نه یو هم دا و چې د انساني ژوند او انساني وینې د ساتنې پخاطر به یې ډیر زیات دیتونه او جریمې منلې او دا به یې د ځان لپاره فخر او ویاړ وباله او د نورو سردارانو په مقابل کې به یې پدې افتخار کاوه.

د همدې کرم او سخا د حس قوت و چې هغوی به په شرابو څښلو ویاړ کاوه، دا ویاړ پدې خاطر نه و چې ګویا شراب څښل پخپله یو ویاړ دی بلکه دا لدې امله و چې شراب څښل هم د کرم او سخا یوه طریقه ده او دا کار انسان ته د خرڅ او مصرف لاره ښیي، او له همدې امله ده چې هغوی د انګورو ونې ته کرم وایي، او د انګورو شرابو ته یې بنت الکرم (د انګورو لور) ویل، که د جاهلي دورې د اشعارو دیوانونو ته مراجعه وشي، نو هلته به پدې هکله د فخر او ویاړ بیل باب وموندل شي. عنتره بن شداد العبسي وایي:

| | |
|---|---|
| ولقد شربت من المدامة بعدما | ركــد الهواجربالمشوف المعلم |
| بزجاجةصـــفراء ذات اســـرة | قرنت بازهر بالشمال مفـــدم |
| فـــاذا شربت فانني مستهلك | مالي، و عرضي وافـــر لم يكلم |
| واذاصحوت فما اقصرعن ندى | وكما علمت شمائلي وتكـــرمي |

[ کله چې د غرمې د ګرمۍ زور مات شو نو ماله یو زیړ، لیکې دار بلورین جام نه چې

له چېږي خوا ته ايښودل شوي ځليدونکي (تابناک) او سرپټي خم (د شرابو لوښي) سره و، ښه شوي صاف او شفاف شراب وڅښل، او کله چي زه شراب څښم نو خپل مال خرڅوم، عزت او آبرو ته مې څه زيان نه رسيږي (آبرو مې نه لکه داره کيږي)، او کله چي را په حال او په خود کيږم نو بيا هم په سخاوت کې کوتاهي نه کوم، او زما اخلاق او کرم خو تا ته معلوم دي چې څه دي.]

همدا راز دوی قمار (جواری) ته هم کرم او سخا ويله ځکه کوم مال به يې چې لدې لارې نه ګاټه هغه به يې ټول، او يا هغه برخه چې د ګټونکو له برخو نه به زياته وه (نه به ورباندې ويشل کيدله) هغه به يې په مسکينانو او فقيرانو ويشله، او له همدې ځايه ده چې قرآنکريم د شرابو او قمار ګټې بالکل نه نفي کوي بلکه فرمايي: ((...وَإِثْمُهُمَا أَكْبَرُ مِنْ نَفْعِهِمَا...)) (البقرة: ۲۱۹) [ګناه يې له ګټې ډيره ده.]

۲ ـ وفا- د هغوی له ښو اخلاقو نه يو هم په عهد وفا وه، په قول او عهد به ټينګ ولاړ وو، حتی چې پدې لاره کې به د ځان، اولاد، او مال قربانۍ ته هم حاضر وو، د دې مطلب د وضاحت او بيان لپاره د هاني بن مسعود الشيباني، سموال بن عاديا او حاجب بن زراره کيسې کافي دي.

۳ ـ بل ښه خوی او خصلت چې د هغوی په مينځ کې رواج درلود هغه عزت النفس، ذلت او سپکاوي ته نه تسليميدل وو، د دوی غيرت او شجاعت ډير زيات و، ظلم او جبر يې نه مانه، کله به يې هم چې سپکه او د ذلت خبره واوريده نو فورا به يې تورې ته لاس کړ او جګړه به پيل شوه. هغوی د خپل عزت په خاطر ځانونه هم قربانول.

۴ـ کلکه او پخه اراده هم د هغوی له غوره صفتونو څخه وه، کوم کارته به يې چې اراده وکړه نو بيا به يې هغه په هر قيمت چې و تر سره کاوه.

۵ـحلم او برده باري او سنجيدګي هم د دوی لپاره د افتخار وړ صفتونه وو، خو دا چې د غيرت او ژر احساساتي کيدلو روحيه ورباندې غالبه وه نو ځکه حلم پکې کم و.

۶ـ د اوسنۍ زمانې له چلونو، فريبونو او مکرونو نه پاکه سادګي، رښتيا، امانتداري، او اخلاص هم د دوی له غوره اخلاقو څخه شميرل کيدل. وينو چې د عربي جزيرې د جغرافيايي موقعيت تر څنګ د دوی دا پورته ذکر شوي او داسې نور غوره صفتونه او اخلاق د دې سبب شول چې الله تعالی همدا عربان د رسالت د درانده پيټي د اوچتولو او د بشري نړۍ د لارښوونې او مشرتابه لپاره انتخاب کړل، ځکه دا اخلاق که څه هم ځنې يې له شر او ضرر نه خالي نه وو خو هغه پخپل ذات کې له اصلاح وروسته ډير د قدر وړ او ارزښتناک وو، او کله چې اسلام راغی او هغه يې سم او

اصلاح کړل نو خيريې ټولې دنيا ته ورسيد. په وفا پسې د دوی تر ټولو غوره صفت عزت النفس او پخه اراده وه، ځکه که عزت النفس، غيرت او پخه اراده نه وي، نو فساد او شر له مينځه نه شي تللی. له پورته ذکر شويو غوره اخلاقو او صفاتو علاوه هغوی نور هم ښه صفتونه درلودل خو مونږ دلته ورنه يادونه ونه کړه.

# د رسول الله(ﷺ)نسب او کورنۍ

## د نبي (ﷺ) نسب:

د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د نسب سلسله په دریو برخو ویشلی شو: یوه برخه داسې ده چې اهل السیر او نسب پوهان یې په صحت اتفاق لري او دا برخه تر عدنان پورې ده، او بله برخه داسې ده چې ځنې اهل السیر یې صحیح بولي او ځنې نورو توقف پکې کړیدی او دا له عدنان نه تر ابراهیم (علیه السلام) پورې ده، دریمه برخه یې هغه ده چې بې له شکه دروغ او غیر صحیح امور پکې موجود دي او دا له ابراهیم (علیه السلام) نه تر آدم (علیه السلام) پورې رسیږي. اوس راځئ دا درې واړه برخې په مفصله توګه تر نظر تیرې کړو.

**لومړنۍ برخه:** محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) بن عبدالله بن عبدالمطلب- اصلي نوم یي شیبه دی- بن هاشم – اصلي نوم یې عمرو دی- بن عبدمناف_ اصلي نوم یې مغیره دی- بن قصي- اصلي نوم یې زید دی – بن کلاب بن مره بن کعب بن لوئ بن غالب بن فهر_ چې لقب یې قریش واو د قریشو قبیله همده ته د انتساب له امله قریش بلل کیږي_ بن مالک بن النضر- چې اصلي نوم یې قیس دی – بن کنانه- بن خزیمه بن مدرکه – اصلي نوم یې عامر دی – بن الیاس بن مضربن نزار بن معد بن عدنان[1].

**دوهمه برخه:** له عدنان نه پورته، یعنی عدنان بن اد بن همیسع بن سلامان بن عوص بن بوز بن قموال بن ابي بن عوام بن ناشد بن حزا بن بلداس بن یدلاف بن طابخ بن جاحم بن ناحش بن ماضي بن عیض بن عبقر بن عبید بن الدعا بن حمدان بن سنبر بن یثربي بن یحزن بن یلحن بن ارعوي بن عیض بن دیشان بن عیصر بن افناد بن ایهام بن مقصر بن ناحث بن زارح بن سمي بن مزي بن عوضه بن عرام بن قیدار بن اسماعیل بن ابراهیم (علیهما السلام).[2]

---

[1] . ابن هشام ا/١_٢. تلقیح فهوم اهل الاثر ۵_٧. رحمة للعالمین ٢/١٢_١٣_١۴_۵٢.

(2). محمد سلیمان المنصور پوری د کلبي په روایت سره د نسب دا برخه جمع کؤیده، همدا راز ابن سعد له أیر دقیق تحقیق وروسته. رحمه للعالمین ٢/ ١۴- ١۵-١٢-١٧ وکګوره، د دی برخي په هکله تاریخي مصادر بوله بل سره أیر توپیر او اختلاف لري.

**دريمه برخه** : له ابراهيم (عليه السلام) نه پورته يعنی ابراهيم بن تارح ـ اصلي نوم يې آزر دی ـ بن ناحور بن ساروع يا ساروغ بن راعو بن فالخ بن عابر بن شالخ بن ارفخشد بن سام بن نوح (عليه السلام) بن لامک بن متوشلخ بن اخنوخ ـ ويل کيږي چې همدا ادريس (عليه السلام) دی ـ بن يرد بن مهلائيل بن قينان بن آنوشته بن شيث بن آدم ـ عليهما السلام[1].

## نبوي کورنۍ

د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) کورنۍ دده جد هاشم ته د انتساب له امله په هاشمي کورنۍ مشهوره ده، نو بې ځايه به نه وي که د هاشم او له ده نه وروسته حالاتو باندې لږ رڼا واچوو:

۱- **هاشم**- لکه مخکې مو چې وويل هغه وخت چې بنو عبد مناف او بنو عبدالدار د سولې په نتيجه کې منصبونه سره وويشل نو د سقايې او رفادې مسئوليت د بني عبدمناف کورنۍ هاشم نومي سړي په غاړه واخيست.

هاشم يو مالدار او معزز سړی و او هغه لومړنی شخص و چې په مکه کې يې حاجيانو ته شوربا او ډوډۍ ورکړيده. اصلي نوم يې عمرو و، خو څرنګه يې چې ډوډۍ په شوربا کې ميده وله، نو په هاشم مشهور شو، ځکه هاشم ميده کوونکي ته وايي. د قريشو دواړو سفرونه د ژمي سفر او اوړي سفر هم د لومړي ځل لپاره ده رواج کړيدي، دده په هکله يو شاعر وايي:

**عمرو الذي هشم الثريد لقومه     قـــوم بمكة مسنتين عجاف**
**سنت إليه الرحلتان كلاهـــما     سفر الشتاء ورحلة الاصياف**

[داعمرو و چې خپل قحطي ځپلي، کمزوري او ډنګر قوم ته يې په شوربا کې ماته شوې ډوډۍ ورکړه، او همدا عمرو و چې د ژمي او اوړي دواړو سفرونو تهداب يې ورته ايښی دی.]

دده د ژوند يوه پيښه داده چې وايي: هغه شام ته د تجارت لپاره روان شو، خوکله چې مدينې ته ورسيد هلته يې د بني عدي بن النجار کورنۍ له سلمی بنت عمرو سره واده

[1] . ابن هشام ۱/۲_۳. تلقيح فهوم الاثر ص ۷. خلاصة السير للطبري ص ۷. رحمة للعالمين. ۱۸/۲.

وکړ، هملته څه موده ورسره پاتې شو. وروسته بیا شام ته وخوځید ،دغه وخت یې ښځه حامله شوې وه، هاشم په همدې سفرکې د فلسطین په غزه نومې سیمه کې وفات شو، او په (۴۹۷م) کال یې زوي عبدالمطلب پیداشو، اوځرنګه چې د زوی په سرکې یې سپین ویښتان وو، نو مور یې (سلمی) شیبه نوم ورباندې کیښود[۱]. او همدلته د پلار په کور(یثرب) کې یې د خپل زوی روزنه کوله او په مکه کې د هاشم له کورنۍ نه هیڅوک نه وو ورباندې خبر. هاشم څلور زامن او پنځه لوڼې درلودې چې نومونه یې دا دي: اسد، ابو صیفي، نضله او عبدالمطلب، او د لوڼو نومونه یې: شفاء، خالده، ضعیفه، رقیه، او جنه وو[۲].

**۲_ عبدالمطلب** _ په هاشم پسې سقایه او رفاده (حاجیانو ته اوبه ورکول او د هغوی میزباني کول او خواړه ورکول) یې د ورور مطلب بن عبدمناف په غاړه ولویده. مطلب هم یو شریف، پخپل قوم کې د عزت او اعتبار خاوند و، خلکو به یې خبرې منلې ، او د زیات سخاوت له امله به قریشو فیاض باله. شیبه (عبدالمطلب) چې کله په مدینه کې لس کلن شو، تره یې (مطلب) ورنه خبرشو، ورپسې ورغی چې مکې ته یې راولي کله یې چې ولید له سترګو یې اوښکې روانې شوې، په غیږ کې یې ټینګ ونیو او پخپله سپرلۍ یې ورسره سپورکړ چې مکې ته یې بوزي، خو عبدالمطلب ورته وویل زه ترهغې نه درسره ځم ترڅو مې چې مور راته اجازه نه وي کړې، نو مطلب یې مورته وویل چې وراره مې راسره ولیږه، خو مور یې دا خبره ونه منله. ده ورته وویل: اجازه ورکړه، هغه د خپل پلار وطن او د الله (جل جلاله) حرم ته ځي، پدې خبرې سره یې مور اجازه ورکړه، او پدې ترتیب مطلب هغه له ځان سره په اوښ سپورمکې ته راووست،کله چې خلکو ولید ویې ویل: دا (عبدالمطلب ) دی، خو ده ورته وویل نه داسې نده، دا زما د ورور هاشم زوی دی. عبدالمطلب همدلته مکه کې د خپل تره (مطلب) تر روزنه لاندې لوی شو، ترڅو مطلب د یمن په ردمان نومې سیمه کې وفات شو، نو نوموړی مسئولیت عبدالمطلب ته وسپارل شو. ده هم خپل قوم ته ټول هغه خدمتونه وړاندې کول کوم چې دده پلرونو به کول، بالاخره پخپل قوم کې د دومره شرف او عزت خاوند شو چې پلرونه او اجداد یې هم هغې درجې ته نه وو رسیدلي خلکو ورسره ډیره مینه لرله او ډیر درناوی یې ورته درلود[۳].

---

[۱]. ابن هشام ۱۳۸/۱. رحمة للعالمین ۲۴/۲۲،۲/۱.
[۲]. ابن هشام ۱۰۷/۱.
[۳]. ابن هشام ۱۳۷/۱_۱۳۸.

کله چې مطلب وفات شو، نوفل د عبدالمطلب په ځينو عبادتخانو يا څه جايداد قبضه ولګوله، يا دا چې ديني مشرتابه يې ورنه غصب کړه، عبدالمطلب د خپل تره په مقابل کې له قريشو نه مرسته وغوښته، خوقريشو ورته وويل: مونږ ستا او ستا د تره ترمنځ مداخله نه کوو. بيا يې خپلو ماماخيلو (بني النجار) ته يو څوشعرونه واستول چې د کومک غوښتنه يې پکې کوله، نو ماما يې (ابوسعد بن عدي) له اتياوو سپرو سره روان شو، د مکې په ابطح کې يې واړول. عبدالمطلب ورغی او ورته ويې ويل: راځئ کور ته. ماما يې وويل: نه، تر څومې چې نوفل نه وي ليدلی کورته به درسره لاړ نه شم، بيا نوفل ته ورغی، هغه په حطيم کې د قريشو له مشرانو سره يوځای ناست و، ابوسعد خپله توره له تيکي را وايسته او ورته ويې ويل: د دې کوټې د رب په نامه قسم يادوم که چيرته زما خوريي ته د هغه حق او يا مشري بيرته ورنکړې نو پدې توره به دې وهم. نوفل وويل: سيي ده ما هغه بيرته ورکړه، د قريشو مشران ورباندې شاهدان شول. بيا ابوسعد د عبدالمطلب کورته لاړ، درې ورځې ورسره ميلمه و، بيا يې عمره اداکړه او بيرته مدينې ته ستون شو.

پدې پيښه پسې مناف د بني هاشم په خلاف له بني عبدشمس بن عبدمناف سره تړون وکړ، اوکله چې خزاعه وليدل چې بني النجار د عبدالمطلب ملاتړ وکړ نو ويې ويل : هغه (عبدالمطلب) لکه څرنګه چې ستاسې له اولادې نه دی همدا ډول زمونږ له اولادې څخه هم دی او په مونږ هم حق لري چې مرسته يې وکړو.او دا ځکه چې د عبدمناف مور له خزاعه کورنۍ څخه وه، نو همدا وه چې د خزاعه کورنۍ خلکو په دارالندوه کې د نوفل او بني عبدشمس په خلاف له بني هاشم سره تړون وکړ، او همدا تړون و چې بيا وروسته د مکې د فتحې سبب شو، تفصيلات به پخپل ځای کې راشي[1].

د بيت الله شريف په امورو کې عبدالمطلب له دوو مهمو پيښو[2]سره مخامخ شوی و چې يوه د زمزم کوهي کيندل او بله د فيل واقعه وه .

## د زمزم کوهي کيندل

د دې پيښې لنډيز داسې دی: عبدالمطلب په خوب کې د زمزم کوهي په کيندلو مامور کيږي، ترڅو ځای هم ورته ښودل کيږي، نو هغه هم شروع وکړه او کوهي يې را لوڅ کړ

---

[1]. مختصر سيرة الرسول (ص) للشيخ محمد بن عبد الوهاب ص ۴۱_۴۲.

[2]. ابن هشام ۱۴۲/۱ تر ۱۴۷ پورې.

او ټول هغه شیان یې پکې وموندل کوم چې جرهمیانو د هجرت په وخت کې پکې ښخ کړي وو، هغه تورې، زغرې، دواړه طلائي هوسۍ، ټول یې را وایستل، تورې او هوسۍ ئې دکعبې شریفې په دروازه کې نصب کړې، او د حاجیانو لپاره یې د زمزم اوبه څښلو ته برابرې کړې.
کله چې د زمزم څاه را ښکاره شو، قریشو عبدالمطلب ته وویل: چې مونږ هم پدې کار کې درسره شریک کړه، ده ورسره ونه منله، او ورته ویې ویل: چې زه خاص پدې کار ټاکل شوی یم، خو هغوی مخالفت ورسره کاوه تر څو د بني سعد یوې کاهنې ته د محاکمې لپاره لاړل، خو دوی لا په لاره وو چې الله تعالی دا ور وښودله چې عبدالمطلب زمزم ته خاص شویدی. په همدې وخت کې عبدالمطلب نذر کېښود او ویې ویل: که چیرته الله تعالی لس زامن راکړل او ټول ځوانان شول نو یو به ورنه په کعبه کې ذبح کوم.

## د فیل واقعه

د دې کیسې خلاصه داسې ده چې ابرهه الصباح الحبشي چې په یمن کې د نجاشي نماینده و، ولیدل چې عرب کعبې شریفې ته د حج لپاره ځي، نو ده په صنعاء کې یوه لویه کلیسا جوړه کړه او غوښتل یې عرب هم دکعبې په ځای د دې کلیسا حج وکړي. د ابرهه دا خبره د بني کنانه یوه سړي واوریده، نو د شپې په تیاره کې کلیساته ننووت او قبله یې په مرداری ورته ولړله. ابرهه چې له پیښې خبرشو، ډیر په غوسه شو، شپیته زره پیاوړی لښکر یې د مکې په لور روان کړ ترڅو کعبه شریفه ونړوي، ورسره (۹) یا (۱۳) فیلان هم وو، پخپله په یوه لوی فیل سپور و. وخوځیدل ترڅو مغمس نومې منطقې ته ورسیدل، هلته یې لښکرې برابرې کړې، فیلان یې آماده کړل اومکې ته د ننوتلو په تکل کې شول، خوکله چې د مزدلفې او منی مینځ کې د محسر سیمې ته ورسیدل، فیل یې چو شو، او د مکې په طرف ئې قدم نه اوچتاوه، بل هرطرف ته به یې چې روان کړ یوځل به په منډو شو، خو چې د کعبې په طرف به یې مخ شو په ځای به څملاست. دوی په همدې حالت کې وو چې الله تعالی یوسیل مرغان ورباندې وګمارل، او هغوی یې په پخو شویو ګټو وویشتل، او په دې سره الله تعالی هغوی لکه ځپل شوي او خوړل شوي بوس داسې وګرزول. دې مرغانو له ابابیل او قمري سره ورته والی درلود، اوږدې مښوکې، نري وزر او پیرړې لکۍ یې درلودې، له هر مرغه سره د نخود د دانې په اندازه درې درې ګاټې وو چې یوه به یې په مښوکه او دوی نورې به یې په منګولو کې نیولې وې، په هر چا به چې دا ګاټې (وړوکې تیږه ) ولګیده اندامونه

به یې پرې شول او مړ به شو، ټول پدې ګاټو ونه لګیدل خو هغوی له ډیرې ویرې په هره خوا منډې وهلې، یو بل یې تر پښو لاندې کاوه، که کتل به دې هرې خواته او په هره چینه به د دوی مړی پراته وو. ابرهه پخپله په یوه داسې مرض ګرفتار شو چې دګوتو سرونه یې ولویدل او ترڅو چې صنعاء ته رسیده نو یو بې بڼکو چرګوړی ورنه جوړ شوی و او هملته یې سینه دوه پړکې شوه ، زړه یې ترې راووت او مردار شو.
قریش د دې لښکرو له ویرې خوړونو، غارونو او د غرو سرونو ته تللي وو، او کله چې الله تعالی هغه لښکر دړې وړې کړ نو دوی بیرته ډاډه خپلو کورونو ته راوګرزیدل[1].
دا پیښه د زیاتره تاریخ پوهانو په نظر د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تر مبارک میلاد پنځه پنځوس (**۵۵**) ورځې مخکې د محرم په میاشت کې واقع شوې ده، چې دا نیټه د (**۵۷۱**م) کال د فبروري میاشتې د وروستیو او یا د مارچ له لومړیو سره سمون خوري.
دا پیښه په حقیقت کې یوه مقدماتي او تمهیدي نښه وه چې الله د خپل رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او خپل کور (بیت الحرام) لپاره ښکاره کړه، ځکه وینو پداسې حال کې چې د بیت المقدس اوسیدونکي مسلمانان دي خو مشرکین او د الله تعالی دښمنان ورباندې مسلط کیږي لکه په (**۵۷۸**م) کال کې د بخت نصر حمله او (۷۰م) کال کې د رومیانو سیطره، خو کعبه شریفه سره لدې چې اوسیدونکي یې مشرکان وو نصرانیان چې هغه وخت مسلمانان وو تسلط نه شي ورباندې موندلی.
د دې پیښې خبر د وخت په ټوله متمدنه نړۍ کې خورشو، ځکه هغه وخت حبشې له رومیانو سره نژدې اړیکې درلودې، فارسیانو خو د دوی هر څه تر نظر لاندې لرل او په کمین کې ورته ناست وو، او دا یې کتل چې رومیان او ملګري یې څه کوي او له څه سره مخامخ کیږي، او همدا وجه وه چې پدې پیښه پسې فارسیان سملاسي یمن ته راغلل. هغه وخت د متمدنې نړۍ مشري له رومیانو او فارسیانو سره وه. دې واقعې دنیا حیرانه کړه، د هر چا توجه یې د بیت الله شریف مقام او درجې ته راواړوله، او دا یې ورته وښودله چې یوازې همدا خونه ده چې الله تعالی ورته قدر او شرف ورکړی دی، او یوازې همدا د تقدیس وړ ده، نو که د دې مقدس ځای کوم اوسیدونکی په نبوت مشرف کیږي، نو دا د همدې پیښې غوښتنه او مقتضی ده. او پدې سیمه کې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ظهور په حقیقت کې د الله تعالی هغه

---

[1]. ابن هشام ۱/ ۴۳ تر ۵۲، تفهیم القران ۴۲۲/۲/۲ تر ۴۲۹.

حکمت په ګوته کوي کوم چې پدې پيښنه کې يې د همغه حکمت په اساس مشرکين پر نصرانيانو باندې پداسې طريقې سره برلاسي کړي وو چې د اسبابو له دايرې نه لوړه او اوچته وه.
عبدالمطلب لس زامن درلودل چې نومونه يې دا دي: حارث، زبير، ابو طالب، عبدالله، حمزه (رضي الله عنه)، ابولهب، غيداق، مقوم، صفار، عباس (رضي الله عنه). او دا هم ويل شوي چې يوولس زامن يې درلودل او ((قثم)) نوم يې ورسره زيات کړی دی. ځنی وايي: ديارلس زامن يې وو او هغوی د عبدالکعبه او حجل نومونه ور زيات کړيدي، او دا هم ويل کيږي چې عبدالعکبه همدا مقوم، او حجل همدا غيداق و او د قثم په نامه يې زوی نه درلود، خو لوڼې يې شپږ وې او نومونه يې دا دي: ام حکيم (البيضاء)، بره، عاتکه، صفيه، اروی او اميمه.[1]

## ۳- د رسول اکرم (ﷺ) محترم پلار عبد الله

د عبدالله مور فاطمه بنت عمرو بن عائذ بن عمران بن مخزوم بن يقظه بن مره وه. د عبدالمطلب په اولادونو کې عبدالله تر ټولو ښکلی، شريف، غوره او ټولو ته ګران، او په ذبيح سره مشهور و. ذبيح يې له دې امله باله کله چې د عبدالمطلب زامن پوره لس شول او ټول ځوانی ته ورسيدل، نور يې د ده ملاتړ او دفاع کولی شوی، نو له خپل هغه نذر نه چې ايښی يې و خبر کړل، زامنو يې خبره ورسره ومنله. عبدالمطلب د دوی ټولو نومونه د پال په غشو وليکل او بيايې د هبل مينجور ته ورکړل، مينجور غشي سره ګډ کړل او بيايې يو ورنه راويوست که ګوري د عبدالله نوم راوتلی دی، نو عبدالمطلب چاړه راوخيسته، خپل زوی (عبدالله) يې راونيو تر څو کعبې ته يې بوزي او هلته يې ذبح کړي، خو قريشو خصوصا د عبدالله ماما خيلو او ورور يې ابو طالب عبدالمطلب لدې کارنه منع کړ. عبدالمطلب ورته وويل: نو چاره څه ده؟ زه خپل نذر څنګه ادا کړم؟ دوی ورته وويل: له فلانۍ عرافې ښځې نه پدې هکله مشوره وغواړه. عبدالمطلب عرافې ته ورغی هغې ورته وويل چې د عبدالله او لسو اوښانو تر مينځ قرعه اندازي وکړه، که د عبدالله نوم راووت، نو لس نور اوښان ورباندې ورزيات کړه، پدې ترتيب سره لس، لس ور زياتوه تر څو خدای راضي شي او د اوښانو پچه وخيژي. پدې ترتيب سره هغه راغی، د عبدالله او لسو اوښانو تر مينځ يې پچه واچوله، د

---

[1]. تلقيح فهوم الاثر ص ۸-۹. رحمة للعالمين ۲/۵۲_۲۲.

عبدالله نوم راووت، نو عبدالمطلب لس نور ورزيات کړل، خو بيا هم د عبدالله نوم راووت، نو لس، لس يې ورزياتول تر څو سل اوښان پوره شول بيا د اوښانو پڅه وختله، عبد المطلب دا سل اوښان د عبدالله په ځای حلال کړل او همداسې يې واچول هر چا چې ورل، ورل يې، نه يې انسان ترينه منع کاوه او نه حيوان. لدې پيښې نه مخکې په عربو او قريشو کې د ديت بيه لس اوښان وه خو لدينه وروسته سل اوښان شوه، اسلام هم همدا سل اوښان تاييد کړل. له رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه په روايت کې راځي چې فرمايي: (انا ابن الذبيحين) [زه د دوو ذبيحانو يعنی اسماعيل (عليه السلام) او عبدالله زوی يم].[1]

عبدالمطلب خپل زوی عبدالله ته آمنه بنت وهب بن عبدمناف بن زهره بن کلاب په نکاح کړه. آمنه هغه وخت په قريشو کې د نسب او مقام له پلوه تر ټولو غوره ښځه وه، پلار يې د نسب او شرف له پلوه د بني زهره مشر و، د عبدالله او آمنې واده په مکه کې ترسره شو، خو له واده نه څه موده وروسته عبدالمطلب هغه مدينې ته واستاوه تر څو دوی ته خرماوې راوړي. عبدالله لاړ او هملته مدينه کې وفات شو، او ځنې وايي: چې عبدالله د تجارت لپاره شام ته تللی و، او بيرته د قريشو له يوه کاروان سره راتله چې مدينې ته راورسيدل عبدالله مريض او بيا هملته د ۲۵ کلو په عمر وفات شو، او د النابغه الجعدي په کورکې خاورو ته وسپارل شو. هغه وخت رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه و زيږيدلی، که څه هم ځنې روايتونه وايي چې عبدالله د رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) له ميلاد نه دوې مياشتې وروسته وفات شوی دی.[2] خو زياتره مورخين لومړنی نظر تاييدوي او کله چې د عبدالله د مړينې خبر مکې ته راورسيد نو آمنې دده په مرثيه کې دا شعر ووايه:

Comment: شپشپشيسپيسش

| | |
|---|---|
| عفاجانب البطحاء من ابن هاشم | و جاورلحدا خارجـــا في الغمـــاغم |
| دعـــته المنايا دعوة فـــأجـــابهـــا | و ما ترکت في الناس مثل ابن هاشم |
| عشـــية راحـــوا يحملون ســـريره | تعـــاوره اصحابـــه في التـــزاحـــم |
| فإن تـــك غالته المنـــايا و ريـــبها | فقـــد کان معطاء کثير التـــراحـــم[3] |

---

[1]. ابن هشام ۱۵۱/۱ تر ۱۵۵. رحمة للعالمين ۲/ ۸۹ – ۹۰. مختصر سيرةالرسول (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) للشيخ عبدالله نجدي ص ۱۲-۲۲-۲۳.

(2). ابن هشام ۱/156_158. فقه السيرة لمحمد الغزالي ص ۴۵. رحمة للعالمين ۹۱/۲.

[3] . طبقات ابن سعد ۲۲/۱.

ترجمه:[ د بطحا غيږ د هاشم له زوی نه خالي شوه، هغه د آوازونو او ژړاګانو (غوغا) په مينځ کې د لحد ملګری شو، مرګي وغوښت هغه هم دې بلنې ته لبيک ووايه، اوس مرګي د خلکو په مينځ کې د ابن هاشم د زوی په شان څوک نه دي پريښي، (څومره غمجن و) هغه ماښام چې خلکو د ده کټ په اوږو اخيستی، که څه هم مرګ او د مرګ حوادثو هغه ختم کړ (خو د هغه د کړو ياد به تل وي) هغه ډير پوه، رحيم او سخي سړی و.]

د عبدالله ټول ميراث پنځه اوښان، يوه رمه (يوشمير) ميږې او يوه حبشي وينځه وه چې نوم يې برکه او کنيه نوم يې ام ايمن و، او دا همغه ام ايمن ده چې رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به يې په غيږ کې ګرځاوه پالنه به يې کوله.[1]

[1]. مختصر سيره الرسول (ص) للشيخ النجدی ص ۱۲. تلقيح فهوم اهل الاثر ص ۴. صحيح مسلم ۹۲/۲.

# نيکمرغه ميلاد

# او

# د سپيڅلي ژوند لومړني څلويښت کلونه

## نيکمرغه ميلاد

سيدالمرسلين حضرت محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د بني هاشم په شعب (مينه) کې، د دوشنبې په سهار چې د فيل د پيښې د لمړنۍ کال د ربيع الاول نهمه نيټه وه دنيا ته سترگې وغړولې، دغه وخت د کسری نوشيروان د پاچايۍ څلويښت کاله تير شوي وو، د ستر عالم محمد سليمان المنصور فوری او فلکي محقق محمود باشا د تحقيق په اساس دا تاريخ د (۵۷۱م) کال د اپريل د مياشتی له شلمی او يا دوه ويشتمی نيټې سره سمون خوري.[۱]

ابن سعد روايت کوي چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مور وايي: کله چې هغه (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وزيږيده نو زما له جسم نه يو نور ووت چې د شام قصرونه يې روښانه کړل، احمد هم له عرباض بن ساريه نه دی ته ورته يو روايت نقل کړيدی.[۲]

ځنې روايتونه وايي چې د نيکمرغه ميلاد په وخت کې ځنې ارهاصات ( د نبي له بعثت نه مخکې خارق العاده پيښې) واقع شوي وو، وايي د کسری د قصر څوارلس کنگرې راولويدلې. د مجوسو آتش کده چې نمانځنه به يې کيدله مړه اوسړه شوه، د ساوه بحيره وچه شوه او په شا او خوا کې يې موجودې کليسا گانی راپريوتې، دا روايتونه بيهقي رانقل کړيدي، خو محمد الغزالي يې نه منی.[۳]

کله چې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پيدا شو، نو مور يې عبدالمطلب ته څوک وروليږل چې د لمسی زيری ورکړی، عبدالمطلب خوشاله راغی خپل لمسی

---

(1). محاضرات تاريخ الامم الاسلامية للخضري ۲۲/۱. رحمة للعالمين ۳۸/۱ - ۳۹ . د ميلادي جنتريو د توپير او اختلاف له امله د اپريل د شلمې او دوه ويشتمې نيټې په ټاکلو کي اختلاف راغلی دی.

(2). مختصر سيرة الرسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) للشيخ النجدي ص .۱۲ ابن سعد ۲۳/۱.

(3). فقه السيرة لحمد الغزالی ص ۴۲ وگوره.

يې په غېږ کې واخيست او کعبې شريفې ته يې داخل کړ، د الله تعالی شکرونه يې ادا کول، دعاېې کوله او نوم يې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورباندې کېښود. هغه وخت د محمد نوم په عربو کې شهرت او رواج نه درلود، او د عربو د عادت تر مخې يې په اوومه ورځ سنت کړ.[1]

لومړنی تی ورکونکی ښځه چې له مور (آمنې) نه وروسته يې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته تی (شيدې) ورکړېدې د ابو لهب وينځه ثويبه ده، چې هغه وخت يې خپل زوی مسروح ته هم تی (شيدې) ورکاوه ، او لدينه مخکې يې حمزه (رضي الله عنه) او بيا وروسته يې ابو سلمه بن عبدالاسد مخزومي ته هم تی (شيدې) ورکړېدې .

## له بني سعد سره

د ښار اوسيدونکو عربانو عادت درلود چې خپلو اولادونو ته به يې له صحرايي خلکو نه دايې (شيدې ورکوونکې ښځې) نيولې، تر څو هغوی له ښاري مرضونونه سالم پاتې شي، اندامونه يې پياوړي، اعصاب يې مضبوط وي، او په زانګو کې فصيحه عربي ژبه زده کړي، نو د همدې عادت په بنا عبدالمطلب هم د خپل لمسي لپاره دايه لټوله، بالاخره يې د بني سعد بن بکر کورنۍ يوه ښځه چې حليمه بنت ابي ذويب نوميده د هغه لپاره دايه ونيوله. د حليمې ميړه حارث بن عبدالعزی نوميده، کنيه نوم يې ابو کبشه و او له همدې قبيلې (بني سعد بن بکر) څخه و.

هلته د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) رضاعي وروڼه او خويندې دا وو: عبدالله بن الحارث، انيسه بنت الحارث، حذافه او يا جذامه بنت الحارث (لقب يې شيماء و، خو همدا لقب يې ته نامه نه زيات مشهور و (نوموړې به رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په غېږ کې ګرځاوه او کراراوه به يې) او ابوسفيان بن الحارث بن عبدالمطلب چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د تره زوی هم کيږي او د حليمې له طرفه د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) رضاعي ورور دی.

د رسول کريم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تره حمزه (رضي الله عنه) هم له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه مخکې د بني سعد بن بکر په قبيله

---

[1]. ابن هشام ١٥٩/١ - ١٢٠، محاضرات تاريخ الامم الاسلامية للخضري ٢٢/١. دا هم ويلی شوي چې رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سنت کړی شوی پيدا شويدی تلقيح فهوم الاثر ص ۴ وګوره، خو ابن القيم وايي پدې هکله ثابت حديث نشته، زاد العاد ١٨/١.

کې و، یوه ورځ د حمزه (رضي الله عنه) رضاعي مور هم رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته شیدې ورکړیدي نو پدې اساس حمزه (رضي الله عنه) له دوو خواوو نه د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) رضاعي ورور و، یو د ثویبې له خوا نه او بل د همدې سعدیې ښځې له پلوه [1]. د رضاعت په دوران کې حلیمې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) داسې برکتونه لیدلي چې بالکل ورته حیرانه وه، راځئ پدې هکله یوه کیسه پخپله د حلیمې له خولې نه واورو:
ابن اسحاق وایي: حلیمې به ویل: زه له خپل میړه او کوچني زوی چې شیدې مې ورکولی د بني سعد کورنۍ له یوې ډلې ښځو سره له کوره پدې نیت ووتلو چې د شیدو ورکولو لپاره ماشومان پیدا کړو. وایي: دغه کال ډیر وچ و، مونږ ته هیڅ هم نه و را پاتې. وایي: پدې سفر کې زه پخپله سپینه خره سپره وم، زمونږ سره یوه زړه اوښه هم وه، چې هیڅ شیدې یې نکولې، ماشوم مو هم ډیر وږی و، ټوله شپه مو د ده له لاسه خوب نه درلود ځکه له لوږې به یې ژړل، زما په تیو کې څه نه و او اوښې هم دومره شیدې نه کولې چې د ده بس شوې وی، خو دا طمعه او هیله مو درلوده چې باران به وشي او لاس به مو لږ آزاد شي.
لنډه دا چې زه په همدې خره سپره وم چې د ډیرې کمزورۍ له امله په ځای ودریده، دومره ورو، ورو تلو چې د کاروان ټول ملګري رانه په تنګ شول، په هر ترتیب چې وو مکې ته ورسیدو هلته مو ماشومان کتل. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) زمونږ د کاروان ټولو ښځو ته وړاندې شو، خو کله به چې خبرې شوې چې دا یتیم دی، نو نه به یې اخیست، ځکه مونږ خو دا غوښتل چې د ماشوم پلار به راسره مرسته کوي، نو دا چې یتیم دی، مور او نیکه به یې څه راسره وکړي؟ نو له همدې امله هیچا هم هغه وانخیست. په پای کې ټولو ښځو ماشومان پیدا کړل، خو زه یوازینۍ ښځه وم چې ماشوم مې نه و موندلی، او کله مو چې د ستنیدو اراده وکړه خپل میړه ته مې وویل: زما ټولو ملګرو ماشومان واخیستل، دا د ځان لپاره شرم ګڼم چې زه همداسې تش لاس بیرته ستنه شم، قسم په خدای ورځم او همدا یتیم ماشوم له ځان سره اخلم. میړه مې وویل: بده نده، کیدای شي الله تعالی هغه را ته د برکت سبب کړي. حلیمه وایي: لاړم، هغه (محمد "صلی الله علیه وسلم") مې له ځان سره راوړ، او دا هم ځکه چې بل ماشوم را ته پیدا نشو. وایي: هغه مې له ځان سره راووست کله مې چې تې ته

[1]. زاد المعاد ۱۹/۱.

واچاوه، يو ځل مې په تيو کې شيدې را پيدا شوې، ويې رودلې او موړ شو، بيا يې ورور هم دومره شيدې ورودلې تر څو ښه موړ شو، بيا ويده شو، پداسې حال کې چې لدينه مخکې نه ده خوب درلود او نه موړ ورنه ويده کيدای شوای. ميړه مې پاڅيد چې هغه زړه اوښه را ولوشي که ګوري چې غولانځه يې ډکه ده، را ويې لوشله دومره شيدې يې وکړې چې دواړه ښه ورباندې ماړه شوو، دا شپه مو ډيره په خير او آرامۍ سره تيره کړه. وايي: سهار مې ميړه راته وايي: پوه شه اې حليمې! قسم په خدای چې تا ډيره مبارکه روح اخيستې ده. حليمه وايي: ما ورته وويل: زه له الله تعالی نه همدا غواړم. وايي: بيا مو حرکت وکړ، زه پخپله خره سپره شوم هغه ماشوم مې هم راسره واخيست، قسم په خدای چې دا خره داسې ګړندۍ تله چې يوه خره هم نه شوی پسې رسيدلی تر دې چې ملګرو مې راته ويل: اې د ابي ذويب لورې، په مونږ لږ مهربانۍ وکړه، آيا دا هماغه خره ده چې له هغه بل طرف نه پرې راغلې؟ ما به ورته ويل: هو دا هماغه خره ده، نو دوی راته ويل: چې حتماً څه خاصه خبره شته ده. بالاخره خپل مېنې ته راورسيدو، او دغه وخت لدې ځای نه بل ځای زيات وچ او قحطۍ ځپلی نه و، خو کله مو چې دا مبارک ماشوم له ځان سره يووړ، له همغې ورځې نه به زمونږ ميږې مړې او غولانځې به يې له شيدو ډکې وې، لوشلې به مو او شيدې به مو خوړلې، دا پداسې حال کې چې نورو خلکو به خپلو شپنو ته ويل: تاسې هم ميږې په هغه ځای‌کې څروئ چېرته يې چې د بنت ابي ذويب شپون څروي، ځکه د هغوی ميږې به وږې او نرې بيرته راتللې، يو څاڅکی شيدې يې هم نه کولې، خو زما ميږې به مړې او له شيدو ډکې راتللې. په همدې ترتيب سره همداسې د خير او برکت را ته مخه وه تر څو د محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دوه کاله پوره شول، او له شيدو نه مې بيل کړ. دا مبارک به د نورو ماشومانو په نسبت ډير ژر، ژر لوئيده، په دوو کلونو کې هغه يو پياوړی او تکړه هلک شو. حليمه وايي: بيا مو هغه خپلې مور ته وروست، خو آرزو مو دا وه چې نور هم له مونږ سره پاتې شي، ځکه د هغه برکتونه مو ليدل. مورته مو يې وويل: زوی دې څه موده نور هم له مونږ سره پريږده، تر څو لوی شي، زه ويريږم چې دا په مکه کې ګډه شوې وبا زيان ور و نه رسوي. حليمه وايي: تر هغې هملته ورسره وو، تر څو يې مور پدې راضي شوه چې بيرته يې له مونږ سره واستوي.[١]

## شق الصدر (سينې څيرلو) پيښه

---

[(1)]. ابن هشام ١٢٢/١ – ١٢٣-١٢٤.

پدې ډول سره رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تر هغې په بني سعد کې پاتې شو تر څو څلور کلن او یا پنځه کلن شو[۱] او په همدې عمر کې د شق الصدر (سینې څیرولو) پیښه وشوه. امام مسلم له انس (رضي الله عنه) نه په روایت سره وایي: یوه ورځ رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له ماشومانو سره لوبې کولې چې جبرئیل (علیه السلام) ورته راغی، را ویې نیو، په ځمکه یې څملاوه، سینه یې ورڅیرې کړه، زړه یې ترې راویوست، یوه ټوټه غوښه یې ورنه لیرې کړه او ویې ویل: دا ستا په وجود کې د شیطان برخه ده، بیایې د سرو زرو په یوه طشت کې د زمزم په اوبو ومینځه، بیایې بیرته سره یو ځای کړ او پخپل ځای کې یې ورکیښود. ماشومان په منډو منډو دده رضاعي مورته ورغلل او ورته ویې ویل: چې محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ووژل شو. د کور خلک یې پسې راووتل او محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یې پداسې حال کې مخې ته راغی چې مبارک رنګ یې الوتی و.[۲]

## د مور په له محبت نه ډکه غیږ کې

له دې پیښې نه وروسته حلیمه ورباندې وویریده او خپلې مورته یې ور تسلیم کړ، او بیا تر شپږ کلنۍ پورې له خپلې قدرمنې مور سره و.[۳]

آمنې نیت وکړ چې د وفا په دود د خپل میړه د قبر زیارت وکړي، نو یې د یثرب په لور حرکت وکړ، او تقریبا دا پنځه سوه کیلو متره لار یې ووهله. پدې سفر کې یې یتیم زوی محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)، خادمه یې (ام ایمن) او سر پرست یې (عبدالمطلب) هم ورسره ملګري وو. آمنه هلته یوه میاشت پاتې شوه، خو چې د بیرته راتګ اراده کوي مریضه کیږي، او د لارې په اوږدو کې یې تکلیف زیاتیږي چې بالاخره د مکې او مدینې تر مینځ ابواء نومې سیمه کې وفات شوه.[۴]

---

[۱]. دا د زیاتره تاریخ پوهانو نظریه ده، خو د ابن اسحاق له روایت نه داسې معلومیږي چې دا پیښه په درې کلنۍ کې شویده، ابن هشام ۱/۱۶۴ - ۱۶۵ وګوره.

[۲]. صحیح مسلم، باب الاسراء ۱/۹۲.

[۳]. تلقیح فهوم الاثر ص ۷.

[۴]. ابن هشام ۱/۱۶۹. تلقیح فهوم الاثر ص ۷ . محاضرات تاریخ الامم الاسلامیة للخضري ۱/۶۳. فقه السیرة للغزالي ص ۵۰

## د مهربان نیکه ترسیوري لاندې

سپین ږیري عبدالمطلب خپل یتیم لمسی مکې ته راووست، زړه یې د لمسي له مینې او محبت نه ډک، ډیر وربانديې زهیر و، ځکه هغه له نوي داسې غم سره مخ شوی و چې پخواني غمونه یې ټول را تازه کول. او همدا وجه وه چې عبدالمطلب لدې لمسي سره دومره مهرباني او نرمي کوله چې له بل هیڅ یوه اولاد سره یې نه وه کړې. هغه یې نه پریښوده چې د بې کسۍ او تنهایۍ احساس وکړي، له خپلو زامنو نه یې هغه ته توجه ډیره وه. ابن هشام وایي: د کعبې تر سیوري لاندې به عبدالمطلب ته ځای برابریده، زامن به یې شاوخوا کیناستل ترڅو هغه به راغی، هیڅوک به هم ده ته د احترام او تقدیر له امله د ده په ځای نه کیناستل، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به چې لا تراوسه ځوان شوی هم نه و راته او د خپل بابا په ځای به کیناست، ترونو به یې منع کاوه، اجازه به یې نه ورکوله چې هلته کیني، خو عبدالمطلب به چې کله ولیدل نو ورته ویل به یې: زما زوی پریږدئ قسم په خدای (جل جلاله) چې د لوړ شان خاوند دی. کله به محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له خپل بابا سره ناست و، بابا به یې ورته په سر او شا د مینې لاس راتیراوه، او په کړو وړو (نقل او حرکت) به یې ډیر خوشالیده[1].

خو کله چې د حضرت محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د عمر آته کاله، دوې میاشتې او لس ورځې پوره شوې، مهربان بابا یې (عبدالمطلب) هم په مکه کې وفات شو. عبدالمطلب له خپل مرګ نه مخکې د خپل خواږه لمسي کفالت ابوطالب ته چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د پلار (عبدالله) سکنی ورور کیده سپارلی و[2].

## د شفیق تره په کفالت کې

ابو طالب د خپل وراره حقوق کامل او پوره ادا کړل، هغه یې له خپلو زامنو سره یوځای کړ، بلکه له هغوی نه یې زیات ځان ته رانژدې کړ، ډیر شفقت او محبت یې ورسره درلود. ترڅلویښتو کالو زیاته موده یې خوا ته ولاړ و، هیڅ ډول مرسته او همکاري یې نه ورنه سپموله، د ده په سر به یې دوستي او دښمني کوله، د دې خبرې څه تفصیلات به په راتلونکو پاڼو کې راشي.

---

[1]. ابن هشام ۱۲۸/۱.

[2]. تلقیح فهوم الاثر ص ۷. ابن هشام ۱۲۹/۱.

## د محمد (ﷺ) له رویه باران غوښتل کېږي

ابن عساکر له جلهمه بن عرفطه نه روایت کوي چې وایي:زه مکې ته راغلم، دغه وخت خلک له وچ کالۍ او قحطۍ سره لاس اوګریوان وو، قریشو ابوطالب ته وویل : وادي او سیمه وچکالۍ وهلې، خلک قحطۍ ځپلي، راځه د باران دعا وکړه، نو ابوطالب له یوه داسې هلک سره راووت چې مخ یې لکه د لمر په شان ځلیده، تا به ویل همدا اوس له لمر نه توري وریځې ایسته شوې او روڼ، روښانه لمر ورنه راښکاره شویدی. د هلک شا و خوا نور هلکان هم وو، ابوطالب راونیو او مبارکه شا یې د کعبې شریفې له دیوال سره ولګوله، هلک يې ګوته نیولې وه، د باران دعا يې وکړه ، پدې وخت کې په آسمان کې د وریځې یوه ټوټه هم نه لیدل کیده، خو ورو، ورو له یوې او بلې خوا نه وریځې را پیدا شوې، سره ټینګې شوې او داسې باران وشو چې سیمه اوبو په سر واخیسته، ټول وطن خړوب او شاداب شو. ابوطالب همدې پیښې ته په اشارې سره د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) داسې ستاینه کوي:

**وابیض یستسقی الغمام بوجهه ثمال الیتامی عصمة للأرامل**[1]

**[هغه سپین او ښکلی دی، د ده له رویه د باران سوال کېږي، هغه د یتیمانو د پناه ځای او دکونډو محافظ او ساتونکی دی.]**

## بحیرا راهب

کله چې رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دولس کلن، او په بل روایت د دولسو کلو دوو میاشتو او لسو ورځو شو[2]، نو ابوطالب له ځان سره شام ته د تجارت لپاره یووړ. شام ته لاړل تر څو بصری نومې سیمې ته چې په شام کې د حوران د منطقې یو ښار و ورسیدل. دا ښار هغه وخت په عربي جزیره کې د رومي مستعمرو مرکز و، دلته یو راهب چې په بحیرا سره مشهور و هم اوسیده، اصلي نوم یې جرجیس و. کله چې کاروان ور ورسید راهب ورته راووت ټول یې میلمانه کړل مخکې لدینه به هغه د چا مخې ته نه راووت.

---

[1] . مختصر سیرة الرسول (ص) للشیخ عبد الله النجدي ص ۱۵_۱۲.

[2] . دا د ابن جوزي خبره ده تلقیح فهوم الاثر ص ۷.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) يې د نښو او صفاتو له مخې وپېژانده، او پداسې حال کې چې د ده مبارک لاس يې نيولی و ويل يې : دا د ټول عالم سيد او پيشوا دی، الله تعالی به دا د عالميانو لپاره رحمت راليږي. ابوطالب پوښتنه ورنه وکړه، ته له کومه پدې موضوع خبر شوې؟ راهب ورته وويل:

کله چې تاسې لدې غونډۍ نه راښکاره شوئ، نو ټولې ونې اوتيږې په سجده شوې، .ونې اوکاڼي په انسانانو کې يوازې نبي ته سجده کوي. او همدا راز زه يې د نبوت د هغه مهر له مخې هم پيژنم کوم چې د ده د اوږې په لانديني کرپېډونکي باندې د مڼې په شکل ايښودل شويدی. مونږ پخپلو کتابونو کې هم د ده په هکله معلومات ليدلي او د ده صفات مو لوستلي دي. بيا يې له ابوطالب نه وغوښتل چې بيرته يې مکې ته بوزي، او شام ته لاړ نشي، ځکه کيدای شي هلته يهود څه زيان ور ورسوي، نو ابوطالب هم هغه له خپلو ځينو کسانو سره بيرته مکې ته واستاوه[1].

## د فجار جګړه

د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په پنځلس کلنۍ کې د فجار جګړه ونښته. پدې جګړه کې قريش اوکنانه يوې خواته او قيس عيلان بلې خواته وو. د قريشو اوکنانه مشري د حرب بن اميه په غاړه وه ځکه هغه له ټولو نه مشر او د زيات شرف خاوند و.

د ورځې په لومړي سر کې قيس په کنانه باندې برلاسې وه، خو د ورځې په نيمايې برخه کې دجنګ حالت بدل شو او بری د کنانه په برخه شو.

دې جګړې ته ځکه حرب الفجار وايې چې پدې سره د حرم شريف او د حرام د مياشتو حرمت تر پښو لاندې شوی و. رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هم پدې جګړه کې برخه درلوده، او خپلو ترونو ته به يې غشي برابرول[2].

## حلف الفضول

---

[1] . مختصر سيرة الرسول (ص) ص ۱۲. ابن هشام ۱/ ۱۸۰تر ۱۸۳. په ترمذي او ځينو نورو کتابونو کې راغلي چې ابو طالب له خپل وراره محمد (ص) سره بلال (رض) بيرته مکې ته وليږه (تحفة الاحوذي)خو دا څرګنده غلطي ده ځکه کيدای شي بلال به هغه بالکل وجود نه درلود او که چيرته موجود هم و، نو نه له ابوبکر (رض) سره و او نه له ابو طالب سره، زاد المعاد ۱/ ۱۷.

۲ . ابن هشام ۱/ ۱۸۴_۱۸۵_۱۸۲_۱۸۷. قلب جزيرة العرب ص ۲۲ .محاضرات تاريخ الامم الاسلامية ۱/ ۲۳.

له دي جګړې نه وروسته د ذي القعدې په میاشت کې چې د حرم له میاشتو څخه ده حلف الفضول ((د فضول تړون)) ترسره شو. ددې کار اهتمام د قریشو ځینو کورنیو لکه بني هاشم، بنوالمطلب، اسد بن عبدالعزی، زهره بن کلاب او تیم بن مره کړی و.
ټول د عبدالله بن جدعان التیمي په کور کې چې مشر او د شرف خاوند و، سره راغونډ شول او داسې عهد او تړون یې وکړ چې : په مکه کې به له هر مظلوم سره ولاړ وي د هر مظلوم مرسته به کوي هغه د دې ځای اوسیدونکی وي اوکه دبل ځای، او تر هغه به د مظلوم خوا نه پریږدي ترڅو یې له ظالم نه ورته خپل حق نه وي اخیستی.
رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هم پدې تړون کې حضور درلود، اوکله چې په رسالت مشرف شو نو فرمائل یې: ((**لقد شهدت في دار عبدالله بن جدعان حلفا ما أحب أن لي به حمر النعم، ولو ادعى به في الإسلام لأجبت**[1])).
[زه د عبدالله بن جدعان په کورکې په یوه داسې تړون کې حاضر وم چې د هغه په بدل کې سره اوښان هم نه خوښوم، او که چېرته اوس د اسلام په دورکې هم ورته بلل شم نو لبیک به ورته ووایم.]
دغه تړون او د تعصب په اساس جاهلي حمیت (غیرت) یو له بل سره تناقض او منافات لري. ددې تړون د سبب او علت په هکله ویل کیږي چې د زبید قبیلې یوه سړي مکې ته څه سامان راوړی و، چې عاص بن وائل السهمي په بیه ورنه واخیست، خو بیا یې د هغه حق ادا نکړ، نوموړي سړي پدې هکله له ملګرو قبیلو لکه عبدالدار، مخزوم، جمح، سهم او عدي نه مرسته وغوښته، خو هیچا هم ورته توجه ونکړه او خبره یې وانه وریده، نو هغه د ابي قبیس غره سرته وخوت او په لوړ آواز سره یې داسې اشعار وویل چې خپل مظلومیت ته یې پکې اشاره کوله.
زبیر بن عبدالمطلب دې خواته متوجه شو، او ویې ویل دا سړی ولې داسې بې یاره او مددګار دی؟ یوې خوا بلې خواته لاړ اوپه پای کې مخکې یادې شوې قبیلې سره راټولې شوې، دا تړون یې لاسلیک کړ، بیا عاص بن وائل ته ورغلل اود زبیدي حق یې ورنه واخیست [2] .

## د کړاوونو ژوند

[1] . ابن هشام ۱۱۳/۱_۱۳۵. مختصر سیرة الرسول (ص) ۳۰_۳۱.
[2] .مختصر سیرة الرسول (ص) ص ۳۰_۳۱.

رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ځوانۍ په لومړیو کې څه خاص کار او عمل نه درلود، خو متواتر روایتونه وایي چې میږې به یې څرولې[1]. د بني سعد میږې یې څرولې، او د څو قیراطو په بدل کې یې د مکې د خلکو رمه هم پوولې ده[2]. (یو قیراط ( ۰،۲۱۲۵) ګرامه سپین زر کېږي او پدې حساب یو مثقال له شل قیراطه سره برابر دی) . خوکله چې پنځه ویشت کلن شو، نو د خدیجې (رضي الله عنها) مال یې د تجارت لپاره شام ته یووړ. ابن اسحاق وایي : خدیجه بنت خویلد (رضي الله عنها) د مال، شرف او عزت خاونده میرمن وه، خپل مال به یې د تجارت لپاره خلکو ته ورکاوه، او د مضاربت د اصولو په اساس به یې هغوی ته یوه برخه ټاکله، هغه وخت زیاترو قریشو د تجارت کار و بار کاوه، او کله چې خدیجه (رضي الله عنها) د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د رېښتینولۍ،امانتدارۍ، سپیڅلتیا، کرم او ښو اخلاقو نه خبره شوه، نو احوال یې ورولیږه چې د دې مال د تجارت لپاره شام ته یوسي او ده ته به له نورو خلکو نه زیاته برخه ورټاکي، او خپل غلام میسره به هم ورسره واستوي. رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د خدیجې (رضي الله عنها) پیشنهاد ومانه، او له میسره سره یوځای د تجارت په خاطر شام ته وخوځید[3].

## له خدیجې (رضي الله عنها) سره واده

کله چې رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) له شام نه راستون شو، او خدیجې (رضي الله عنها) ولیدل چې په مال کې یې د پخوا په نسبت ډېر زیات امانت او دیانتداري شوې او دومره برکت دی پکې چې مخکې یې هیڅکله هم دومره برکت نه و لیدلی. همدا راز میسره هم د رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) د ښو او اوچتو اخلاقو، قوي او پاخه فکر، رېښتني منطق او امانتدارۍ خبرې د خدیجې (رضي الله عنها) غوږونو ته ورسولې، نو همدا وه چې هغې خپل هدف وموند. خدیجه داسې ښځه وه چې د عربو رئیسانو او مشرانو ور سره د واده هیلې درلودې، وړاندیزونه به یې کول، خو دې به نه منل، مګر کله چې د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لدې اوچت شخصیت نه خبره شوه دومره ورنه متاثره شوه چې پخپله یې ورسره د واده اراده وکړه، د زړه دا

---

[1]. ابن هشام ۱۲۲/۱.

۲ . فقه السیرة لمحمد الغزالي. صحیح البخاري، الاجارات، باب رعي الغنم علی قراریط ۳۰۱/۱.

۳ . ابن هشام ۱۸۷/۱_۱۸۸.

خبره يې خپلې ملګرې نفيسه بنت منيه ته وکړه، هغه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته ورغله اوله خديجې (رضي الله عنه) سره يې د واده خبره ورسره مطرح کړه. رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هم ومنله، له ترونو سره يې خبره وکړه، هغوی د خديجې (رضي الله عنها) تره ته ورغلل اوپېدې ترتيب سره يې د واده عقد او تړون تر سره شو او ورپسې دواړو نکاح وکړه. د واده په مراسمو کې د بني هاشم خلک او د مضر قبيلې مشران حاضر وو. دا مبارک واده له شام نه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د راستنيدو له ورځې نه دوې مياشتې وروسته ترسره شو. رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) خديجې (رضي الله عنها) ته په مهر کې شل اوښان ورکړل، خديجه (رضي الله عنها) هغه وخت څلويښت کلنه وه او د خپل وخت ترټولو ښځو نه د شرف، عزت، مال او پوهې له مخې وړاندې او اوچته وه. دا د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لومړنۍ بي بي وه او تر څو چې هغه نه وه وفات شوې رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) بل واده ونکړ[1].
له ابراهيم پرته نور ټول اولادونه يې له خديجې (رضي الله عنها ) نه وو، لومړنی او مشر زوی يې قاسم نوميده او دده مبارک (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) کنيه نوم هم (ابوالقاسم) و، ورپسې زينب بيا رقيه، بيا ام کلثوم، بيا فاطمه او بيا عبدالله پيداشوي، د عبدالله لقب طيب او طاهر و. زامن يې ټول په وړوکوالي کې وفات شويدي، خو لوڼو يې اسلام راوړی او هجرت يې کړی دی، او له فاطمې (رضي الله عنهم اجمعين) پرته نورې درې واړه د خپل پلار (صلی الله علیه وسلم) په ژوند کې وفات شويدي، فاطمه (رضي الله عنه) د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له رحلت نه شپږ مياشتې وروسته وفات شويده (رضي الله عنهم اجمعين)[2].

## دکعبې ودانول او د حجر اسود د شخړې حل

رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) پنځه ديرش کلن و چې قريشو د کعبې شريفې بيا ودانول پيل کړل، او دا هم ځکه چې کعبې شريفې هغه وخت له انساني قد نه د لږ شانته لوړې څلور ديوالۍ شکل درلود. د حضرت اسماعيل (عليه السلام) په زمانه

---

[1] . ابن هشام ۱۸۹/۱_۱۹۰. فقه السيرة لمحمد الغزالي ص ۵۹. تلقيح فهوم الاثر ص ۷.
۲ . ابن هشام ۱۹۰/۱_۱۹۱. فقه السيرة ص ۷۰. فتح الباري ۵۰۷/۷. که څه هم دا مصادر يو له بل سره ددې موضوع په هکله څه کم شانته اختلاف لري، خو مونږ ارجح قول را نقل کړيدی.

کې د کعبې اوچتوالی نه (۹) ګزه و، خو چت يې نه درلود، او له همدې نه په استفادې سره د کعبې شريفې په منځ کې اېښودل شوې خزانه غلو ووهله، د دې ترڅنګ ډيره زمانه وربانديې تيره شوې وه، تعمير يې خراب شوی او ديوالونه يې چاوديدلي وو. او په همدې کال يعنې له بعثت نه پنځه کاله مخکې يو ډير لوی سيلاب راغی چې مخه يې د کعبې شريفې په خوا وه، کعبه يې ډيره کمزورې کړه او هر وخت ددې احتمال موجود و چې پر ځمکه راپريوزي، نو قريش مجبورشول ددې مبارکې خونې د مقام او منزلت د بقا پخاطر هغه بيا ودانه کړي.
ټولو پدې فيصله وکړه چې د کعبې شريفې په بيا ودانولو کې به يوازې حلالې پيسې لګوي، پدې کې به د رنډۍ اجرت (مهر)، د سود مال او په ظلم اخيستل شوې پيسې بالکل نه استعماليږي. د بيا ودانولو لپاره ضروري وه چې پخوانی تعمير ونړول شي، خو هيچا هم دا جرات نه شوای کولی چې کعبه ورانه کړي، ترڅو وليد بن مغيره المخزومي په رنګولو پيل وکړ، خلکو وکتل چې څه زيان ور ونه رسيد، نو ټولو کار پيل کړ. هرې قبيلې ته خپله، خپله، خپله برخه ورکړه شوه، هرې قبيلې بيلې بيلې تيږې راوړې او کار پيل شو، باقوم نومې يو رومي معمار د کعبې شريفې معماري کوله، خوکله چې خبره د حجر اسود ايښودلو ته ورسيده د دوی ترمنځ اختلاف راولاړ شو چې دا شرف به د چا په برخه کيږي؟ دا جنجال څلور پنځه ورځې روان و، نژدې وه يوه سخته او خونړۍ جګړه ونښلي، خو ابو اميه بن مغيره مخزومي داسې فيصله وکړه هرڅوک چې لومړی د جومات (مسجد حرام) له دروازې نه را داخل شو هماغه به پدې هکله پريکړه کوي، ټولو دا خبره ومنله. د الله تعالی اراده داسې وه چې دا لومړی راتلونکی شخص به رسول (صلی الله عليه وسلم ) وي، کله چې را ننووت ټولو وويل: بالکل سيي ده، دا امين دی، قبول مو دی، اوکله چې دوی ته راورسيد، له پيښې يې خبر کړ، نو ده مبارک يو څادر واخيست حجر اسود يې پکې کيښودله او بيايې د قبيلو مشرانو ته وويل چې هر يو د څادر يوه يوه څنډه ونيسي او حجراسود پورته کړي اوکله يې چې خپل ځاکلي ځای ته ورسوله، نو پخپل مبارک لاس يې را اوچته کړه او پخپل ځای يې کيښوده. دا يوه داسې معقوله پريکړه وه چې ټول خلک وربانديې خوښ شول.
پدې وخت کې له قريشو سره پاک مال اوپيسې کمې شوې، نو مجبورشول چې د شمال خوا ته له کعبې نه تقريباً شپږ ګزه اوږده ځمکه پريږدي، او همدې ټوټې ته حجر يا حطيم وايي. دا ځل قريشو د کعبې دروازه له ځمکې نه اوچته جوړه کړه تر څو بې له اجازې څوک ورداخل نه شي، او کله چې کعبه شريفه پنځلس ګزه لوړه شوه نو په شپږو ستنو سره يې چت وربانديې ودراوه. له تکميل نه وروسته د کعبې شريفې خونې مربع

شکل ځان ته ونيو چې لوړوالی يې تقريباً پنځلس متره دی. هغه ديوال چې حجر اسود پکې ده او هغه ته مقابل ديوال يعنی جنوبي او شمالي ديوالونه لس، لس متره اوږدوالی لري، حجر اسود د مطاف (طواف له ځای) نه يو نيم متر اوچته ايښودل شويده، دروازې واله ديوال او هغه ته مقابل ديوال دولس، دولس متره اوږده دي، دروازه له مځکې نه دوه متره اوچته ده. د کعبې شريفې تر ديوالونو چارګرد لاندې د کرسۍ په شکل يوه ضلعه را تاو شوې چې متوسط لوړوالی يې ۲۵ سانتي متره، او متوسط پلنی والی يې ۳۰ سانتي متره دی چې دا د شاذروان په نامه ياديږي، او په حقيقت کې دا هم د کعبې شريفې برخه ده خو قريشو دا هم د باندې پرې ايښې ده[۱].

## له نبوت نه مخکې اجمالي سيرت

رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ټولو هغو نيکو او غوره اخلاقو او عاداتو درلودونکی و کوم چې هغه وخت يې ځنې شريف خلک په متفرقه توګه درلودونکي وو. هغه جناب د قوي او روښانه فکر، پياوړي نظر او استعداد لوړ څلی و د زيات ذکاوت، تيز او رڼا دماغ د سيي او درست هدف او وسيلې ټاکونکی و. د هغه جناب له اوږدې خاموشۍ نه ورته د غور، تفکر، او حق پلټنې ښه فرصت په لاس ورتله، د الله تعالى رسول (صلى الله عليه وسلم) پخپل تيز او پياوړي ذهن او روښانه فطرت سره د ژوند ټولې پاڼې، د خلکو او ډلو ټول حال اواحوال لوستلي او څيړلي وو، او په کومو خرافاتو کې چې دا خلک راګير وو له هغه نه يې ځان پاک او ډير ليرې ساتلی و، له ټولو بې لاريو نه پاک او په عقل او بصيرت مبني او لوړ ژوند يې تيراوه. خلکو به چې هر د خير کار کاوه نو هغه جناب به پکې له ټولو نه وړاندې و، او که به د خير کار نه و نو تنهايي او ګوشه نشيني به يې غوره کوله. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) کله هم شراب ندي څښلي، د بتانو په نامه حلال شويو مالونو غوښه يې نده خوړلې، او د بتانو په وياړ جوړو شويو ميلو او مجالسو کې يې بالکل برخه نده اخيستې. د ژوند له پيل نه يې لدې باطلو معبودانو او هرډول خرافاتو سره سخته کينه او کرکه وه، تردې چې د لات او عزى په نامه قسم يادول يې هم نه شوای تحمل کولی[۲].

---

[۱] . ابن هشام ۱۹۲/۱_۱۹۷. فقه السيرة ص ۲۲_۲۳. صحيح البخاري، باب فضل مكة و بنيانها ۲۱۵/۱.

[۲] . له بحيرا سره يې خبرو کې ددې خبرې د اثبات دليل موجود دی، ابن هشام ۱۲۸/۱.

پدې کې هيڅ شک او شبهه نشته چې هغه (صلی الله عليه وسلم ) د تقدير په حفاظت او ساتنه کې و، ځکه هرکله به يې چې د دينوي لذتونو د حصول پخاطر نفساني جذبات راوپاريدل، او يا به يې زړه دېته تيار شو چې د کوم ناپسنديده او ناخوښ عادت او يا رواج تقليد او پيروي وکړي، نو سمدلاسه به الهي رحمت او عنايت مداخله کوله او دې ډول کارته به يې نه پريښود.د ابن اثير په روايت سره رسول اکرم (صلی الله عليه وسلم) فرمايي: ((**ما هممت بشئ مما كان أهل الجاهلية يعملون غير مرتين، كل ذلك يحول الله بيني و بينه ثم ما هممت به حتى أكرمني برسالته قلت ليلة للغلام الذي يرعى معي الغنم بأعلي مكة: لو أبصرت لي غنمي حتى أدخل مكة أو أسمر بها كما يسمر الشباب! فقال:افعل فخرجت حتى إذا كنت عند أول دار بمكة سمعت عزفا، فقلت: ما هذا ؟فقالوا: عرس فلان بفلانة، فجلست أسمع، فضرب الله على أذني فنمت، فما أيقظني إلا حرالشمس. فعدت إلى صاحبي فسألني، فأخبرته، ثم قلت ليلة أخرى مثل ذلك، و دخلت بمكة فأصابني مثل أول ليلة .. ثم ما هممت بسوء**[١])).

[له دوه مرتبو پرته ما د هغو کارونو چې د جاهلي دورې خلکو به کول تصور او تش خيال هم ندی کړی، خو دا دواړه مرتبې هم الله تعالی زما او هغه کار ترمنيځ حايل او خنډ پيداکړې يعنی هغه مې سرته ندي رسولي او پدې پسې مې بيا هيڅکله هم داسې اراده او تصور ندیکړی ترڅو الله تعالی په رسالت مشرف کړم. يوه شپه مې خپل ملګري ته چې د مکې په پاسنۍ برخه کې يې ميږې راسره پوولې، وويل: که ته مې ميږو ته ګورې، نو زه به مکې ته لاړ شم او هلته به لکه د نورو ځوانانو په شان د شپې د کيسو ويلو په مجلس کې ګډون وکړم. ملګري راته وويل : سيي ده لاړشه. زه وخوځيدم د مکې لومړني کورته چې ورسيدم د باجې (موسيقۍ) آواز مې ترغوږو شو، پوښتنه مې وکړه څه خبره ده؟ دوی راته وويل: چې د فلاني او فلانۍ واده دی. زه کيناستم او دا آواز اورم، يو ځل مې الله تعالی غوږونه بندکړل، خوب راباندې راغی اوهمدلته ويده شوم ترڅو د لمر ګرمۍ راويښ کړم او بيرته خپل ملګري ته ورغلم او د هغه د پوښتنې په ځواب کې مې ټوله کيسه ورته بيان کړه. يوځل مې بيا يوه بله شپه خپل ملګري ته همداسې وويل او مکې ته لاړم، نو دا ځل هم هماغه پيښه راسره

---

[١] . حاکم او ذهبي دا حديث صحيح بولي، خو ابن کثير په البداية والنهاية ٢٨٧/٢ کې همدا حديث ضعيف بللی دی.

وشوه، او لدينه وروسته مې کله هم د بد کار اراده نده کړې.
امام بخاري (رحمه الله) له جابر بن عبدالله (رضي الله عنه) نه روايت کوي وايي: کله چې کعبه شريفه جوړيدله، رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) او عباس (رضي الله عنه) لاړل تيږې يې راوړې، حضرت عباس(رضي الله عنه) رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته وويل: خپل لنګ په اوږه کيږده دا دې اوږې له تيږو نه ساتي ( نه به خوږيږي ) خو پدې سره رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په ځمکه راپريوت، سترګې يې د آسمان په لور وختلې، او کله چې را په حال کې شو چېغې يې وهلې،(ازاري، ازاري) زما لنګ، زما لنګ، چی بيا يې د هغه جناب لنګ وروتاړه. په يوه بل روايت کې راځي چې لدېنه وروسته هيڅکله دده مبارک عورت ندی ليدلی شوی[1].
رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د غوره اخلاقو، پاک سيرت، اوچت کردار او سپيڅلي عمل خاوند و، له ټولو نه زيات غيرتي، له هر چا نه زيات د ښو او خوږو اخلاقو او نيکې معاملې درلودونکی و. نيک او عزيز ګاونډی، په حلم اوريښتينولۍ، نرمۍ او عفت کې له هر چا نه مخکې، د خير خاوند، نيک عمله، کريم، امين، با وفا او په عهد ټينګ ولاړ انسان و. هر څوک يې په عظمت او عزت قايل وو، هغه د ټولو نيکيو مجموعه او نمونه وه، خپل قوم ورته د امين لقب ورکړی و، او لکه چې حضرت خديجه (رضي الله عنها) دده مبارک په هکله فرمايي:
((**يحمل الكل، ويكسب المعدوم، ويقرئ الضيف، ويعين علي نوائب الحق**[2])). **[**هغه به د بې وزلانو مرسته کوله، د هغوی بار به يې اوچتاوه، د فقيرانو او تش لاسيو لپاره به يې بندوبست کاوه، د ميلمه قدر او درناوی به يې کاوه، او په پيښو، او حوادثو کې به يې د حق مرسته او پلوي کوله.**]**

[1]. صحيح البخاري باب بنيان الكعبة ١/٥۴٠.
[2]. صحيح البخاري ٣/١.

# د نبوت او رسالت په سیورو کې

## د حراء په غار کې

کله چې رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ځلویښت کلنۍ ته نژدې شو، نو تفکر او تاملاتو یې دده او نور قوم ترمنځ فکري او ذهني واټن ډېر سره لیرې کړئ و. همدا وه چې نورېې تنهایې ډېره خوښېدله، له ځان سره به یې څه سویق (یو ډول خواړه دي چې د غنمو او وربشو له ډېرو مېدو اوړو نه تیا رېږي) او اوبه واخیستې او په جبل نورکې به یې د حراء غار ته تشریف یووړ. دغه ځای له مکې مکرمې نه تقریباً دوه میله فاصله لري، دا یو برابر شانته غار دی چې اوږدوالی یې ځلور ګزه اوعرض یې پاوکم دوه ګزه دی، دا غار په ځمکه کې د ننه ندی بلکه د دوو لویو تیږو له یوځای کیدو نه جوړ شوی یوکت دی .

رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به چې کله دې غار ته تشریف وړه، نو حضرت خدیجه (رضي الله عنها) به هم ورسره تلله او ده ته نژدې چېرې به اوسیدله. محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به د رمضان میاشت په غار کې تیروله، څوک فقیران به که ورباندې پیښېدل نو څه خوراک به یې ورکاوه، ټول وخت به په عبادت بوخت و په کائناتو او د هغه قدرت په هکله به یې غور فکر کاوه چې دا ټول شیان یې پیداکړیدي. ده د خپل قوم عقیده او مسلک نه شوای منلی، د هغوی ټول باطل افکار او تصورات یې ردول، خو خپله یې هم له ځان سره کوم واضح او څرګند منهج او مسلک نه درلود، او نه یې داسې لاره پیژندله چې زړه یې ورباندې مطمئن او ډاډه شوی وی[1]. لدې تنهایۍ او ګوښه والي سره د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مینه او محبت په حقیقت کې یو الهي تدبیر و، تر څو هغه (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د رسالت د درانده پیتې اوچتولو لپاره تیار او برابر کړي. ښکاره خبره ده هغه روح او شخصیت چې د انساني ژوند د بدلون او د انساني ژوند په واقعیتونو او حقایقو باندې د اغیزې لپاره انتخاب شوی وي، د داسې روح او شخصیت لپاره دا ضروري ده چې څه موده ګوښی او تنها وي، د ځمکې له کارونو، د

---

[1] . رحمة للعالمین ۴۷/۱. ابن هشام ۳۵/۱_۳۶. في ظلال القرآن ۱۶۶/۲۹.

ژوند له شور او هسکو، ټيټو، د خلکو له وړو وړو امورو او مسائلو نه ليرې چېرته ګوښه کې وي.

همدا و د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) لپاره د الله تعالى تدبير، غوښتل يې هغه د لوی امانت د اوچتولو، په ځمکه او نړۍ کې د يوه ستر انقلاب، او د تاريخ د مسير د بدلون لپاره آماده کړي، نو له بعثت نه دری کاله مخکې يې د تنهايۍ او ګوښوالي دا سلسله ورته پيل او برابره کړه، پوره يوه مياشت به رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په کائناتو کې فکر کاوه، او د کائناتو تر شا د هغه غيبي قوت او قدرت په هکله به يې فکر او تدبر کاوه چې دا ټول شيان يې پيدا کړيدي، تر څو د پوره تيارۍ سره د الله تعالى په اذن او ارادې سره لدې غيبي قدرت سره د تعامل نيته او فرصت راورسيږي.[1]

## جبريل (عليه السلام) وحي راوړي

کله چې د رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ژوند څلويښت کاله پوره شول او همدا د ذهني او عقلي کمال عمر دی، ويل کيږي چې رسولان په همدې عمر کې په نبوت مشرف شوي، نو د ژوند له افق نه يې د نبوت آثار او نښانې راښکاره او څرګندې شوې. دغه آثار او نښې خوبونه وو، رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) به چې هر خوب ليده هغه به لکه د سپيده داغ په شان را ښکاره او څرګنديده (خوبونه يې حقيقت وو). دې حالت شپږ مياشتې دوام وموند او څرنګه چې د نبوت ټوله دوره درويشت کاله وه نو دا موده د نبوت د دورې شپږ څلويښتمه برخه کيږي. د حراء په غار کې د رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د عزلت او ګوښه والي په دريم کال د رمضان په مياشت کې د ځمکې پر خلکو د الهي رحمت باران وشو، الله تعالى محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په نبوت مشرف کړ او د جبريل (عليه السلام) په واسطه يې د قرآنکريم څو آيتونه ورباندې نازل کړل.[2]

که پدې هکله موجود قرائن او دلايل لړ په غور او دقت سره تر نظر تير کړو نو ويلی شو

---

[1]. في ظلال القران ۱۲۲/۲۹-۱۲۷

[2]. ابن حجر وايي: بيهقي ويلي چی د خوب ليدو مرحله شپږ مياشتی وه، او پدې سره ويلی شو چی د خوب له لارې د نبوت پيل په خګلويشګت کلنی او د ربيع الاول په مياشت کی شوی دی، او په ويشګه د وحي راتلل د رمضان په مياشت کي شروع شويدي. فتح الباری ۲۷/۱.

چې دا د رمضان د مياشتې يوويشتمه او د دوشنبې شپه وه چې د (۶۱۰م) کال د اګست له لسمې نيټې سره سمون خوري. دغه وخت د رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) عمر په قمري حساب پوره څلويښت کاله، شپږ مياشتې او دوولس ورځې او په شمسي حساب نهه ديرش کاله، درې مياشتې او دوولس ورځې و.[1]

---

[1]. د بعثت او د وحي د نزول د لومړنۍ مياشتيگ د تحديد په هکله مورخين پخپل مينځگ کيگ اختلاف لري، زياتره دا نظر لري چيگ دا د ربيع الاول مياشت وه، نور وايي د رمضان مياشت وه، او حگينو نورو ويلي چيگ دا د رجب مياشت وه (مختصر سيرة الرسول (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) للشيخ النجدي ص **۷۵**) خو زمونږ په رايه دوهم نظر (د رمضان مياشت) د تاييد وړ دی. حگکه الله تعالى فرمايي: ((**شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ**)) (البقرة: **۱۸۵**) ترجمه: مياشت د رمضان هغه مياشت ده چيگ نازل کړی شوی پديگ کيگ قرآن. او بل حگای فرمايي ((**إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ**)). (القدر: ۱) بيشکه مونږ نازل کړيدی دغه (قرآن) په شپه د قدر کيگ. د قدر شپه خو د رمضان په مياشت کيگ ده، او د همديگ قدر شپيگ ته الله تعالى اشاره کوي فرمايي: ((**إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُبَارَكَةٍ إِنَّا كُنَّا مُنذِرِينَ**)) (الدخان: **۳**)
بله دا چيگ رسول (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) به د رمضان مياشت د حراء په غار کيگ تيروله، او دا خو په ااکگه ده چيگ جبرئيل (عليه السلام) د لومړي حگل لپاره د حراء په غار کيگ ورته راغلی و.
هغه کسان چيگ وايي د وحي نزول د رمضان له مياشتيگ پيل شوی دوی بيا پديگ کيگ سره اختلاف لري چې دا کومه ورحگ وه، ويل کيږي چيگ دا د رمضان اوومه، او حگنيگ نور وايي د رمضان اوولسمه او په بل روايت سره اتلسمه نيټگه وه [ مختصر سيرة الرسول (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ص **۷۵**. رحمة للعالمين **۴۹/۱**]. خو خضري پخپل کتاب کيگ پديگ تاکيد کړی چيگ دا د رمضان اوولسمه نيټگه وه (محاضرات تاريخ الامم الاسلاميه للخضرى **۲۹/۱**).
خو مونږ دا د رمضان يوويشتمه نيټگه بولو که خگه هم هيچا دا ندي ويلي چيگ دا يوويشتمه نيټگه وه، خو خگرنکگه چيگ تگول او يا اکثر سيرت پوهان پديگ اتفاق لري چيگ رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د دوشنبيگ په ورحگ په نبوت مبعوث شويدی، ددیگ نظر تاييد هغه حديث هم کړی چيگ د حديث امامانو روايت کړيدی. له ابو قتاده (رضي الله عنه) نه روايت دی چيگ د دوشنبي د ورحگيگ د روژيگ په هکله له رسول (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه پوشگتنه وشوه، ده ورته وفرمايل: په همديگ ورحگ زه پيدا شوی يم او په همديگ ورحگيگ وحي راته راغليگ ده، او بل عبارت داسيگ دی: دا هغه ورحگ ده چيگ زه پکيگ پيدا شوی يم، او دا هغه ورحگ ده چي زه پکيگ په نبوت مشرف شوی يم او يا وحي رانازله شويده. (صحيح مسلم ۱: **۳۲۸**. احمد **۲۹۷/۵ – ۲۹۹**
په نوموړي کال کيگ د رمضان د مياشتيگ اوومه، خگوارلسمه، يوويشتمه او آته ويشتمه نيټگه د دوشنبيگ له ورحگيگ سره سمون لري او صحيح روايتونه دا شگيي چيگ د قدر شپه د رمضان د دريميگ لسيزيگ په طاق شپو کيگ ده، او پديگ شپو کيگ له يويگ نيټگيگ نه بليگ نيټگيگ ته انتقال مومي. او کله چيگ د الله تعالى دا قول ((**إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ**)) او د ابو قتاده دا روايت چيگ وايي چيگ د رسول الله (صلى الله عليه وسلم) بعثت د دوشنبيگ په ورحگ و، او همدا راز د علمي، تجربوي جنترة له مخيگ د نوموړي کال د رمضان د مياشتيگ د دوشنبيگ ورحگيگ تر نظر تيريگ کړو او بيا دا تگول سره مقايسه کړو نو دا به راته

اوس راځئ حضرت عايشي (رضي الله عنها) ته غوږ شو چې د دې عظيمې پيښې کيسه راته واوروي، هغه پيښه چې د الهي نور يوه داسې شعله وه چې د کفر او جاهليت تيارې يې له مينځه يوړې د ژوند تګلاره يې او مسير يې بدل کړ، د تاريخ مخه يې بلې خوا ته وګرځوله، حضرت عايشي (رضي الله عنها) فرمايلي:

((أول ما بدئ به رسول (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) من الوحي الرويا في النوم، فكان لايرى رويا إلا جاءت مثل فلق الصبح، ثم حبب إليه الخلاء وكان يخلو بغار حراء فيتحنث فيه – و هوالتعبد– الليالي ذوات العدد قبل أن يترع إلى أهله، ويتزود لذلك، ثم يرجع إلى خد يجة فيتزود لمثلها حتى جاءه الحق و هو في غار حراء، فجاءه الملك فقال: اقرأ، فقلت: ما أنا بقارئ، قال: فأخذني فغطني حتى بلغ مني الجهد، ثم أرسلني فقال: اقرأ، فقلت: ما أنا بقارئ فأخذني فغطني الثالثة، ثم أرسلني فقال:((اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذي خَلَقَ (١) خَلَقَ الإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ (٢) اقْرَأْ وَرَبُّكَ الأَكْرَمُ (٣) الَّذي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ (٤) عَلَّمَ الإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ (٥))(١)

فرجع بها رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) يرجف فواده، فدخل علي خديجة بنت خويلد فقال: زملوني، زملوني فزملوه حتى ذهب عنه الروع، فقال لخديجة: مالي، و أخبرها الخبر، لقد خشيت على نفسي. فقالت خديجة: كلا، والله ما يخزيك الله أبدا، إنك لتصل الرحم، و تحمل الكل، و تكسب المعدوم و تقرئ الضيف، و تعين على نوائب الحق، فانطلقت به خديجة حتى أتت به ورقة بن نوفل بن اسد بن عبدالعزى بن عم خديجة.

وكان امرءا تنصر في الجاهلية، وكان يكتب الكتاب العبراني، عمي، فقالت له خديجة: يا ابن عم! اسمع من ابن اخيك، فقال له ورقة: يا ابن اخي ماذا ترى؟ فاخبره رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) خبر ما رأى، فقال له

---

په ألاګه شي چيګ د رسول اکرم (صلى الله عليه وسلم) بعثت د رمضان د يوويشتميګ نيتګيګ په شپه پيل شويدی.

(1). دا آيتونه د الله تعالی تردې قول پورې (علم الانسان مالم يعلم) پورې را نازل شوي وو.

**ورقة: هذا الناموس الذي نزله الله على موسى يا ليتني فيها جذعا، ليتني أكون حيا إذ يخرجك قومك، فقال رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم): أو مخرجي هم؟ قال: نعم، لم يأت رجل قط بمثل ما جئت به إلا عودي، و إن يدركني يومك انصرك نصرا موزرا، ثم لم ينشب ورقة أن توفي و فتر الوحي)).**[1]

[يعنې: پر رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) باندې د وحي پيل له نيکو او رينښتينو خوبونو نه شويدی، رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) به چې هر خوب ليده لکه د سپيده داغ په شان به ښکاره او څرګنديده،(تحقق به يې موند) وروسې رسول (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته تنهايي او ګوښه والی محبوب او ګران شو، نو د حراء په غار کې به يوازې او تنها په عبادت بوخت و، څو شپې به يې کورته تشريف نه ووړ، ددې څو شپو توښه، خوراک او څښاک به يې له ځان سره وړه (کله به چې خلاص شول) نو بيا به حضرت خديجې (رضي الله عنها) ته راتله او تقريباً د همدومره نورو شپو آذوقه (توښه) به يې له ځان سره وړله، تر څو حق ورته راغی، دغه وخت حضرت رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د حراء په غار کې تشريف درلود چې فرښته ورته راغله، او ورته ويې ويل: چې ووايه، رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: زه لوستونکی نه يم، فرمايي: چې دغه وخت نوموړې فرښتې ونيوم او په داسې زور سره يې په غيږ کې ورټينګ کړم چې بالکل بې سېکه شوم، بيا يې پرېښودم، او راته ويې ويل: ووايه، ما ورته وويل: زه لوستونکی نه يم نو بيايې په همداسې زور سره راونيوم چې بالکل بې سېکه شوم، بيايې پرېښودم او راته ويې ويل: ووايه، ما بيا ورته وويل: زه لوستونکی نه يم، نو د دريم ځل لپاره يې په همداسې زور سره راټينګ کړم چې بالکل بې سېکه شوم بيا يې پرېښودم او دا آيتونه يې راته ولوستل (( **اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ (١) خَلَقَ الإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ (٢) اقْرَأْ وَرَبُّكَ الأَكْرَمُ (٣) الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ (٤) عَلَّمَ الإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ (٥)** )) (ولوله اې محمده! (قرآن) په برکت د نامه د رب خپل، هغه رب چې پيداکړی يې دي ټول مخلوقات، پيدا کړی يې دی انسان له ټوټو د ترليو شويو وينو څخه، ولوله (اې محمده! قرآن ) حال دا چې ستا رب لوی کريم دی (پرټولوکريمانو).

رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) لدې آيتونو سره کورته راستون شو،

[1]. صحيح البخاری ١/ ٢-٣ باب کيف کان بدء الوحي. د الفاظو د لږ اختلاف سره دا روايت د بخاري شريف په کتاب التفسير او تعبير الرويا کې هم روايت شويدی.

زړه یې رپیده، حضرت خدیجې (رضي الله عنها) ته ورغی او ورته ویې فرمایل: ما ونغاړئ، ما ونغاړئ، په څادر کې مې پټ کړئ، هغې هم په څادر کې پټ کړ، تر څو ویره او خوف یې له زړه نه ووتل. بیا رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ددې پیښې کیسه ورته بیانوله او ویې فرمایل: په ماڅه شوي؟ کیسه یې ورته وکړه او زیاته یې کړه، زه پخپل ځان ویریدم. خدیجې (رضي الله عنها) ورته وویل: نه داسې نده، قسم په الله چې خدای به تاکله هم رسوا او خوار نکړي، ته د خپلوۍ اړیکې ټینګې ساتې د صله رحمۍ خاوند یې، د بې وزلانو بار او پیتي اوچتوې، د نادراه او بې وسه خلکو لاس نیوی کوې، د میلمنو قدر او عزت کوې، او د حق په مصیبتونو کې مرسته او کومک کوې یا تل د حق پلوي کوې. بیا خدیجی (رضي الله عنها) د خپل تره زوی ورقه بن نوفل بن اسد بن عبدالعزی ته ورووست. ورقه د جاهلیت په وخت کې عیسایي شوی و په عبراني ژبه یې لیکل کولی شوی، او په همدې ژبه به یې د خپل توان تر اندازې انجیل لیکه، خو دغه وخت ډیر زوړ شوی و سترګو یې نه لیدل. حضرت خدیجې (رضي الله عنه) ورته وویل: اې د تره زویه! د وراره کیسه دې واوره چې څه وایي. ورقه وویل: وراره! وایه څه دې لیدلي؟ رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د خپلو سترګو لیدلی حال ورته بیان کړ. بیا ورقه ورته وویل: دا همغه فرښته ده کومه چې الله تعالی موسی (علیه السلام) ته رالیږلې وه، کاشکې زه پیاوړی او توانمند وای، اې کاش زه هغه وخت ژوندی وم کله چې تا خپل قوم شړي. رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: آیا دا خلک به ما شړي؟ ورقه وویل: هو، هر وخت چې چا ستا په شان پیام راوړی دی، نو له هغه سره حتما دښمني شویده، که زه ژوندی پاتې شوم نو پوره مرسته به دې وکړم. مګر څه وخت وروسته ورقه وفات شو او وحي هم په موقتي توګه بنده شوه.]

د طبري او ابن هشام له روایت نه دا څرګندیږي چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د وحي له ناڅاپي راتلو وروسته د حراء له غار نه وتلی و، خو بیا بیرته ورته را ګرزیدلی او خپل ټاکلی وخت یې هملته پوره کړی و او وروسته یې مکې ته تشریف وړی و. د طبري روایت له غار نه د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د وتلو سبب هم په ګوته کوي، هغه روایت داسې دی:

رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د وحي د راتلو یادونه کوي فرمایي: د الله تعالی په مخلوقاتو کې مې له شاعر او لیوني نه بل شی زیات بد نه ایشیدل (یعنی لدې دواړو سره مې له بل هر شي نه زیاته کینه درلوده) ان تر دې چې هغوی ته مې

هسې کتل هم نه شوی تحمل کولی، (کله چې وحي راته راغله) نو له خپل ځان سره مې وويل: چې دا زه (خپل مبارک ځان ته يې اشاره ده) شاعر يا ليونی دی! نه ، زما په هکله به قريش کله هم داسې خبره و نشي کړی، زه د غره سرته خيژم او له هغه ځای نه ځان را خطا کوم، تر څو مړ شم او د تل لپاره په راحت شم! رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) فرمايي: زه په همدې فکر ووتلم، خو کله چې د غره نيمايي ته ورسيدم له آسمان نه مې آواز واورید چې راته وايي: اې محمده! ته د الله رسول يې (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) زه جبريل ( عليه السلام) يم. فرمايي: کله مې چې د آسمان په لوري وکتل که ګورم چې جبرئيل (عليه السلام) د يوه سړي په شکل او څيره کې د آسمان په افق کې پښې ايښې دي او وايي: اې محمده، ته د الله تعالی رسول يې، او زه جبريل يم. فرمايي: ودريدم او ورته کتل مې، او په همدې مشغول شوم او خپله اراده مې عملي نکړه، په ځای ولاړ وم هيڅ وروسته او مخکې نه تلم، د آسمان هرې خوا ته به مې چې وکتل نو هملته به مې جبرئيل (عليه السلام) په همغه شکل ليده، همدلته ځای په ځای ولاړ وم نه مخکې تلم او نه وروسته ترڅو خديجې (رضي الله عنها) څوک راپسې را واستول، هغوی تر مکې رسيدلي وو اوبيرته خديجې (رضي الله عنها) ته راستانه شوي وو، او زه هملته ولاړ وم، بيا جبرئيل (عليه السلام) رانه لاړ، او زه هم بيرته خپل اهل ته راستون شوم[1]. خديجې (رضي الله عنها) ته ورغلم او د هغې له زنګانه سره پداسې حال کې چې تکيه مې ورباندې کړې وه کيناستم، راته ويې ويل : اې ابوالقاسمه: چېرته وې؟ قسم په خدای (جل جلاله) چې ما خلک درپسې وليږل تر مکې لاړل او بيرته راستانه شول، نو ما د سترګو ليدلی حال ورته بيان کړ، دې راته وويل: د تره زويه! خوشاله اوسه، له ثبات نه کار واخله زما دې په همغه ذات قسم وي چې د خديجې ځان د هغه په واک کې دی چې زما دا هيله ده چې ته به ددې امت نبي او رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وې[2]. بيا ورقه بن نوفل ته ورغله او هغه يې له پيښې خبرکړ، نو ورقه ورته وويل: قدوس، قدوس، قسم په هغه ذات چې د ورقه ژوند د هغه په واک کې دی چې ده ته همغه ناموس اکبر (فرښته) راغلې ده کومه به چې موسی (عليه السلام ) ته راتله، دا ددې امت نبي دی، ورتهووايه ټينګ او ثابت اوسه. بيا خديجه (رضي الله عنها) ورته راغله او د ورقه بن نوفل خبرې يې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته وکړې. وروسته کله چې رسول اکرم د حراء په غار کې خپل مقرر وخت پوره کړ او مکې ته يې تشريف يووړ، نو

---

[1] . دا د طبري متن دی ۲۰۷/۲.

[2] . دا د ابن هشام متن دی ۲۳۷/۱_۲۳۸.

له ورقه سره یې وکتل او کله چې ورقه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خبرې واوریدې ورته ویې ویل: قسم په هغه ذات چې زما نفس د هغه په واک کې دی ته ددې امت نبي یې او تا ته هماغه ناموس اکبر (فرښته) راغلي دی کوم چې موسی (علیه السلام ) ته راغلی و.

## د وحي موقتي بندیدل

د وحي ددې موقتي بندیدو په هکله ابن سعد له ابن عباس (رضي الله عنهما) نه یو روایت رانقل کړیدی دا ښیي چې وحي صرف څو ورځې بنده شوې وه[1]. د مسئلې په ټولو اړخونو کې له غور او څیړنې وروسته همدا نظر له نورو نه سیي او قوي بلکه یقیني ښکاری. او دا چې ویل کیږي دغه موده دری او یا دوه نیم کاله وه، د دا ډول نظر په هکله دلته یوازې دومره ویلی شو چې دا له حقیقت نه لیرې او بې اساسه خبره ده. د وحي د بندیدو پدې ورځو کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ډیرغمګین او پریشانه و، ویرې او حیرت اخیستی و. امام بخاري (رحمه الله) په کتاب التعبیر کې یو روایت داسې رانقلوي:

**((و فترالوحي فترة حتى حزن النبي (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) فیما بلغناحزنا عدا منه مرارا كي يتردى من رووس شواهق الجبال فكلما أوفى بذروة جبل لكي يلقي نفسه منه تبدى له جبريل فقال يا محمد! انك رسول الله حقا، فيسكن لذلك جأشه، و تقر نفسه، فيرجع، فإذا طالت عليه فترة الوحي غدا [2]لمثل ذلك، فإذا أوفى بذورة الجبل تبدى له جبريل فقال له مثل ذلك[3]))**. [د څه وخت لپاره وحي بنده شوه، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دومره خفه او غمګین شو چې څو ځله یې د غره لوړې څوکې ته په منډه، منډه تشریف وړی ترڅو له

[1] . ابن هشام ۱۳۸/۱ لنډیز. د بخاري شریف له سیاق او بدې هکله د نورو روایتونو له تقابل او څیړنې وروسته ویلی شو چې مکې ته د رسول (ص) ستنیدل او له ورقه سره ملاقات د وحي له نزول وروسته به همغه ورځ تر سره شوی و. او له مکې له بیرته ستنیدو وروسته یې پاتې موده په غار حراء کې پوره کړې وه.

۲ . په عین (ع) سره دی چې له العدو نه اخیستل شوی او تیز تګ ته وایي او په ځینو نسخو کې په غین(غ) هم راغلی دی.

۳ . صحیح البخاري کتاب التعبیر باب اول ما بدئ به رسول الله (ص) من الوحي الرویا الصالحة ۱۰۳۴/۲.

هغه ځای نه ځان راوغورځوي، خو کله به چې د غره څوکې ته ورسید ترڅو ځان راوغورځوي، نو جبريل (عليه السلام) به ورته را څرګند شو او ورته ويل به يې: اې محمده (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته په حقه د الله تعالی رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې. پدې سره به د رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) زړه ډاډه شو، پريشاني به يې ورکه شوه او بيرته به ستون شو، خو بيا به چې د وحي بنديدلو موده ورباندې اوږده شوه، نو بيا به په همدې اراده ووت او د غره څوکې ته به چې ورسيد، نو يوځل به بيا حضرت جبريل (عليه السلام) ورته راښکاريده او هماغه خبره به يې ورته تکراروله.]

## جبريل (عليه السلام) بيا وحي راوړي

ابن حجر (رحمه الله) وايي چې: دا (د وحي څو ورځې بنديدل) ددې پخاطر وو چې له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه هغه ويره ليرې شي کومه چې د وحي له نزول سره پيداشوې وه او تر څو د وحي بيا راتګ ته يې تنده زياته شي[1]. کله چې د ويرې اوحيرت پردې څيرې شوې د حقيقت او واقعيت تهداب ټينګ شو، او رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په علم اليقين سره پوه شو چې هغه د لوی او متعال خدای (جل جلاله) له پلوه په نبوت مشرف شويدی، او هغه فرښته چې ورته راغلې وه د وحي را وړونکې فرښته ده چې ده ته له آسمان نه وحي راوړي، نو د وحي بيا راتګ ته يې شوق او انتظار د وحي د بيا راتګ په صورت کې د ثبات او ټينګار سبب شو. بالاخره جبريل (عليه السلام) بياورته راغی، امام بخاري (رحمه الله) له جابر بن عبدالله نه روايت کوي وايي: له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه مې اوريدلي چې د وحي د بنديدو په هکله فرمايي :

((فبينا أنا أمشي سمعت صوتا من السماء، فرفعت بصري قبل السماء، فإذا الملك الذي جاءني بحراء قاعد على كرسى بين السماء والارض، فجثثت منه حتى هويت إلى الأرض فجئت أهلي فقلت زملوني، زملوني، فزملوني، فأنزل الله تعالى:((ياايهاالمدثر)) إلى قوله ((فاهجر)) ثم حمي الوحي وتتابع)) [2].

[يعني زه روان وم چې له آسمان نه مې يو ناڅاپي آواز واوريد، پورته آسمان ته مې

---

[1]. فتح الباري ٢٧/١.

٢ . صحيح البخاري كتاب التفسير باب والرجز فاهجر ٧٣٣/٢.

وکتل که ګورم چې هماغه فرښته چې د حراء په غارکې راته راغلې وه د آسمان او ځمکې ترمنځ پر چوکۍ ناسته ده، زه ورنه وویریدم او په ځمکه را پریوتم بیا خپل اهل (کور) ته راغلم، ورته ومې ویل : ما ونغاړئ، ما ونغاړئ (په څادر کې مې پټ کړئ) هغوی به څادر کې ونغښتلم، اوبیا الله تعالی (یاایها المدثر) – تر (والرجز فاهجر) پورې راباندې نازل کړې، پدې پسې د وحي سلسله ګرمه شوه او په مسلسله توګه به راتله .

## د وحي ډولونه

مخکې لدینه چې د رسالت او نبوت د مبارک ژوند تفصیلاتو ته داخل شو، لازمه وینو چې د وحي ډولونه وپیژنو ځکه وحي د رسالت مصدر او منبع او د دعوت اصل او اساس ده. ابن القیم (رحمه الله) د وحي ډولونه داسې بیانوي:

لومړی: ریښتینی خوب: او له همدې ریښتیني خوب نه رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته د وحي پیل شویدی.

دوهم: فرښتې به پداسې حال کې د رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په زړه کې وحي وراچوله چې هغه (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به فرښته نه لیدله، لکه رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) چې فرمایلي : ((**إن روح القدس نفث في روعي ّنه لن تموت نفس حتی تستکمل رزقها، فاتقوا الله واجملوا في الطلب، ولا یحملنکم استبطاء الرزق علی أن تطلبوه بمعصیة الله، فإن ما عندالله لا ینال إلا بطاعته**)).

[یعنې روح القدوس زما په زړه کې دا خبره پوکړه (وا یې چوله) هیڅ یونفس ترهغې نه مری ترڅو یې خپله روزي نه وي پوره کړی، نو له الله تعالی نه وویریږئ په غوره او نیکې طریقې سره طلب او لټه کوئ او د رزق او روزۍ تاخیر او کمی دې تاسې دېته ونه هڅوي چې خپله روزي د الله تعالی په معصیت او نافرمانۍ کې ولټوئ ځکه هغه څه چې له الله (جل جلاله) سره دي هغه له اطاعت او فرمانبرۍ پرته په بل څه نه شي تر لاسه کیدلی.]

دریم : فرښته به د سړي په شکل کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته راتلله، هغه ته به یې خطاب کاوه، او هرڅه به یې چې ورته وحي کول هغه به رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ټول یادول، پدې صورت کې به کله کله اصحابو

(رضي الله عنهم ) هم دا فرښته لیدله.
<u>څلورم :</u> رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته به وحي د ګړونګي د آواز په شان راتلله. د وحي دا صورت تر ټولو سخت اوګران و پدې صورت کې به فرښته د رسول اکرم له مبارک جسد سره یوځای کیده او وحي به یې ورته راوړله او دا دومره ګرانه وه چې د سختې یخنۍ په وخت کې به هم د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له مبارکې تندي نه خولې بهیدلی،او که به پدې صورت کې په اوښ سپور و، نو اوښ به یې پر ځمکه څملاست. یو ځل په همدې صورت کې وحي ورته راغله او دا وخت د محمد(صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مبارک ورون د زید بن ثابت (رضي الله عنه) په ورانه ایښی و، نو په زید (رضي الله عنه) دومره زور راغی چې خیال یې کاوه ورون یې بوټ مات شو.
<u>پنځم:</u> رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به فرښته په اصلي شکل او څیره کې لیدله، او په همدې حالت کې به فرښتې د الله تعالی په امر او ارادې سره وحي ورته کوله. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته پدې صورت کې دوه ځله وحي راغلې ده چې الله (جل جلاله) د النجم په سورت کې ورنه یادونه کړیده .
<u>شپږم:</u> هغه ډول وحي چې الله (جل جلاله) پاس په آسمانونو کې د معراج په شپه د لمونځونو د فرضیت او نورو مسائلو په هکله رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته کړیده.
<u>اووم:</u> پرته لدې چې فرښته د وحي واسطه وي له رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره د الله تعالی مستقیمې یعنی بلا واسطه خبرې، لکه څرنګه چې الله تعالی له موسی (علیه السلام) سره خبرې کړې. له الله تعالی سره د موسی (علیه السلام) بلا واسطه خبرې د قرآنکریم په نص سره ثابتې دي، او له محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره د الله تعالی د مستقیمو خبرو دلیل د معراج او اسراء حدیث شریف دی.
ځینې پوهانو د وحي آتم ډول هم راښوولی دی چې الله تعالی له خپل رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره پداسې حال کې مخامخ خبرې کړې چې هیڅ پرده او حجاب یې تر منځ نه و، خو ددې ډول وحي په هکله له سلفو نه رانیولې ترخلفو پورې اختلاف را روان دی او حقیقت دا دی چې دا آتم ډول ثابت ندی[1].

---

[1] . زاد المعاد ۱۸/۱. د لومړنې او آتم ډول په بیان کې مو لنډیز کړیدی.

# د الله تعالی لور ته د بلنې حکم

د قرآنکريم پدې آيتونو کې د اسې امر وشو: ((يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ (١) قُمْ فَأَنذِرْ (٢) وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ (٣) وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ (٤) وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ (٥) وَلَا تَمْنُنْ تَسْتَكْثِرُ (٦) وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ (٧).)) (المدثر: ١-٧)

[ترجمه : اې په جامه کې نغښتونکيه (له هيبته د وحې) پورته شه! (له ځايه د خوبه) نو وويروه (خلک له عذابه د الله که ايمان نه راوړي) او د خپل رب لويې بيان کړه او کالي خپل پاک وساته، او ګندګي او بتان ترک کړه، او مه کوه داسې احسان چې بدل يې ډير غواړې او د پاره د رب خپل صبرکوه (او هيله ورته ولره احکامو ته يې منتظر اوسه)]

پدې آيتونو کې د الله تعالی له لوري رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته داسې امرونه شويدي چې په ظاهرکې ډير ساده او عادي ښکاري، خو په حقيقت کې د ډيرو اوچتو او لويو اهدافو او د واقعيتونو په دنيا کې د ژورې اغيزې او لوی عمل درلودونکي دي:

١ـ <u>له انذار</u> (ويرولو) نه هدف او غوښتنه دا ده چې ټول هغه کسان چې پدې دنيا کې له الهي اوامرو نه سرغړوي او د الله (جل جلاله) د رضا مخالفت کوي بايد له خپل وخيم او خطرناک انجام او عاقبت نه خبر او وويرول شي، ترڅو په زړه کې يې ويره او لړزه را ولاړه شي.

٢ـ <u>د رب العالمين</u> د تکبير او په لويی سره د هغه د يادولو تقاضا او غوښتنه دا ده چې د ځمکې په مخ بايد بل هيچا ته هم لويي او کبريا پاتې نه شي، بلکه د داسې کبرياء او لويی مانی بايد رانسکورې کړی شي تر څو د ځمکې په مخ له الله (جل جلاله) پرته بل هيڅوک د لويی اوکبريا درلودونکی نه وي.

٣ـ <u>د جامو د پاکی</u> او له هر ډول چټلی نه د ځان ساتلو هدف دا دی چې په ظاهري او باطني صفايی او پاکی، له هر ډول ګندګی او شائبو نه د نفس په تزکيه کې د کمال هغه لوړې پوړی ته وخيژي چې انسان ورته يوازې د الله تعالی په رحمت، حفظ، هدايت او نور سره رسيدی شي. هدف دا دی چې هغه د کمال دې درجې ته په رسيدو

سره د انساني ټولنې لپاره داسې قدوه او عظیمه نمونه وي چې سلیم زړونه ور پورې نښلي، او له حق نه منحرف او کاږه زړونه یې له هیبت او عظمت نه په لړزه راځي، او بالاخره ټوله دنیا د موافقت او یا مخالفت په صورت کې د هغه په شاوخوا راوڅرخي.

**۴ـ** <u>دا چې امر ورته کوي چې په نیکۍ</u> او احسان سره د کثرت یا زیات بدل هیله او غوښتنه مه کوه، مطلب یې دا دی چې خپل عمل، کړه او هلې ځلې لویې او غټې ونه شمیرې، بلکه په مسلسله توګه په یوه عمل پسې د بل په لټه او کوښښ کې وې، زیات مشقت وګالې، عظیمې قربانۍ وړاندې کړې، خو بیا دا ټول هیرکړې او داسې وانګیرې چې دا د الله تعالی په وړاندې هیڅ هم ندي یعنی د الله تعالی په یاد او د هغه په وړاندې د ځواب ورکولو له ویرې خپلې ټولې قربانۍ، مشقتونه او تکلیفونه له یاده وباسې اوپه هیڅ یې وشمیرې.

**۵ـ**<u>په وروستي آیت کې</u> الله تعالی دېته اشاره کوي چې د دعوت او بلنې په لاره کې به هغه (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د دښمنانو او معاندینو له خوا ډول ډول کړاوونه او تکلیفونهویني، مخالفت به ورسره کیږي، ملنډې به ورباندې وهل کیږي، ان تر دې چې دده او دده (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د اصحابو (رضي الله عنهم) د قتل او وژلو کوښښونه به کیږي. نو الله تعالی ورته امر کوي چې ددې ټولو مشکلاتو په وړاندې له صبر او زغم نه کار واخلي او د فولادي غره په شان ثابت او ټینګ ودریږي، خو دا صبر او ثبات به ددې پخاطر نه وي چې کومه شخصي ګټه او نفسي غوښتنه یې پرې پوره شي بلکه دا ټول به یوازې او یوازې د الله تعالی د رضا پخاطر وي.

الله اکبر! دا حکمونه او اوامر په ظاهره څومره بسیط خو الفاظ یې څومره جذاب، اوچت او د ژور اثر درلودونکي دي، او همدا په ظاهر کې بسیط او آسانه اوامر د عمل او هدف په ډګر کې ډیر عظیم، سخت او لوی دي. او د همدې اوامرو په نتیجه کې څومره عظیم الشان طوفان را اوچت شویدی چې د نړۍ ګوټ ګوټ ته رسیدلی، لوی انقلاب یې راوستی او نړۍ یې یو له بل سره وصل او یو ځای کړیده.

همدا مبارک آیتونه د تبلیغ او دعوت مواد او اصول هم په ګوته کوي، د انذار مطلب او مقصد دا دی چې دا وښیې د انسان ځینې کارونه او اعمال داسې دي چې نتیجه او عاقبت یې ډیر خطرناک او وخیم دی، او څرنګه چې هرچا ته دا معلومه ده چې انسان پدې دنیا کې د خپلو ټولو کړو نتیجه او جزا نه ویني، نو پدې صورت کې د انذار یوه تقاضا دا ده چې د انسان د ټولو اعمالو او کړو وړو د بدلې او جزا لپاره له دنیا نه علاوه یوه بله ورځ هم وجود ولري، او دا همغه ورځ ده چې د قیامت، د جزا، او دین د

ورځې په نامه يادېږي، او دا بيا ددې غوښتنه کوي چې بايد له دنيوي ژوند نه پرته بل ژوند هم وجود ولري.
او نور آيتونه له بندګانو نه دا غواړي چې بايد يوازې د توحيد لاره غوره کړي، ټول کارونه واحد خدای ﷻ ته وسپاري، د خدای تعالی د امر او رضا په مقابل کې خپلې هيلې، غوښتنې او د خلکو خوښې او رضا شا ته واچوي.

## نو د دعوت مواد او اصول به دا وي:

الف: توحيد.
ب: د قيامت په ورځ ايمان.
ج: د نفس تزکيه، له هر ډول منکراتو، بديو او چټليو نه ځان ساتل، او د ټولو هغو امورو پرېښودل چې د خطرناک عاقبت او وخيم انجام درلودونکي وي. همدا راز د هر ډول نيکۍ، خير، فضيلت او کمال خپلول او سرته رسول.
د: ټول کارونه الله تعالی ته سپارل.
هـ: ددې سلسلې آخرينۍ کړۍ د محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په رسالت باندې ټينګ او پوخ ايمان درلودل، او دا ټول د هغه تر قيادت لاندې او د هغه له لارښوونې سره سم سرته رسول دي.
بله دا چې دا مبارک آيتونه ددې عظيم کار او مسوليت د ادا لپاره رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته امرکوي چې نور خوب، آرام، ګرمه بستره پرېږدي د کړاو، مشقت، او جهاد لاره غوره کړي: ((يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ (١) قُمْ فَأَنذِرْ (٢))) دا ددې معنی ورکوي لکه چې وويل شي: هغه څوک چې يوازې د ځان لپاره ژوند کوي،کيدای شي خوب او آرام ولري، خو ته اې محمده (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دومره مسوليت په غاړه لرې چې بايد نور د خوب، آرام او ګرمې بسترې په فکر کې نه وې، ستا پيټی دومره دروند دی چې له هغه سره له کړاو او مشقت پرته بل څه نه شې ليدلئ، پاڅه، ډيرعظيم مسوليت در په غاړه دی، دا تر ټولو ستر پيټی همدا ستا دی، پاڅه د جهاد او تکليفونو دا اغزنه لار ووهه، پاڅه! نور د خوب او آرام وخت نشته نور د بې خوابۍ، مسلسل کړاو دور شروع شويدی، پاڅه او ددې لوی او درانده بار د اوچتولو لپار ځان تيار او چمتوکړه. دا ډيره عظيمه او هيبتناکه کلمه او خبره ده چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له ګرمې بسترې او آرام ژوند نه

راپاڅوي او د تندو توپانونو، خونړيو جګړو، او عظیمو حادثو په سمندر کې یې ورلاهو کوي، د کور له آرام ژوند نه یې را باسي او د خلکو د ضمیرونو او ژوندنیو حقایقو د مقابلې او کشمکش په میدان کې یې دروي.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هم ددې الهي حکم د اوریدو سره سم را پاڅید او څه د پاسه شل کاله د جهاد او مقاومت په ډګر کې ولاړ و، خوب او آرام یې نه درلود. ددې عظیم مسولیت د ادا په لارکې یې ځان، اهل او اولاد ټول هیرکړي وو، په پوره ثبات او میړانه سره یې د الله تعالی لورته بلنه کوله، او ددې دومره ستر او درانده بار او پیتي په اوچتولو او وړلو کې یې د ستومانۍ او کمزورۍ احساس ونکړ. رښتیا هم چې دا ډیر دروند بار و ځکه دا د ټول بشریت، او د ټولې عقیدې مسئولیت و، دا د ژوند په ټولو اړخونو کې د جهاد او انقلاب لار وه. دا ټوله موده د الله تعالی رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د جهاد، جګړې او کړاو په ډګر کې و، داسې کله هم پیښنه نه شوه، چې د یوه کار له امله دې بل کار ورنه پاتې شوی وي. له کومه وخته یې چې دا الهي حکم تر غوږو شویدی له همغې ورځې نه یې ټول ژوند د مسلسل جهاد او دوامدارې جګړې په میدان کې تیر کړیدی، جزاه الله عنا و عن البشرية كلها خيرالجزاء[1].

په راتلونکو پاڼو کې به د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ددې مسلسل او نه ستړیکیدونکي جهاد په هکله څه لنډې او مختصرې خبرې وکړو.

[1]. في ظلال القرآن ۱۲۸/۲۹ تر ۱۸۲ پورې.

# د دعوت مرحلې (پړاوونه)

د محمد (ﷺ) د نبوت مبارک ژوند په دوو بيلابيلو دورو ويشلی شو:

ا_ مکي دور_ تقريبا ديارلس کاله.
۲_ مدني دور_ پوره لس کاله.

بيا هر دور مختلفې مرحلې لري چې هره مرحله د خاصو ځانګړتياوو او بيلوونکو خصائصو درلودونکې ده، که د دعوت او بلنې پر دې دواړو دورو لږ دقيق او ژور نظر واچوو، نو همدا خبره به راته ښه څرګنده او په ډاګه شي.

مکي دور په دريو مختلفو مرحلو ويشل کيدای شي:
۱_ د پټې بلنې مرحله چې موده يې درې کاله وه .

۲_ د مکې خلکو ته د بلنې د اعلان مرحله، د بعثت د څلورم کال له پيل نه د بعثت د لسم کال تر وروستۍ برخې پورې.

۳_ له مکې نه د باندې د دعوت د اعلان او خوريدو مرحله، د بعثت د لسم کال له وروستيو نه مدينې ته د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تر هجرته .
د مدني دور د مراحلو تفصيل به پخپل ځای کې راشي.

لومړۍ مرحله

# دعوت او تبليغ

## دری کاله پټه او سري بلنه

دا خو هرچا ته په ډاګه ده چې مکه هغه وخت د عربو ديني مرکز و، د کعبې شريفې ساتونکي، د امورو مشران او د عربو په نزد د مقدسو بتانو ساتونکي هم همدلته مکه کې وو، نو ددې ځای اصلاح او ددې خلکو په نيغه لار روانول د نورو په نسبت ډيرګران او مشکل کار و. دلته د دعوت او اصلاح لپاره داسې پخې ارادې او ټينګ عزم ته ضرورت و چې د مصيبتونو او مشکلاتو طوفانونه يې له ځايه ونه شي خوځولی. او پداسې حالاتو کې د حکمت تقاضا او غوښتنه هم دا وه چې دعوت او بلنه بايد په لومړي سرکې په پټه او مخفي توګه ترسره شي، ترڅو د مکې اوسيدونکي په ناڅاپي او نابېره توګه له يوه راپاروونکي حالت سره مخامخ نه شي .

## د اسلام لومړني لارويان

طبيعي خبره وه چې رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) بايد لومړی هغه کسان اسلام ته راوبولي چې له ده او آل بيت سره دوستي او نژدې اړيکې ولري. همداسې وشول رسول کريم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) لومړی خپل دوستان اسلام ته راوبلل، او هغو کسانو ته يې د اسلام بلنه ورکړه چې د خير تمه يې ورنه کوله، پيژندل يې چې هغوی تل د حق او حقيقت خواته دريږي، او دده (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په صدق، ريښتينولی او صلاح باندې پوخ باور لري.
لدې ډلې نه هغو کسانو د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) بلنه ومنله چې کله يې هم د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د عظمت، صلاح، صدق، او صداقت په هکله شک نه و کړی. دا د الله تعالی غوره بندګان په اسلامي تاريخ کې د السابقون الاولون په نامه شهرت لري، ددې ډلې په سرکې د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) بي بي حضرت خديجه (رضي الله عنها)، د رسول کريم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) آزاد شوی غلام زيد بن حارثه بن شرحبيل

الكلبي[۱]، او د محمد مصطفى (عليه السلام) د تره زوى علي بن ابي طالب، چې هغه وخت لا ماشوم و او د رسول اكرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) تر كفالت لاندې و او د رسول كريم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) تر ټولو نژدې ملګرى حضرت ابوبكر صديق (رضي الله عنهم) وو، دوى هغه كسان دي چې د دعوت په لومړنيو ورځو كې په اسلام مشرف شويدى.

پدې پسې ابوبكر الصديق (رضي الله عنه) د اسلام لورته د بلنې لپاره متې راونغښتلې. ابوبكر (رضي الله عنه) پخپل قوم كې يو منل شوى او مخور سړى و، د خپلو نيكو اخلاقو، تدبر، پوهې او په تجارت كې د تجربې له بركته به هميش خلك ده ته ورتلل، ناسته ولاړه يې ورسره درلوده، نو له همدې فرصت او حيثيت نه په استفادې سره يې هغه كسان اسلام ته رابلل چې اعتماد او باور يې ورباندې درلود، او خپل راز يې ورته ويلى شواى، بالاخره د ابوبكر (رضي الله عنه) د دعوت او تبليغ په نتيجه كې عثمان بن عفان الاموي، زبير بن العوام الاسدي، عبدالرحمن بن عوف، سعد بن ابي وقاص (الزهريان)، طلحه بن عبيدالله التيمي (رضي الله عنهم اجمعين) په اسلام مشرف شول او پدې ترتيب سره دا آته كسان د اسلام لومړني لاروي او مخكښان دي.

همدا راز بلال بن رباح الحبشي (رضي الله عنه) هم د لومړنيو مسلمانانو څخه دى، ورپسې د اسلامي امت امين ابو عبيده عامر بن الجراح[۲] (د بني الحارث بن فهر له كورنۍ نه)، ابو سلمه بن عبدالاسد، ارقم بن ابي الارقم (المخزوميان)، عثمان بن مظعون او وروڼه يې قدامه او عبدالله، عبيده بن الحارث بن المطلب بن عبدمناف، سعيد بن زيد العدوي او ښځه يې فاطمه بنت الخطاب العدويه (د عمر بن الخطاب خور)، خباب بن الارت، عبدالله بن مسعود الهذلي او داسې نور (رضي الله عنهم) په اسلام مشرف شول. او همدوى السابقون الاولون دي چې د قريشو په مختلفو كورنيو پورې يې اړه درلوده. ابن هشام يې شميره څلويښت ښوولې او نومونه يې هم ذكر

---

[1]. زيد په جګګړه كي نيول شوي او غلام (اسير) شوي و، حضرت خديجه (رضي الله عنها) د هغه مالكه وه او بيا يي رسول اكرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته هبه كړ بو وخت د هغه پلار او تره راغلل تر خګو له حګان سره يي بوزي، خو هغه رسول اكرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د خپل تره او پلار په مقابل كيګ غوره كړ. نو رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) هغه متبني (خپل نسبتي زوى) وباله او په زيد بن محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره يي شهرت وموند تر خګو اسلام راغى او د عربو دغه عادت يي لغوه كړ.

[۲]. پدي هكله صحيح البخارى مناقب ابي عبيده بن الجراح ۱/۵۳۰ وګګوره

کړيدي[۳]. خو پدې لست کې ځنې کسان داسې دي چې له السابقون الاولون نه يې شميرل پوره ثابت ندي او په هکله يې اختلاف وجود لري.
ابن اسحاق وايي: وروسته ډله ډله خلک (نارينه او ښځې) په اسلام مشرف شول تر دې چې په ټوله مکه کې د اسلام نوم خور شو او د خلکو په ژبو به يادېده.[۱]
خو لومړنيو ټولو په پټه اسلام راوړی و، رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به هم په مخفي توګه غونډې ورسره کولې او د دين ښوونه به يې ورته کوله، ځکه دغه وخت دعوت مخفي او وګړيز (فردي) و. وحي هم د المدثر سورت له لومړيو آيتونو وروسته په مسلسله توګه راتلله. دغه وخت به چې کوم آيتونه را نازليدل هغه به لنډ لنډ وو خاتمه به يې په ډيرو زړه راښکونکو الفاظو سره کيده. دا آيتونه به پر زړونو د ژورې اغيزې درلودونکي او د هغه وخت له سکون او رقت نه ډکې فضا عين مطابق وو. دې آيتونو د نفس تزکيې او پاکۍ ته بلنه ورکوله او په دنيوي چټليو باندې د ملوث کيدو او ککړيدو زيانونه يې په ګوته کول، له جنت او دوزخ نه به يې خبرې کولې او داسې به يې ترسيمول تا به ويل چې همدلته اوس حاضر موجود دي، مومنان به يې د وخت له بشري ټولنې نه اوچت او يوې بلې فضا اوچتول.

## لمونځ

د لمانځه امر د اسلام په لومړيو کې رانازل شوی ، مقاتل بن سليمان وايي: د اسلام په لومړيو کې الله تعالی دوه رکعته سهار او دوه رکعته ماښام لمونځ فرض کړی و، الله تعالی فرمايي: ((وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ بِالْعَشِيِّ وَالإِبْكَارِ)). (غافر– ٥٥)
ترجمه: (او تسبيح وايه سره له ثنا د رب خپل هم په آخره د ورځې کې او (هم) په اوله د ورځې کې...). ابن حجر وايي: له معراج نه مخکې هم رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او اصحابو (رضي الله عنهم) په قطعي توګه لمونځ کاوه، خو اختلاف پدې کې دی چې د پنځه وخته لمانځه له فرضيت نه مخکې هم کوم لمونځ فرض و او که نه؟ ويل کيږي چې هغه وخت يوازې له لمرختلو او لمر لويدلو نه مخکې لمونځ فرض و او بس. حارث بن اسامه د ابن لهيعه له لارې له زيد بن حارث نه موصول روايت کوي: په لومړيو کې چې رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته وحي راغله، جبريل (عليه السلام) ورته راغی، د اوداسه طريقه يې وروښودله، او کله

---

[۳]. سيره ابن هشام ۲۴۵/۱ الی ۲۲۲.
[۱]. ابن هشام ۱. ۲۲۲ .

چې له اوداسه فارغ شو نو یوه لپه اوبه یې واخیستی او په عورت (شرمګاه) یې وروشیندلې. ابن ماجه هم پدې مفهوم یو حدیث رانقل کړیدی. له براء بن عازب اوله ابن عباس (رضي الله عنهم) نه هم دې ته ورته یو حدیث روایت شویدی د ابن عباس (رضي الله عنهما) په حدیث کې راځي: ((**وکان ذلك من أول الفریضة**))[1]. دا لمونځ له لومړنیو فرائضو څخه و.

ابن هشام وایي: کله به چې د لمانځه وخت شو نو رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او اصحاب (رضي الله عنهم) به درو او خوړونو ته تلل او هلته به یې له خپل قوم نه پټ لمونځ اداء کاوه. یو ځل ابو طالب ولیدل چې رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او علي (رضي الله عنه) لمونځ کوي، نو پدې هکله یې پوښتنه ورنه وکړه، او چې په حقیقت پوه شو نو د ثبات او ټینګار امر یې ورته وکړ.[2]

## قریش په اجمالي توګه له مسئلې نه خبرېږي

د دعوت او بلنې په مختلفو پیښو او واقعاتو کې له غور او دقت نه وروسته دا په ډاګه کیږي چې دعوت که څه هم پدې مرحله کې پټ، مخفي او انفرادي شکل درلود، خو بیا هم قریش وربانديې خبر وو البته دا وه چې چندان باک یې نه وربانديې راوړ او دې خوا ته یې زیاته توجه نه درلوده.

محمد الغزالي وایي: دا خبرونه د قریشو غوږونو ته رسیدلي وو، خو ځان یې نه خوځاوه، باک یې نه وربانديې راوړ، کیدای شي به دا ګومان به یې کاوه چې محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به هم د هغو دیني خلکو په شان وي کوم چې د الوهیت او الهي حقوقو په هکله خبرې کوي، لکه امیه بن ابي الصلت، قس بن ساعده، عمرو بن نفیل او داسې نور، خو کله چې د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دعوت مخ په خوریدو شو، اغیزه یې زیاته شوه، همدا وه چې هغوی هم ورنه وویریدل او د وخت په تیریدو سره یې رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او دده دعوت تر نظر او مراقبت لاندې ونیوه.[3]

درې کاله تیر شول خو اسلامي دعوت همداسې پټ او انفرادي (وګړیز) شکل درلود،

---

[1]. مختصر سیرة الرسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) للشیخ النجدي ص ۸۸.

(۲). ابن هشام ۱/ ۲۴۷.

[3]. فقه السیرة ص ۷۲.

پدې موده کې يو داسې مومن ټولګى جوړ شو چې غړي يې د ورورۍ او تعاون په مزي يو له بل سره تړل شوي وو. د رسالت تبليغ جريان درلود ، او اوچت منزل ته د رسالت او دعوت د رسولو هڅې جاري وې، په همداسې حالت کې د الله تعالى له لوري وحي راځي او رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته امر کوي چې خپل قوم په ښکاره او علني توګه اسلام ته راوبولي، له باطل سره ډاګيزې مقابلې ته ملا وتړي او د دوى پر بتانو د حقيقت ګوزار وکړي او له مخ نه يې پردې پورته کړي تر څو خلک يې په حقيقت او محتوى پوه شي.

دوهمه مرحله

# ښکاره دعوت او تبلیغ

## د دعوت د اعلانولو لومړی فرمان

پدې هکله تر ټولو لومړی د الله تعالی دا قول را نازل شوي ((وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الأَقْرَبِينَ)). (الشعراء:٢١٤)

[ترجمه: او ویروه ته (له عذابه اې محمده! هغه) خپلوان د تا چې ډیر نژدې دي (درته).]

دا آیت د الشعراء په سورت کې دی، ددې سورت په پیل کې د موسی ( علیه السلام) کیسه راغلې ده او دا ښیي چې د موسی (علیه السلام) د نبوت پیل څنګه او څه ډول و، بیا هغه له خپل قوم (بني اسرائیلو) سره هجرت وکړ الله تعالی دوی ته له فرعون نه نجات ورکړ، فرعون او لښکرې یې غرقې شوې. په بل عبارت دغه کیسه د موسی (علیه السلام) د دعوت پر ټولو مرحلو رڼا اچوي. پداسې وخت کې د موسی (علیه السلام) د کیسې بیان چې رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په ښکاره او علني بلنه مامور کیږي، زما په نظر ددې پخاطر و چې رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او اصحاب یې (رضي الله عنهم) د دعوت له پیل نه د خپلې لارې له هر څه نه خبر وي، په وړاندې یې یوه داسې نمونه او یو داسې مثال موجود وي چې د هغه په رڼا کې دې ته آماده او تیار شي چې د ښکاره او علني دعوت په مرحله کې به له راز راز مشکلاتو سره مخامخ کیږي، د دروغو نسبت به ورته کیږي او ډول، ډول ظلمونه به ویني.

دا سورت د هغو قومونو له عاقبت او انجام نه هم یادونه کوي کوم چې د الله تعالی رسولان (علیهم السلام) یې تکذیب کړي او د هغوی له اطاعت نه یې سر غړولی دی لکه د نوح (علیه السلام) قوم، عاد، ثمود د ابراهیم او لوط (علیهما السلام) قومونه او اصحاب ایکه. د فرعون او ددې قومونو له عاقبت او انجام نه یادونه او خبرې ددې پخاطر دي چې د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تکذیبونکي او د هغه له امر نه سر غړونکي پدې پوه شي چې که هغوی سمې لارې ته برابر نه شي او د حق پیروي ونکړي نو هغوی به هم له یوه خطرناک انجام سره مخ کیږي او الله تعالی به یې مواخذه کوي، او بل هدف یې دا و چې مومنان له خپل راتلونکي نه مطمئن او

پدې باوري شي چې پای او راتلونکی د دوی دی، برى د دوی او ناکامي د دښمنانو په برخه ده.

## نژدې خپلوانو ته بلنه

ددې آیت له نازلیدو وروسته رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپله کورنۍ (بني هاشم) راوبلل، هغوی بلنه ومنله راغلل، او د بني المطلب بن عبدمناف له کورنۍ نه هم څو کسان ورسره وو، ټول پنځه څلویښت کسان راټول شول.
ابو لهب وړاندې شو د خبرې سر یې ونیو او محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته په خطاب سره یې وویل: ګوره! دا ستا ترونه او د ترونو زامن دي، خبرې وکړه خو ناپوهي پریږده، پدې ښه پوه شه چې ستا کورنۍ د ټولو عربو زور نلري، نو زه حق لرم چې و دې نیسم (لدې کارنه دې منع کړم).ستا لپاره همدا ستا کورنۍ کافي ده چې مخه دې ونیسي که چېرې ته پخپله خبره همداسې ټینګ پاتې شې، نو ستا د قوم لپاره ستا مخنیوی لدینه آسانه دی چې قریش ټول ستا په خلاف را پورته شي، او نور عرب یې هم مرسته وکړي، زه نه پوهیږم هغه وخت به بیا بل څوک داسې پیدا شي چې ستا په شان د خپل قوم د تباهۍ او بربادۍ دا ډول سبب وګرزي؟! رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) چوپ پاتې شو او پدې مجلس کې یې هیڅ خبرې ونکړې.
وروسته رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دوهم ځل بیا هغوی راوبلل، کله چې غونډ شول ویې فرمایل: ((**الحمد لله أحمده، و أستيعنه، و أومن به، و أتوكل عليه، و أشهد أن لا إله إلاالله وحده لا شريك له**)) **ثم قال**: ((**إن الرائد لا يكذب أهله و الله الذي لا إله إلا هو، إني رسول الله إليكم خاصة و إلى الناس عامة و الله لتموتن كما تنامون، و لتبعثن كما تستيقظون، و لتحاسبن بما تعملون، و إنها الجنة أو النار أبدا**)). یعنی: ټول حمد او ثنا الله تعالی لره ده، زه د هغه ثنا وایم، له هغه نه مرسته غواړم، په هغه ایمان لرم، او په هغه باندې بروسه او توکل کوم، او پدې شاهدي وایم چې له الله تعالی پرته بل هیڅوک هم د عبادت وړ ندي، هغه واحد دی هیڅ شریک نلري، بیا یې وویل: مشر او لاربښود خپل اهل او د خپل کور خلکو ته دروغ نه وایي قسم په هغه خدای چې لده پرته بل اله (د عبادت وړ معبود) نشته، زه د الله تعالی له لوري ستاسې لپاره په خاصه توګه او د ټولو خلکو لپاره په عامه توګه رسول او استازی رالیږل شوی یم، قسم په الله (جل جلاله) داسې به مرئ لکه څرنګه چې

ويده کيږئ، او داسې به بيرته را ژوندي کيږئ لکه څرنګه چې له خوب نه را پاڅيږئ، او د خپل هر عمل حساب او کتاب به درسره کيږي، بيا به د تل لپاره يا جنت وي او يا دوزخ.

ور پسې ابو طالب داسې وويل: ستا سره زمونږ لپاره د وياړ خبره ده، مونږ له هر چا نه زيات ستا نصيحت ته غوږ ږدو او منو يې، مونږ له هر چا نه زيات ستا خبره رښتيا ګڼو، دا دي ستا ترونه او تربرونه ټول حاضر دي، زه هم د دوی يو غړی يم، خو زه ستا د خوښې او هدف د تکميل په لار کې له دوی نه وړاندی يم، په پوره ډاډ او اطمينان سره مخ په وړاندې درومه، خپله دنده په ښه توګه ادا کړه، قسم په الله تل به دې خوا ته ولاړ وم او ملاتړ به دې کوم، خو طبيعت او نفس مې د دې اجازه نه راکوي چې د عبدالمطلب دين پريږدم.

دلته ابو لهب وويل: والله چې دا ډيره بده ده، مخکې لدينه چې نور خلک يې له دې کارنه منع کړي بايد تاسو يې لاس ونيسئ او له دې لارې نه يې را واړوئ. ابو طالب په ځواب کې ورته وويل: قسم په الله تر څو ژوندي يو دفاع به ور نه کوو[1].

## د صفا پر غونډۍ

کله چې رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) لدينه ډاډه شو چې نور به ابو طالب د دعوت په لاره کې له ده نه دفاع او ملاتړ کوي، نو يوه ورځ د صفا غونډۍ ته وخوت او په لوړ آواز يې وفرمايل: يا صباحاه.[2]! (اې سهاره)؟ ددې غږ په اوريدو سره د قريشو خلک راټول شول، او رسول کريم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) توحيد، په رسالت او آخرت باندې ايمان ته راوبلل. بخاري شريف ددې کيسې يوه برخه له ابن عباس (رضي الله عنهما) نه روايت کوي وايي:

**((لما نزلت ((و انذر عشيرتك الاقربين)) صعد النبي (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) علي الصفا فجعل ينادي يا بني فهر! يا بني عدي! لبطون قريش، حتى اجتمعوا، فجعل الرجل إذا لم يستطع أن يخرج أرسل رسولا لينظر ما هو؟ فجاء أبو**

---

[1]. ابن الاثير، فقه السيرة ص ۷۷- ۷۸.

(2). د عربو دا عادت وْ چې د دښمن له حملې نه د خبريدو او اعلان په وخت کې به په کوم اوچت ځای دريدل او پدې الفاظو (يا صباحاه) سره به يې نارې وهلې.

**لهب و قريش فقال: أرايتكم لو أخبرتكم أن خيلا بالوادي تريد أن تغير عليكم أكنتم مصدقي؟ قالوا: نعم، ما جربنا عليك إلا صدقا. قال: فإني نذير لكم بين يدي عذاب شديد. فقال أبولهب: تبا لك سائر اليوم، ألهذا جمعتنا؟ فنزلت ((تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ))**[1] . [یعنی کله چې د ((وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الأَقْرَبِينَ)) آیت را نازل شو رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د صفا غونډۍ ته وخوت او د قریشو کورنیو ته یې جدا جدا غږ وکړ، اې بني فهر، اې بني عدي! تر څو ټول قریش راغونډ شول، ابولهب هم راغی، نو رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: که درته ووایم چې پدې دره یا خوړکې یوه ډله شهسواران دي غواړي حمله درباندې وکړي، نو آیا تاسې به زما دغه خبره ومنئ؟ دوی وویل: هو، مونږ له تا نه همیشه رښتیا اوریدلي دي. بیا یې ورته وفرمایل: زه تاسې ته له یوه سخت عذاب نه د خبر ورکونکي په حیث راغلی یم. پدې وخت کې ابو لهب وویل: ټوله ورځ هلاک اوسې، همدا نن هلاک شې آیا د همدې لپاره دې راټول کړي وو؟ نو پدې پسې (تبت یدا ابي لهب و تب) (مات، هلاک دې شي دواړه لاسونه د ابي لهب او پخپله دې هم هلاک شي)) سورت رانازل شو.]

مسلم شریف له ابو هریره (رضي الله عنه) نه په روایت سره ددې کیسې بل اړخ رانقلوي وایي: کله چې د(**وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الأَقْرَبِينَ**) آیت را نازل شو، رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) آواز وکړ، دا آواز عام هم و او خاص هم، ویې فرمایل:**((یا معشر قریش انقذوا انفسکم من النار،یا معشر بني کعب! انقذوا انفسکم من النار، یا فاطمةبنت محمد! انقذي نفسک من النار، فاني والله لا املک لکم من الله شیئا، الا ان لکم رحما سابلها ببلالها))**.

[ اې قریشو! ځانونه له جهنم نه وساتئ، اې بني کعب! ځانونه له دوزخ نه وساتئ، اې د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لورې فاطمې! (رضي الله عنها) ځان له اور نه وساته، ځکه قسم په خدای چې زه د الله تعالی له مواخذې او ګرفت نه ستاسې د خلاصون په لاره کې هیڅ واک او اختیار نلرم، خو دا ده چې ستاسې سره د نسب او قرابت اړیکې لرم، او کوښښ کوم چې حق يې ادا کړم ، ټینګې او برقرارې يې

[1]. صحیح البخاري ۲/ ۷۰۲- ۷۴۳ په صحیح مسلم کې هم دا روایت شته دی ۱/۱۱۴.

وساتم.[1]
دا بلنه پوره او بشپړ اعلان او تبليغ و، رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپلو خپلوانو ته دا وښوده چې نور د اړيکو ټينګښت پدې رسالت باندې تر ايمان راوړلو پورې اړه لري او د الله تعالی له لوري ددې اعلان او انذار له نازليدو وروسته د عربو باطل قوميت او قومي تعصب له مينځه تللی دی.

## د حق اعلان او د مشرکينو عکس العمل

ددې آواز انګازې د مکې په شا او خوا کې لا اوريدل کيدلې چې د الله تعالی يو بل امر رانازل شو او هغه داسې و:((فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَأَعْرِضْ عَنْ الْمُشْرِكِينَ)).(الحجر:٩٤) [ترجمه: نو ښکاره (او په جهر کړه اې محمده!) هغه چې ته مامور يې پرې او مخ واړوه له مشرکانو څخه (او مه کوه هيڅ التفات او پروا ددوی ويلو ته)).] نو رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) هم پيل وکړ د شرک او خرافاتو له مخ نه پردې اوچتوي، ضررونه يې په ګوته کوي د بتانو اصلي څيره خلکو ته ښيي او د مثالونو په رڼا کې ددې باطلو معبودانو کمزوري او ناتواني په ګوته کوي او دا اعلانوي هر څوک چې د بتانو عبادت کوي او يا بتان د ځان او الله تعالی تر مينځ وسيله ګرزوي هغوي ټول ګمراهان او بې لاری دي.
کله چې د مکې خلکو واوريدل چې رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په بتانو پسې خبرې کوي او په ډاګه سره وايي چې مشرکان او د بتانو عبادت کوونکي ټول ګمراهان او په باطله روان دي، نو دا د حق آواز لکه تندر داسې ورباندې ولګيد، اور ورباندې بل شو، ويرې واخيستل چې هسې نه دا عظيم انقلاب د هغوی ټول عادات او عنعنات ختم نکړي، نو همدا وه چې ددې بر حق انقلاب په وړاندې ودريدل او د دښمنۍ لاره يې ورسره ونيوه.
مشرکان ځکه ددې لوی بدلون او عظيم انقلاب په وړاندې ودريدل چې پدې پوهيدل چې له يوه الله تعالی نه پرته له بل هر چا نه د الوهيت نفي، او په رسالت او آخرت باندې ايمان دا معنی لري چې انسان بايد دې دين ته په کامله توګه مطيع او فرمانبردار وي او دې رسالت ته داسې تسليم شي چې بيا د ځان او مال سودا او خبره ورسره نه وي، هر څه يې الله تعالی ته سپارلي وي. څرګنده ده چې پدې صورت کې خو

[1]. صحيح مسلم ١١۴/١. صحيح بخاري ١/ ٣٨٥.

بیا د مشرکینو هغه باطله مشري او واکداري له مینځه تلله، او بیایې نه شوی کولی خلکو ته د دین په نامه بازي ورکړي، ویې غولوي او دا ممکنه نه وه چې نور یې پر مظلومانو باندې خپلو ظلمونو ته ادامه ورکړې وی. هو، هغوی د ایمان په رښتینې معنی پوه وو ځکه یې زړه نه شوی ورته ښه کولی. هغوی خپله ګمراهي او باطله مشري نه شوای پرېښودلی نو ځکه یې د رسالت له قبلولو نه انکار کاوه، الله تعالی فرمایي:

((بَلْ يُرِيدُ الإِنسَانُ لِيَفْجُرَ أَمَامَهُ)) (القیامة:۵)

هغوی پدې ټولو ښه پوه وو، خو حیران وو، چې د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په شان صادق، امین، کریم، عزیز او د داسې عظیم شخصیت درلودونکي چې په اوچتو اخلاقو او سپېڅلتیا کې یې په ډېرو پیړیو کې مثال ندې لیدل شوی، په وړاندې څه وکړي؟ او کومه لاره ورسره ونیسي؟ له سلا او مشورو، غور او فکر وروسته دې فیصلې ته ورسیدل چې د رسول اکرم(صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تره ابوطالب ته ورشي او سوال ورنه وکړي چې خپل وراره لدې کارنه واړوي . زیار یې یوست چې خپله دا غوښتنه جدي اوکلکه وښیي، نو دا خبره یې سره غوټه کړه چې ابوطالب ته به داسې وایي: د بتانو د عبادت پرېښودلو ته بلنه، او دا خبرې چې دا بتان باطل دي، هیڅ وس او توان نلري، دا ټول په حقیقت کې د دوی (مشرکانو) او د دوی د پلرونو سپکاوی او د دوی د دین توهین دی چې دوی یې نه شي زغملی .

## ابوطالب ته د قریشو جرګه

ابن اسحاق وایي: د قریشو ځینې مشران ابوطالب ته ورغلل اوداسې یې ورته وویل: ابوطالبه! ستا وراره زمونږ خدایانو ته د بدو نسبت کوي، زمونږ دین باطل ګڼي، زمونږ پلرونه بې لارې اوګمراهان بولي، مونږ ته بې عقلان او احمقان وایي، نو یا یې لدې کار نه واړوه، او یا ته له مینځه لیرې شه چې مونږ ورسره پوه شوو او خپل حساب ورسره تصفیه کړو، پوهیږو ته هم زمونږ په شان اختلاف ورسره لرې، نو پرېږده چې ورنه بې غمه دې کړو. ابوطالب په ډېره ښه او نرمه لهجه هغوی ته ځواب ورکړ او رخصت یې کړل. رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپل دعوت جاري ساته او د الهي دین د قیام او حاکمیت لپاره یې نه ستړیدونکې هلې ځلې کولې.[1]

## د حج په موسم کې د دعوت د مخنیوي پخاطر د قریشو مشورتي

[1] . ابن هشام ۲۲۵/۱.

## غونډه

د ښکاره بلنې له پیل نه یوازې څو میاشتې تیرې شوې وې چې د حج وخت را نژدې شو قریش متوجه شول چې پدې وخت کې د مختلفو ځایونو خلک راځي، نو په کار ده چې داسې یو تدبیر ونیول شي او داسې یوه خبره سره جوړه شي چې عربان وربانديې قانع کړی شو ترڅو د محمد(صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خبره و نه مني او دعوت يې اغیزه وربانديې ونکړی شي. نو همدا وه چې ټول ولید بن مغیره ته ورغلل ترڅو پدې هکله مشوره ورسره وکړي. ولید ورته وویل: په کار ده پدې هکله یوه خبره جوړه کړو، داسې و نه شي چې یو به یو څه وایي او بل به بل څه، ځکه دا پخپله یو د بل د خبرې اثر کموي او ارزښت يې له منځه وړي. دوی ورته وویل: ته ووایه چې څه باید ووایو؟ ولید وویل: نه، لومړی تاسې خپل نظرونه څرګند کړئ زه به يې اورم. دوی وویل: داسې به وایو چې محمد(صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)کاهن دی. ولید وویل: نه والله که هغه کاهن وي، کاهنان خو مونږ لیدلي هغوی داسې نه وي، د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خبرې د کاهنانو له خبرو سره نه په سجع اوقافیه او نه زمزمه په هیڅ شي کې هم ورته والی نلري. قریشو وویل: وایو به چې محمد(صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) شاعردی. ولید وویل: نه هغه شاعر هم ندی، مونږ په شعر پوهیږو، د شعر ټول ډولونه رجز، هجز، قریض، مقبوض، او مبسوط راته معلوم دي د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اقوال او خبرې شعر ندی. بیا دوی وویل: نو وایو به چې محمد(صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ساحر دی. ولید وویل: ساحر هم ندی، ساحران مو لیدلي. هغوی داسې نه وي. نو دوی ورته وویل:اوس ته ووایه څه ووایو؟ ولید وویل: قسم په خدای (جل جلاله) د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خبرې ډیرې خوږې دي، ریښې يې ډیرې ټینګې، اصل يې مضبوط او څانګې يې میوه دارې دي، تاسې يې چې په هکله هرڅه ووایئ خلک يې مني،ستاسو په خبرو باور نه کوي، خو زما په نظر تر ټولو مناسبه دا ده چې وویل شي هغه جادوګر دی، داسې څه يې راوړي چې د هغه په واسطه د پلار او زوی، وروڼو، میړه او ښځې، قوم او قبیلې ترمنځ بیلتون راولي، یو له بل سره يې اړیکې شلوي، بالاخره ټول په همدې خبره سره متفق شول او مجلس يې پای ته ورسید[1].

ځنې نور روایتونه وایي: کله چې ولید د قریشو ټولې خبرې او نظریې ردکړې نو دوی

[1] . ابن هشام ۲۷۱/۱.

Comment: ۱_ ابن هشام ۲۷۱/۱
Comment:

ورته وويل: اوس ته خپل سيي او بې داغه نظر راته څرګند کړه، ووايه ستا رايه څه ده؟ وليد وويل: اجازه راکړئ چې پدې هکله څه سوچ او فکر وکړم، له ډير سوچ او فکر ورسته يې دوی ته خپل مخکې ذکرشوی نظر وړاندې کړ چې د ټولو سلا ورباندې راغله.[۱] الله تعالی د وليد په هکله د مدثر په سورت کې (۱۶) آيتونه نازل کړيدي، او دا مبارک آيتونه د نوموړې خبرې په هکله د وليد د فکر او سوچ کولو حالت ته هم اشاره کوي، فرمايي : ((إِنَّهُ فَكَّرَ وَقَدَّرَ (١٨) فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ (١٩) ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ (٢٠) ثُمَّ نَظَرَ (٢١) ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ (٢٢) ثُمَّ أَدْبَرَ وَاسْتَكْبَرَ (٢٣) فَقَالَ إِنْ هَذَا إِلاَّ سِحْرٌ يُؤْثَرُ (٢٤) إِنْ هَذَا إِلاَّ قَوْلُ الْبَشَرِ (٢٥))(المدثر: ١٨-٢٥).

[ترجمه: بيشکه هغه فکر وکړ (چې څرنګه طعن وکړم په قرآن) کې او اندازه يې وکړه په زړه خپل کې (کار د محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ) ووژلی شو (ملعون کړی شو) څرنګه يې اندازه کړه بيا دې ووژلی شي (ملعون دی کړی شي) څرنګه اندازه يې وکړه (په طعن د قرآن او محمد کې) بيا يې وکتل (محمد يا قرآن ته) بيايې مخ تريو کړ او تندی يې غوټه کړ (له کراهيته) بيايې شا واړوله (له محمده) او غاړه يې وغړوله (له اسلاميته) نو ويې ويل نه دی دا (قرآن) مګر خو سحر دی چې نقل کاوه شي (له نورو ساحرانو نه) نه دی دا (قرآن) مګر خو خبره د بشر (بني آدم) ده.]

د قريشو په همدې خبره سلا راغله، او کله چې د حج وخت راورسيد نو قريشو به د مکې ټولې لارې ونيولې هر څوک به چې راتلل د محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په هکله به يې هماغه مخکې جوړه شوې خبره ورته کوله، او کوښښ به يې کاوه د خلکو توجه له محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه بلې خواته واړوي.[۲]

ددې باطلې وظيفې په سرته رسولو کې ابو لهب تر ټولو مخکې و، رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به د حج په دوران کې حاجيان پخپلو ځايونو او مېنو لکه عکاظ، مجنه او ذي المجاز کې د الله تعالی لوري ته رابلل، هلته به يې تشريف وروړه او هغوی ته به يې د اسلام دعوت ورکاوه، ابو لهب به ورپسې و او خلکو ته به يې ويل: د محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خبره ونه منئ، دا يو دروغجن او له خپل دين نه اوښتی شخص دی.[۳]

---

[۱] . في ظلال القرآن ۱۸۸/۲۹.

[2]. ابن هشام ۲۷۱/۱.

[3]. روي فعله هذا الترمذی عن يزيد بن رومان و... عن طارق عبدالله المجاري، ورواه الامام احمد في مسنده.

ددې هلو ځلو نتیجه دا شوه چې عربو د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د نبوت خبر له ځان سره خپلو ځایونو ته یوور، او پدې ترتیب سره د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نوم او د دعوت خبر په ټولو عربو کې خور شو.

## له اسلامي دعوت سره د مقابلې بیلابیل شکلونه

کله چې قریشو ولیدل محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په هیڅ ډول خپله لاره او بلنه نه پریږدي، نو یو ځل یې بیا سوچ وکړ او د اسلامي دعوت د له مینځه وړلو پخاطر یې لاندینۍ هلې ځلې او توطیې په کار واچولې:

١ـ تکذیب، ملنډې، خنداګانې، استهزاء او مسخرې – قریشو غوښتل پدې ډول سره او لدې لارې نه د مسلمانانو روحیات کمزوري، ارادې یې ماتې او د ذلت او سپکاوي معامله ورسره وکړي. نو همدا وه چې په رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پورې یې ډول ډول تورونه او تهمتونه وتړل، د هغه جناب (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په شان کې یې ډیره بې ادبي او ګستاخي کوله، کله به یې لیونی باله، قرآنکریم فرمایي:

((وَقَالُوا يَا أَيُّهَا الَّذِي نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ إِنَّكَ لَمَجْنُونٌ)) (الحجر: ٦) [او ویلې (دغو کفارو محمدته) اې هغه سړیه چې نازل کړی شویدی پر هغه باندې ذکر(قرآن ، پند) (په زعم د منکرینو) بیشګه ته خوا مخواه لیونی یې.] کله به یې د سحر او دروغو نسبت ورته کاوه، الله تعالی فرمایي: ((وَعَجِبُوا أَنْ جَاءَهُمْ مُنْذِرٌ مِنْهُمْ وَقَالَ الْكَافِرُونَ هَذَا سَاحِرٌ كَذَّابٌ)) (ص: ٤) [او تعجب کوي (کفار) له دې نه چې راغلی دی دوی ته (نبي) ویروونکی له دوی نه او وایي دا کافران چې دغه (ویروونکی نبي) ساحر کوډګر دی، دروغجن.] د قریشو کفارو به رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته په ډیره بده سترګه کتل، له حد نه زیاته کینه او عداوت یې ورسره درلود، تل به په دې هڅه کې وو چې په سترګو کې یې وخوري. الله تعالی داسې خبر راکوي:

((وَإِنْ يَكَادُ الَّذِينَ كَفَرُوا لَيُزْلِقُونَكَ بِأَبْصَارِهِمْ لَمَّا سَمِعُوا الذِّكْرَ وَيَقُولُونَ إِنَّهُ لَمَجْنُونٌ)) (القلم: ٥١)

[او بیشکه نژدې وو هغه کسان چې کافران شویدي خوامخواه وبه ښویوي تا (وبه دې غورځوي پر ځمکه) پخپلو سترګو سره هر کله چې واوریده دوی قرآن (ستا له ژبې) او

وايي دوی (د کيني له مخې) بيشکه دغه (محمد) ليونی دی.]
رسول کريم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به چې کله له خپلو اصحابو (رضي الله عنهم) سره ناست و، قريشو به له استهزاء نه په ډکه لهجه سره ويل: وګورئ دا دده ملګري دي!! قرآنکريم فرمايي: ((...أَهَؤُلاء مَنَّ اللَّهُ عَلَيْهِمْ مِنْ بَيْنِنَا)) (الأنعام: ٥٣). [آيا هم دا (خواران) فضل کړيدی الله پردوی په منځ زمونږ کې (په هدايت سره).] الله تعالی ددې په ځواب کې فرمايي: ((أَلَيْسَ اللَّهُ بِأَعْلَمَ بِالشَّاكِرِينَ)) (الأنعام: ٥٣) [آيا نه دی الله ښه عالم په شکر کوونکو (په نعمت د اسلام بلکه دی، نو ځکه تفضلا احسان پرې کوي).]
قرآنکريم د مشرکينو دا کيفيت او حالت په ګوته کوي فرمايي: ((إِنَّ الَّذِينَ أَجْرَمُوا كَانُوا مِنْ الَّذِينَ آمَنُوا يَضْحَكُونَ (٢٩) وَإِذَا مَرُّوا بِهِمْ يَتَغَامَزُونَ (٣٠) وَإِذَا انقَلَبُوا إِلَى أَهْلِهِمْ انقَلَبُوا فَكِهِينَ (٣١) وَإِذَا رَأَوْهُمْ قَالُوا إِنَّ هَؤُلاء لَضَالُّونَ (٣٢) وَمَا أُرْسِلُوا عَلَيْهِمْ حَافِظِينَ)).(المطففين: ٢٩- ٣٣). [بيشکه هغه کسان چې کافران شويدي، وو دوی په هغو کسانو باندې چې ايمان يې راوړی و خندل به يې، او مسخرې به يې پرې کولې) او کله چې تيريږي منکران پر مومنانو باندې هغوی ته پخپلو منځونو کې سره سترګکونه وهي (لپاره د استهزاء) او کله چې وګرځي خپلو کورونو ته (نو) ګرځي دوی خوشاله (خبرې جوړوونکي په سبب د تمسخر او استهزاء پر مومنانو باندې) کله چې وبه ليدل (کفارو) دغه (مومنان) نو ويل به يې پخپل منځ کې چې بيشکه دغه (مومنان) خامخواه بې لارې دي حال دا چې ندي ليږل شوي (کافران) پردغو (مومنانو) باندې ساتونکي څارونکي.]
٢- شکوک: د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ذات، شخصيت او هداياتو په خلاف د بې اساسه شکوکو او شبهاتو راولاړول، او د هغه په خلاف دروغ او دومره زيات پروپاګند په کار اچول چې عوام خلک هيڅ ددې فرصت ونه مومي چې د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د دعوت او رسالت په هکله غور، تفکر او تامل وکړي. مشرکانو چې د قرآنکريم په هکله څه عقيده درلوده الله تعالی هغه داسې بيانوي:
((وَقَالُوا أَسَاطِيرُ الأَوَّلِينَ اكْتَتَبَهَا فَهِيَ تُمْلَى عَلَيْهِ بُكْرَةً وَأَصِيلاً)) (الفرقان:٥). [او وايي (کفار) دا کيسې دي د ړومبنيو خلکو چې ليکلې دي هغه (محمد) پر ليکونکو پس هغه لوستل کيږي په ده سهار او ماښام.] ((إِنْ هَذَا إِلاَّ إِفْكٌ افْتَرَاهُ وَأَعَانَهُ عَلَيْهِ

قَوْمٌ آخَرُونَ)) (الفرقان:٤)مشرکینو به دا هم ویل: ((إِنَّمَا يُعَلِّمُهُ بَشَرٌ)) (النحل: ١٠٣)
[بیشکه همدا خبره ده چې ښوونه کوي ورته انسان.]
د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په هکله به یې د اعتراض په توګه دا هم ویل: ((وَقَالُوا مَالِ هَذَا الرَّسُولِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِي فِي الأَسْوَاق))(النحل:٧).
[او وایي (کفار) چې څه دی دغه رسول ته چې خوري طعام او ګرځي په بازارونو کې (لکه نور خلک د پاره طلب د معاش).]
قرآنکریم ځای ځای د مشرکینو دې ډول پروپاګند، ناروا تبلیغاتو او له دښمنۍ نه ډک او بې اساسه انتقاداتو ته اشاره کړې او د هغې ځواب یې ویلی دی.

٣_ د پخوانیو کیسو په بیان سره د قرآنکریم مقابله، او په همدې کیسو سره له قرآنکریم نه د خلکو لیرې ساتل. ویل کیږي چې نضر بن حارث یو ځل قریشو ته وویل: اې قریشو! قسم په خدای چې تاسې له یوې داسې پیښې سره مخامخ شوي یاستئ چې تر اوسه پورې مو یې هیڅ بند او بست ندی کړی، محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یو داسې ځوان و، چې ستاسې په مینځ کې تر ټولو زیات منل شوی، ریښتونی او امین شخصیت و، تر څو په سرکې یې سپین ولګیدل، او دا نوی دین یې درته راوړ، نو بیا تاسې ساحر وباله، خو قسم په الله هغه ساحر ندی، ساحران خو مونږ لیدلي هغوی داسې نه وي، دا مو وویل چې هغه کاهن دی، قسم په خدای هغه کاهن هم ندی، ومو ویل چې شاعر دی قسم په الله، شاعر هم ندی، شعر او د شعر ډولونه خو مونږ پیژنو هغه داسې نه وي، دا مو وویل چې هغه لیونی دی، خو قسم په الله هغه لیونی هم ندی. اې قریشو، بیدار شئ، متوجه شئ تاسې له یوې ډیرې لویې پیښې سره مخ شوي یاستئ.
وروسته نضر بن حارث (حیره) ته لاړ او هلته یې د فارس د پاچایانو لکه رستم او اسفندیار کیسې او نکلونه زده کړل او بیرته راغی. او کله به چې رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په کوم مجلس کې وعظ او تبلیغ کاوه خلک به یې له الهي عذاب نه ویرول، نضر به ورپسې ورته او ویل به یې: قسم په خدای، محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له ما نه ښې او غوره خبرې نه شي کولی او شروع به یې وکړه خلکو ته به یې د رستم او اسنفدیار کیسې اورولې بیا به یې ویل: د محمد (صلی

الله عليه و اله و صحبه و سلم) خبرې زما له خبرو نه په څه غوره او ښې دي[1] ؟

له ابن عباس (رضي الله عنهما) نه په يوه روايت کې رانقل شوي چې نضر بن حارث يو شمير ډمې په بيه اخيستې وې، کله به چې خبر شو چې فلانی سړی د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خوا ته ميلان پيدا کړيدی، نو يوه ډمه به يې وړپسې کړه، ډمې به نوموړي سړي ته خوراک او څښاک برابراوه، خدمت به يې کاوه او سندرې به يې ورته ويلې تر څو به يې له اسلام سره د نوموړي اړيکې وشلولې، الله تعالی پدې هکله فرمايي:((وَمِنْ النَّاسِ مَنْ يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ))(لقمان:٦). [ځنې خلک داسې هم دي چې بيهوده او لهوه خبرې اخلي تر څو د الله له لارې نه خلک وړباندې بې لارې کړي.]

٤ ـ توطئې: قريشو د سازش او توطيې لاره هم نيولې وه، غوښتل يې د يوې سودا بازۍ په نتيجه کې اسلام او جاهليت سره ګډ کړي. پيشنهاد يې وکړ چې له څه نه به مونږ تير شو او له يو څه نه دې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تير شي. قرآنکريم دېته اشاره کوي او فرمايي: ((وَدُّوا لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُونَ)) (القلم:٩) [خوښوي دوی چې که ته نرمي کوې(له دوی سره) نو دوی به هم نرمي کوي (له تاسره).]

د ابن جرير او طبراني يو روايت دی چې وايي: مشرکينو رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته وړانديز وکړ چې يو کال ته زمونږ د خدايانو عبادت وکړه، او يو کال به مونږ ستا د خدای عبادت وکړو. خو د عبد بن حميد روايت وايي چې هغوی رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته وويل: که ته زمونږ خدايان ومنې نو مونږ به ستا د رب عبادت وکړو.[2]

ابن اسحاق وايي: يو ځل رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له بيت الله شريف نه طواف کاوه چې د قريشو مشران لکه الاسود بن المطلب بن اسد بن عبدالعزی، وليد بن مغيره او اميه بن خلف او عاص بن واثل السهمدي ورته راغلل او ورته ويې ويل: راځه ته زمونږ د خدايانو عبادت کوه، او مونږ به ستا د خدای عبادت کوو، پدې ډول به عبادت سره شريک کړو، که چېرته ستا معبود زمونږ له معبودانو نه غوره وي، نو مونږ به هم څه فايده کړې وي، او که زمونږ معبودان ستا له معبود نه غوره وي، نو بيا به تا هم څه ګټه کړې وي. د دوی دا پيشنهاد الله تعالی رد کړ او دا

[1]. ابن هشام ١/ ٢٢٩ – ٣٠٠- ٣٥٨. تفهيم القران ۴/ ٩،٨. مختصر سيره الرسول (صلی الله عليه وسلم) للشيخ عبدالله النجدی ص ١١٧، ١١٨.

[2]. تفهيم القران ۶/ ٥٠١- ٥٠٢

سورت يې را نازل کړ[1]:
((قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ (١) لا أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ (٢) وَلا أَنْتُمْ عَابِدُونَ مَا أَعْبُدُ (٣) وَلا أَنَا عَابِدٌ مَا عَبَدتُّمْ (٤) وَلا أَنْتُمْ عَابِدُونَ مَا أَعْبُدُ (٥) لَكُمْ دِينُكُمْ وَلِيَ دِينِ (٦)).
[ووايه (اې محمده! چې) اې کافرانو، نه کوم زه عبادت د هغه شي چې تاسې يې عبادت کوئ.....]
پدې ترتيب سره الله تعالى د دوی دا سازش هم له خاورو سره خاورې کړ، او په ډاګه سره يې اعلان وکړ چې د مشرکينو لاره له اسلام نه بيله او جدا ده. پدې هکله د روايتونو له اختلاف نه دا څرګنديږي چې کيدای شي مشرکينو څو ځله ددې سازش هڅې کړې وي.

## پر مسلمانانو باندې ظلمونه

د نبوت د څلورم کال په لومړيو کې قريشو د اسلامي دعوت د مخنيوي پخاطر پورته يادې شوې لارې چارې يوه په بله پسې په کار واچولې، څو مياشتې همداسې تيرې شوې، خوکله پوه شول چې نور دا هلې ځلې ناکامې دي، او نه شي کولی پدې سره د اسلامي دعوت مخه ونيسي، نو يو ځل بيا سره راغونډ شول او يوه پنځه ويشت کسيزه کميټه يې جوړه کړه مشر يې ابو لهب و. د کوميټې غړو له ډير غور او بحث وروسته فيصله وکړه چې نور بايد د محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم)، اسلام او اصحابو (رضي الله عنهم) په خلاف له زور، زياتي، وحشت او تيري نه کار واخيستل شي.[2]
هغوی دا فيصله وکړه او د فيصلې د پلي کولو لپاره يې متې راونغښتلې. مشرکينو په آسانۍ سره کولای شوي په اصحابو (رضي الله عنهم) خصوصاً په بې وسه کسانو هر ډول ظلم او زياتی وکړي، خو د رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په هکله هر چا دا جرات نه شوی کولی، ځکه هغه د داسې عظيم شخصيت درلودونکی و چې له دوستانو وړاندې دښمنانو ورته د قدر او احترام په سترګه کتل، او د هغه په وړاندې يوازې هغو کسانو بې ادبي او ګستاخي کولی شوی چې له عقل او حيا به بالکل خلاص وو. او ددې تر څنګ محمد (صلى الله عليه وسلم) د ابو طالب غوندې

[1]. ابن هشام ١/٣٢٢.
[2].رحمة للعالمين ١/٥٩ - ٦٠.

مهم سړي له تائيد او ملاتړ نه هم برخمن و، هغه ابو طالب چې د مکې سردار او د خلکو په مينځ کې د قدر او منزلت خاوند و. چا دا جرات نه شوی کولی چې هغه کم وشميري، تړون يې مات کړي او د کورنۍ پر غړو يې تجاوز وکړي. دې وضعې قريش څه اندېښمن کړي وو، او جرات يې ورنه سلب کړی وو، خو کله چې د هغوی زعامت او د دين په نامه تر لاسه شوې مشري د نوي اسلامي دعوت تر تهديد لاندې راغله، نور نو لکه ليونيان را پورته شول او د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په خلاف يې هم ظلمونه او تيري شروع کړل. پدې کار کې ابو لهب له هر چا نه وړاندې و، ومو کتل چې د بني هاشم په غونډه او د صفا په غونډۍ يې له رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره څه وکړل.

ځنې روايتونه وايي چې د صفا په غونډۍ وروسته له هغې چې رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپله بلنه واوروله، ابو لهب يوه تيږه واخيسته او غوښتل يې رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وربان‍دې وولي.[١] له بعثت نه مخکې د ابو لهب زامنو عتبه او عتيبه د رسول اکرم (صلی الله عليه وسلم) له لوڼو (رقيې او ام کلثوم رضي الله عنهما) سره ودونه کړي وو، خو له بعثت نه وروسته ابو لهب خپل زامن دېته اړ ايستل چې د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) لوڼو ته طلاق ورکړي.[٢]

هغه وخت د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دوهم زوی عبدالله وفات شو، ابو لهب له ډيرې خوشالۍ نه منډې کړې او خپلو ملګرو ته يې زيری ورکاوه چې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ابتر (ميراث) شو.[٣]

لکه مخکې مو چې وويل ابو لهب به د حج په دوران او بازارونو کې په رسول کريم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پسې روان وو او خبرې به يې ورتکذيبولې. طارق بن عبدالله محاربي وايي: ابو لهب نه يوازې دا چې د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خبرې به يې تکذيبولې بلکه هغه جناب به يې په تيږو هم ويشته او د بشريت د عظيم لارښود(صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مبارکې پوندې به يې په وينو رنګولې. [١]

د ابو لهب ښځې ام جميل اروی بنت حرب بن اميه چې د ابوسفيان خور وه، هم له

---

[١]. دا روايت ترمذي را نقل کړيدی.
[٢]. في ظلاق القران ٣٠/ ٢٨٢. تفهيم القران ٦/ ٥٢٢.
[٣]. تفهيم القران ٦/ ٤٩٠.
[1]. جامع الترمذي.

رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره د ابو لهب په شان عداوت او کينه درلوده، اغزي به يې راټولول او د شپې له مخې به يې د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په دروازه او لارو کې ورته شيندل. نوموړې ډير خرابه ژبه درلوده، د الله تعالی د رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په شان کې يې ډيره ګستاخي او بې شرمي کوله، تورونه او تهمتونه به يې ورپسې تړل، فتنې او فسادونه به يې جوړول، او همدا وجه ده چې قرآنکريم ورته حماله الحطب ويلي دي.

اروی چې کله واوريدل قرآنکريم ددې او د ميړه يې (ابو لهب) غندنه کړيده، نو پداسې حال کې جومات (مسجد الحرام) ته راغله چې يو موټی تيږې هم ورسره وې، رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او ابوبکر (رضي الله عنه) د کعبې شريفې خوا ته ناست وو. کله چې ورنژدې شوه نو الله تعالی يې په سترګو پرده ور واچوله او رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) يې نه ليده، ابوبکر (رضي الله عنه) ته يې وويل: ملګری دې چېرته دی؟ خبره شوې يم چې زما بدي يې بيان کړيده، قسم په خدای که مې وليد نو پدې تيږو به يې په ده خوله وولم! ګوره، زه يوه شاعره يم، بيا يې داسې وويل:

**مذمما عصينا – و أمره ابينا – و دينه قلينا**[۲]

موږ د مذمم (په بدو ياد شوي) نافرماني کړې، د هغه مو نده منلې او د هغه دين مو د نفرت او حقارت له مخې پريښی دی، دا خبره يې وکړه او ووتله.

وروسته ابوبکر (رضي الله عنه) وويل: يا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) آيا هغې ته ونه ليدلې؟ رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**ما رأتني، لقد أخذ الله ببصرها عني**). نه زه يې ونه ليدلم ځکه الله تعالی يې پر سترګو پرده واچوله[۳]. ابوبکر بزار دا کيسه رانقلوي او وايي: کله چې اروی راغله ابوبکر (رضي الله عنه) ته يې وويل: ستا ملګري زمونږ هجوه (بدي) ويلې ده. ابوبکر (رضي الله عنه) ځواب ورکړ، نه، قسم په الله هغه شعر نه وايي. ام جميل ورته وويل: ته مصدق يې خبره دې د منلو ده .

ابو لهب سره لدې چې د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تره هم و او

---

(2). زياتره مشرکينو به محمد (صلی الله علیه وسلم) د مذمم په نامه يادوه، د مذمم معنی د محمد د معنی بالکل مخالفه يعنی ضد ده.

(3). ابن هشام ۱/ ۳۳۵ – ۳۳۲.

ګاونډي هم، خو بيا يې هم دا ټول ظلمونه ترسره کول. د ابو لهب کور د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له کور سره بالکل جوخت، څنګ په څنګ و، نوموړي به لکه د نورو مشرکينو په شان رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته پخپل کورکې هم ضرر او اذيت رساوه. ابن اسحاق وايي: د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ګاونډيانو له جملې نه ابو لهب، حکم بن ابي العاص بن اميه، عقبه بن ابي معيط، عدي بن حمراء الثقفي، او ابن الاصداء الهذلي دومره شرير او خبيث وو چې رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې حتی پخپل کورکې هم له شره په امن نه و. دې شريرانو به په کور کې هم اذيت ورساوه، او لدې جملې نه يوازې حکم بن ابي العاص چې د اموي خليفه مروان پلار و په اسلام مشرف شوی نور ټول مشرک مړه شويدي! د هغوی د اذيت رسولو يوه طريقه دا وه چې کله به رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) لمونځ کاوه نو کوم يوه به يې د ميږې پريوان ورباندې وراچاوه، او يا به چې کله رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ديګ باندې کړی و، نو دوی به پريوان را واخيست او د ديګ پر سر به يې وراچاوه. بالاخره رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مجبور شو چې يوه پنايي جوړه کړي تر څو د لمانځه په وخت کې د دوی له شره په امن وي. او کله به چې نوموړو مشرکينو پريوان او يا کثافت ورباندې ورواچاوه، نو د الله تعالی رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به په يوه لرګي سره را پورته کړ، په دروازه کې به ودريد او فرمايل به يې: اې بني عبدمناف! دا څه ډول ګاونډيتوب دی؟ بيا به يې پريوان ايسته واچاوه.[1]

عقبه بن ابي معيط پدې خباثت کې نور هم وړاندې تللی وو. بخاري شريف له عبدالله بن مسعود (رضي الله عنه) نه روايت کوي چې: يو ځل رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د کعبې شريفې خوا ته لمونځ کاوه، ابو جهل او ډله يې ناست وو، کوم يوه يې وويل: څوک به د بني فلان د اوښ لرې او کولمې راوړي او کله چې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په سجده ځملي دا شيان يې په شا ورواچوي؟ پدې وخت کې تر ټولو بدبخته او خبيث سړی (عقبه بن ابي معيط) پاڅيد هغه شيان يې راوړل او کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سر په سجده کيښود هغه شيان يې ورباندې ورواچول. ابن مسعود (رضي الله عنه) وايي: ما کتل خو هيڅ مې هم له لاسه نه و پوره، ويل مې کاشکې مرستندوی مې درلودی، ابو جهل او ډلې

[1]. ابن هشام ۴۱۲/۱

يې خندل او له ډيرې خوشالۍ او غرور نه يو پر بل ورکړيدل يوې خوا بلې خواته اوړيدل، رسول اكرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) همداسې سر په سجده پروت و تر څو فاطمه (رضي الله عنها) راغله او هغه شيان يې ورنه ايسته كړل. رسول اكرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) سر را اوچت كړ او درې ځله يې وفرمايل: ((**اللهم عليك بقريش**)) اې خدايه! له قريشو سره پوه شې، چاره يې وروكړې. په مشركينو هم د رسول اكرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) دې دعا اثر وكړ او ډيره سخته ورباندې تمامه شوه ځكه هغوى داسې باور درلود چې دلته دعاګانې قبليږي. رسول اكرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) بيا وفرمايل: (**اللهم عليك بأبي جهل، وعليك بعتبة بن ربيعة، وشيبة بن ربيعة، والوليد بن عتبة، وأمية بن خلف، وعقبة بن أبي معيط**) اې خدايه! ته د ابو جهل، عتبه بن ربيعه، شيبه بن ربيعه، وليد بن عتبه، اميه بن خلف او عقبه بن ابي معيط چاره ور وركړې. ابن مسعود(رضي الله عنه) وايي اووم نوم يې هم ياد كړ خو زما په ياد ندى. ابن مسعود بيا وايي: قسم په خداى دا ټول كسان چې رسول اكرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې نومونه واخيستل د بدر په ورځ مې وليدل چې ټول مړه او مردار پراته او په كنده كې غورځيدلي وو[1].

اميه بن خلف به چې كله رسول اكرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) وليد نو استهزاء به يې وړپورې كوله، اشارې او سترګكونه به يې كول، نو د ده په هكله الله تعالى دا آيت را نازل كړ: ((وَيْلٌ لِكُلِّ هُمَزَةٍ لُمَزَةٍ) (الهمزة:۱)

ابن هشام وايي: ((همزه)) هغه سړي ته ويل كيږي چې په ښكاره سره بل سړى كنځي، په سترګكونو او اشارو سره ملنډې ورباندې وهي، او ((لمزه)) هغه ته وايي چې په پټه سره د خلكو بد وايي او اذيت ورسوي.[2]

د اميه ورور ابي بن خلف د عقبه بن ابي معيط ډير نژدې ملګرى و، يو ځل عقبه د رسول اكرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په حضور كې كيناست او څه خبرې يې ورنه واوريدې، خو كله چې ابي بن خلف ورباندې خبر شو، نو عقبه يې ډير بې زړه وباله، زيات يې تهديد كړ، او غوښتنه يې ورنه وكړه چې لاړ شي او رسول اكرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ورتف كړي. هغه خبيث هم همداسې وكړل، او ده

---

[1]. صحيح البخاري، كتاب الوضوء ،باب اذا القي علي المصلي فذر او جيفة. ۳۷/۱.
[2]. ابن هشام ۱/ ۳۵۲ – ۳۵۷.

پخپله يعني ابي بن خلف يو وروست شوى هډوکی راواخيست، ميده يې کړ او د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په طرف يې ور پوکړ.[۱]

اخنس بن شريق الثقفي به هم رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته زيات تکليف او اذيت رساوه. قرآنکريم د نوموړي نهه هغه ناوړه صفتونه کړيدي چې دده حقيقي بڼه لوڅوي او فرمايي: (وَلا تُطِعْ كُلَّ حَلاَّفٍ مَهِينٍ (۱۰) هَمَّازٍ مَشَّاءٍ بِنَمِيمٍ (۱۱) مَنَّاعٍ لِلْخَيْرِ مُعْتَدٍ أَثِيمٍ (۱۲) عُتُلٍّ بَعْدَ ذَلِكَ زَنِيمٍ)) (القلم: ۱۰- ۱۳) [نو ته خبره مه منه د هر ډير قسم خوړونکي سپک عجيب ويونکي، تلونکي په چغلۍ سره، منع کوونکي د خير، له حده تيريدونکي (په ظلم کې) ډير ګنهګار بدخوی، سخت ويونکي، وروسته له دې ټولو عيبو حرام زاده.]

ابو جهل به کله نا کله د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په حضور کې حاضريده او قرآنکريم به يې ورنه اوريده، خو ايمان به يې نه راوړ، نه به يې اطاعت کاوه، او نه به يې په زړه کې خوف او ويره پيدا کيدله، بلکه رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته به يې هر ډول زيان او تکليف رساوه، خلک به يې د خدای له دين څخه منع کول، او بيا به يې پخپل دې باطل او ناروا کار فخر او وياړ هم کاوه. قرآنکريم دده (ابوجهل) په هکله فرمايي:

(فَلا صَدَّقَ وَلا صَلَّى) (القيامة:۳۱)[۲] [بيا يې يقين ونکړ (په مومن باندې) او نه يې لمونځ وکړ.]

ابو جهل به تل ددې کوښښ کاوه چې رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له لمانځه نه منع کړي، يوه ورځ يې رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وليد چې له مقام ابراهيم ( عليه السلام) سره لمونځ کوي نو ورته ويې ويل: اې محمده! (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) آيا ته مې لدې کاره نه يې منع کړی؟ لدې سره يې اخطارونه او تهديدونه هم شروع کړل. رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) هم وربانديې په غوصه شو او کلک ځواب يې ورکړ، نو ده ورته وويل: اې محمده (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په څه مې ويروې؟ پدې منطقه کې هيڅوک هم له ما نه زيات زور او ځواک نلري. پدې پسې الله تعالی دا آيت را نازل کړ: (فَلْيَدْعُ نَادِيَه) (العلق:۱۷) [۱] [پس را ودې بولي اهل د مجلس خپل.]

---

[۱]. ابن هشام ۱/ ۳۲۱ - ۳۲۲.

[۲]. في ظلال القران ۲۹ / ۲۱۲.

[1]. في ظلال القرآن ۲۰۸/۳۰.

په بل روايت کې راځي چې رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ابو جهل تر غاړه راونيو او خو ځاوه را خوځاوه يې او ورته فرمايل يې: (({أَوْلَى لَكَ فَأَوْلَى (٣٤) ثُمَّ أَوْلَى لَكَ فَأَوْلَى})) (القيامة: ٣٤-٣٥) [ورې ده تا ته (اې کافر انسانه! هغه شی (چې بد يې بولې سختي د مرک) پس ورې ده (هغه شی چې بد يې بولې چې سختي د قبر ده) بياورې ده تا لره هغه شی چې بد يې بولې (چې سختي د ورځې د قيامت ده) پس ورې ده (تا لره هغه شی چې بد يې بولې چې هميشه عذابيدل ستا په دوزخ کې).

دلته د خدای دښمن (ابوجهل) ورته وويل: اې محمده! (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) آيا ته ما ويروې؟ قسم په خدای چې ته او ستا رب زما هيڅ هم نه شي کولئ، زه ددې سيمې تر ټولو غوره او عزيز اوسيدونکی يم.[۲]

په هر ترتيب ابو جهل له خپل رذالت او خباثت نه لاس وانخيست، بلکه لا پسې بدبخت شو. مسلم شريف له ابو هريره (رضي الله عنه) نه روايت کوي وايي: ابو جهل يو ځل د قريشو سردارانو ته وويل: آيا محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ستاسې په وړاندې خپل مخ په خاورو کې ږدي؟ دوی ورته وويل: هو، نو ده وويل: په لات او عزی قسم يادوم که ما هغه پداسې حال (سجده) کې وليد، نو په غاړه به يې پل ورکيږدم او مخ به يې په خاورو ولړم. بيا وروسته کله چې ابو جهل وليد رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) لمونځ ادا کوي هغه وروان شو او غوښتل يې چې پر مبارکه غاړه يې پل ورکيږدي، خو خلکو کتل چې بيرته په شا را روان دی او لاسونه يې داسې مخې ته نيولي چې ته به وايې له څه شي نه د ځان دفاع کوي، خلکو ورته وويل: ابو الحکمه! څه خبره ده؟ ده وويل: زما او محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تر منځ د اور يوه کنده ده، او هغه وزرې لرونکي! رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) فرمايي: (**لو دنا منی لاختطفته الملائكة عضوًا عضوًا**). [که چېرې ابو جهل ماته را نژدې شوی وای، نو ملائکو به ټوټه ټوټه کړی وای.][۳] دا هغه ظلمونه وو چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په حق کې ترسره کيدل، هغه رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) چې د ټولو په وړاندې عزيز او قدرمن و، او د ابو طالب چې د مکې ډير محترم او مخور شخصيت و تاييد او ملاتړ هم ورسره و، نو ويلی شو هغه ظلمونه چې مشرکانو په نورو اصحابو (رضي الله عنهم) خصوصا هغو

(2). في ظلال القرآن ٢٩ / ٣١٢.

(۳). رواه مسلم.

بې وزله او بې کسه کسانو باندې راوستلې ؤ لدې نه څو چنده سخت او دردوونکې وو. د هرې قبیلې مشرکانو به د خپلې قبیلې مسلمان غړي په ډول ډول عذابونو تعذیبول، او که څوک داسې مسلمان به پیدا شو چې دلته به یې خپل خپلوان نه درلودل بې کسه او بې وطنه به و، نو د قریشو سردارانو به داسې ظلمونه ورباندې کول چې وجدان یې له یاد نه شرمیږي.

ابو جهل به چې خبر شو فلانی سړی مسلمان شویدی، نو که هغه به د مقام او شرف خاوند و د تهدید او اخطار لاره به یې ورسره نیوله، او پدې به یې ویراوه که له اسلام نه وانه وړي نو د ځاني او مالي زیان انتظار دې باسي، او که به دا نوی مسلمان کمزوری او بې وسه و، نو بیا به یې تر متروکو لاندې نیوه او واهه به یې، او د وهلو ټکولو له لاری به یې د هغه د بې لارۍ او ارتداد کوښښ او هڅې کولې[۱]. او همدا راز نور خلک به یې هم د هغه په خلاف را پاڅول.

د حضرت عثمان بن عفان (رضي الله عنه) تره به هغه د کجورو په پوزي کې نغښت او بیا به یې له لاندې نه دویه ور پسې لګوله دودونه (لوګي) به یې ورته جوړول.[۲]

د مصعب بن عمیر (رضي الله عنه) مور چې کله د خپل زوی له اسلام راوړلو نه خبریږي، نو خپل هغه نازولی او په نعمتونو کې پټ زوی له کوره شړي او دومره لوږه او تنده ورباندې راولي چې هغه نرمه څرمن یې وچېږي، درز، درز چوي، او بدن یې لکه د مار په شان پتوکي (پوستکي) اچوي.[۳]

بلال بن رباح (رضي الله عنه) چې د امیه بن خلف الجمحي غلام و کله چې په اسلام مشرف شو، نو امیه بن خلف به یې په غاړه کې پړی وراچاوه او هلکانو ته به یې په لاس ورکړ چې د مکې په غرونو کې یې تاو راتاو کړي. پړي به یې غاړه ووهله، امیه به په ډیر شدت سره راکاږه او په لرګي به یې واهه، سره لمرته به یې کیناوه، سخته لوږه به یې ورباندې راوستله، او په ټکنده غرمه کې به یې په سرو شګو کې څملاوه او په سینه به یې لویه تیږه ورایښودله او ورته ویل به یې: قسم په الله چې همداسې به پروت وې تر څو یا ومرې اویا په محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) باندې کافرشې او د لات او عزی عبادت وکړې خو بلال (رضي الله عنه) به په همدې سخت حالت کې ویل: احد ، احد (الله یو دی، الله یو دی) تر څو یوه ورځ ابوبکر (رضي الله عنه) تیریده او بلال (رضي الله عنه) یې په همدې حالت کې ولید ، نو یې هغه په یوه تور غلام، او

---

(1). ابن هشام ۱/ ۳۲۰.

(2). رحمة للعالمین ۱/ ۵۷.

(3). رحمة للعالمین ۱/ ۵۸. تلقیح فهوم اهل الاثر ص ۲۰.

په بل روایت د سپینو زرو په اوو یا پنځو اوقیو یعنې دوه سوه اتیا درهمه چې له یو کیلو نه زیات سپین زر کیږي او په بل روایت په دوه سوه درهمه چې (**۷۳۵**) ګرامه سپین زر کیږي، ورنه واخیست او آزاد یې کړ.[۱]

عمار بن یاسر (رضي الله عنهما) چې د بني مخزوم غلام و، ده، مور او پلاریې چې کله ایمان راوړ، نو مشرکانو خصوصاً ابو جهل به هغوی په تکنده غرمه کې له کوره ایستل او په سرو شګو به یې تعذیبول. یوه ورځ رسول کریم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تیریده او دوی هملته په عذاب او ځور کې وو، نو د الله رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: ((**صبرا آل یاسر! فإن موعدکم الجنة**)) اې د یاسر اولادې صبر کوئ، ستاسې ځای جنت دی. یاسر د همدې تعذیبونو په نتیجه کې مړ شو، سمیه (د عمار مور) هم د ابو جهل له خوا په فرج کې په نیزه ووهل شوه او په شهادت ورسیده، پدې ترتیب سره نوموړې د اسلام لومړنۍ شهیده شمیرل کیږي. په عمار یې تکلیفونه او عذابونه نور هم زیات کړل، کله به یې سره لمر ته دراوه، او کله به یې پر سینه سرې تیږې وراینبودلې او کله به یې په اوبو کې اچاوه او ورته ویل به یې تر هغې دې نه پریږدو تر څو محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته بد ونه وایې، او د لات او عزی ستاینه او په غوره والي یې اعتراف ونکړې! عمار (رضي الله عنه) مجبور شو چې په خوله دا ورسره ومني، خو وروسته په ژړا د رسول کریم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راغی او عذرونه یې ورته وړاندې کول، نو الله تعالی دا آیت شریف را نازل کړ.[۲]

((**مَنْ كَفَرَ بِاللَّهِ مِنْ بَعْدِ إِيمَانِهِ إِلاَّ مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالإِيمَانِ...**)) (النحل: ۱۰۶)

[هر څوک چې کافر شو پر الله وروسته له ایمان راوړلو (نو پرې غضب دی د الله) مګر هغه څوک چې زور پرې وکړی شو (او مجبوراً یې د کفر کلمه وویله) حال دا چې زړه دده آرام نیوونکی دی په ایمان سره.]

ابو فکیهه چې نوم یې افلح و د بني عبدالدار غلام و، هغوی به یې پښه په رسۍ تړله او بیا به یې په ځمکه راکشاوه.[۱]

---

[1]. رحمة للعالمین ۱/ **۵۷**. تلقیح الفهوم ص ۲۱. ابن هشام ۱/ ۳۱۷ – ۳۱۸.

(2). ابن هشام ۳۱۹/۱ – ۳۲۰، فقه السیرة لمحمد الغزالي ص ۸۲، همدا راز عوفي هم له ابن عباس نه ددې یوه برخه روایت کړیده. د الشیخ عبدالله مختصر السیرةص (**۵۳**) ته مراجعه وکړه.

[1]. رحمة للعالمین **۵۷/۱**. من اعجاز التنزیل ص **۵۳**.

خباب بن الارت چې د انمار بنت سباع الخزاعیه غلام و هم د مشرکینو له خوا په ډول ډول ربړونو ربړولی شویدی، د سر له ویښتانو به یې رانیوه او راکشاوه به یې، ورمیږ به یې ورتاواوه ډیر ځله به یې په سرو سکروټو څملاوه او د پاسه به یې تیږې وربانديې ایښودلې چې راپورته نه شي.[۲]

زنیره، نهدیه او لور یې او ام عبیس هغه وینځې وې چې اسلام یې راوړی و، او د اسلام پخاطر یې د مشرکینو له خوا ډیر زیات تکلیفونه او ربړونه ګاللي دي. د بني عدي قبیلې د بني مومل کورنۍ یوې وینځې اسلام راوړ، نو عمر (رضي الله عنه) چې هغه وخت مشرک و همغه وینځه تر هغې ووهله چې ښه ستړی شو او ویې ویل: که ستړی شوی نه وای، نو وهله به مې پسې[۳]. بیا ابوبکر صدیق (رضي الله عنه) دغه وینځې واخیستلې او آزادې یې کړې، لکه څرنګه یې چې بلال او عامر بن فهیره اخستي او آزاد کړي وو.[۴]

مشرکینو به ځینې اصحاب (رضي الله عنهم) د اوښ او یا غوایه په څرمنه کې نغښتل او بیا به یې سره لمر ته اچول، ځینې نورو ته به یې د اوسپنې زغرې وراغوستې او پر سرو تیږو به یې څملول.[۵]

هغه کسان چې د الله تعالی په لار کې ربړیدلي او ځوریدلي ډیر دي، خو په لنډه توګه دا ویلی شو هر چا به چې ایمان راوړ که مشرکان به وربانديې خبر شول، نو په ارام به یې نه پریښود او ډیر عذابونه به یې وربانديې راوستل.

## دارالارقم (د ارقم کور)

د مشرکینو ددې شکنجو او فشارونو په مقابل کې د حکمت تقاضا او غوښتنه دا وه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپلو اصحابو (رضي الله عنهم) ته هدایت ورکړي خپل اسلام پټ وساتي. همدا راز له هغوی سره خپل لیده کاته هم په پټه تر سره کړي، ځکه هغه پدې پوهیده که چېرې په ښکاره توګه سره غونډ شي نو

[۲]. نفس المصدر ۵۷/۱. تلقیح فهوم اهل الاثر ص ۶۰.

[۳]. رحمة للعالمین ۵۷/۱، ابن هشام ۳۱۹/۱

[۴]. ابن هشام ۳۱۸/۱ - ۳۱۹.

[۵]. رحمة للعالمین ۵۸/۱.

مشرکان به مخالفت کوي او پرې به نږدې چې د الله رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپل اصحاب وروزي، د الله کتاب او حکم ورزده کړي.
او دا هم کیدای شوای چې دا ښکاره غونډې د دواړو ډلو تر منځ د تصادم او ټکر سبب شوی وای، لکه څرنګه چې د نبوت په څلورم کال همداسې یوه پیښنه وشوه. پیښنه داسې وه چې اصحاب (رضي الله عنهم) به په یوه خوړ کې سره راټولیدل او هلته به یې په پټه لمونځونه کول، یوه ورځ مشرکینو ولیدل نو بد رد یې ورته وویل او بالاخره یې ترمنځ جګړه ونښته، سعد بن ابي وقاص (رضي الله عنه) یو سړی وواهه او وینې یې پرې راماتې کړې او دا په اسلامي تاریخ کې لومړی پیښنه وه چې وینې پکې تویې شوې.[1]
څرګنده ده که چیرې دغه ډول ټکرونه په پرله پسې او مکرر ډول پیښ شوي وای نو دا به حتماً د مسلمانانو د ورکې او تباهی سبب کیدل. نو د حکمت غوښتنه دا وه چې اصحاب (رضي الله عنهم) خپل اسلام، عبادت، دعوت او غونډې پټې وساتي.
خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به پخپله عبادت په ډاګه تر سره کاوه، او خپل دعوت به یې هم په ښکاره توګه مشرکینو ته اعلانوه، کـه څه هم له اصحابو (رضي الله عنهم) سره به یې لیده کاته په پټه و، او دا هم د اسلام او مسلمانانو د مصلحت پخاطر.
او څرنګه چې د ارقم بن ارقم المخزومي کور د صفا پر غونډۍ او د مشرکینو له نظر نه ګوښه پروت و، نو رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) همدغه ځای له مسلمانانو سره د غونډو لپاره مناسب وباله او د نبوت له پنځم کال نه یې همدا کور د خپل دعوت مرکز وټاکه.[2]

## حبشې ته لومړنی هجرت

په مسلمانانو باندې د مشرکینو ظلمونه د نبوت د څلورم کال په منځنی او یا آخرینی برخه کې پیل شول، دغه ظلمونه په لومړي سر کې لږ خو ورځ په ورځ مخ په زیاتیدو وو تر څو چې د پنځم کال په نیمايي کې خپل اوج ته ورسیدل. مسلمانان دومره په تنګ شول چې نور یې په مکه کې تیکان نه شوی کولی، او پدې فکر کې وو چې لدې عذاب

---

(1). ابن هشام ۱/ ۲۲۳. مختصر سيرة الرسول لمحمد بن عبدالوهاب ص ۲۰.
(2). نفس الصدر الاخير ص ۲۱.

نه څه ډول ځانونه خلاص کړي. په همدې سختو شپو او ورځو کې د کهف سورت رانازل شو، دې سورت د مشرکینو هغه پوښتنې ځواب کړې چې له رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه یې کړې وې، خو ددې تر څنګ یې دری داسې کیسې هم بیان کړې چې په هره یوه کې د مسلمانانو لپاره ښکاره هدایات او لارښوونې دي. د اصحاب الکهف کیسه دا په ګوته کوي چې کله مسلمانان د دین له پلوه له خطر سره مخ شي نو باید په الله باندې په توکل سره د کفر او ظلم له مرکز نه د امن ځای ته هجرت وکړي، الله تعالی فرمایي:

((وَإِذْ اعْتَزَلْتُمُوهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ إِلاَّ اللَّهَ فَأْوُوا إِلَى الْكَهْفِ يَنشُرْ لَكُمْ رَبُّكُمْ مِنْ رَحْمَتِهِ وَيُهَيِّئْ لَكُمْ مِنْ أَمْرِكُمْ مِرفَقاً)) ( الکهف: ١٦) [او کله چې په تنګ شوئ تاسې له دغو مشرکانو او له هغو (بتانو) چې عبادت یې کوي دوی بې له الله نه، نو ځای ونیسئ هغه غارته (او دیره شئ پکې) خپور به کړي تاسې ته رب د تاسې له رحمته خپل او تیار به کړي تاسې ته له کار ستاسې اسباب د ګزران (او خوشالی).]

د حضرت خضر او موسی (علیه السلام) کیسه دا ښیي چې د حالاتو او واقعاتو نتیجه او پای تل داسې نه وي لکه څرنګه چې په ظاهره معلومیږي، بلکه ډیر ځله داسې کیږي چې د پیښو او حالاتو نتیجه د ظاهري شکل بالکل مخالفه او بر عکس وي، او دا دې ته اشاره کوي چې دا د مسلمانانو او مشرکینو ترمنځ پیل شوې جګړه به بالکل د اوسنۍ ظاهري بڼې په خلاف وي، پدې معنی چې همدا مشرکین او ظالمان به چې اوس یې د مسلمانانو په خلاف جګړه پیل کړې، که چیرې اسلام را نه وړي، حتماً به د همدې مظلومو مسلمانانو په وړاندې له ماتې او رسوایۍ سره مخ کیږي.

د ذوالقرنین کیسه دا ثابتوي چې ځمکه د الله تعالی ده هر چا ته چې وغواړي همغه ته یې په میراث ورکوي، او همدا راز دا په ګوته کوي چې برې او نیکبختي په ایمان کې ده، نه په کفر کې، او بله دا چې الله تعالی همیشه د خپلو مظلومو بندګانو د مرستې او د زمانې د یاجوج او ماجوج له شرنه د هغوی د نجات لپاره خپل څنې بندګان رالیږي. دا کیسه دا هم ښیي چې د ځمکې د واکدارۍ تر ټولو مستحق خلک د الله تعالی صالح بندګان دي.

پدې پسې بیا د ((الزمر)) سورت را نازل شول، دا سورت د هجرت پلوته اشاره کوي او دا اعلانوي چې د الله تعالی ځمکه ډیره پراخه ده، قرآنکریم فرمایي: ((لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا فِي هَذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ وَأَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةٌ إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ)) (الزمر: ١٠). [شته هغوکسانو ته چې نیکي یې کړیده په دغه دنیا کې (په طاعت سره)

نيکي (په آخرت کې چې جنت او رضوان دی) او ځمکه د الله ارته ده، بيشکه همدا خبره ده پوره ورکولی شي صابرانو ته اجر (ثواب) د دوی بې حسابه (ډير زيات).]
رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خبر و چې د حبشې پاچا اصحمه (النجاشي) يو عادل سړی دی، او په پاچاهۍ کې يې ظلم او زياتی نشته، نو يې مسلمانانو ته امر وکړ چې حبشې ته هجرت وکړي.
پدې ترتيب سره د نبوت په پنځم کال د رجب په مياشت کې د اصحابو (رضي الله عنهم) لومړنۍ ډلې چې دوولس سړي او څلور ښځې پکې وې د عثمان بن عفان (رضي الله عنه) تر مشرۍ لاندې حبشې ته هجرت وکړ. له عثمان (رضي الله عنه) سره يې بي بي چې د رسول کريم (صلی الله عليه وسلم) لور وه او حضرت رقيه (رضي الله عنها) نوميدله هم ملګرې وه. رسول اکرم (صلی الله عليه وسلم) ددې دواړو په هکله فرمايلي:
((**إنهما أول بيت هاجر في سبيل الله بعد إبراهيم و لوط (عليهما السلام)**))[1].
يعنی: له ابراهيم او لوط (عليهما السلام) وروسته دوی دواړه (عثمان او رقيه رضي الله عنهما) لومړنۍ کورنۍ ده چې د الله په لاره کې هجرت کوي.
نوموړي مهاجرين ددې پخاطر چې قريش ورباندې خبر نشي د شپې په تياره کې په پټه سره له مکې نه ووتل او د الشعيبه نومې بندرګاه په لور لاړل، هلته ورته خدای دوې تجارتی کښتۍ برابرې کړې او حبشې ته يې يووړل. قريش چې ورباندې خبر شول ورپسې ووتل، خو هغه وخت بندر ته ورسيدل چې هغوی مخکې په خير او سلامتۍ سره تللي وو. پدې ډول سره نوموړي مسلمانان حبشې ته لاړل او هلته يې د امن ژوند پيل کړ.[2]
د همدې کال د رمضان په مياشت کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حرم ته لاړ، چېرته چې د قريشو يو زيات شمير مشران او لويان موجود وو، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پاڅيد او په ناڅاپي توګه يې د (النجم) سورت تلاوت کړ، پداسې حال کې چې دې کفارو مخکې لدينه د الله تعالی کلام نه و اوريدلی، ځکه د هغوی اسلوب او لاره داسې وه چې قرآنکريم ته به يې غوږ نه نيوه، او يو بل ته به يې توصيه کوله چې د الله تعالی کلام وانه وري، قرآنکريم د دوی دې کارته اشاره کوي او فرمايي: ((**وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لا تَسْمَعُوا لِهَذَا الْقُرْآنِ وَالْغَوْا فِيهِ**

[1]. مختصر سيرة الرسول للشيخ عبدالله النجدي ص ۹۲ - ۹۳. زاد المعاد ۱/ ۲۴. رحمة للعالمين ۱/ ۲۱.
(2). رحمة للعالمين ۲۱/۱. زاد المعاد ۲۴/۱.

**لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُونَ**)) ( فصلت: ۲٦) [او وايي هغه کسان چې کافران شويدي (په وخت د قرائت (د قرآن) چې مه اورئ دغه قرآن (چې محمد يې لولي) او شور ما شور واچوئ (په وخت د لوستلو د) ده کې ښايي چې تاسې غالب شئ (پرې اوله تبليغه يې ساکت کړئ).]

خو دلته چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د قرآنکريم دا سورت ورته تلاوت کړ، او د الله تعالی هغه اوچت، ښکلی او عظيم کلام يې ور واوراوه چې انساني ذهن او ژبه يې له بيان نه عاجز دي، نو د مشرکينو حالت يو ځل بدل شو، پخواني وصيتونه يې هير کړل، ټولو په ډير دقت قرآن کريم اوريدو، يوازې همدې ته غوږ وو، نور هر څه ورنه هير شول، تر دې چې ددې سورت وروستي آيتونه يې ورته تلاوت کړل هغه چې لهجه يې دومره تنده او سخته ده چې زړونه ويلې کوي، او کله يې چې دا آيت ((**فَاسْجُدُوا لِلَّهِ وَاعْبُدُوا**)) (النجم: ٦۲) [پس سجده کوئ تاسې (خاص) الله ته او عبادت کوئ د هم دغه (الله (جل جلاله) نه د نورو)] تلاوت کړ او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سجده وکړه، نو يو ځل ټول په سجده پريوتل، ځکه د حق قوت د هغوی عناد، کبر او باطل له مينځه يووړ او ټول د خدای په وړاندې سر په سجده شول.[1] خو کله چې متوجه شول چې د الله تعالی کلام د هغوی حالت بدل کړی، او هغه څه يې پخپله وکړل چې د له مينځه وړلو پخاطر يې خپل ټول توان په کار اچولی و، او ددې تر څنګ هغو مشرکينو چې پدې مجلس کې حاضر نه وو دغه سجده کوونکي مشرکين ډير ورټل، پړه او ملامتي يې ورباندې اچوله، نو له همدې ځايه وه چې هغوی په رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پورې دروغ وتړل او داسې افتراء يې جوړه کړه چې ګويا رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د هغوی د بتانو ستاينه وکړه او داسې يې وويل: ((**تلك الغرانيق العلی، و إن شفاعتهن لترتجی**)) [دا اوچت ديوان دي، چې د شفاعت هيله او اميد يې کيږی]. دوی دا دروغ او افتراء ددې پخاطر جوړ کړل تر څو خپله هغه سجده توجيه کړي چې له رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره يو ځای يې کړې وه او تر څو دا د هغې په هکله د عذر او دليل په توګه وړاندې کړي. او دا څه نوې او عجيبه خبره نه وه چې هغوی کړې وه

---

[1]. امام بخاري ددې سجدې کيسه په لنډه توګه له ابن مسعود او ابن عباس (رضي الله عنهم) نه روايت کړې. د معلوماتو لپاره د باب سجدة النجم او باب سجود المسلمين و المشرکين ۱/ ۱۴۲ او باب ما لقي النبي (صلی الله عليه وسلم) و اصحابه من المشرکين بمکة. ۱/ ۵۴۳ وګوره.

بلکه هغوی به تل همداسې دروغ او افتراګانې جوړولې.(۱)
دغه خبر په نیمګړې توګه په حبشه کې مهاجرینو ته ورسید، د پیښې له واقعیت او حقیقت نه پوره خبر نه وو، داسې یې واوریدل چې ګویا قریشو اسلام راوړی، نو د همدې کال د شوال په میاشت کې بیرته مکې ته راستانه شول، خو کله چې مکې ته را لنډ شول او د موضوع په حقیقت خبر شول نو ځنې یې بیرته حبشې ته ورګرځیدل، او نور یې یا په پټه توګه او یا د کوم چا په ضمانت او تړون مکې ته ننوتل.(۲)

## حبشې ته دوهم هجرت

وروسته قریشو په همدوی (له حبشې نه بیرته راغلیو) او ټولو مسلمانانو باندې خپل ظلمونه څو چنده کړل. مشرکینو دا هم نه شوای زغملای چې مسلمانان دې د نجاشي په پاچاهۍ کې د امن ژوند ولري، دا ډیره سخته ورباندې تمامیدله. او چې پر مسلمانانو یې ظلمونه زیات شول نو رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لازمه ولیده چې یو ځل بیا خپلو اصحابو (رضي الله عنهم) ته حبشې ته د هجرت امر وکړي، خو دا دوهم هجرت مشکل و، ځکه قریش ورته بیدار او تیار وو کوښښ یې وکړ چې دا هجرت ناکام کړي، خو الله تعالی مسلمانانو ته لاره اواره کړه او د نجاشي وطن ته ورسیدل.
دا ځل مهاجرین دري اتیا (۸۳) سړي (که عمار هم ورسره وشمیرل شي، ځکه پدې هکله اختلاف دی چې آیا عمار هم ورسره واو که نه) اتلس (۱۸) یا (۱۹) نولس ښځې وې. (۳)
علامه محمد سلیمان منصور پوري لومړنۍ شمیره تاییدوي او په ټینګار سره وایي چې پدې هجرت کې د ښځو شمیره اتلس وه.[1]

## په حبشه کې د مهاجرینو په خلاف د قریشو توطئه

---

(۱). تفهیم القرآن ۵/ ۱۸۸. محدثین هم همدا توجیه تاییدوي.
(۲). نفس الصدر (تفهیم القران) ۱۸۸/۵. زاد المعاد ۲۴/۱، ۲/ ۴۴. ابن هشام ۳۲۴/۱.
(۳). زاد المعاد ۲۴/۱. رحمة للعالمین ۷۱/۱.
1. نفس المصدر الاخیر (رحمة للعالمین).

مشرکینو دا نشوای زغملای چې مسلمانان دې په امن ژوند وکړي، او هلته حبشه کې دې همداسې په امن پاتې شي، نو يې عمرو بن العاص او عبدالله بن ابي ربيعه چې دواړه ډير پوه او ځيرک سړي وو حبشي ته واستول. د نجاشي او د هغه د درباريانو لپاره يې ډيرې قيمتي تحفې هم ورکړې. نومړو د نجاشي درباريانو ته هغه تحفې وړاندې کړې او ټول هغه دلايل يې وروښوول چې بايد مسلمانان وربانديې وشړل شي.
او کله چې درباريان پدې راضي شول چې نجاشي ته به د مسلمانانو د شړلو مشوره ورکوي، نو دوی دواړه نجاشي ته وروړاندې شول، تحفې يې ورکړې او ورته ويې ويل:
اې پاچا! ستا وطن ته داسې څو کم عقله ځوانان راغلي دي، چې د خپل قوم دين يې پريښی او ستا دين يې هم ندی منلی، د ځان لپاره يې يو نوی دين غوره کړی، دا داسې يو دين دی چې نه يې مونږ پيژنو او نه تاسې، نو اوس د هغوی پلرونو، ترونو، خپلوانو او د قوم مشرانو مونږ تا ته راليږلي يو چې هغوی بيرته ورواستوی ( لدې ځای نه يې وباسې)، ځکه هغوی د دوی په احوال ښه خبر دي، د دوی عيبونه ښه ورته معلوم دي او پدې هکله يې ملامت کړي او رټلي هم دي.
درباريانو هم ورته وويل: زمونږ پاچا! دوی رښتيا وايي، هغوی (مهاجرين) دې دواړو ته وسپاره تر څو خپل وطن او قوم ته يې بوزي.
خو نجاشي وغوښتل چې د مسئلې په ټولو اړخونو ځان پوه کړي او له دواړو خواوو نه دلايل واوري. مسلمانان يې راوغوښتل، هغوی پدې اتفاق کړی و چې رښتيا به وايي نور که هر څه پيښ‌ېږي پيښ دې شي. او کله چې دربار ته راغلل، نجاشي ورته وويل:
دا کوم دين دی چې په هغه سره مو خپل قوم پرې ايښی، زما او يا لدې موجوده اديانو نه بل کوم دين مو هم ندی منلی؟
په ځواب کې جعفر بن ابي طالب (رضي الله عنه) د مسلمانانو په نمايندګۍ وويل: اې پاچا! مونږ د جاهليت په تيارو کې ژوند کاوه، د بتانو عبادت به مو کاوه او مردارې به مو خوړلې، فساد او فحشاء عموميت درلود د خپلوۍ اړيکې به مو شلولې، د ګاونډيتوب حقوق مو نه مراعاتول، د زور خاوندانو به د بې وزله خلکو وينې زبيښلې.
مونږ په همداسې يوه حالت کې وو چې الله تعالی زمونږ له مينځ نه رسول راته راواستاوه، داسې رسول چې مونږ يې د توحيد او د يوه خدای د عبادت په لور دعوت کړو، او دا يې راته وښوول چې د توحيد لاره غوره کړو، د تيږو او بتانو عبادت چې مونږ او زمونږ پلرونو به کاوه پرېږدو. نومړی (رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ) مونږ ته دا امر کړی چې رښتيا به وايو، امانت به ساتو، د خپلوۍ اړيکې به ټينګې او مضبوطه وو، له ګاونډيانو سره به نيکي کوو، له وينې تويولو او محارمو نه

به ځان ساتو. له هر ډول فساد او فحشاء، دروغو، د یتیم له مال خوړلو، په پاک لمنو ښځو پسې له تور او تهمت ویلو نه یې په کلکه منع کړي یو. او دا امر یې راته کړی چې یوازې د یوه الله عبادت به کوو، له هغه سره به شریک نه نیسو. د لمانځه او روژې امر یې راته کړی، او داسې نور اسلامي امور یې ورته یاد کړل زیاته یې کړه :

نو مونږ هم د هغه خبره ومنله او ایمان مو ورباندې راوړ، او هغه دین مو ومانه چې د الله تعالی له لوري نه یې راته راوړی دی. د یوه الله عبادت مو پیل کړ، هیڅ شریک نه ورسره نیسو، څه یې چې حرام کړي هغه حرام او څه یې چې روا بللي هغه روا شمیرو. او همدا وجه وه چې زمونږ قوم پر مونږ ظلمونه پیل کړل، ډیر یې وکړولو تر څو د الله تعالی له عبادت نه مو واړوي، او بیرته د بتانو عبادت پیل کړو او بیرته هماغه خباثت او جاهلیت ته وګرځو. هغوی په مونږ هر ډول ظلمونه وکړل، مونږ یې نه پریښودو چې خپل دیني شعائر ادا کړو، مونږ یې له خپل دین نه منعې کولو، نو مجبور شو چې خپل وطن پریږدو او ستا وطن ته راشو، مونږ ته غوره کړئ یې، او ستا ګاونډیتوب مو اختیار کړئ، او دا هیله لرو چې ستا په پاچاهۍ کې په مونږ ظلم ونشي.

نجاشي ورته وویل له هغه څه نه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د الله تعالی له لوري راوړي، څه شی درسره شته؟

جعفر (رضي الله عنه) ورته وویل: هو. نجاشي ورته وویل: نو راته ویې لوله. جعفر (رضي الله عنه) د (کهیعص) د پیل څو آیتونه ورته تلاوت کړل. نجاشي دومره وژړل چې ږیره یې لمده شوه، اساقفه (دیني عالمانو) هم د قرآنکریم په اوریدو سره وژړل. بیا نجاشي ورته وویل: قسم په خدای چې دا او هغه څه چې حضرت عیسی (علیه السلام) راوړي دواړه له یوې منبعې نه سر چینه اخلي. بیا یې عمرو بن العاص او عبدالله بن ابي ربیعه ته په خطاب سره وویل: چې لاړ شئ قسم په خدای چې دوی به تاسې ته ونه سپارم. نو هغوی دواړه له نجاشي نه راووتل. بیا عمرو بن العاص خپل ملګري عبدالله بن ابي ربیعه ته وویل: سبا به زه ورسره ګورم، داسې کار به پرې وکړم چې دوی به هم حیران شي بیخې به یې ورباندې ورک کړم. عبدالله بن ربیعه ورته وویل: نه، داسې مه کوه، ځکه هغوی هم خپلوان لري، که څه هم له مونږ سره مخالف دي. خو عمرو بن العاص پخپل نظر ټینګار کاوه او د عبدالله خبره یې ونه منله.

په سبا یې نجاشي ته وویل: اې پاچا! آیا ته خبر یې چې دا خلک (مهاجرین) دعیسی (علیه السلام) په هکله څه وایي؟ نجاشي هغوی راوغوښتل چې پوښتنه ورنه وکړي چې د عیسی (علیه السلام) په هکله څه عقیده لري؟ هغوی لومړی وویریدل خو بیا یې

په رښتیا ویلو اتفاق وکړ، او دربار ته ورغلل. نجاشي ورنه پوښتنه وکړه. جعفر (رضي الله عنه) ورته وویل: مونږ د عیسی ( علیه السلام) په هکله هغه څه وایو چې زمونږ نبي (علیه السلام) راته راوړي دي، مونږ وایو چې عیسی (علیه السلام) د الله بنده، د الله رسول او د الله روح او هغه کلمه ده چې پاک لمنې او پیغلې مریمې ته یې القاء کړې وه.
ددې خبرې په اوریدو سره نجاشي له ځمکې نه یو ډکی را اوچت کړ او ویې ویل: قسم په خدای چې عیسی (علیه السلام) لدینه چې تاسې وویل ددې ډکي په اندازه هم اخوا دیخوا ندی. درباریان یې وپښیدل او وځمبیدل، نجاشي ورته وویل: که تاسې هر څو وپښیږئ خبره همداسې ده.
بیا یې مسلمانانو ته وویل: ځئ، تاسې زما په ملک کې په امن یې، که چا درته بد وویل، جریمه به شي، دری ځله یې دا خبره وکړه، زیاته یې کړه، که څوک راته د سرو زرو غرونه هم راکړي له تاسو نه کوم یوه ته به تکلیف او اذیت رسولو ته زړه ښه نکړم.
بیا یې خپلو کسانو ته امر وکړ چې ددې دواړو تحفې بیرته ورکړي، زه ورته څه اړه نلرم، قسم په خدای، الله تعالی چې کله ماته خپله پاچایي بیرته راکړې نو رشوت یې ندی رانه اخیستی، تر څو زه پدې لاره کې رشوت واخلم، همدارنګه الله تعالی زما په هکله د خلکو خبرې ندي منلې چې اوس زه د الله تعالی په هکله د خلکو خبرې ومنم.
ددې کیسی روایت کوونکې ام سلمه (رضي الله عنها) وایي: هغوی دواړه له خپلو تحفو سره په ډیر شرم او خجالت سره راووتل، او مونږ هملته په همغه غوره ځای او له غوره ګاونډي سره پاتې شوو.[١]
دا د ابن اسحاق روایت دی نور وایي چې عمرو بن العاص نجاشي ته له بدر نه وروسته ورغلی و، ځنې نور وایي چې عمرو بن العاص دوه ځله حبشې ته ورغلی و.[٢]
خو هغه روایتونه چې وایي عمرو بن العاص دوه ځله حبشې ته ورغلی و، دوی په دوهم ځل ورتګ کې تقریباً هماغه سوال او ځواب رانقلوي کوم چې په لومړي ځل کې د جعفر (رضي الله عنه) او نجاشي تر مینځه شوی او ابن اسحاق رانقل کړی دی. او بله دا چې د همدې سوال او ځواب موضوع او مطلب پدې دلالت کوي چې دا مناقشه د نجاشي په وړاندې په لومړنۍ مرافعه کې تر سره شوې وه.
د مشرکینو دا توطئه شنډه شوه، مکر او فریب یې ونه چلیده، او پدې پوه شول چې د خپلو پولو نه اخوا د دوی مکرونه اغیزه نلري، نو په بل فکر کې شول، او بالاخره دې نتیجې ته ورسیدل چې ددې مشکل حل دا دی چې رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و

(١). ابن هشام (لنډیز) ١/ ٣٨٤ تر ٣٣٨.
(٢). مختصر سیرة الرسول للشیخ عبدالله النجدي ص ٩٢ - ٩٨.

صحبه و سلم) له خپل دعوت نه واړوي او که نه اعدام يې کړي، خو پدې لاره کې ستر خنډ ابو طالب و ځکه هغه د خپل وراره ترخوا ولاړ و او د مشرکينو له ظلمونو نه يې خوندي ساته، نو مشرکينو تصميم ونيو چې پدې هکله له ابو طالب سره مقابله وکړي.

## قریش ابو طالب تهدیدوي

د قريشو مشران او مخور خلک ابو طالب ته ورغلل او ورته ويې ويل: اې ابو طالبه! ته زمونږ يو شريف مشر يې، په ډير اهميت درته قايل يو، مونږ درنه غوښتي و چې خپل وراره لدې دعوت نه منع کړې خو تا هغه منع نکړ، نو مونږ نور دا نه شو زغملای چې زمونږ پلرونو ته دې بد رد وويل شي، زمونږ په عقلونو پورې دې ملنډې ووهل شي، او زمونږ معبودان دې توهين او ورټل شي او خبرې دې ورپسې وشي، ستا خوښه وراره دې لدې کارنه اړوې او يا زمونږ سره مخامخ جګړه اعلانوې تر څو چې يو طرف تباه او مسئله هواره شي.

په ابو طالب باندې دا تهديد او اخطار سخت تمام شو، خپل وراره حضرت محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې راوغوښت او ورته ويې ويل: وراره! ستا د قوم خلک راته راغلي وو، داسې خبرې يې راته وکړې، نو لږ زما او د خپل ژوند خيال وساته، او ما په داسې څه مه مجبوره وه چې له وسه مې اوچت وي. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ګومان وکړ لکه چې تره يې هم د ده مرسته پريښوده نور کومک نه ورسره کوي، نو ويې فرمايل: ((يا عم، و الله لو وضعوا الشمس في يميني و القمر في يساري على أن أترك هذا الامر – حتى يظهره الله أو أهلك فيه ما تركته)

اې تره! قسم په خدای که هغوی لمر راته په ښي لاس او سپوږمۍ راته په چپ لاس کې راکړي چې دا کار پريږدم، خو زه به دا کار (دعوت) تر هغې پورې پرې نه ږدم چې يا يې الله تعالى بريالى کړي او يا يې زه په لاره کې ووژل شم. دا خبره يې وکړه له سترګو يې اوښکې روانې شوې او پاڅيد. ابو طالب غږ پسې وکړ، هغه مخ ورته راواړوه، نو ده ورته وويل: وراره! ورځه څه دې چې زړه وي هماغه وايه، قسم په الله چې له مرستې به دې لاس وانخلم او نه به دې چاته پريږدم[1]. او بيايې دا شعر ووايه:

والله لن يصـــلوا إليك بجـــمعهم حتى أوســـد في التـــراب دفينا

---

[1]. ابن هشام ۱/ ۲۶۵ – ۲۶۶.

**فاصدع بأمرك ما عليك غضاضة وابشر و قربذلك منك عيونا**(۲)

**[قسم په خدای که هغوی له خپلو ډلو سره تر هغې تا ته در ورسيدی شي، تر څو زه په خاورو کې ښخ شوی نه یم. خپله خبره په ډاګه کوه په تا هيڅ اعتراض نشته، خوشاله اوسه او سترګې دې پدې سره روښانه.]**

## قريش د دوهم ځل لپاره د ابو طالب په وړاندې

کله چې قريشو وليدل رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپل دعوت په مخ بيايي، ابو طالب هم د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مرسته نه پريږدي، او پدې لاره کې د قريشو دښمنۍ او مقابلې ته تيار دی. نو مشرکان سره راټول شول او عماره بن وليد بن مغيره يې ابو طالب ته ورووست او ورته ويې ويل: ابو طالبه! دا د قريشو تر ټولو غيرتي، پوه او ښکلی ځوان دی، ته دا واخله له عقل او قوت نه يې ګټه اخله، او د ځان لپاره يې زوی ونيسه په بدل کې يې خپل هغه وراره مونږ ته راکړه کوم چې ستا او ستا د پلرونو له دين نه اوړيدلی، په قوم کې يې بې اتفاقي اچولې، تر څو مړ يې کړو، سړی به دې په سړي وي نور څه غواړې؟

ابو طالب ورته وويل: دا ستاسې ډيره غلطه فيصله ده او دا څومره خرابه سودا ده چې له ماسره يې کوئ. تاسې خپل زوی ددې لپاره ماته راکوئ چې درته لوی او چاغ يې کړم او له مانه غواړئ خپل زوی درته وسپارم چې مړ يې کړئ، قسم په الله چې هيڅکله به هم داسې ونشي. پدې وخت کې مطعم بن عدي بن نوفل بن عبد مناف وويل: ابو طالبه! دې خلکو د انصاف خبره درته وکړه، هغوی له خپله طرف ډيرې هلې ځلې وکړې او څه چې نه خوښوي له هغه نه د خلاصون هڅې يې هم وکړې، خو ته نه غواړې چې د دوی پيشنهادونه ومنې! ابو طالب ورته وويل: قسم په خدای که دا انصاف وي، تاسو بالکل د انصاف خبره نده کړې، تا زما د ذلت پريکړه کړيده، او لدې قوم سره زما په خلاف دريدلی يې، نو هر څه چې کوې کوه يې.[1]

تاريخي مصادرو ددې دواړو ليدنو او يا په بل عبارت ابو طالب ته د قريشو ددې پيشنهادونو وخت او نيټه نده ښوولې، خو د قرائنو او شواهدو له ليدو او پلټلو وروسته دا په ډاګه کيږي چې دا دواړه پيښې د نبوت د شپږم کال په منځنۍ برخه کې

(2). مختصر سيرة الرسول للشيخ محمد بن عبدالوهاب النجدي ص ۲۸.

(1). ابن هشام ۱/ ۲۲۲ – ۲۲۷.

واقع شوې، او د دواړو ليدنو تر مينځ ډيره کمه موده وه.

## د رسول اکرم (ﷺ) د مرګ توطئه

کله چې د مشرکينو دا چلونه ټول ناکام شول او لدې لارى نه يې څه تر لاسه نشواى کړى، نو يې بيرته هماغه د ظلم او زياتي پخوانۍ لاره ونيوه، خپل ظلمونه او وحشتونه يې څو چنده کړل، او پدې لټه کې شول چې رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) له کومې لارې په شهادت ورسوي. خو د دوى دا فريب او چل هم بيرته د دوى په زيان او د مسلمانانو په ګټه تمام شو، او د قريشو د همدې ظلمونو او همدې توطئې په نتيجه کې د مکې دوه قهرمانان حمزه بن عبدالمطلب او عمر بن الخطاب (رضي الله عنهما) په اسلام مشرف شول.

د قريشو لدې وحشتونو او ظلمونو نه دلته څو د مثال په توګه وړاندې کوو: يوه ورځ عتيبه بن ابي لهب رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ورغى او ورته ويې ويل: زه په ((وَالنَّجْمِ إِذَا هَوَى)) کافر يم، او((دَنَا فَتَدَلَّى)) نه منم. ورپسې يې د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) کميس ورڅيرې کړ، په مخ يې ورتف کړل خو لاړې يې ورباندې ونه لګيدې. پدې وخت کې رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ښيره ورته وکړه او ويې فرمايل: (اللهم سلط عليه كلبا من كلابك) اې خدايه! له خپلو سپيو نه يو سپى ورباندې و ګماره. الله تعالى د خپل رسول (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا دعا قبوله کړه، څه وخت وروسته عتيبه بن ابي لهب د قريشو له يوې ډلې سره په سفر لاړ او کله يې چې د شام په (زرقا) نومې ځاى کې واړول، په همدې شپه يو زمرى راغى، عتيبه چې وليد نو ويې ويل: افسوس اې وروره! قسم په خداى چې دا زمرى به ما خوري، لکه څرنګه چې محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ښيره راته کړيده، اوس هغه په مکه کې دى خو زه يې دلته (په شام کې) ووژلم. زمري ورباندې ور ټوپ کړ، له سر نه يې راونيو دانګې دانګې يې کړ.[1]

ويل کيږي چې يو ځل رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د الله په حضور کې سر په سجده ايښى و چې عقبه بن ابي معيط راغى او د الله د رسول پر مبارکه

---

[1]. تفهيم القران ٢/ ٥٢٢ ، الاستيعاب، الاصابة، دلائل النبوة، الروض الانف، مختصر سيرة الرسول للشيخ عبدالله النجدي ص ١٣٥.

غاړه یې پښه ورکیښوده او دومره زور یې ورباندې وکړ چې نژدې وه د رسول کریم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مبارکې سترګې راووزي.[۲]
دا چې د قریشو طاغوتیانو غوښتل رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په شهادت ورسوي، ددې خبرې د صحت او اثبات لپاره د ابن اسحاق هغه اوږد روایت کافي دی چې وایي:
ابو جهل وویل: اې قریشو، وینئ چې محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) زمونږ دین عیبجن کوي، عیوب یې بیانوي، زمونږ پلرونو ته بد وایي، زمونږ په عقلونو پورې خاندي، زمونږ معبودان هم کنځي، نو زه له خدای سره عهد کوم چې یوه دومره لویه تیږه به اخلم چې پورته کولی یې شم او کله چې هغه (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سجده وکړه نو په ده سره به یې وروولم چې ککره یې میده میده شي. تاسې بیا ما و ساتئ او دفاع رانه وکړئ، بیا دې د بنو عبد مناف لاس خلاص وي څه چې کړی شي ویې دې کړي. قریشو ورته وویل: قسم په خدای که دې هیڅا ته هم ورکړو، ته خپل کار وکړه، مونږ درسره یوو.
سبا سهار ابو جهل همداسې یوه تیږه واخیسته او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په انتظار کیناست. رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د خپل عادت سره سم راغی او په عبادت یې پیل وکړ، قریش هم ټول راغلي وو او پخپلو ځایونو ناست وو، کتل یې چې ابو جهل څه کوي. کله چې رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په سجده پریوت، ابو جهل هغه تیږه راپورته کړه او د رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په خوا ور روان شو، خو چې ور نژدې شو په ویره سره په شا راغی بڼه یې الوتې وه، دومره ویرې اخیستی و چې تیږه یې له لاسونو خطا شوه او پر ځمکه ولویده. د قریشو مشرکان ورپورته شول او ورته ویې ویل: څه درباندې وشول اې ابا الحکمه؟ ده ورته وویل: زه ور روان شوم تر څو لکه پرون مې چې تاسې ته ویلی و هغه تیږه یې په سر وروولم، خو کله چې ورلنډ شوم یو داسې اوښ مې مخې ته راغی چې ډیر لوی سر او لوی لوی غاښونه او اوږده غاړه یې درلوده او ما پخپل ژوند کې داسې اوښ ندی لیدلی غوښتل یې ما وخوري.
ابن اسحاق وایي: اوریدلي مې دي چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) فرمایلي: ((**ذلك جبريل (عليه السلام) لو دنا لأخذه**)) هغه جبریل (علیه السلام) و

(2).مختصر سیرة الرسول لعبد الله النجدي ص ۱۳۳.

که تږدې شوی وای نو را نيولی به يې وای.[۱]

ورپسې ابو جهل له رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره هغه څه وکړل چې د حمزه بن عبدالمطلب (رضي الله عنه) د اسلام راوړلو سبب شول او په راتلونکير کې به ورنه يادونه وکړو.

د قريشو طاغوتيانو د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د قتل توطئه په خپلو زړونو کې ښه پخه کړې وه. ابن اسحاق له عبدالله بن عمرو بن العاص نه روايت کوي چې وايي: قريش د کعبې تر خوا غونډ ناست وو، زه هم ورغلم او له دوی سره کيناستم. د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په هکله يې خبرې پيل کړې او ويل يې مونږ لدې سړي سره له دومره صبر او حوصلې نه کار واخيست چې بل هيڅا ته مو هم دومره صبر ندی کړی. دوی همدا خبرې کولی چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) رابښکاره شوه، راغی حجر اسود يې مچې کړ د بيت الله طواف يې پيل کړ او کله چې د طواف په ضمن کې له قريشو نه تير شو، نو دوی ځنې بدې خبرې ورته وکړې، طعنې يې ورکړی. ما د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په مبارک مخ کې ددې خبرو اثر وليد. دوهم ځل چې بيا ورنه تير شو بيايې همغسې بدې خبرې ورته وکړې، بيا مې هم ددې خبرو اثر دده په مبارک مخ کې وليد. دريم ځل چې بيا ورنه تير شو، بيا يې همداسې خبرې ورته وکړې، نو رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ودريد او ويې فرمايل: (**أتسمعون يا معشر قريش، أما والذي نفسی بيده، لقد جئتكم بالذبح**) [اې قريشو! واورئ، قسم په هغه ذات چې زما نفس د هغه په واک کې دی چې ما تاسې ته ستاسې د قتل او ذبحې حکم راوړی دی.] د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دې ارشاد خلک تر خپل تاثير لاندې راوستل، او داسې چوپ او آرام کيناستل تا به ويل چې د هر يوه په سر مرغه ناست دی، تر دې چې د رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په مقابل کې تر ټولو شديد او سخت سړي به هم ډير نرم الفاظ او خوږې خبرې کولې او پدې سره به يې له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه د رحمت سوالونه کول او ورته ويل به يې، اې ابو القاسمه بيرته لاړشه، قسم په خدای ته کله هم نادان نه وې!

په سبا باندې بيا پداسې حال کې چې هغوی د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په هکله خبرې کولی هغه مبارک تشريف راوړ، چې هغوی وليد يو ځل ټول

---

[1]. ابن هشام ۱/ ۲۹۸ - ۲۹۹.

ورپاڅیدل او د الله تعالی رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یې راګیر کړ. عبدالله بن عمرو بن العاص وایي: ما ولیدل چې یوه سړي رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تر چادر کلک رانیولی و، ابوبکر (رضي الله عنه) د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خواته ولاړ دی او پداسې حال کې چې ژاړي وایي: آیا تاسو هغه څوک وژنۍ چې وایي: الله زما رب دی؟ وروسته بیا قریشو رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پریښود، راوي وایي: تر کومه چې ما لیدلي دا په رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) باندې د قریشو تر ټولو ستر ظلم و.[۱]

امام بخاري له عروه بن الزبیر نه روایت کوي وایي: ابن عمرو بن العاص ته مې وویل چې پر رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) باندې د قریشو د تر ټولو ستر ظلم په هکله معلومات راکړه. هغه راته وویل: پداسې حال کې چې نبي اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د کعبې سره خوا کې په عبادت بوخت و عقبه بن ابي معیط راغی او خپل چادر یې د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په غاړه کې ورواچاوه او دومره یې تاوکړ چې نژدې و زندی شي، پدې وخت کې ابوبکر الصدیق (رضي الله عنه) راغی هغه یې ټینګ راونیو او له رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه یې ایسته ټېل واهه او ویې ویل: آیا هغه څوک وژنې چې وایي الله مې رب دی؟[۲]

او په هغه حدیث کې چې اسماء (رضي الله عنها) روایت کړی راځي: یو چا ابوبکر (رضي الله عنه) ته چیغه وکړه چې هله د ملګري کومک ته دې ورشه! نو ابوبکر (رضي الله عنه) په منډه ور ووت، دغه وخت چې له کوره ووت د سر ویښتان یې څلورکوڅې وو او ویل یې: آیا تاسې هغه څوک وژنۍ چې وایي: الله مې رب دی؟ یعنې یوازې پدې ګناه یې وژنۍ چې وایي الله زما رب دی؟ پدې وخت کې مشرکینو رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پریښود او په ابوبکر (رضي الله عنه) ورټول شول، او کله چې بیرته کورته راغی نو په سر یې یو ویښته هم نه و کوڅې یې ټولې ورباندې شکولې وې، او که کوم یو ویښته پاته و، نو هغه زمونږ له لاسونو سره تویې شو.[۱]

## حمزه (رضي الله عنه) د ایمان په لار

---

[۱]. ابن هشام ۲۸۹/۱ - ۲۹۰

[۲]. صحیح البخاري - باب ذکر مالقي النبي (صلی الله علیه وسلم) و اصحابه من المشرکین بمکة ۱/ ۵۴۴.

[۱]. مختصر سیرة الرسول (ص) للشیخ النجدي ص ۱۱۳ .

پداسې حال کې چې د مکې فضا د ظلم او طغيان تورو تيارو نيولې وه، د حمزه بن عبدالمطلب (رضي الله عنه) په ايمان راوړلو سره د مومنانو زړونو ته نوي هيلو او آرزوګانو لاره ومونده. حمزه (رضي الله عنه) د نبوت د شپږم کال په وروستيو په غالب ګمان د ذي الحجې په مياشت کې ايمان راوړی دی.

د حمزه (رضي الله عنه) د ايمان راوړلو کيسه داسې ده: يوه ورځ ابو جهل د صفا له غونډۍ سره رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته اذيت ورساوه، بدې خبرې يې ورته وکړې، خو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) چوپ و هيڅ يې هم نه ورته ويل: بيا ابو جهل پورته شو او رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې په يوه تيږه وواهه، مبارک سر يې ورمات کړ او وينې ترې روانې شوې، بيا ابو جهل ورنه روان شو اود کعبې تر خوا له قريشو سره کيناست. د عبدالله بن جدعان يوې وينځې چې د صفا پر غونډۍ پخپل کورکې وه دا صحنه وليده، پدې وخت کې حمزه (رضي الله عنه) له ښکار نه راغی، ليندۍ يې په لاس کې وه. نوموړې وينځې د ابو جهل د دې ناروا کيسه ورته وکړه. حمزه (رضي الله عنه) چې د قريشو تر ټولو زړور او غيرتي ځوان و يو ځل په قهر او جوش راغی، روان شو تر څو ابو جهل ووينې او حمله ورباندې وکړي، مسجد ته ننووت د ابو جهل سرته ودريد، او ورته وې ويل: (يا مصفراسته) ـځکه چې ابوجهل په مقعد کې په پيس مرض اخته وـ اې بې غيرته! ته زما هغه وراره ته کنځلې کوې چې زه يې په دين يم؟ بيا يې په ليندۍ يو کلک ګوزار ورباندې وکړ او سر يې ورمات کړ. پدې وخت کې د ابو جهل د کورنۍ ( بني مخزوم) او د حمزه (رضي الله عنه) د کورنۍ (بنو هاشم) خلک سره راپورته شول، خو ابو جهل وويل: ابو عماره (حمزه) پريږدئ ما يې وراره ته ډيرې بدې خبرې کړيدي.[2]

د حمزه (رضي الله عنه) ايمان راوړل په لومړي سر کې د يوه ننګ او غيرت له امله وو پدې ننګ کې ګير راغلی و چې وراره ته يې چا په سپکه سترګه کتلي وو، اذيت يې ور رسولی و، خو وروسته يې الله تعالی سينه پراخه کړه، او په اسلام ټينګ ودريد[1]. او د حمزه (رضي الله عنه) ايمان هغه حمزه چې په غيرت او شجاعت کې يې ساری نه درلود د مسلمانانو لپاره د ډير عزت او قوت سبب شو.

---

[2]. مختصر سيرة الرسول (ص) للشيخ محمد بن عبدالوهاب ص ٢٢. رحمة للعالمين ١/ ٢٨. ابن هشام ١/٢٩١، ٢٩٢.

[1]. پدې باندې هغه روايت دلالت کوي کوم چې الشيخ عبدالله النجدي پخپل مختصر سيرة الرسول (صلی الله عليه وسلم) ص (١٠١) کې روايت کړيدی.

## عمر (رضي الله عنه) د مومنانو په لیکو کې

په همدې وخت کې چې مکه د کفر او طغیان وریځو تیاره کړې وه، د الله تعالی له پلوه مسلمانانو ته یو بل د امید څراغ بل شو یعنی عمر (رضي الله عنه) د مومنانو په ډله ورګډ شو. عمر (رضي الله عنه) د حمزه (رضي الله عنه) له اسلام منلو نه درې ورځې وروسته [۲] د نبوت د شپږم کال د ذي الحجې په میاشت کې په اسلام مشرف شو[۳].

رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له الله تعالی نه د هغه د اسلام سوال کړی و. ترمذي له ابن عمر (رضي الله عنه) او طبراني له ابن مسعود (رضي الله عنه) نه روایت کوي چې رسول الله (علیه السلام) فرمایلي: ((**اللهم أعز الإسلام بأحب الرجلين إليك: بعمر بن الخطاب أو بأبي جهل بن هشام**)). یعنې اې خدایه! ته اسلام ته په عمربن الخطاب او یا ابو جهل بن هشام هر یو چې تا ته ګران وي عزت او قوت ورکړې. الله تعالی ته عمر (رضي الله عنه) منظور و او همدی په اسلام مشرف شو[۴].

که ټولو هغو روایتونو ته کوم چې د عمر (رضي الله عنه) د اسلام راوړلو په هکله راغلي دي نظر واچوو، نو دا به راته په ډاګه شي چې اسلام د عمر (رضي الله عنه) زړه ته په تدریجي توګه لاره موندلې ده، خو مخکې لدینه چې ددې روایتونو لنډیز وړاندې کړو، لازمه وینم چې د عمر (رضي الله عنه) د احساساتو او عاطفې په هکله څه خبره وکړم:

عمر (رضي الله عنه) په شجاعت او غیرت مشهور و، حساس او تندخوی یې درلود، له لاسه یې مسلمانانو ډیر کړاوونه لیدلي دي، خو په ذهن کې به یې تل کشمکش او مقابله وه، له یوې خوا یې د پلرونو او اجدادو عاداتو او تقالیدو ته زیات احترام درلود، له لهو او لعب او شرابو سره روږدی او عادت شوی و، خو له بلې خوا به دېته هم په تعجب کې و چې مسلمانان د خپلې عقیدې په لار کې دا دومره تکلیفونه او ستونزې څه ډول ګالي؟! د مسلمانانو له غیرت او ثبات نه ډیر متاثر شوی و، او کله کله به یې په زړه کې دا هم راګرزیدل چې کیدای شي اسلام له نورو نه پاک او اوچت وي. لکه غزالي چې وایي[۱]: دده په ذهن کې د همدغه متناقضو نظریاتو له امله وه کله

---

۲ . پدې هکله به یو روایت په راتلونکې کې راشي.

۳ . تاریخ عمر بن الخطاب لابن الجوزي ص ۱۱.

۴ . الترمذي، ابواب المناقب، مناقب ابي حفص عمر بن الخطاب ۲۰۹/۲.

[1]. فقه السیرة لمحمد الغزالي ص ۹۲، ۹۳.

به چې احساساتي شو نو ډېر ژر به بيرته نرم او آرام شو.

## د عمر (رضي الله عنه) د اسلام په هکله د مختلفو رواياتو جمع او لنډيز

يوه شپه عمر (رضي الله عنه) له کور نه د باندې ويده کيدو په نيت راووت، حرم شريف ته لاړ او د کعبې شريفې تر پوښ لاندې ننوت، دا په داسې حال کې چې رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په لمانځه ولاړ دی او د (الحاقه) سورت لولي. عمر (رضي الله عنه) قرآنکريم ته غوږ ونيو، ډېر ورته په تعجب کې شو. عمر (رضي الله عنه) وايي: له ځان سره مې وويل: لکه قريش چې وايي محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) شاعر دی، وايي په همدې وخت کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا آيت تلاوت کړ ((**إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ * وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَاعِرٍ قَلِيلاً مَا تُؤْمِنُونَ**)) (الحاقة: ٤٠ –٤١) [بيشکه دا (قرآن) خبره د رسول مکرم عزتمن ده او نه ده دا خبره د کوم شاعر، بيخې لږ ايمان راوړئ تاسې (بلکه نه مومنان کيږئ).

وايي: بيا مې وويل: دا کاهن دی، نو هغه دا آيت تلاوت کړ: ((**وَلا بِقَوْلِ كَاهِنٍ قَلِيلاً مَا تَذَكَّرُونَ (٤٢) تَنْزِيلٌ مِنْ رَبِّ الْعَالَمِينَ (٤٣)** د سورت تر پايه، [او نه ده دا خبره د کاهن (تيروتي لکه چې تاسو ګومان کوئ) لږ پند اخلئ تاسې (بلکه نه يې اخلئ).]

وايي: نو پدې وخت کې مې اسلام پر زړه اغيزه وکړه.[۲]

دا د عمر (رضي الله عنه) پر زړه د اسلام لومړنۍ اغيزه وه، خو جاهلي عادات او د پټو سترګو تقليد دومره ورباندې زورور وو چې نه يې پرېښود حق ته سلامي شي، هماغه د جاهليت په لار روان و او د اسلام په خلاف يې خپلو هلو ځلو ته ادامه ورکوله.

له رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره يې زياته کينه او دښمني درلوده، يوه ورځ يې توره واخيسته او پدې نيت له کوره ووت چې رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به په شهادت رسوي. د لارې په اوږدو کې له نعيم بن

---

(2). تاريخ عمر بن الخطاب (رضي الله عنه) لابن الجوزي ص: ۲. دې ورته يو روايت ابن اسحاق له عطاء او مجاهد نه هم را نقل کړيدی. که څه هم د هغه پای لدې سره څه اختلاف لري . ابن هشام ۱/ ۳۴۲ تر ۳۴۸ ته مراجعه وکړه. او همدې ته ورته هغه روايت دی چې ابن الجوزی له جابر نه رانقل کړيدی خو د هغه آخرينۍ برخه هم لدې روايت سره اختلاف لري، تاريخ عمر بن الخطاب (رضي الله عنه) ص ۹ – ۱۰ وګورئ..

عبدالله النحام العدوي سره مخ شو[۱]. ځوک وايي د بني زهره قبيلې له کوم سړي [۲] او په بل روايت د بني مخزوم قبيلې[۳] له کوم کس سره مخامخ شو. هغه ورته وويل: اې عمره! چيرته روان يې؟ ده وويل: ځم چې محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ووژنم. هغه ورته وويل: بيا به له بني هاشم او بني زهره نه څنګه ځان خلاصوې؟ عمر (رضي الله عنه) په ځواب کې ورته وويل: داسې ښکاري لکه چې ته هم له خپل دين نه اوړيدلی يې؟ هغه ورته وويل: عمره! له يوې عجيبې پيښې نه دې خبر نکړم؟ هغه دا چې ستا خور او ستا د خور خاوند دواړه ستا له دين نه اوړيدلي دي. عمر (رضي الله عنه) بيرته راوګرځيد او خپلې خور او د هغې خاوند ته ورغی، د هغوی په کور کې خباب بن الارت (رضي الله عنه) و او يوه صحيفه (پاڼه) هم ورسره وه چې د (طه) سورت ورباندې ليکل شوی و، او دوی دواړو ته يې ورزده کاوه. خباب (رضي الله عنه) چې کله پوه شو عمر (رضي الله عنه) راغی نو ژر پټ شو، او د عمر خور فاطمې ( رضي الله عنهما) هغه صحيفه هم پټه کړه، خو عمر (رضي الله عنه) د خباب (رضي الله عنه) غږ اوريدلی و چې دوی ته يې قرآنکريم تلاوت کاوه، کله چې کورته ور دننه شو ويې ويل: دا څه و چې ما واوريدل؟ هغوی ورته وويل: مونږ پخپل منځ کې خبرې کولې، نور څه خو نه وو. ده ورته وويل: دا څه و چې ما واوريدل؟ هغوی بيا ورته وويل: مونږ پخپل مينځ کې خبرې کولی، نور څه خو نه و. ده ورته وويل: لکه چې له خپل دين نه ګرزيدلي يئ؟ د خور خاوند يې ورته وويل: اې عمره! که حق ستا له دين نه پرته په بل څه کې وي، نو بيا؟ عمر (رضي الله عنه) ورباندې ورټوپ کړ او په ځمکه يې راچپه کړ، خور يې راغله او عمر (رضي الله عنهم) يې له خپل ميړه نه راپورته کړ، نو هغې ته يې هم داسې يوه څپيړه ورکړه چې پر مخ يې وينې را روانې شوې. ابن اسحاق وايي هغه يې هم ووهله او سر يې ورمات کړ. نوموړې (رضي الله عنها) پداسې حال کې چې غوسې اخيستې وه ورته وويل: اې عمره! پداسې حال کې چې حق ستا له دين نه پرته په بل څه کې دی، نو زه شاهدي وايم چې: له يوه الله پرته بل ځوک د عبادت وړ نشته او شاهدي وايم چې محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د الله تعالی رسول دی (**أشهد أن لا إله إلا الله و أشهد أن محمدا رسول الله**).

نو کله چې عمر (رضي الله عنه) نا اميده شو، او دا چې د خور وينې يې وليدې، خفه او

---

(1). دا د ابن اسحاق روايت دی ابن هشام ۱/ ۳۴۴ وګورئ.

(2). دا انس بن مالك (رضي الله عنه) روايت کړی، تاريخ عمر بن الخطاب ص ۱۰ او مختصر سيرة الرسول للشيخ النجدي ص ۱۰۳ وګوره.

۳ . دا د ابن عباس (رض) روايت دی، الصدر الاخير ص ۱۰۲.

په خپلو کړو پښېمانه شو، او ویی ویل: دا کتاب چې درسره و، راکړئ چې ویې لولم. خور يې ورته وويل: ته نجس او ناپاک يې او دا کتاب نا پاکان نه شي اخيستئ (نه يې شي لمس کولئ)، ولاړ شه، غسل وکړه. هغه هم پاڅيد او غسل يې وکړ، او بیا يې هغه صحيفه واخيستله او ((**بسم الله الرحمن الرحيم**)) يې تلاوت کړه ويې ويل: پاک او سپيڅلي نومونه، بيا يې (طه) تر ((**إِنَّنِي أَنَا اللَّهُ لا إِلَهَ إِلاَّ أَنَا فَاعْبُدْنِي وَأَقِمْ الصَّلاةَ لِذِكْرِي** (١٤). پورې تلاوت کړ.

[بيشکه زه چې يم هم دا زه الله يم، نشته لايق د عبادت بل هيڅوک مګر هم دا زه يم پس عبادت کوه زما او سم دروه (ادا کوه) لمونځ د پاره د ذکر (يادولو) زما.]

او ويې ويل: دا څومره ښکلی او اوچت کلام دی، ما ته محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) راوښاياست. خباب (رضي الله عنه) چې کله د عمر (رضي الله عنه) دا خبرې واوريدې راووت او ويې ويل: زيری مې دربانديې اي عمره! هيله ده چې د پنجشنبې په شپه د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دعا ستا لپاره وي، هغه دعا چې فرمايلي يې وو ((**اللهم أعز الإسلام بعمر بن الخطاب أو بأبي جهل بن هشام**)) او رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) اوس د صفا سره په دارالارقم کې تشريف لري.

نو عمر (رضي الله عنه) خپله توره له تيکي راوايستله او له کوره ووت تر څو دارالارقم ته ورسيد، دروازه يې وټکوله يو صحابي (رضي الله عنه) راپاڅيد او د دروازې له چولو يې وکتل چې عمر (رضي الله عنه) توره په لاس ولاړ دی، ژر يې رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته خبر ورکړ. موجود خلک سره راټول شول، حمزه (رضي الله عنه) ورته وويل: څه خبره ده؟ دوی ورته وويل: عمر (رضي الله عنه) دی. ده وويل: دروازه ورته خلاصه کړئ، که چيرته په خير او ښه نيت راغلي وي، مرسته به يې وکړو، او که چيرې د شر پخاطر راغلي وي، نو پخپله توره به يې ووژنو. پدې وخت کې رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ننه و وحي ورته کيدله، وروسته راووت او عمر (رضي الله عنه) يې په کوټه کې وموند، هغه يې له جامو او د تورې له بند نه راونيو، په شدت سره يې راکش کړ او ورته ويې فرمايل: (**أما أنت منتهيًا يا عمر حتى ينزل الله بك من الخزى والنكال ما نزل بالوليد بن المغيرة؟ الله م، هذا عمر بن الخطاب، اللهم أعز الإسلام بعمر بن الخطاب**) [عمره! آيا ته تر هغې له خپلې لارې نه

نه ګرزې تر څو چې الله تعالی د وليد بن المغيره په شان سپکاوی او عذاب دربانديې نازل کړي؟ دا عمر بن الخطاب دی، يا خدايه! ته اسلام ته په عمر بن الخطاب (رضي الله عنه) باندې عزت او قوت ورکړې.] همدا وه چې عمر (رضي الله عنه) وويل: ((أشهد أن لا إله إلا الله و أنك رسول الله)) او پدې ترتيب سره هغه هم په اسلام مشرف شو. کله چې عمر (رضي الله عنه) د شهادت کلمه وويله په دار الارقم کې په يوه آواز سره د تکبير چيغه او چته شوه چې ټولو خلکو واوريده.[۱]

عمر (رضي الله عنه) د بې ساري غيرت او شجاعت درلودونکی و، او دده اسلام راوړل د مشرکينو لپاره د ذلت او سپکاوي او د مسلمانانو لپاره د عزت او قوت پيغام و.

ابن اسحاق په خپل سند سره له عمر (رضي الله عنه) نه روايت کوي وايي: کله مې چې اسلام راووړ نو فکر مې وکړ چې په مکه کې څوک له رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره ډيره کينه او دښمني لري؟ ومې ويل: دا ابو جهل دی، نو کورته يې ورغلم دروازه مې ورو ټکوله، هغه راووت، او راته ويې ويل: په خير راغلې، خيريت دی، څنګه راغلی يې؟ ما ورته وويل: ددې لپاره راغلم چې پدې دې خبر کړم چې ما په الله او د الله په رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ايمان راوړ، او ټول هغه څه مې ومنل چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) راوړي دي. وايي: نو ابو جهل دروازه ورپسې بنده کړه او ويې ويل: خدای دې تا او هغه څه چې راوړي دې دي خراب او برباد کړي.[۲]

ابن جوزي وايي چې عمر (رضي الله عنه) ويلې: کله به چې چا اسلام راوړ، نو خلکو به هغه نه پرېښود، جګړې به يې ورسره کولې، هغوی به هغه او هغه به دوی وهل، خو کله چې زه په اسلام مشرف شوم، نو خپل ماما (عاصي بن هاشم) ته ورغلم او له پيښې مې خبر کړ هغه په خونه ننوت. وايي: بيا د قريشو يوه بل مشر لکه چې ابوجهل وي ته ورغلم ورته ومې ويل چې زه مسلمان شوم هغه هم پخپل کور رانه ننوت[۱].

ابن هشام او همدا راز ابن جوزي په لنډه توګه دا روايت رانقل کړيدی: کله چې عمر (رضي الله عنه) ايمان راوړ نو جميل بن معمر الجمحي ته ورغی، نوموړي به د قريشو خبرونه يو بل ته وړل راوړل. معمر ته مې وويل چې زه په اسلام مشرف شوم، جميل بن معمر لاړ او په لوړ آواز چيغه کړه چې اې خلکو: عمر (رضي الله عنه) له دين نه

---

[۱]. تاريخ عمر بن الخطاب (رضي الله عنه) ص ۷- ۱۰ – ۱۱ مختصر سيرة الرسول (صلی الله عليه وسلم) للشيخ عبدالله ص ۱۰۲ – ۱۰۳ . ابن هشام ۱/ ۳۴۳ – ۳۴۲.

[۲]. ابن هشام ۱/ ۳۴۹ – ۳۵۰.

[۱]. تاريخ عمر بن الخطاب (رضي الله عنه) لابن الجوزي ص ۸.

اوړيدلی دی. عمر (رضي الله عنه) چې ورپسې و وويل: دروغ وايي، بلکه ما اسلام راوړی دی. يو ځل مشرکين ورباندې راټول شول او وهل ټکول شروع شول تر څو چې لمر ښه رابره شو، عمر (رضي الله عنه) ډېر ستړی شو نو کيناست هغوی يې په سر ور کيناستل، ده ورته ويل: کوئ څه چې کولئ شئ، قسم په خدای که مونږ دری سوه کسه وای، نو بيا به يا مونږ دا وطن پرېښوده او يا تاسو.(٢)

لدينه وروسته مشرکينو د عمر (رضي الله عنه) په کور حمله وروړه او غوښتل يې هغه په شهادت ورسوي. بخاري شريف له عبدالله بن عمر (رضي الله عنهما) نه روايت کوي وايي: پداسې حال کې چې عمر (رضي الله عنه) په کور کې و او ويرې اخيستی و، چې عاص بن وائل السهمي (ابو عمرو) ورته راغی، ښکلې ليکه داره چپنه او وريښمين کميس يې اغوستې ؤ. نوموړی له بني سهم قبيلې څخه ؤ، په جاهليت کې زمونږ او هغوی تر مينځ تړون هم ؤ، ورته وې ويل:څه پيښه ده؟ ده ورته وويل: قوم دې غواړي ما ووژني ځکه ما اسلام راوړی. عاص ورته وې وويل: په تا هيڅوک هم لاس نه شي پورته کولی، کله يې چې دا خبره وکړه، مونږ ډاډه شوو. بيا عاص بيرته ووت، هلته ګوري چې خوږ خلکو په سر اخيستې، ورته وې ويل: چيرته ځئ؟ هغوی وويل: دا د خطاب زوی عمر (رضي الله عنه) له خپل دين نه اوړيدلی، هغه پسې ورځو. ده ورته وويل: هغه ته څوک څه نه شي ويلی، نو يو ځل خلک په شاشول. او د ابن اسحاق په روايت کې راځي چې داسې شول لکه دمه چې ورنه ختلې وي.

دا خو د مشرکينو دريځ او حال ؤ، د مسلمانانو په هکله، مجاهد له ابن عباس (رضي الله عنهم) نه روايت کوي وايي: له عمر (رضي الله عنه) نه مې وپوښتل، تا ته ولې الفاروق ويل کيږي؟ ده وويل: حمزه (رضي الله عنه) له مانه دری ورځې مخکې ايمان راوړی ؤ، بيا يې د خپل اسلام راوړلو کيسه راته تيره کړه، او د کيسې په پای کې يې وويل: کله مې چې اسلام ومانه نو ومې ويل: اې د الله رسوله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! آيا مونږ په حقه نه يو که مړه شو او يا ژوندي وو؟! هغه راته وفرمايل: (بلی، والذي نفسي بيده، إنكم على الحق وإن متم وإن حييتم). [هو، مونږ په حقه يو، قسم په هغه ذات چې زما ځان د هغه په واک کې دی چې تاسې په حقه ياست که مړ شئ او که ژوندي وئ.] عمر (رضي الله عنه) وايي نو ما ورته وويل: چې د اسې ده نو دا پټه څه معنی لري؟ قسم په هغه ذات چې ته يې په حق مبعوث کړی يې مونږ به خوا

---

(٢). تاريخ عمر بن الخطاب (رضي الله عنه) ص ٨ . ابن هشام ١/ ٣٤٨ - ٣٤٩.

مخوا د باندې وزو. پدې ترتیب سره مونږ په دوو صفونو (لیکو) کې له رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره یو ځای د باندې راووتلو، په یوه صف کې حمزه ؤ او په بل کې زه (عمر رضي الله عنهما) وم، زمونږ له پښو سره لکه د اوړو د ګرد په شان ګرد هم اوچتیده تر څو مسجد حرام ته ننوتو. عمر (رضي الله عنه) وایي کله چې قریشو زه او حمزه (رضي الله عنهما) ولیدو نو پداسې غم غمجن شول چې کله یې هم دومره لوی غم نه و لیدلی، او په همدغه ورځ رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ما ته د الفاروق لقب راکړ.[1]

ابن مسعود (رضي الله عنه) وایي: مونږ تر هغې پورې له کعبې شریفې سره لمونځ نشو کولی تر څو عمر (رضي الله عنه) اسلام راوړ.[2]

صهیب بن سنان رومي (رضي الله عنه) وایي: کله چې عمر (رضي الله عنه) ایمان راوړ، نو اسلام ښکاره شو دعوت هم په ښکاره ډول کیده، مونږ د کعبې تر څنګ حلقه ووهله، طواف مو وکړ، او هغه چا چې ظلمونه راباندې کړي وو له هغوی نه مو څه ناڅه انتقام واخیست او حساب مو ورسره وکړ.[3]

عبدالله بن مسعود (رضي الله عنه) وایي: له کومې ورځې نه چې عمر (رضي الله عنه) په اسلام مشرف شوی مونږ عزتمن او سر لوړی یوو.[4]

## د قریشو استازی د رسول (ﷺ) په حضور کې

کله چې د مکې هغه دواړه قهرمانان حمزه بن عبدالمطلب او عمر بن الخطاب (رضي الله عنهما) په اسلام مشرف شول، نو د قریشو په زړونو کې ماتې ګډه شوه، د مکې له آسمان نه د ظلم تورې وریځې مخ په شاکیدو شوې، مشرکان له خپلې مستۍ نه لږ په هوش راغلل، پوه شول چې نور ځورول او رنځول څه ګټه نلري، نو یې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره د سازش او سولې لاره ونیوه او ددې پخاطر چې د الله تعالی رسول یې له خپل دعوت نه منع کړی وي تـشـویـقـونـکي وړاندیزونه یې ورته وړاندې کړل، خو هغوی لدینه بې خبر وو چې دا ټوله دنیا د هغه د دعوت په مقابل کې د ماشې د یوه وزر په اندازه هم ارزښت نلري، نو ځکه د دوی دا هیلې هم له

---

[1]. تاریخ عمر بن الخطاب لابن الجوزي ص ۶-۷
(2). مختصر سیرة الرسول (صلی الله علیه وسلم) للشیخ عبدالله النجدي ص ۱۰۳
[3]. تاریخ عمر بن الخطاب (رضي الله عنه) لابن الجوزی ص ۱۳.
[4]. صحیح البخاري، باب اسلام عمر بن الخطاب (رضي الله عنه) ۵۴۵/۱

خاورو سره خاوري شوي.
ابن اسحاق وايي: يزيد بن زياد له محمد بن كعب قرظي نه راته روايت كوي وايي: راته ويل شوي چې د قريشو مشر عتبه بن ربيعه يوه ورځ د قريشو په ديره كې ناست وُ، او رسول (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) هلته په جومات كې يوازې تشريف درلود، عتبه وويل: اې قريشو، خوښه مو نده چې محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ورشم، خبرې ورسره وكړم، څه وړانديزونه ورته وكړم كيداى شي څه ومني، او چې مونږ يې شرط پوره كړو بيا به هغه هم له مونږ نه لاس واخلي. دا داسې وخت وُ چې حمزه (رضي الله عنه) هم ايمان راوړى و او دوى ليدل چې د رسول اكرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د اصحابو شميره مخ په زياتيدو ده. قريشو ورته وويل: سمه ده ورشه اې ابو وليده او خبرې ورسره وكړه! عتبه پاڅيد او د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په حضور كې كيناست او ورته وې ويل: وراره، ته خو زمونږ په مينځ كې د اوچتې او قدرمنې كورنۍ، محترم او لوړ نسب خاوند يې، او تا خپل قوم ته يوه لويه مساله راوړې، او پدې سره دې هغوى بې اتفاقه كړې د هغوى دين او معبودان دې عيبجن او توهينوې، د هغوى د پلرونو دين او عادات دې پريښې، نو اوس واوره، زه څو پيشنهادونه درته كوم، فكر پكې وكړه، كيداى شي كوم يو يې ومنې. راوي وايي: رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وويل: (**قل يا أبا الوليد أسمع**).وايه، ابو الوليده څه واېې اورم؟ هغه وويل: وراره! كه غواړې او هدف دې دا وي پدې دعوت چې شروع كړى دې دى، مال او دارايي لاسته راوړې، نو مونږ به درته دومره مال او دارايي راټوله كړو چې له ټولو نه به زيات مالدار شې، او كه لدې لارې مشري غواړې، نو مونږ به دې خپل مشر وټاكو، او هيڅ فيصله به ستا له مشورې پرته نه كوو، او كه پاچايي غواړې نو پاچا به دې كړو، او كه چيرته دا څه چې درته راځي جن يا پيرى وي چې ته يې وينې او ځان نه شې ورنه خلاصولى، نو مونږ به دې پخپلو پيسو علاج او تداوي وكړو تر څو جوړ شې ځكه كله كله داسې پيښيږي چې جن پر انسان غلبه مومي او بيا د هغه د علاج ضرورت پيدا كيږي. عتبه چې خبرې پاى ته ورسولې، رسول اكرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**أقد فرغت يا أبا الوليد؟**). [ابو الوليده، خبرې دې خلاصې شوې؟] هغه وويل: هو، ده ورته وفرمايل: (**فاسمع مني**).اوس ماته غوږ شه، هغه وويل: وايه غوږ مې دى، نو رسول اكرم

(صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خبرې داسې پیل کړې:

((حم (۱) تَنْزِيلٌ مِنْ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ (۲) كِتَابٌ فُصِّلَتْ آيَاتُهُ قُرْآناً عَرَبِيّاً لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ(۳) بَشِيراً وَنَذِيراً فَأَعْرَضَ أَكْثَرُهُمْ فَهُمْ لا يَسْمَعُونَ (٤) وَقَالُوا قُلُوبُنَا فِي أَكِنَّةٍ مِمَّا تَدْعُونَا إِلَيْهِ...)) (فصلت : ۱_۵) [(دغه قرآن) را لیږلی شوی دی (له هغه الله) نه چې خورا مهربان، ډیر رحم والا دی، داسې کتاب دی چې په تفصیل سره بیان شویدي آیتونه دده، پدې حال چې لوستلی شوی دی په عربي ژبه د پاره د هغه قوم چې پوهیږي. زیری ورکوونکی دی (دا کتاب مؤمنانو ته په جنت) او ویروونکی دی دا کتاب (کفارو لره له دوزخ نه)، پس مخ وګرځاوه زیاترو د دغو (کفارو) پس دوی نه اوري (حق په اوریدلو د قبول سره)، او وایي (دغه کفار محمد ته) زړونه مو په پردو کې دي له (فهم) د هغه څیزه چې بولې ته موږ هغه ته (چې توحیدیا قرآن دی).]

رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) قرآنکریم تلاوت کوي او عتبه چوپ ورته ناست دی، غوږ یې ورته اینبې دی، لاسونه یې شاته اینبي او تکیه یې وربانديې کړې ده، تر څو رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د سجدې آیت تلاوت کړ او سجده یې وکړه او بیا یې وویل: ابو الولیده وا دې وریدل، اوس پخپله فکر وکړه، ته پوه شه او کار دې! ابو الولید پاڅید او خپلو ملګرو ته ور روان شو. هلته هغوی سره ویل چې قسم په خدای د ابو الولید بڼه بدله شویده، کله چې هغه راغی او کیناست، دوی ورته وویل: څه کیسه ده؟ ده وویل، خبره خو دا ده، چې اوس ما داسې خبرې واوریدې چې قسم په خدای که مې په ټول عمر کې اوریدلې وي، قسم په خدای چې هغه نه شعر وُ، نه سحر وُ، نه جادو ګري او مداري ګري وه، اې قریشو زما خبره ومنئ او مسئولیت یې هم زما په غاړه، دا سړی یعنې محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پریږدئ، قسم په خدای چې دا خبرې مې چې ورنه واوریدې پدې دلالت کوي چې هغه د لوی خیر خاوند دی، او کومه لویه پیښه به رامنځته کوي، تاسې هغه پریږدئ که چیرې عربو له مینځه یووړ، نو تاسې به ورنه بې غمه شئ، او که چیرته هغه پر عربو بریالی شو، نو بیا خو د هغه پاچایي ستاسې پاچایي ده، د هغه عزت ستاسې عزت دی. دوی ورته وویل: لکه چې سحر یې دربانديې کړی اې ابو الولیده! ده ورته وویل: چې د هغه په هکله زما نظر همدا دی، د تاسې خپله خوښه څه مو چې زړه وي هماغه وکړئ.[1]

---

[1]. ابن هشام ۱/ ۲۹۳ – ۲۹۴.

په بل روايت کې راځي چې عتبه همداسې غوږ ورته ایښې وُ تر څو رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا آيت تلاوت کړ ((فَإِنْ أَعْرَضُوا فَقُلْ أَنذَرْتُكُمْ صَاعِقَةً مِثْلَ صَاعِقَةِ عَادٍ وَثَمُودَ ))(فصلت:۱۳))

[پس که چيرې مخ وګرځاوه (دغه کفارو له حقه) پس ووايه (اې محمده! دوی ته) چې ويروم زه تاسې له سخت عذابه به مثل د سخت عذاب د عاديانو (لکه باد د صرصر) او ثموديانو (لکه چيغه دجبريل) .]

عتبه يو ځل وار خطا شو پاڅيد او خپل لاس يې د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په مبارکه خوله ور کيښود او ورته ويل يې : د خدای پخاطر رحم راباندې وکړه! دا ځکه چې وويريد هسې نه الهي عذاب يې راګير نکړي، بيا خپلو ملګرو ته ورغی او هغوی ته يې خپل نظر بيان کړ .[۲]

## ابوطالب له بني هاشم او بني عبدالمطلب سره غونډه کوي

که څه هم وضعې او حالاتو بدلون موندلی وُ، خو ابو طالب ويريده چې هسې نه مشرکين بې واره حضرت محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته څه زيان ورسوي. د هغه په ذهن کې هغه پخوانۍ پيښې ترسيمدلې او دا يې ښه په ياد وُ چې قريشو يو ځل د جګړې اخطار ورکړی وُ، دا يې هم له ياده نه و ايستلې چې قريشو عماره بن الوليد ورته راوستلی وُ چې دا واخله او خپل وراره مونږ ته راکړه چې مړ يې کړو، دا به يې تل په سترګو کې ګرزيدل چې ابو جهل څنګه هغه لويه تيږه واخيستله چې دده خوږ وراره (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورباندې ووژني ، مبارک سر يې پرې ميده کړي، او هغه چې عقبه بن ابي معيط د ده زړه ته ډير نژدې او د الله تعالی مختار رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تر چا در نيولی وُ او نژدې وُ چې زندۍ يې کړي، عمر بن الخطاب (رضي الله عنه) توره را ايستلې وه چې هغه (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په شهادت ورسوي، دا ټولې پيښې به د ابو طالب د دماغ په پرده تلې راتلې، ډير يې ځوراوه او پدې فکر کې به وُ چې دا پيښې هسې عادي پيښې ندي، لدينه د لوی شر بوی راځي، مشرکين غواړي‌ي دده ترون مات کړي او وراره (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې په شهادت ورسوي،

(2). تفسير ابن اكثير ۲/ ۱۵۹ – ۱۲۰- ۱۲۱.

که چيرې کوم مشرک په ناڅاپي توګه په محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حمله وکړي، نو بيا به حمزه او عمر (رضي الله عنهما) څه وکړي؟
ابو طالب پدې ښه متيقن ؤ، او واقعيت هم همداسې ؤ، مشرکينو پدې اتفاق کړی ؤ چې رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به په ښکاره توګه وژني، د دوی دې ګډ تصميم ته قرآنکريم داسې اشاره کوي: ((أَمْ أَبْرَمُوا أَمْراً فَإِنَّا مُبْرِمُونَ)) (الزخرف: ۷۹) [بلکه محکم کړيدی (کفارو په خلاف د انبياوو) يو کار، پس بيشکه مونږ هم محکم کوونکي يوو (د تدبير خپل).]
نو پداسې حالت کې ابو طالب څه بايد وکړي؟کله چې ده د خپل وراره په خلاف د قريشو دا دريز او پلان وليد، نو خپل خپلوان يعنې د بني هاشم او بني عبدالمطلب خلک يې را ټول کړل، او له هغوی نه يې دا وغوښتل چې دده د وراره (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په دفاع او ملاتړ کې له ده سره ودريږي. هغوی ټول ورسره ودريدل، مسلمانانو د ايمان او کافرو د قومي تعصب په اساس خپل ملاتړ ورنه څرګند کړ، خو يوازې ابو لهب (د ابو طالب ورور) دا خبره ورسره ونه منله، او لاړ د قريشو په خوا کې ودريد.[1]

[1]. ابن هشام ۲۲۹/۱. مختصر سيرة الرسول (صلى الله عليه وسلم) للشيخ عبدالله بن محمد النجدي ص ۱۰۲.

# عمومي پرېکون

په څلورو هفتو يا لدې نه هم کمه موده کې مشرکين له څلورو لويو پېښو سره مخ شول: حمزه (رضي الله عنه) اسلام راوړ، ورپسې عمر (رضي الله عنه) په اسلام مشرف شو، بيا رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د مشرکينو سازشونه او پيشنهادونه رد کړل، پدې پسې بني المطلب او بني هاشم ټول له يوه سره مسلمان وو او که کافر پدې متفق شول چې له محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه به دفاع او ملاتړ کوي. پدې پېښو پسې قريش هک پک او حيران ودريدل، او د هغوی حيرانتيا بې ځايه ځکه نه وه چې پدې ښه پوه شوي وو که چيرې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په قتل ورسوي، نو په مکه کې به د وينو لښتي روان شي، او يا کيدای شي د هغوی د کاملې تباهۍ او بربادۍ سبب وګرزي، نو له همدې امله وه چې د قتل منصوبه يې پرېښوده او ديوه بل داسې ظلم فيصله يې وکړه چې تر مخکې ياد شويو ټولو ظلمونو نه زيات او سخت و.

## د ظلم او عدوان تړون

مشرکين د محصب په وادي د بني کنانه په خيف کې سره راغونډ شول، او د بني هاشم او بني المطلب په خلاف يې يو ظالمانه تړون وکړ، او داسې پريکړه يې وکړه چې: نور به څوک له دې دوو کورنيو (بني هاشم او بني مطلب) سره نه دوستي او خپلوي (واده او نکاح) کوي، نه به ورسره بيع (اخيستل او پلورل) کيږي، نه به ورسره ناسته ولاړه کيږي، نه به څوک د دوی کورونو ته ورځي، يعنې حتی خبرې ورسره منع دي. لنډه دا چې له هغوی سره به تر هغې دا عمومي او بشپړ پريکون دوام لري تر څو يې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مشرکينو ته نه وي سپارلی.

دوی ددې تړون لپاره يوه صحيفه (ليک يا خط) وليکه. په دې صحيفه کې يې پدې خبره تړون او اتفاق کړی و ((د بني هاشم د سولې وړانديزونه به هيڅکله هم نه مني او نه به ورسره کوم ډول همدردي او مرسته کوي تر څو محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د قتل لپاره ورته تسليم کړي)). ابن القيم وايي: ويل کيږي دا خط

منصور بن عکرمه بن عامر بن هاشم لیکلی وُ، او دا هم ویل شوي چې ددې صحیفې لیکونکی نضر بن الحارث وُ، خو سیي خبره او روایت دا دی چې دا صحیفه بغیض بن عامر بن هاشم لیکلې وه چې رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته ښیره وکړه او لاس یې شل شو.[1]

تړون وشو، او دا صحیفه د کعبې شریفې په مینځ کې راوځړول شوه، او ددې په نتیجه کې له ابو لهب پرته د بني هاشم او بني المطلب ټول غړي مسلمان وو او که کافر، ټول یو ځای د ابو طالب په شعب (دره یا خوړ) کې محاصره شول. دا د نبوت د اووم کال د محرم د میاشتې د لومړنۍ شپې واقعه ده.

## دری کلنه محاصره

محاصره او کلا بندي سخته شوه، په محاصره شویو مظلومانو باندې غله، د خوراک او څښاک ټول شیان بند شول ځکه مکې ته به چې څه خوراکي مواد او یا نور د اخیستلو او پیرودلو شیان راتلل، نو فوراً به مشرکینو اخیستل. پدې ترتیب سره د محاصره شویو کسانو وضعه ډیره خرابه شوه د خوراک لپاره یې څه نه درلودل او له ډیرې مجبورۍ به یې پاڼې او پوستکي خوړل. له لوږې نه به د ماشومانو او ښځو د ژړا آوازونه له دې درې نه د باندې هم اوریدل کیدل، په پټه به که لږ څه ور ورسیدل خو ښه به وو او که نه نورې ټولې لارې ورباندې بندې وې د خپلو اړتیاوو د پوره کولو او ضروري شیانو د اخیستلو لپاره یوازې په حرمت لرونکو میاشتو (الاشهر الحرام) کې له شعب (خوړ) نه روانی شوای او بس. او پدې موده کې به یې له باندې نه راغلیو کاروانونو نه مواد اخیستل، خو مشرکینو پدې کې هم داو ورباندې واهه او د موادو بیه به یې دومره زیاتوله چې د دوی وس به نه ورته رسیده. حکیم بن حزام به کله کله په پټه سره خپلې ترور (عمې) خدیجې (رضي الله عنها) ته په غالب ګومان سره غنم وروړل، یو ځل ابو جهل په مخه ورغی او قصد یې وکړ چې حکیم منع کړي، خو ابو بختري مداخله وکړه او حکیم یې پریښود چې غنم خپلې ترور (عمه) ته ورسوي.

ابو طالب په رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) باندې ډیر ویریده، او دده امنیت ته یې ډیره پاملرنه درلوده کله به چې خلک ویده کیدل، نو رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته به یې وویل چې پخپل ځای دې ویده شه، دا د دې پخاطر و که چیرې څوک د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د قتل

---

[1]. زاد المعاد ۲/ ۴۲

نيت لري او څارنه کوي چې وګوري هغه چيرته ويده شو، خو کله به چې خلک ويده شول، نو بيا به يې خپل کوم زوی، يا ورور، يا د تره زوی ته وويل چې لاړ شه او د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په ځای ويده شه، او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته به يې ويل چې راشي او د هغه پر ځای ويده شي.

د حج په دوران کې به رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او نور مسلمانان له شعب نه د باندې وتل، خلکو ته به ورتلل او هغوی به يې اسلام ته رابلل او دا چې ابو لهب به څه کول هغه ته خو مو مخکې اشاره کړې ده.

## تړون مات شو

پوره درې کاله تير شول، خو حالات همداسې وو، تر څو د بعثت په لسم کال د محرم په مياشت کې[1] صحيفه نقض او تړون مات شو. ددې تړون د ماتيدو سبب هم دا وُ چې ځنې قريش له پيل نه پدې تړون نه وو خوښ، او همدې نا خوښو کسانو د تړون د ماتولو لپاره هلې ځلې کولې تر څو مات شو.

د تړون ماتولو اصلي محرک د بني عامر بن لوئ کورنۍ غړی هشام بن عمرو وُ، نوموړي به د شپې له خوا بني هاشم ته خواړه استول، يو ځل هشام د ابو طالب خوريي زهير بن ابي اميه المخزومي ته ورغی ـ د زهير مور عاتکه د عبدالمطلب لور وه – او ورته ويې ويل: اې زهيره! پداسې حال کې چې ته خورې او څښې، نو څنګه پدې راضي يې چې د ماما خيلو دې همدې حال وي؟ زهير وويل: افسوس، افسوس، زه په يو سر څه کولای شم؟ قسم په الله که يو بل کس راسره ملګری وای، نو ددې تړون د ماتولو لپاره به راپورته کيدم ! هشام ورته وويل: څه، يو بل کس هم درسره دی، ده ورته وويل: هغه به څوک وي؟ هشام ورته وويل: هغه زه يم. زهير وويل: اوس دريم کس راګوره.

پدې پسې هشام، مطعم بن عدي ته ورغی، هغه ته يې د بني عبد مناف له اولادې

---

[1]. ددې خبرې دليل دادی چې ابو طالب د صحيفې له نقض نه شپږ مياشتې وروسته وفات شويدی. او سيي روايت دا دی چې ابو طالب د رجب په مياشت کې وفات شويدی، او هغه کسان چې وايي ابو طالب د رمضان په مياشت کې وفات شوی، نو د دوی په نظر ابو طالب د صحيفې له نقض نه اَته مياشتې او څو ورځې وروسته وفات شوی.

(بني هاشم، بني المطلب) سره د ده د دوستۍ او نژدې نسبي اړيکو يادونه وکړه، ملامتي او پړه يې ورباندې واچوله چې ته ولې پدې ظالمانه تړون او عهد کې د قريشو خوا ته ولاړ يې! مطعم ورته وويل: افسوس، نو زه څه وکړم؟ زه يو تن يم! هشام ورته وويل: دويم هم درسره دی، ده ورته وويل: هغه څوک دی؟ ده ورته وويل: هغه زه يم. نو مطعم ورته وويل:اوس دريم راګوره ، هشام وويل: دريم کس مې هم پيدا کړی، هغه ورته وويل څوک دی؟ ده ورته وويل: هغه زهير بن ابي اميه دی. مطعم وويل: اوس څلورم را ګوره. بيا هشام ابي البختري بن هشام ته ورغی، هغه ته يې هم داسې خبرې وکړې لکه مطعم ته يې چې کړې وې، نو ابو البختري ورته وويل: آيا داسې څوک به وي چې پدې هکله مرستې ته حاضر شي؟ هشام بن عمرو ورته وويل: هو، شته، هغه وويل: څوک دي؟ ده ورته وويل: زهير بن ابي اميه، مطعم بن عدي او زه هم درسره بيا هغه ورته وويل: اوس پنځم کس راګوره.

بيا زمعه بن اسود بن المطلب بن اسد ته ورغی، پدې هکله يې خبرې ورسره وکړې، او له بني عبد مناف سره دده د قرابت (خپلولۍ) او د هغوی د حقوقو يادونه يې ورته وکړه. زمعه ورته وويل: کوم څوک داسې شته چې ستا ددې نظر او پيشنهاد تاييد او ملاتړ وکړي؟ هشام بن عمرو ورته وويل هو، پدې هکله فلانی او فلانی او... ټول نومونه يې ورته واخيستل کلک ولاړ دي، بالاخره ټول له حجون سره راټول شول، او ددې صحيفې د نقض او تړون د ماتولو عزم او پريکړه يې وکړه، زهير وويل: د کار پيل به له ما نه وي، يعنی لومړی به زه پدې هکله خبرې کوم.

سهار شو، خلک ټول خپلو خپلو مجلس ځايونو ته راغلل، زهير هم پداسې کې چې ښکلې جامې يې اغوستې وې راغی، له بيت الله شريف نه يې اوه ځله طواف وکړ، بيا يې خلکو ته مخ کړ او ورته وې ويل: اې د مکې خلکو! مونږ دې خورو او څښو، خو بني هاشم دې له لوږې نه مري، نه دې څه ورنه اخيستل کيږي او نه دې څه ورباندې پلورل کيږي؟ قسم په الله، زه به تر هغې کښينم تر څو دا ظالمانه تړون مات شوی نه وي او تر څو دا صحيفه نقض او څيرې شوې نه وي.

ابو جهل چې د مسجد حرام په کوم کنج کې ناست ؤ وويل: دروغ دې وويل، قسم په الله، دا صحيفه به څيرې نه شي! پدې وخت کې زمعه بن اسود وويل: قسم په الله چې ته ډير دروغ وايې، پدې صحيفه د ليکلو په وخت کې هم مونږ راضي نه وو، ابو البختري هم غږ وکړ او وې ويل: زمعه رښتيا وايي پدې صحيفه کې چې څه ليکل شوي مونږ نه ورباندې خوښ يوو او نه يې ملاتړ کوو.

مطعم بن عدي هم وويل: تاسې رښتيا وويل، او څوک چې بل څه وايي هغه دروغجن

دی، مونږ لدې صحيفې او له هغه څه نه چې پکې ليکل شوي خپل براءت اعلانوو. بيا هشام بن عمرو هم دې ته ورته څه خبرې وکړې.

ابوجهل وويل: ددې خبرې ترون د شپې شويدی، او پدې هکله مشوره چيرته بل ځای شويده. پدې وخت کې ابو طالب هم د مسجد حرام په کومه ګوښه کې ناست ؤ، د هغه د راتګ سبب هم دا ؤ چې الله تعالی خپل رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته د صحيفې په هکله خبر ورکړی ؤ چې الله تعالی وربانديې وينه (چويه) مقرره کړې چې د الله له نامه پرته ټولې د ظلم، زياتي او دښمنۍ کلمې يې خوړلې دي. رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا خبره خپل تره ته وکړه، نو ابو طالب هم قريشو ته راغی او ورته ويې ويل چې وراره مې داسې وايي که چيرې دروغ يې ويلي ؤ نو بيا تاسې پوهيږئ او هغه، او که چيرې پدې ادعا کې ريښتونی ؤ نو بيا لدې ظلم نه لاس واخلئ او زمونږ محاصره ختمه کړئ. هغوی ورته وويل: دا د انصاف خبره ده. او کله چې د ابوجهل او دې نورو تر مينځ دا خبرې تبادله شوې، نو مطعم پاڅيد چې هغه صحيفه څيرې کړي، صحيفه يې چې رواخستله ګوري چې د صحيفې ټول ټکي وينه خوړلي او يوازې (باسمک اللهم) او هر چيرته چې د الله نوم ؤ هغه پاتې دی، نور ټول خوړل شوي هيڅ هم نه ؤ پاتې .

نو صحيفه نقض شوه، ترون مات شو، او رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره له ټولو محاصره شويو کسانو له شعب نه راووتل. مشرکينو د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د نبوت يوه عظيمه نښانه او معجزه د سر په سترګو وليدله، خو لدې سره هم د هغوی رويه داسې وه لکه چې دا آيت ورته اشاره کوی:

((وَإِنْ يَرَوْا آيَةً يُعْرِضُوا وَيَقُولُوا سِحْرٌ مُسْتَمِرٌّ)) (القمر: ۲) [او که ويني دغه (کفار د قريشو) کوم دليل (د قدرت) نو پر څنګ به شي دوی (مخ به واړوي) ترې او وايي به دوی (دغه) سحر کوډې دي قوي، چې له پخوا راهيسې راځي.]

هوکې، مشرکينو لدې نښانې او معجزې نه هم مخ واړاوه، اعراض يې وکړ، او پخپل کفر او ګمراهۍ کې لا پسې وړاندې لاړل.[1]

---

[1]. ددې عمومي پريکون تفصيلات مو لدې مراجعو نه اخيستی دي: صحيح البخاري، باب نزول النبي (صلی الله عليه وسلم) بمکة ۱/ ۲۱۲، او باب تقاسم المشرکين على النبي (صلی الله عليه وسلم) ۱/ ۵۴۸. زاد المعاد ۴۲/۲. ابن هشام ۱/ ۳۵۰، ۳۵۱، ۳۷۴، ۳۷۵، ۳۷۲، ۳۷۷. رحمة للعالمين ۲۹/۱. ۷۰ مختصر سيرة الرسول (صلی الله عليه وسلم) للشيخ عبدالله النجدي ص ۱۰۲- ۱۰۷- ۱۰۸ - ۱۰۹- ۱۱۰. مختصر السيرة للشيخ محمد بن

# ابو طالب ته د قریشو وروستۍ جرګه

رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ابو طالب له خوړ (دري) نه په راوتو سره د دعوت او تبلیغ کارته د پخوا په شان ادامه ورکوله قریشو که څه هم په ظاهر کې دا محاصره او بایکاټ ختم کړی وُ، خو په حقیقت کې یې پر مسلمانانو باندې خپل ظلمونه او فشاورنه همداسې جاري ساتل، او خلک یې د الله تعالی له دین نه منع کول. ابو طالب هم د پخوا په شان د خپل وراره تر شا ټینګ ولاړ و خو عمر یې له اتیا کلونو نه اوښتی وُ، او ددې څو کلونو سختیو او درددونکو پیښو خصوصاً درې کلنې محاصرې ډیر کمزوری او ملا ماتی کړی وُ. له محاصرې نه د خلاصون لا څومیاشتې نه وې تیرې شوې چې ابو طالب ناروغ شو، بیماري یې زیاته شوه. دغه وخت مشرکینو وویل که ابو طالب مړ شي او بیا مونږ دده له وراره سره ظلم او زیاتی کوو، نو دا به زمونږ لپاره لویه بدنامي وي، د همدې بـدنـامـی له ویرې نه هغوی یو ځل بیا د خبرو اترو لاره ونیوه، او نیت یې وکړ چې د ابو طالب په وړاندې له محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره د خبرو له لارې معامله وکړي، او دا ځل د داسې شیانو په ورکړه هم راضي شول چې مخکې یې هغه نه ورکول، نو همدا وه چې ابو طالب ته یې خپله وروستۍ جرګه ور واستوله.

ابن اسحاق او نور وایي: کله چې ابو طالب بیمار شو، او قریش پوه شول چې حالت یې مخ په خرابیدو دی، نو پخپل منځ کې یې سره وویل: عمر او حمزه (رضي الله عنهما) په اسلام مشرف شول، د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دین د قریشو په ټولو کورنیو کې خور شویدی، راځئ ابو طالب ته ورشو، تر څو هغه خپل وراره زمونږ په اړه د کومې خبرې پابند کړي او زمونږ نه هم په دې اړه عهد او وعده واخلي، قسم په خدای ویریږو چې خلک به بیا زمونږ له ادارې او کنترول نه ووزي. په بل روایت کې داسې راځي: ویریږو چې که دا بوډا مړ شي او بیا پر محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) کوم ظلم او زیاتی وشي نو بیا به عرب مونږ ته دا طعنه را کوي چې وګورئ دوی محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پرې ایښی وُ او د هغه په مقابل کې یې د ظلم او زیاتي جرات نه درلود، خو کله یې چې تره وفات شو نو را

---

عبدالوهاب النجدي ص ۲۸ – ۲۹- ۷۰-۷۱- ۷۲-۷۳. د موضوع په هکله نوموړی مصادر څه کم شانته اختلاف سره لري، خو مونږ د قرائنو له څېړلو وروسته زمونږ په نظر له ټولو نه قوي نظریه اخیستې ده.

وي‌ې نيو او ظلمونه يې وربانديې شروع کړل! د قريشو دا وفد ابو طالب ته ورغی، د وفد (هيئت) غړي د قريشو اشراف او مخور خلک وو لکه عتبه بن ربيعه، شيبه بن ربيعه، ابو جهل بن هشام، اميه بن خلف، ابو سفيان بن حرب او د قريشو نور اشرافيان چې د ټولو شمير (**۲۵**) کسانو ته رسيده.

د هيئت غړو له ابو طالب سره خبرې اترې وکړې او داسې يې ورته وويل: ته چې زمونږ په مينځ کې کوم مقام او منزلت لرې هغه ښه درته معلوم دی، په کوم حال کې چې اوس قرار لرې هغه هم وينې، زمونږ ويره ده چې دا ستا آخري شپې ورځې دي، زمونږ او ستا د وراره تر مينځ چې کوم کشمکش روان دی په هغه هم ښه خبر ياست، نو لازمه ده چې ته هغه راوغواړې او زمونږ نه د هغه لپاره، او له هغه نه زمونږ لپاره قول او تړون واخلې يعنې داسې چې هغه له مونږ نه لاس واخلي او مونږ له ده نه، مونږ دې پريږدي چې پخپل دين و اوسو، او هغه به پريږدو چې پخپل دين وي. ابو طالب خپل وراره حضرت محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) راوغوښت، هغه راغی، ابو طالب ورته وويل: وراره! دا ستا د قوم مشران او مخور درته راغلي دي، غواړي چې د څه شيانو قول او وعده درنه واخلي او د څه شيانو قول او وعده دوی درکړي. بيا يې د هغوی وړانديزونه ورته واورول او دا يې ورته وويل چې غواړي داسې تړون سره وکړئ چې نور به يو پر بل غرض نه سره لرئ.

رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ددې خبرو په ځواب کې د هيئت غړو ته مخ ور واړاوه او داسې يې ورته وفرمايل: (**أرأيتم إن أعطيتكم كلمة تكلمتم بها، ملكتم بها العرب، ودانت لكم بها العجم**). [دا راته ووايئ که زه داسې کلمه او خبره درته وړاندې کړم چې د هغې په ويلو سره به تاسې د عربو پاچايان شئ، عجم به ټول درته سلامي شي، نو تاسې څه نظر لرئ؟] په ځينو روايتونو کې راځي چې رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ابو طالب ته وفرمايل: (**إني أريدهم على كلمة واحدة يقولونها تدين لهم بها العرب، وتؤدى إليهم بها العجم الجزية**) [زه له دوی نه د داسې يوې خبرې غوښتونکی يم چې که چيرې هغه ووايي نو عربان به ټول ورته تسليم شي او عجم به ورته جزيه ورکوي.] په بل روايت کې راځي چې خپل تره ته يې وفرمايل: (**أي عم، أفلا أدعوهم إلى ما هو خير لهم؟**) [کاکا جانه! ته ولې هغوی داسې يوې کلمې ته نه رابولې چې هغه د دوی لپاره غوره او بهتره ده؟] ابو طالب ورته وويل: ته هغوی

څه شي ته رابولې؟ ده ورته وفرمايل: (**أدعوهم إلى أن يتكلموا بكلمة تدين لهم بها العرب، ويملكون بها العجم**) [زه غواړم هغوی داسې يوې کلمې ته راوبولم چې د هغې په ويلو سره به دوی د ټولو عربو مشري وګټي او په عجمو باندې به يې پاچايي قايمه شي.]

د ابن اسحاق يو روايت داسې دی: رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل:(**كلمة واحدة تعطونها تملكون بها العرب، وتدين لكم بها العجم**). [تاسې زما يوازې يوه خبره ومنئ، هغه داسې خبره ده چې په ويلو سره به يې د عربو پاچايان او عجم به ټول درته سلامي شي.]

په هر حال کله چې رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا خبره وکړه دوی ټول چوپ او حيران شول چې څنګه کيدای شي تر دې حده يوه ګټوره خبره رد کړي؟ بالاخره ابو جهل ورته وويل: دا کومه خبره ده؟ ستا په پلار قسم، ووايه داسې يوه خبره څه لس خبرې خو وکړه مونږ يې منلو ته تياريو. رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: تاسې دا ووايئ چې: ((**لا إله إلا الله ، وتخلعون ما تعبدون من دونه**))[**له الله پرته بل حق معبود نشته، او پرته له يوه الله نه د بل هر څه** عبادت پريږدئ]. ددې خبرې په اوريدو سره دوی لاسونه سره ووهل او وي‌ې ويل: اې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته غواړې چې ددې ټولو خدايانو په ځای يوازې يو خدای ونيسو؟ په رښتيا چې ستا دا معامله ډيره عجيبه او غريبه ده، بيا يې يو بل ته سره وويل: قسم په الله چې دا سړی ستاسې هيڅ خبره هم نه مني، ځئ چې ځو، او د خپلو پلرونو په دين به ټينګ اوسو تر څو الله تعالی زمونږ او ده تر مينځ فيصله وکړي، پدې ترتيب سره هغوی هر يو پخپله لار لاړ.

او د همدې خلکو په باره کې د قرآنکريم دا آيتونه رانازل شول:

((ص وَالْقُرْآنِ ذِي الذِّكْرِ (١) بَلْ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي عِزَّةٍ وَشِقَاقٍ (٢) كَمْ أَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِنْ قَرْنٍ فَنَادَوْا وَلاتَ حِينَ مَنَاصٍ (٣) وَعَجِبُوا أَنْ جَاءَهُمْ مُنْذِرٌ مِنْهُمْ وَقَالَ الْكَافِرُونَ هَذَا سَاحِرٌ كَذَّابٌ (٤) أَجَعَلَ الآلِهَةَ إِلَهاً وَاحِداً إِنَّ هَذَا لَشَيْءٌ عُجَابٌ (٥) وَانطَلَقَ الْمَلأُ مِنْهُمْ أَنْ امْشُوا وَاصْبِرُوا عَلَى آلِهَتِكُمْ إِنَّ هَذَا لَشَيْءٌ يُرَادُ (٦) مَا سَمِعْنَا بِهَذَا فِي الْمِلَّةِ الآخِرَةِ إِنْ هَذَا إِلاَّ اخْتِلاقٌ (٧) (ص: ١ _ ٧))[1]

---

[1]. ابن هشام ۴۱۷/۱ - ۴۱۸- ۴۱۹ . تفهيم القران ۴/ ۳۱۲ - ۳۱۷ - ۳۱۸. مختصر السيرة للشيخ عبدالله النجدي ص ۹۱.

[ ص، قسم دی په قرآن چې څښتن د پند، ذکر، بيان، شرف، شهرت، عظمت دی (داسې ندي چې کفار د معبودانو په نسبت وايي) بلکه هغه کسان چې کافران شويدي په کبر، سر کشۍ کې دي (له قبوله د حق) او په مخالفت کې دي (له مسلمانۍ سره)، (نه ګوري منکران چې) څومره ډير هلاک کړيدي مونږ پخوا له دې څخه له اهل د زمانې پس نارې به يې وهلې (عند نزول العذاب) حال دا چې نه به و هغه وخت د خلاصيدلو (او د تښتيدلو) او تعجب کوي (کفار) له دې نه چې راغلی دی دوی ته (نبي) ويروونکی له دوی نه او وايي دا کافران چې دغه (ويروونکی نبي) ساحر کوډګر دی دروغجن آيا ده ګرځولي دي دغه (۳۶۰) معبودان الله يو معبود؟ بيشکه دغه (ګرځول د ډيرو معبودانو يوه ته چې تاسې نور معبودان پريږدئ او د يو الله عبادت کوئ) خوامخواه يو څيز ډير عجيب دی (چې مثل نلري) او لاړل په تلوار سره مشران له دوی نه (له مجلسه چې سره ويونکي وو يو بل ته) چې ځئ (پاڅئ له دې ځايه) او صبروکړئ (او محکم اوسئ) پر(عبادت د) معبودانو خپلو، بيشکه دغه شی (توحيد) خوامخواه يوشی دی چې اراده يې کړې شوې ده (له مونږ څخه)، ندی اوريدلی مونږ دغه (توحيد، و حدانيت په دين وروستني (عيسوی کې) نه دی دغه (توحيد) مګر له خپله ځانه جوړ کړي شوي دروغ دي.]

# د غم کال

## د ابو طالب وفات

د ابو طالب ناروغي سخته شوه بالاخره د بعثت په لسم کال د رجب[1] په میاشت کې وفات شو. دغه وخت د اقتصادي محاصرې له ماتیدو نه یوازې شپږ میاشتې تیرې شوې وې.[2] په بل روایت سره ابو طالب د خدیجې (رضي الله عنها) له وفات نه درې ورځې مخکې د رمضان په میاشت کې وفات شویدی.

په صحیح البخاري کې له مسیب (رضي الله عنه) نه روایت شوی: کله چې د ابو طالب ځنکدن وُ، ابو جهل ورسره ناست وُ رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هم ورغی او ورته ووې وفرمایل: (**أي عم، قل: لا إله إلا الله ، كلمة أحاج لك بها عند الله**). [کاکا جانه! د (لا اله الا الله) کلمه ووایه، یوازې همدا یوه کلمه تر څو د الله تعالی په وړاندې یې ستا لپاره د حجت او دلیل په توګه وړاندې کړی شم.]

دلته ابوجهل او عبدالله بن ابي امیه ورته وویل: ابو طالبه! آیا د عبدالمطلب له دین نه ګرزې؟ دوی دواړو همداسې خبرې ورته کولې تر څو له خلکو سره د ابو طالب وروستی خبره دا شوه چې ویې ویل: د عبدالمطلب په ملت (دین) یم. نو بیا رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (**لأستغفرن لك ما لم أنه عنـــه**) [تر هغې به له الله تعالی نه درته ببښنه غواړم تر څو لدینه منع کړی شوی نه وم.] پدې پسې دا آیت شریف را نازل شو[3]:((**مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَنْ يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ وَلَوْ كَانُوا أُولِي قُرْبَى مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُمْ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ** ))

---

(1). تاریخ اسلام للشاه اکبر النجیب آبادي ۱۲۰/۱. تاریخي مصادر پدې هکله چې ابو طالب په کومه میاشت کې وفات شویدی، زیات اختلاف سره لري خو مونږ د رجب میاشت ځکه غوره کړې چې زیاتره مصادر پدې اتفاق لري چې ابو طالب له شعب نه له راوتلو نه شپږ میاشتې وروسته وفات شوی، اقتصادي محاصره درې کاله وه، اوپیل یې د بعثت د اووم کال د محرم له لومړۍ شپې نه وُنو پدې حساب سره دده د مرګ نیټه د نبوت د لسم کال د رجب میاشت راځي.

(2). مختصر السیرة للشیخ عبدالله النجدي ص ۱۱۱.

۳- صحیح البخاري باب قصة ابي طالب ۵۴۸/۱

(التوبة: ۱۱۳) [نه دي لايق او (روا) نبي ته او (نه دي لايق او روا) هغو کسانو ته چي ايمان لرونکي دي دغه چې مغفرت وغواړي دوی د پاره د مشرکانو او اګر که وي دا (مشرکان) خاوندان د خپلولۍ وروسته له دې خبرې چې ښکاره شي دوی ته چې بيشکه دوی صاحبان دي د دوزخ (او په کفر مړه دي).]

او دا آيت هم را نازل شو: ((إِنَّكَ لاَ تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ...)). (القصص: ٥٦)[ بيشکه ته (اې محمده) نشې ښوولی (لاره حقه) هغه چا ته چې خوښ وي ستا.]

دلته ددې ضرورت نه وينو چې ووايو ابو طالب څومره او څه ډول د رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) حفاظت او ملاتړ کړی وٌ، ابو طالب د مکې د جاهلو او لويانو د حملو په وړاندې د اسلامي دعوت لپاره د يوې پخې او اوچتې کلا حيثيت درلود، خو هغه د خپلو پلرونو او مشرانو په ملت او دين مړ شو، نو ځکه يې پوره او کامله کاميابي او رستګاري په برخه نه شوه.

په بخاري شريف کې له عباس بن عبدالمطلب (رضي الله عنه) نه روايت دی وايي: حضرت عباس (رضي الله عنه) رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته وفرمايل: ته خپل تره ته څه کولی شې؟ پداسې حال کې چې هغه به ستا ساتنه کوله او د تا په سر به يې له نورو سره شخړې او جګړې کولی او د تا پخاطر به په نورو غوصه کيده؟ رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل:

(هو في ضَحْضَاحٍ من نار، ولو لا أنا لكان في الدرك الأسفل من النار).

[هغه د دوزخ په باندينۍ برخه يا څنډه کې دی، او که چيرته زه نه وی، نو هغه به د دوزخ په له ټولو نه ژوره کنده کې وای.][1]

ابو سعيد الخدري (رضي الله عنه) وايي چې: يو ځل د رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په وړاندې دده د تره (ابو طالب) يادونه وشوه نو ده (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل:

(لعله تنفعه شفاعتي يوم القيامة، فيجعل في ضحضاح من النار تبلغ كعبيه).

[کيدای شي د قيامت په ورځ زما شفاعت ګټه ور ورسوي، او د دوزخ په باندينۍ برخه (څنډه)کې يې ځای شي چې اور به يې يوازې تر ښنګريو پورې ورسيږي.]

(1). صحيح البخاري باب قصه ابي طالب ۱/ ۵۴۸

## خديجه (رضي الله عنها) د عقبى په لور

د ابو طالب له وفات نه دوى مياشتې او يا يوازې درې ورځې وروسته د روايتونو د اختلاف په اساس د بعثت په لسم كال د رمضان په مياشت كې ام المؤمنين حضرت خديجه الكبرى (رضي الله عنها) د (۶۵) كلنۍ په عمر كې له دې فاني دنيا نه سترگې پټې كړې او دغه وخت د رسول اكرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د مبارک عمر پنځوسم كال و.[1]

حضرت خديجه (رضي الله عنها) د رسول اكرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) لپاره د الله تعالى له خوا لوى او ډير گرانبها نعمت و، پنځه ويشت كاله يې يو ځاى سره تير كړل. خديجه (رضي الله عنها) د غم او خفگان په وخت د رسول اكرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) لپاره خوشالي او ډاډ گيرنه وه، په سختيو كې به يې خوا ته ولاړه وه، د رسالت د تبليغ په لاره كې به يې مرسته ورسره كوله، د جهاد كړاوونه او سختۍ به يې ورسره گاللې، په ځان او مال سره به يې له رسول (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره غمشريكي كوله. رسول اكرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ام المؤمنين خديجې (رضي الله عنها) په هكله فرمايي: (**آمنت بي حين كفر بي الناس و صدقتني حين كذبني الناس،و اشركتنى في مالها حين حرمني الناس، ورزقني الله ولدها، و حرم ولد غيرها**))[2] [خديجې (رضي الله عنها) هغه وخت ىې په ما ايمان راوړ چې خلک راباندې كافر وو، او هغه وخت يې زما تصديق وكړ چې خلكو تكذيبولم او هغه وخت يې زه پخپل مال كې شريک كړم چې خلكو زه محروم كړى وم او الله تعالى ما ته له هغې نه اولاد راكړ او له نورو نه يې اولاد رانكړ.]

بخاري شريف له ابو هريره (رضي الله عنه) نه روايت كوى وايي:(**اتى جبريل (عليه السلام) النبي (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) فقال:يا رسول الله هذه خديجة (رضي الله عنها) قد اتت، معها اناء فيه ادام او طعام او شراب فاذا هي اتتك فاقرا عليها السلام من ربها، و بشرها ببيت في الجنة من قصب لا خصب فيه ولانصب**)[3]

---

[1]. ابن جوزي او علامه منصور پوري وايي خديجه (رضي الله عنها) د رمضان په مياشت كې وفات شويده: تلقيح الفهوم ص ۷، رحمة للعالمين ۱۲۴/۲

[2]. رواه الامام احمد في مسنده ۱۱۸/۲

[3]. صحيح البخارى باب تزويج النبي (صلى الله عليه وسلم) خديجة و فضلها ۱/ ۵۳۹

يعنی جبريل (عليه السلام) د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته تشريف راوړ او ورته ويې فرمايل: يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا ده خديجه (رضي الله عنها) تشريف راوړي او ورسره يو لوښی دی چې پکې څه کتغ (سالن) خواړه يا څه د څښلو شی (مشروب) دی او کله چې هغه تا ته راورسيده نو ته ددې د رب له طرفه ورته سلام ورسوه، او په جنت کې د زمردو او ياقوتو د داسې يوه کور زيری ورکړه چې هلته به نه ځوږ او شور وي او نه ستوماني او درماندگي.

د غمونو لړی

دا دواړه ډيرې درددونکې پيښې وې، چې په ډيره کمه موده کې يوه په بله پسې پيښې شوې، رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې ډير ودرداوه او زړه يې ډير غمجن او خفه شو، او په همدې پسې د نورو غمونو ورته مخه شوه. د ابو طالب له وفات وروسته مشرکين ورباندې ور روږدي شول او جرات يې وموند، رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته يې په ښکاره اذيت رساوه او ظلمونه يې ورباندې کول. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دومره غمونو واخيست، او زړه يې دومره ودريده چې نور يې لدې خلکو اميد قطع شو او پدې هيله يې د طائف لاره ونيوه چې کيدای شي هلته يې څوک دعوت ومني، پناه ورکړي او د خپل قوم په مقابل کې مرسته ورسره وکړي، خو هلته هم چا د الله تعالی د رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دعوت ونه مانه، پناه يې ور نکړه ، هيڅ ډول مرسته يې ورسره ونکړه، او د هغه ځای خلکو د نيکۍ په ځای دومره بدي ورسره وکړه چې په مکه کې چا نه وه ورسره کړې.

څومره چې په رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د مکې د مشرکينو ظلمونه زيات شول، هومره په اصحابو (رضي الله عنهم) هم ظلمونه او ربړونه ډير شول، تر دې چې د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نژدې ملگری ابوبکر الصديق (رضي الله عنه) هم مجبور شو د حبشې په لور د هجرت لار ونيسي، له کوره ووت او تر برک الغماد پورې ورسيد ، خو هلته ابن الدغنه وليد بيرته يې پخپل جوار او پناه کې مکې ته راووست.(١)

(1). شاه اکبر خان نجيب آبادي وايي چې دا واقعه په همدې کال شويده تاريخ اسلام ١/ ١٢٠ وگوره، دا اړده کيسه په ابن هشام ١/ ٣٧٢، ٣٧٤ او صحيح البخاري ١/ ٥٥٢، ٥٥٣ کې هم رانقل شويده.

ابن اسحاق وایي: د ابو طالب له وفات نه وروسته قریشو په رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) باندې داسې ظلمونه وکړل چې د ابو طالب په ژوند کې یې تصور قدرې هم نه شوی کولی، ان تر دې چې د قریشو یوه ګمراه او جاهل یوه ورځ د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پر مبارک سر خاورې ور واچولې، او د الله تعالی رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) همداسې ګردجن او په خاورو لړلي سر کور ته تشریف یووړ، هلته یې یوه لور ورپاڅیده او د خپل ګرانقدر پلار (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مبارک سر یې ومینځه، خاورې یې ورنه پاکولې او ژړل یې. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل:

(**لا تبکی یابنیة، فإن الله مانع أباك**). لورې! ته ژاړه مه، الله تعالی ستا د پلار ساتنه او حفاظت کوي. پدې وخت کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دا هم وفرمایل: (**ما نالت منی قریش شیئًا أکرهه حتی مات أبو طالب**).

[تر څو چې ابو طالب ژوندی و قریشو زما په هکله هسې کار نه شوای کولی چې زما نه خوښیده، یعنې اذیت یې نه شوای رارسولئ.] .[1]

او څرنګه چې پدې کال کې رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته یو په بل پسې غمونه او دردونه پیښیدل نو دا کال یې د عام الحزن (د غم کال) په نامه ونوماوه، او په همدې نامه په تاریخ کې شهرت لري.

## له حضرت سوده (رضي الله عنها) سره واده

په همدې کال یعنی د بعثت په لسم کال د شوال په میاشت کې رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له حضرت سوده (رضي الله عنه) سره واده وکړ. حضرت سوده (رضي الله عنها) په اسلام مشرفه شوې وه او په دوهم ځل هجرت کې یې حبشې ته هجرت کړی و.

لومړنی میړه یې سکران بن عمرو نومیده هغه هم مسلمان ؤ او له دې سره یې یو ځای هجرت کړی ؤ خو هملته حبشه کې وفات شو، یا دا چې مکې ته راستون شو او وفات شو. او کله چې د سوده (رضي الله عنها) عدت پوره شو، نو رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خطبه (کوزده) ورسره وکړه او بیا یې نکاح کړه.

---

[1]. ابن هشام ۴۱۲/۱

او سوده (رضي الله عنها) لومړنۍ ښځه ده چې د خدیجې (رضي الله عنها) له وفات نه وروسته رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نکاح ورسره کړې ده. وروسته په مدینه منوره کې سوده (رضي الله عنها) د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د خوشالۍ پخاطر خپل نوبت حضرت عائشې (رضي الله عنها) ته هبه کړی (ببښلی) و[1].

[1]. رحمة للعالمین ۲/ ۱۱۵. تلقیح فهوم الاثر ص۱۰.

# د لومړنيو مسلمانانو
# د
# صبر او ثبات عوامل

دلته د ډير پياوړي عقل او غټ زړه خاوندان هم له حيرت نه ګوته په غاښ دريږي، او د لوی علم او پوهې خاوندان هم دا پوښتنه کوي چې هغه کوم عوامل او اسباب وو کوم چې د مسلمانانو د دومره عظيم صبر او ثبات سبب شويدي؟ هغوی د داسې ظلمونو په وړاندې چې تش په اوريدو يې ويښتان په غوني نيغ دريږي او له ياد نه يې زړونه په لړزه راځي، څنګه او څه ډول ټينګ ولاړ وو؟ او دا کوم زور ورسره ؤ چې داسې ظلمونه او کړاوونه يې ګاللی شوی؟ نو ددې پخاطر چې دا ډول پوښتنې ځواب شوې وي، لازمه وينو چې د لومړنيو مسلمانانو د صبر او ثبات ځنې عوامل تر نظر تير کړو:

١. <u>ددې ثبات او مقاومت لومړنی</u> او اساسي عامل او سبب په واحد الله (جل جلاله) باندې ټينګ ايمان، او د هغه حقيقي پيژندنه او درست معرفت دی. ځکه يو ځل چې زړه د ايمان په نور منور شي، او د ايمان شمعه په زړه کې بله شي، نو بيا هغه له غرونو نه هم ټينګ وي او هم دروند، او د داسې ايمان خاوند د دنيا ټول مشکلات او کړاوونه که هر څومره ډير او خطرناک وي په هيڅ شميري، او هغه ټول د خپل ايمان په مقابل کې لکه د اوبو ځک او يا لکه د يوه طوفاني او نړوونکي سيلاب په مخ کې د شګو بند شميري. هغه د ايماني لذت او خپل اعتقادي راحت او طراوت په وړاندې هيڅ مشکل ته مشکل نه وايي، او د ايمان په لاره کې د هيڅ کړاو پروا هم نه ساتي: ((...فَأَمَّا الزَّبَدُ فَيَذْهَبُ جُفَاءً وَأَمَّا مَا يَنفَعُ النَّاسَ فَيَمْكُثُ فِي الأَرْضِ كَذَلِكَ يَضْرِبُ اللَّهُ الأَمْثَالَ)) (الرعد: ١٧) [نو هر څه ځک او خيری نو لاړ به شي په دغه حال کې چې پريوتی وي له نظره (او بې نفعې به وي) او هر څه هغه څيز چې نفع رسوي خلکو ته، نو پاتې کيږي په ځمکه کې (د ګټې پخاطر).

دا اساسي علت او سبب نورې څانګې هم لري چې هر يوه يې د ثبات او صبر په لاره کې د بيل بيل اهميت د رلـو د ونـکې ده او هغه دا دي:

٢. <u>داسې قيادت او مشرتابه چې په زړونو حکومت کوي</u>، رسول الله (صلی الله عليه و

اله و صحبه و سلم) چې نه یوازې د اسلامي امت بلکه د ټول بشریت قائد او لارښود دی د داسې جسماني جمال، نفساني کمال، کریمانه او نیکو اخلاقو، عظیم کردار او ډیرو غوره عاداتو او خصائلو درلودونکی ؤ چې زړونه به پخپله ورته تسلیمیدل، او خلک به ورنه ځاریدل ځکه هغه کمالات او ښیګڼې چې خلک ځانونه ورنه قربانوي رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته له هغو نه دومره برخه ورکړل شوې وه چې بل هیڅ بني بشر ته هم دومره لویه برخه نده ورکړل شوې. رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د شرف، عظمت، فضل او کمال تر ټولو لوړ او اوچت څلی ؤ، د هغه (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په عفت، امانتدارۍ، صدق، رېښتینولۍ، او نورو ټولو ښیګڼو باندې له دوستانو وړاندې دښمنانو هم اعتراف کاوه. هره خبره به چې د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له مبارکې خولې وتله حتی ډیر غټ دښمنان به هم د هغې په صدق باندې پوره متیقن وو ډیرې داسې پیښې او شواهد وجود لري چې زمونږ د مخکې تیرې شوې خبرې تصدیق او تایید کوي. یو ځل له قریشو نه درې کسان سره راټول شول، دوی هر یو بیل، بیل او په پټه توګه قرآنکریم اوریدلی ؤ لومړی یو له بل نه خبر نه وو خو بالاخره یې راز فاش او یو په بل خبر شول، لدې دریو نه یو ابو جهل ؤ، کله چې درې واړه سره راټول شول نو یوه یې له ابو جهل نه وپوښتل چې ووایه د هغه څه په هکله چې له محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه دې اوریدلي ستا نظر څه دی؟ ابو جهل په ځواب کې ورته وویل: ما څه اوریدلي؟ اصلي خبره دا ده چې په شرف او عظمت کې زمونږ او بنو عبدمناف تر مینځ مقابله او مسابقه وه، هغوی غریبانو ته خواړه ورکول مونږ هم ورکول، هغوی خلکو ته د سپرلۍ بند وبست کاوه مونږ هم ورته سپرلۍ برابرولې، هغوی خلکو ته مرستې ورکولې، مونږ هم ورسره کومکونه کول، یعنی څه به چې هغوی کول مونږ به هم همداسې کول تر څو دواړه سره بالکل برابر شوو، مونږ او هغوی لکه په یوه مسابقه کې دشرط دوه آسان داسې شولو چې هر یو دا کوښښ کوي له بل نه مخکې شي، خو اوس بنو عبدمناف وایي چې زمونږ په مینځ کې داسې نبي (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دی چې له آسمانه وحي ورته راځي، نو اوس ووایئ مونږ به کله دې ته ورسیدی شو؟ قسم په خدای، مونږ به کله هم پدې سړي ایمان را نه وړو، او کله به یې هم تصدیق ونکړو.(1)

(1). ابن هشام ۳۱۲/۱.

همدا راز ابو جهل به دا هم ويل: اې محمده (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) مونږ تا دروغجن نه بولو، خو هغه څه تکذيبوو چې تا راوړي دي، نو الله تعالى دا آيت شريف را نازل کړ:((فَإِنَّهُمْ لا يُكَذِّبُونَكَ وَلَكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ))(1) (الانعام: ۳۳). [نو بيشکه دوى نه کوي تکذيب ستا (په واقع کې) و ليکن دا ظالمان په ايتونو د الله انکار (مسخرې) کوي.]

دا کيسه خو مخکې تيره شوه چې يوه ورځ کفارو رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته درى ځله طعنې ورکړې، او په دريم ځل رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: اې قريشو! ما تاسې ته قتل او ذبح راوړې ده، يعنى دا يو ډول تهديد وُ چې هغوى ته يې ويل ما درته ستاسې د قتل خبر راوړى دى. دې خبرې په هغوى باندې دومره اغيزه وکړه چې په هغه مجلس کې له رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره له ټولو نه د زيات عداوت او دښمنۍ درلودونکي هم په ډيره نرمه لهجه او خوږو کلماتو د رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د رضا او خوښۍ حاصلولو کوښښ کاوه.

دا مو هم مخکې وويل چې يوه ورځ رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په لمانځه ولاړ وُ کله يې چې سر په سجده کېښود کفارو د اوښ لرى او کولمې ورباندې ورواچولې، خو کله چې رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) له سجدې نه سر راپورته کړ، نو دوى ته يې ښيره وکړه، يو ځل د مشرکينو خنداګانې په خولو کې ور وچې شوې، غم او ويرې واخيستل او پدې باوري شول چې حتماً به هلاکيږى نور يې نجات نشته.

دا کيسه هم مخکې تيره شوې چې رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ابو لهب زوى عتيبه ته ښيرې وکړې، عتيبه پدې پوره يقين درلود چې دا ښيرې به حتماً ورته لګيږي، او کله يې چې په شام کې زمرى وليد نو وې‌ويل: قسم په خداى چې محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) زه پداسې حال کې ووژلم چې پخپله په مکه کې ناست دى.

همدا راز ابي بن خلف به تل رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته د قتل اخطارونه ورکول، يو ځل رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) دده په ځواب کې ورته وفرمايل: (بل أنا أقتلك إن شاء الله) [چې ته نه، بلکه زه به تا وژنم (ان شاء الله).] او کله چې د احد په غزا کې رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و

(1). رواه الترمذي في تفسير سورةالانعام ۱۳۲/۲

سلم) د ابي بن خلف په غاړه د نيزې ګوزار وکړ، که څه هم هغه معمولي ټپي شوی وُ، خو داسې يې ويل: محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ما ته په مکه کې دا ويلی وُ چې زه به تا وژنم، قسم په خدای که هغه ما ته لاړې هم را تو کړي نو زما روح به له کالبد نه وزي (ددې پيښې تفصيل به په راتلونکو پاڼو کې راشي).[۱]

همدارنګه يو ځل سعد بن معاذ په مکه کې اميه بن خلف ته وويل: ما له رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه اوريدلي چې فرمايل يې: (**إنهم ــــ أي المسلمين ــــ قاتلوك**) چې ته (اميه) به د مسلمانانو په لاس وژل کيږې. ددې خبرې په اوريدو سره د اميه زړه ولويد ويرې واخيست او له ځان سره يې دا عهد وکړ چې له مکې نه به د باندې نه وځي، او د بدر د غزا په وخت کې چې د ابو جهل د ډير اصرار په وجه مجبور شو له مکې نه ووځي، نو يو ډير تند او تيز اوښ يې واخيست تر څو د خطر په وخت کې يې ژر له صحنې راوايستلی شي، پدې وخت کې چې اميه له مکې نه د مدينې په لور تګ ته تيار شو، نو ښځې يې ورته وويل: اې ابو صفوانه! تا د هغه يثربي ورور خبره هيره کړيده؟ ابو صفوان په ځواب کې ورته وويل: نه، نه مې ده هيره شوې، خو قسم په خدای چې له هغوی سره تر دې نژدې ځايه پورې ځمه.[۲]

دا وُ د رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د دښمنانو حال، خو د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ياران او اصحاب (رضي الله عنهم) دومره د خپل عظيم لارښود په مينه کې ډوب وو چې مرګ او ژوند يې په همغه پورې تړلی وُ هغه يې د سترګو تور او د زړه سر وُ، زړونه يې داسې ورپورې نښتي وو لکه اوسپنه په آهن ربا پورې.

**فصورته هيولی کل جسم و مغناطيس افئدة الرجل**

[يعنی د هغه صورت د هر جسم هيولی او وجود يې د خلکو د زړونو آهن ربا (مقناطيس) وه.] د همدې مينې، محبت، فـد ا کـا رئ او ځان قربانولو نتيجه دا وه چې اصحابو کرامو (رضي الله عنهم) به خپل ځانونه مرګ ته ورکول خو دا يې نه شوی زغملی چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نوک دې پټ شي او يا يې دې په ګوته کې اغزی لاړ شي.

يوه ورځ په مکه کې ابوبکر صديق (رضي الله عنه) ډير زيات ووهل شو، خلکو تر لغتو

---

(1). ابن هشام ۲/ ۸۴

(2). صحيح بخاري ۵۲۳/۲

لاندې اچولی و، عتبه بن ربيعه په دوو پيوند شويو څپليو واهه، په مخ يې ډير ګوزارونه ورکول بيا يې په خيټه ور وخوت، دومره وټکول شو چې مخ او پزه يې سره يو شول، وروسته د بنو تيم خلکو په يوه تکه کې ونغښت او کور ته يې يوړ، چا هم دا ګومان نه کاوه چې ژوندی به پاتې شي، خو د ورځې په وروستۍ برخه کې په حال شو خبرې يې وکړې او داسې يې وويل: د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) څه حال دی؟ پدې خبره د قوم خلک ورباندې په غوسه شول، پرې او ملامتې يې ورباندې وويله، بيا پاڅيدل او دده مور ام الخير ته يې وويل: څه ورکړه چې ويې خوري او يا څه وروڅښه. او کله يې چې مور ورسره ګوښې پاتې شوه ډير اصرار يې ورباندې وکړ چې څه وخوري او يا څه وڅښي، خو ابوبکر صديق (رضي الله عنه) به همدا ويل چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) څه حال دی؟ نو مور يې ورته وويل: قسم په خدای زه د تا د ملګري په حال نه يم خبره. ابوبکر (رضي الله عنه) ورته وويل: لاړه شه او له ام جميل بنت الخطاب نه د هغه په هکله پوښتنه وکړه، موريې ووتله او ام جميل ته ورغله او ورته وې ويل: زما زوی ابوبکر (رضي الله عنه) د محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په هکله له تا نه معلومات غواړي چې هغه څنګه دی؟ ام جميل (رضي الله عنها) ورته وويل: زه نه ابوبکر (رضي الله عنه) پيژنم او نه محمد بن عبدالله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)، خو که ته غواړې چې زه ستا زوی ته درسره لاړه شم نو ځه چې ځو، دواړه راووتلې او کور ته راغلې که ګوري چې د ابوبکر الصديق (رضي الله عنه) حال بل دی، د چا خبره له ډيرو وهلو څلور زره پروت دی. ام جميل ور لنډه شوه او چيغه يې کړه، قسم په خدای دا خلک چې ته يې دې حال ته راوستی يې فاسقان او کافران دي، له الله تعالی نه دا غواړم چې ستا غچ او انتقام ورنه واخلي. ابوبکر (رضي الله عنه) ورته وويل د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) څه حال دی؟ ام جميل ورته وويل: دلته خو ستا مور ده هغه خو زمونږ خبرې اوري! ده ورته وويل: له هغې نه مه ويريږه، نو ام جميل ورته وويل: رسول الله (ص جوړ او روغ دی، ده ورته وويل: اوس چيرته دی؟ دې ورته وويل: هغه اوس په دار الارقم کې تشريف لري بيا ابوبکر (رضي الله عنه) وويل: له خدای تعالی سره دا عهد کوم چې تر هغې به نه څه وخورم او نه به څه وڅښم تر څو د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په خدمت کې حاضر شوی نه وم، مور او ام اجميل ورته وويل: اوس صبر وکړه، تر څو لږ آرامي شوه خلک کورونو ته لاړل، تګ راتګ بند شو بيا هغوی د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ملاقات پخاطر ووتل، ابوبکر (رضي الله عنه) پداسې حال کې چې په ام الخير او ام جميل باندې يې تکيه کوله د رسول اکرم

(صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته حاضر شو.[۱]
له رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره د اصحابو (رضي الله عنهم) د مینې اوله ده نه د ځان قربانولو نورې اهمې او نادرې پیښې به هم په راتلونکو پاڼو کې سره ولولو، خصوصا د احد د غزا پیښې او د خبیب (رضي الله عنه) او نورو اصحابو (رضي الله عنهم) تاریخي واقعې.
۳. د مسئولیت احساس – اصحابو (رضي الله عنهم) دا ښه درک کړې وه چې د بشریت په هکله د دوی په غاړه د مسئولیت څومره درونډ پیټی پروت دی. هغوی د خپل انساني مسئولیت پوره احساس درلود، او پدې باوري وو چې ددې مسئولیت ادا کول حتمي او لازمي دي، او لدینه غاړه غړول او اوږه خالي کول، لدې اوسنیو کړاوونو او ظلمونو نه ډیر خطرناک او ضررناک عواقب لري، او ددې عظیم مسئولیت له ادا نه سرغړول د دوی او ټول بشریت لپاره دومره بدبختي او زیانونه راوړي چې له هغو تکلیفونو نه چې ددې دندې د ترسره کولو په لاره کې یې ګالي څو چنده زیات او دردونکي بلکه له هغې سره بالکل د مقایسې وړ ندي.
۴. په آخرت باندې ایمان – په آخرت باندې ایمان د دوی په زړونو کې د مسئولیت احساس نور هم پیاوړی کاوه هغوی پدې ټینګه عقیده درلوده چې له مرګ نه وروسته به بیا راژوندي کیږي، الله تعالی به د ټولو وړو او لویو پټو او ښکاره عملونو حساب ورسره کوي، بیا به د تل لپاره یا جنت ته ځي او یا به د جهنم په سوزیدونکو لمبو کې وي. ژوند یې د خوف (ویرې) او رجاء (تمې او هیلې) تر مینځ و. یعنی د الله تعالی رحمت او مهربانۍ ته هیلمن وو او له عذاب نه یې ویریدل، د هغوی حالت داسې ؤ لکه دا مبارک آیت چې ورته اشاره کوي:
((وَالَّذِينَ يُؤْتُونَ مَا آتَوا وَّقُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ أَنَّهُمْ إِلَى رَبِّهِمْ رَاجِعُونَ)) ( المومنون:۶۰) [او هغه کسان چې ورکوي هر هغه چې ورکوي (له زکاتونو او خیراتونو) حال دا چې زړونه د دوی ویریدونکي دي (له عدم قبوله ځکه چې) بیشکه دوی رب خپل ته ورتلونکي دي.] هغوی پدې پوخ باور درلود چې دا ټوله دنیا د آخرت په مقابل کې د مچ او ماشې د یوه وزر قدرې ارزښت هم نلري نو همدا ټینګه عقیده او درست معرفت ؤ چې د دنیا هر مشکل یې ورته آسانه کړی ؤ، هر ډول کړاو او درد یې زغملی شوی، له ټولو نه ستر ستر مشکلات او کړاوونه یې هم د هدف په لار کې خنډ او مانع نه شوی ګرزیدلی.

---

[۱]. البدایة و النهایة ۳۰/۳

**۵.** قرآنکريم _ مشکلاتو او کړاوونو پدې له ټولو نه سخت وخت کې د قرانکريم هغه سورتونه او اياتونه رانازليدل چې د اسلام د اساسي اصولو او مبادئو لپاره يې په زړه راښکونکي انداز او قاطعانه لهجه دلايل او براهين قائم کړيدي. دغه وخت اسلامي دعوت د همدې اصولو په محور چورليده، او دې آيتونو مسلمانانو ته هغه بنيادي او اساسي امور او مسايل په ګوته کول کوم چې الله تعالی د بشريت له ټولو نه اوچتې او سپيڅلې ټولنې (اسلامي ټولنې) جوړښت په همغو امورو پورې تړلی دی. همدا راز دې آيتونو مسلمانانو ته د زغم او صبر، ثبات او پايمردۍ درس هم ورکاوه، پدې هکله يې مثالونه ورته راوړل او پدې کې نغښتې حکمتونه يې ورته بيانول:

((أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُمْ مَثَلُ الَّذِينَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ مَسَّتْهُمُ الْبَأْسَاءُ وَالضَّرَّاءُ وَزُلْزِلُوا حَتَّى يَقُولَ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ مَتَى نَصْرُ اللَّهِ أَلا إِنَّ نَصْرَ اللَّهِ قَرِيبٌ)). ( البقرة: ۲۱٤) [بلکه آيا ګومان کوئ تاسي (اې مؤمنانو) چې ننه به وځئ تاسې جنت ته حال دا چې راغلې به نه وي په تاسې باندې په مثل (دسختيو) د هغو کسانو چې تير شويدي پخوا له تاسې نه چې رسيدلې وه دوی ته سختي (لکه فقر او مرض) او ګرځول شوي وو دوی (په سختيو سره) تر هغه پورې چې ويل به (هم) رسول او (هم) هغو کسانو چې ايمان يې راوړی ؤ سره له ده چې کله به وي نصرت د الله؟ خبردار شئ! چې بيشکه نصرت د الله نژدې دی (مؤمنانو) ته. ]

((الم (۱) أَحَسِبَ النَّاسُ أَنْ يُتْرَكُوا أَنْ يَقُولُوا آمَنَّا وَهُمْ لا يُفْتَنُونَ (۲) وَلَقَدْ فَتَنَّا الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَلَيَعْلَمَنَّ اللَّهُ الَّذِينَ صَدَقُوا وَلَيَعْلَمَنَّ الْكَاذِبِينَ)) (العنکبوت: ۱-۳).
[آيا ګومان کوي دا خلک ددې چې پرې به ښودی شي دوی (په هم دې قدر) چې ووايي دوی چې ايمان راوړی دی مونږ حال دا چې دوی به ونه ازمويل شي، او خوامخواه په تحقيق ازمويلي ؤ مونږ هغه کسان چې له دوی نه ړومبی وو پس هرومرو معلوم به کړي الله (په علم ظاهري سره هم) هغه کسان چې رينښتيني دي (په دعوی د ايمان کې) او خوامخوا معلوم به کړي الله (هغه) دروغجن (په علم ظاهري هم).]

ددې تر څنګ دغه وخت داسې آيتونه هم نازليدل چې کفارو او ټولو معاندينو او مخالفينو ته به يې غاښ ماتوونکي ځوابونه ورکول، د هغوی ټولې حيلې به يې ورماتولې او هيڅ بهانه مانه به يې نه ورته پريښوده. او په پوره څرګنده او صريحه توګه به يې دا ورته اعلانول چې که هغوی حق ته غاړه تيټه نکړي او همداسې ګمراه او بې لارې پاتې شي نو پای او عاقبت به يې ډير خراب او زيانمن وي، پدې هکله به يې د پخوانيو قومونو کيسې او نور داسې تاريخې شواهد ورته وړاندې کول چې دا به ورنه

معلوميده چې د مسلمانانو او کافرانو په هکله د الله تعالی سنت او فيصله څه ده، خو لدې تهديد او ويرې سره سره داسې آيتونه هم رانازليدل چې له کرم او مهربانۍ نه به ډک وو، لهجه يې نرمه وه د افهام او تفهيم، و عظ او اراشاد خوا به يې نيولې وه تر څو ګمراهان له خپلې ګمراهۍ او ضلالت نه حق او هدايت ته واوړي.

قرانکريم په حقيقت کې مسلمانانو ته يوه بله دنيا او بيل جهان جوړکړی وُ، لدې خاورينې دنيا نه يې اوچت کړي وو هلته يې د کائناتو مشاهد، د ربوبيت جمال او کمال، د الوهيت عظمت او رفعت، او د رحمت، رضا او مهربانۍ داسې صحنې ورښودلې چې په ليدو سره به يې هغوی دومره پياوړي کيدل چې بيا به ورته د کړاوونو او مشکلاتو غرونه لکه د يوه طوفاني سيلاب په وړاندې د شګو بندونه داسې وو.

دې آيتونو به مسلمانانو ته د الله تعالی له طرفه د رحمت، رضا، او له هميشنيو نعمتونو نه ډک جنت زيري هم ورکول، او د دوی د ظالمو او کافرو دښمنانو هغه حالت به يې هم ورته تمثيل او ترسيماوه، چې د قيامت په ورځ به د الهي عدالت محکمې ته راوستل کيږي، محاسبه به ورسره کيږي او بالاخره به پرمخې په دوزخ کې اچول کيږي چې ځئ اوس د اور خوند وګورئ.

۶. د بري زيري ـ ددې ټولو تر څنګ مسلمانان له کله نه چې له کړاوونو سره مخ شول بلکه له هغې نه هم وړاندې پدې ښه پوهيدل چې اسلام قبلول او مسلمان کيدل يوازې دا معنی نلري چې تل به دردونه، ظلمونه او کړاونه ګالي، بلکه د اسلامي دعوت هدف دا دی چې د جاهليت دا تورې تيارې ختمې کړي، او دا د ظلم مانۍ را نسکوره او په ځای يې د عدل څلی ودروي. همدا راز ددې دعوت دا غوښتنه ده چې د نړۍ په سياسي ډګر کې له نورو نه مخکې شي هلته خپل نفوذ او حاکميت قايم کړي تر څو اسلامي امت او ټول بشريت د بندګانو له عبادت نه آزاد او يوازې د يوه الله عبادت ته يې بوزي او الهي رضا يې په برخه شي.

قرآنکريم به مسلمانانو ته کله په صريحه لهجه او کله په کنايه سره دا ډول زيري ورکول، پدې سختو شپو او ورځو کې چې تر مسلمانانو لاندې ځمکه سور اور ګرځيدلې وه، له هرې خوا راګير وو نژدې وو چې له غمه يې زړونه وچوي، په همدې غمجنو حالاتو کې به قرآنکريم د پخوانيو انبياوو (عليهم السلام) او د دوی د مشرکو اقوامو حالات او واقعات بيانول، او دې آيتونو به د هغو حالاتو او واقعاتو کيسې کولې چې د مکې د مسلمانانو او کفارو له حالاتو سره به يې ډير ورته والی او شباهت درلود. او پدې ترتيب سره به يې مسلمانانو ته د پخوانۍ زمانې د حق او باطل د

جګړې هغه نقشه په مخ کې ایښودله چې دوی به اوس د سر په سترګو لیدله، بیا به یې ددې جګړې نتیجه هم ورته اعلانوله او دا به یې ورته ښووله چې الله تعالی کافران او ظالمان څه ډول هلاک او برباد کړي او د ځمکې حاکمیت یې خپلو نیکو بندګانو ته سپارلی وُ. له دې ډول کیسو نه دا په ډاګه کیدله چې د مکې مشرکان به په ډیر نژدې وخت کې له شرمیدونکې ماتې سره مخ کیږي، مسلمانان به بری مومي او اسلامي دعوت به خپل منزل ته رسیږي.

له هغو آیتونو څخه چې د دعوت پدې مرحله کې نازل شوي او د مسلمانانو د بري او فتحې زیری ورکوي ځنې دا دي:

((وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِينَ (١٧١) إِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنصُورُونَ (١٧٢) وَإِنَّ جُندَنَا لَهُمُ الْغَالِبُونَ (١٧٣) فَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتَّى حِينٍ (١٧٤) وَأَبْصِرْهُمْ فَسَوْفَ يُبْصِرُونَ (١٧٥) أَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُونَ (١٧٦) فَإِذَا نَزَلَ بِسَاحَتِهِمْ فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنذَرِينَ)) (الصافات: ١٧١ –١٧٧) [په تحقیق ښخوا لا صادر شوی دی حکم زمونږ د پاره د مرسلینو بندګانو زمونږ، چې بیشکه دوی له هم دوی سره مدد کړی شوی دی، او بیشکه لښکرې زمونږ خوامخواه هم دوی کامیاب دي (په کافرو) پس مخ وګرځوه ته (اې محمده) له دوی نه تر یوه وخته پورې، اوګوره ته دوی ته پس ژر ده چې وبه ویني دوی (عاقبت خپل)، آیا پس (په راتلو) د عذاب زمونږ تلوار کوي دوی، پس کله چې نازل شي (عذاب) په میدان (غولي) د دوی پس بد به وي سبا د ویرولیو شویو.]

((سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ)) (القمر: ٤٥) [ژر ده چې ماته به کړه شي جمع (د دوی) او وبه ګرزوي دوی شاوې خپلې (مسلمانانو ته له جنګه). ((جُندٌ مَا هُنَالِكَ مَهْزُومٌ مِنَ الْأَحْزَابِ)) (ص: ١١) [دوی خو یو لښکر ګوتی دی په دغه ځای کې چې ماتې ورکړی شوې له هغو ډیرو لښکرو څخه دي.

د هغو اصحابو (رضي الله عنهم) په هکله چې حبشې ته یې هجرت کړی وُ د الله تعالی دا قول را نازل شویدی:

((وَالَّذِينَ هَاجَرُوا فِي اللَّهِ مِنْ بَعْدِ مَا ظُلِمُوا لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ أَكْبَرُ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ)) (النحل: ٤١). [او هغه کسان چې هجرت یې کړی دی په (لیاره د) الله کې وروسته له هغه چې ظلم پرې وکړی شو، نو خوا مخواه ځای به ورکړومونږ دوی ته په دنیا کې ښه (ځای) او خوامخواه اجر (بدل) ثواب د آخرت ډیر لوی دی که وئ دغه (کفار) چې پوهیدئ (په ثواب د هجرت....)]

کفارو له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه د یوسف (علیه السلام) د کیسې پوښتنه وکړه، نو په ځواب کې الله تعالی داسې ورته وفرمایل: ((لَقَدْ كَانَ فِي يُوسُفَ وَإِخْوَتِهِ آيَاتٌ لِلسَّائِلِينَ)) (یوسف:۷) [په تحقیق چې وُ په (کیسې د) یوسف او ورونړو دده کې دلائل (د قدرت د الله او نبوت ستا) لپاره د پوښتونکو] یعنی دا چې د مکې مشرکین د یوسف (علیه السلام) د کیسې پوښتنه کوي نو دوی به هم لکه د یوسف (علیه السلام) د ورونړو په شان له ناکامۍ سره مخامخ کیږي، او آخر به دوی هم لکه د هغوی په شان د تسلیمۍ سر پر ځمکه ږدي.

بل ځای قرآنکریم له رسولانو نه یادونه کوي فرمایي: ((وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِرُسُلِهِمْ لَنُخْرِجَنَّكُمْ مِنْ أَرْضِنَا أَوْ لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَا فَأَوْحَى إِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ لَنُهْلِكَنَّ الظَّالِمِينَ (۱۳) وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ الْأَرْضَ مِنْ بَعْدِهِمْ ذَلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِي وَخَافَ وَعِيدِ)) (ابراهیم: ۱۳. ۱٤) [او وویل هغو کسانو چې کافران شوي وو رسولانو خپلو ته چې خوامخواه و به باسو مونږ تاسې هرو مرو له ځمکې خپلې یا به خوامخواه وګرځئ تاسې خوامخواه په دین زمونږ کې پس وحي وکړه دوی ته رب د دوی چې هرومرو هلاک به کړو مونږ ظالمان او خوامخواه به و اوسوو مونږ تاسې په ځمکه د دوی کې وروسته (د هلاکت) د دوی، دغه (اهلاک او اسکان حق دی) د پاره د هغه چا چې ویریږي له دریدلو په مخ زما کې او ویریږي له وعدې (د عذاب زما).]

هغه وخت چې د فارسیانو او رومیانو تر مینځ جګړه ګرمه وه د کفارو دا هیله وه چې فارسیان بری ومومي ځکه هغوی هم مشرکین وو، خو د مسلمانانو امید دا وُ چې بری د رومیانو په برخه شي ځکه رومیانو هم په الله، رسولانو، وحي، کتاب او آخرت باندې ایمان درلود، خو دا ځل بری د فارسیانو په برخه شو، خو په همدې وخت کې الله تعالی مسلمانانو ته زیری ورکوي چې پدې څو لنډو کلونو کې به رومیان پر فارسیانو غلبه ومومي، او د دې زیري تر څنګ یې د مسلمانانو د فتحې او بري زیری هم ورکړ، الله تعالی فرمایي : ((...وَيَوْمَئِذٍ يَفْرَحُ الْمُؤْمِنُونَ (٤) بِنَصْرِ اللَّهِ...)) ( الروم: ٤. ٥) [او په دغه ورځ (د غلبې د روم په فارس) خوشاله به شي مؤمنان په نصرت د الله (له کتابیانو سره په مجوسیانو).

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به پخپله هم وخت په وخت دا ډول زیري ورکول، د حج په وخت کې به یې چې په عکاظ، ذي المجاز، او مجنه کې خلک د الله

دين ته رابلل، نو نه يوازې دا چې مؤمنانو ته به يې د جنت زيري ورکول بلکه په ډاګه سره به يې دا هم فرمايل : اې خلکو (لا اله الا الله) ووايئ، تر څو بريالی شئ، او تر څو په همدې کلمې سره عربان لاندې کړئ او عجم هم تر خپلې قبضی لاندې راولئ، او که پدې لاره کې ومرئ نو په جنت کې به پاچايان وئ. د حديث شريف متن دا دی: ((**يا ايها الناس قولوا لا اله الا الله تفلحوا، تملكوا بها العرب، و تدين لكم بها العجم، فاذا متم كنتم ملوكا في الجنة**)).(۱)

مخکې مو دا هم ولوستل چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) عتبه بن ربيعه ته چې غوښتل يې له رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره د دينوي هيلو او غوښتنو په سر سودا او سازش وکړي څه ډول ځواب ورکړی وځ، او عتبه د رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له خبرو نه څنګه پدې پوه شوی و او دا يې ويلي و چې بالاخره رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او دين به يې غلبه او بری مومي. رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ابو طالب ته د قريشو وروستي هيئت ته هم په صريحو ټکو کې فرمايلي وو چې زه له تاسې نه يوه خبره غواړم چې راسره ويې منئ او هغه داسې خبره ده چې په منلو سره به يې د عربو او عجمو ټولو پاچايي ستاسې وي.

خباب بن الارت (رضي الله عنه) وايي: ((**اتيت النبي (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) وهو متوسد برده، و هو في ظل الكعبة، و قد لقينا من المشركين شدة، فقلت: الا تدعوالله، فقعد و هو محمر وجهه، فقال لقد كان من قبلكم ليمشط بمشاط الحديد مادون عظامه من لحم و عصب ما يصرفه ذلك عن دينه وليتمن الله هذا الامر حتى يسير الراكب من صنعاء الى حضرموت ما يخاف الا الله – زاد بيان الراوي – و الذئب على غنمه**[۱] **وفي رواية ولكنكم تستعجلون**))[۲]

[ترجمه: يو ځل زه د رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په خدمت کې حاضر شوم، رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د کعبې شريفې سيوري ته په يوه چادر تکيه وهلې وه. دغه وخت مونږ د کفارو له لاسه ډير په عذاب وو، ما ورته وويل: اې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) !الله تعالی ته سوال او

---

(1). رواه الترمذي

(۱). صحيح البخاري ۵۴۳/۱

(۲). صحيح البخاري ۵۱۰/۱.

دعا نه کوې؟ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ددې خبرې په اوریدو سره را کیناست مبارک مخ يې تک سور شو او ویې فرمایل: هغه خلک چې له تاسې نه مخکې تیر شویدي، غوښې، رګونه او اعصاب به يې تر هډوکو پورې د اوسپنې په ږومنځو توږل کیدل، خو پدې سختیو سره به هم هغوی له خپل دین نه اوړیدل، او بیا يې وفرمایل: الله تعالی به دا دین مکمل، غالب او بریالی کوي تر دې چې سپور به له صنعاء نه تر حضرموت پورې سفر کوي او له الله نه پرته به د بل څه ویره ورسره نه وي ــ راوي زیاتوي ــ او میږو ته به د لیوه خطره او ویره هم ور سره وي. په بل روایت کې دا هم راغي خو تاسې عجله او بیړه کوئ.
دا هم باید وویل شي چې د فتحې دا زیري څه پټ او مخفي نه وو بلکه دا د مسلمانانو او کفارو ټولو غوږونو ته رسیدلي وو، وایي چې اسود بن المطلب او ملګرو به يې چې کله د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اصحاب (رضي الله عنهم) ولیدل، نو د استهزاء او ریشخند له مخې به يي ویل: دا دي د ځمکې پاچایان راغلل وګورئ دوی به په کسری او قیصر باندې بریالي کیږي!! بیا به يې شپیلي کول، چک چک او لاسونه به يې سره پړکول.[۳]
همدا د ځلانده مستقبل، او بالاخره په جنت کې د ابدي او دایمي ژوند زیري او امیدونه وو چې مسلمانانو ته يې د هغه لویو دردونو او سختو ظلمونو ګالل او زغمل آسانه کړي وو، او هغوی يې پدې باوري کړي وو چې دا تیارې به حتماً روښانه کیږي، او دا د غم دور به خاتمه مومي نور به بیا خوشالي وي او سعادت.
ددې تر څنګ به رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تل هغوی ته روحي غذا هم ورکوله، د هغوی زړونه او دماغونه به يې د ایمان په وړانګو روښانه کول، د قرآنکریم او حکمت (احادیثو) په واسطه به يې د هغوی نفساني تزکیه کوله، په ایمان او عقیده به يې روزل، د روحاني اوچتوالي، قلبي سپیڅلتیا، غوره او لوړو اخلاقو، له مادیاتو او شهواتو نه د آزادۍ او یوازې له یوه خدای ج سره د مینې او د یوه الله ج د بندګۍ لور ته به يې بلل، په زړونو کې به يې د واقعیت او حقیقت شعلې را اوچتولې، له تیارو نه يې روښنايۍ ته را ایستل، د زغم، صبر او حوصلې درس به يې ورکاوه، نو ددې لارښوونو او هدایاتو نتیجه دا شوه چې د هغوی په زړونو کې دین او ایمان کلک ځای ونیو، له مادیاتو او شهواتو سره يې اړیکې وشلیدلې، د الله تعالی

[۳]. فقه السیرة ص ۸۴.

(ج) د رضا د حصول په خاطر هر ډول قربانۍ ته آماده وو، د جنت په تمه او هیله اوسیدل، علمي تنده یې لا پسې زیاته شوه، له نفس سره د محاسبې روح او احساس یې پیاوړی شو، خپل اعصاب، احساسات او عواطف یې تر ادارې او کنترول لاندې ساتل، د صبر، سکون، عزت او وقار په وسیله یې د هر مشکل مقابله کوله.

دریمه مرحله

# اسلامي دعوت له مکې نه د باندې

## رسول الله (ﷺ) په طایف کې

د نبوت په لسم کال د شوال په میاشت کې چې د ۶۱۹م کاله د مې میاشتې له وروستیو او د جون له لومړیو سره سمون خوري[1]، رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د طائف په لور روان شو.

طائف له مکې نه تقریباً شپیته میله لیرې دی، رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دا ټوله مسافه تګ او راتګ په پښو ووهله. پدې سفر کې دده آزاد کړی شوی غلام زید بن حارثه هم ورسره ملګری وُ. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به چې هرې قبیلې ته ورسید، د اسلام بلنه به یې ورکوله خو هیڅا یې هم دعوت ونه مانه. طائف ته له رسیدو وروسته د ثقیف له قبیلې نه دریو ورونو ته چې دری واړه یې رئیسان یا مشران وو او نومونه یې عبدیالیل، مسعود او حبیب او د پلار نوم یې عمرو بن عمیر الثقفي وُ، ورغی. د الله تعالی لورته یې راوبلل، د اسلام د تایید او ملاتړ غوښتنه یې ورنه وکړه، نو له هغوی نه یوه ورته وویل: که الله تعالی ته رسول رالیږلی وي نو زه به د کعبې پردې (پوښ) څیرې کړم. بل ورته وویل: الله تعالی له تا نه پرته بل څوک ندي پیدا کړي چې ته یې رسول رالیږلی یې! دریم ورته وویل: قسم په خدای که زه له تاسره خبرې وکړم، ځکه که چیرې ته په رښتیا سره رسول وې، نو بیا ستا خبرې ردول او نه منل زیات خطر لري او که چیرې ریښتونی رسول نه وې او په الله پورې دروغ تړې، نو بیا ددې وړ نه یې چې خبرې درسره وکړم. لدې ځواب نه وروسته رسول الله ورنه پاڅید یوازې دومره یې ورته وفرمایل: تاسې چې وکړل، هغه مو وکړل خو ګورئ دا خبره او راز به پټ ساتئ.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لس ورځې په طائف کې پاتې شو، ددې ځای ټولو مشرانو او سردارانو ته ورغی او د اسلام بلنه یې ورکړه، خو هیڅا هم ونه منله او ټولو په یوه خوله ورته وویل: زمونږ له وطن نه ووزه. دې خلکو نه

---

[1]. دا د تاریخ اسلام د مولف نجیب آبادي خبره ده او زما په نظر همدا سمه ده تاریخ اسلام ۱۲۲/۱

يوازې دا چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دعوت يې ونه مانه بلکه خپلو اوباشانو او بدماشانو ته يې امر وکړ چې رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته اذيت ورسوي. همغه وه کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د بيرته ستنيدو اراده وکړه هغه جاهل او ګمراه خلک ورباندې راټول شول ليکې ليکې ورپسې روان وو، نارې او سورې يې جوړې کړې وې، کنځلې به يې ورته کولې، له بدو ردو سره سره به يې په ډبرو هم ويشته. او له مبارکو پښو يې دومره وينې وبهيدلې چې دواړه څپلی (پايزار) يې په وينو لمدې شوې. زيد بن حارثه (رضي الله عنه) به لکه ډال داسې دفاع ورنه کوله ځان به يې ګوزار ته وړاندې کاوه تر څو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورنه په امن پـاتې شي. بالاخره د زيد (رضي الله عنه) سر هم مات شو. دا احمقان او جاهلان همداسې ورپسې وو تر څو له طائف نه دري ميله ليرې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پدې مجبور شو چې د ربيعه د زامنو عتبه او شيبه باغ ته پناه يوسي، او همدلته بيا هغه ظالمان احمقان ورنه وګرځيدل. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د انګورو تر سيوره لاندې يوه ديوال ته تکيه وکړه، او کله يې چې دمه جوړه شوه نو يې هغه دعا وکړه چې د مستضعفينو د دعا په نامه مشهوره ده. ددې دعا له هرې فقرې نه دا څرګنديږي چې د طائف د خلکو ددې ظلم، بدسلوکۍ او لدې انکار نه چې هيڅا هم اسلام ونه مانه د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) زړه څومره ځوريدلی او دردمند شوی و او لدې دعا نه دا معلوميږي چې هغه وخت رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) څومره خفه، غمجن او درديلی ؤ هغه دعا داسې ده چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل:

**((اللهم إليك أشكو ضَعْف قُوَّتي، وقلة حيلتي، وهواني على الناس، يا أرحم الراحمين، أنت رب المستضعفين، وأنت ربي، إلى من تَكِلُني؟ إلى بعيد يَتَجَهَّمُني؟ أم إلى عدو ملكته أمري؟ إن لم يكن بك عليّ غضب فلا أبالي، ولكن عافيتك هي أوسع لي، أعوذ بنور وجهك الذي أشرقت له الظلمات، وصلح عليه أمر الدنيا والآخرة من أن تنزل بي غضبك، أو يحل علي سَخَطُك، لك العُتْبَى حتى ترضى، ولا حول ولا قوة إلا بك)).** [اې خدايه، زه د خپلې کمزورۍ، بې بسۍ او د خلکو په وړاندې د خپلې بې قدرۍ شکايت تا ته کوم، اې له ټولو نه رحيم او مهربان خدايه! ته د بې وزلانو رب يې او ته زما رب يې، ته مې چا ته سپارې؟ پردي او بيګانه ته مې سپارې

چې ظلم او زیاتی راسره وکړي؟ او یا مې کوم داسې دښمن ته سپارې چې زما معامله دې هغه ته سپارلې ده؟ که ته را ته په غضب او قهر نه وې نو زما هیڅ پروا هم نشته، خو ستا عافیت ما ته ډیر وسیع او پراخه دی، زه ستا د وجه (مخ) په هغه نور پناه غواړم کوم چې تیارې یې رڼا کړیدي او هغه چې دنیا او آخرت وربادنې جوړ شوی او برابر شویدی ستا له غضب نه پناه غواړم او پناه غواړم چې ستا د عتاب مورد ونګرځم، ستا رضا غواړم تر څو ته راضي شې او پرته له تا نه بل د زور او قوت خاوند وجود نلري.]

کله چې د ربیعه زامنو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ولید زړه یې پرې وسوو، خپل غلام یې چې عداس نومیده او نصراني ؤ راوغوښت او ورته وې ویل: دا یو وړی انګور واخله او هغه سړي ته یې ورووړه. کله چې عداس انګور د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په مخکې کیښودل، رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) (بسم الله) وویله لاس یې وراوږد کړ او انګور یې وخوړل. عداس ورته وویل: ددې وطن خلک خو دا خبره یعنی (بسم الله) نه وایي! رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: **(من أي البلاد أنت؟ وما دینك؟)** ته د کوم ځای یې او د کوم دین پیروي کوې؟ عداس وویل: زه په دین نصراني او د((نینوی)) اوسیدونکي یم. رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: **((من قریة الرجل الصالح یونس بن مَتَّی))** ښه، ته د صالح سړي یونس بن متی (علیه السلام) کلیوال یې! عداس ورته وویل: ته یونس بن متی (علیه السلام) له کومه پیژنې؟ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: **((ذاك أخي، کان نبیًا وأنا نبي))**.زما ورور ؤ هغه نبي ؤ او زه هم نبي یم. نو عداس یو ځل د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په سر، لاسونو او پښو ورپریوت او مچې کول یې. هلته د ربیعه زوی خپل ورور ته وویل: غلام خو یې درته بې لارې کړ. عداس چې بیرته راغی دوی ورته وویل: دا څه کیسه وه اې عداسه؟ عداس ورته وویل: باداره! پدې ټوله دنیا کې لدې سړي نه غوره شخص وجود نلري ما ته یې داسې معلومات راکړل چې په هغې له نبي پرته بل څوک نه پوهیږي. دوی ورته وویل: عداسه! ګوره چې تا له خپل دین نه وانه ړوي، ستا دین د هغه له دینه غوره دی.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له باغ نه راووت او پداسې حال کې د

مکې په لور روان شو چې زړه يې له حسرتونو او غمونو ډک وُ، او کله چې قرن المنازل ته ورسيد نو الله تعالی جبريل (عليه السلام) ورته راوليږه له هغه سره د غرونو فرښته هم ملګرې وه، هغوی ورته وويل: که غواړې نو امر راته وکړه چې د مکې په خلکو د اخشبين دواړه غرونه راچپه کړو.

بخاري شريف دا کيسه په مفصله توګه له عروه بن زبير نه روايت کړيده وايي عائشې (رضي الله عنها) راته ويلي چې:

**((انها قالت للنبي (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم): هل اتى عليك يوم كان اشد عليك من يوم احد؟ قال: لقيت من قومك ما لقيت، وكان اشد ما لقيت منهم يوم العقبة، اذ عرضت نفسي على ابن عبد يا ليل بن عبد كلال، فلم يجبني الى ما اردت، فانطلقت و انا مهموم، على وجهي، فلم استفق الا و انا بقرن الثعالب، و هو المسمى بقرن المنازل، فرفعت راسي فاذا انا بسحابة قد اظلتني، فنظرت فاذا فيها جبريل، فناداني، فقال ان الله قد سمع قول قومك لك، ما ردوا عليك، و قد بعث الله اليك ملك الجبال لتامره بما شئت فيهم فناداني ملك الجبال، فسلم علي ثم قال: يا محمد، ذلك، فما شئت، ان شئت ان اطبق عليهم الاخشبين اي لفعلت، و الاخشبان: هما جبلا مكة، ابو قيس و الذي يقابله و هو قعيقعان. قال النبي (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم): بل ارجو ان يخرج الله (عزوجل) من اصلابهم من يعبد الله (عزوجل) وحده لا يشرك به شيئا).**(۱)

[حضرت عائشه (رضي الله عنها) وايي: يو ځل ما له رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه پوښتنه وکړه چې آيا په تا باندې د احد له ورځې نه هم کومه سخته ورځ راغلې ده؟ رسول اکرم (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: هو! ستا د قوم له لاسه مې چې څه ناکردې ليدلې هغه مې ليدلې خو له ټولو نه زيات او سخت مصيبت هغه وُ چې د عقبې په ورځ ورسره مخ شوم هغه وخت چې د عبدياليل بن عبد کلال زوی ته ورغلم، دعوت مې ورکړ، خو هغه زما خبره او بلنه ونه منله نو زه پداسې حال کې چې غمونو او حسرتونو اخيستې وم بيرته را روان شوم، هيڅ په ځان نه وم خبر، تر څو قرن ثعالب ته چې قرن المنازل ورته ويل کيږي راورسيدم

---

(1) صحيح البخاري: كتاب بدء الخلق ۴۵۸/۱. مسلم: باب ما لقي النبي (صلى الله عليه وسلم) من اذى المشركين و المنافقين ۱۰۹/۲.

دلته متوجه شوم، پورته مې وکتل که ګورم یوه ټوټه وریځ مې په سر روانه ده او سیوره راباندې کوي په ځیر مې ورته وکتل که ګورم چې جبریل (علیه السلام) پکې دی، آواز یې راته وکړ او راته ویې فرمایل: ستا قوم چې څه خبرې درته وکړې الله تعالی هغه واوریدې، نو اوس الله تعالی د غرونو فرښته درته رالیږلې ده، ستا خوښه چې څه امر ورته کوې هغه به همداسې کوي، پدې پسې د غرونو فرښتې غږ راته وکړ سلام یې راباندې واچاوه او راته ویې ویل: اې محمده (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! ستا خوښه څه امر راته کوې؟ که امر راته کوې چې دا دواړه غرونه (ابو قیس او قعیقعان چې اخشبین ورته وایي) ورباندې راچپه کړم، نو همداسې به وکړم، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: نه، زما هیله دا ده چې الله تعالی له هغوی نه داسې زوزاده (نسل) پیدا کړي چې یوازې د یوه الله تعالی عبادت به کوي او هیڅ شریک به نه ورسره نیسي.]

د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لدې ځواب نه دده د شخصیت، عظمت، او دده د مبارکو اخلاقو رفعت او اوچتوالی ښه څرګندیږي، او ددې ځواب په اوریدو سره سلیم عقل دا حکم کوي چې رښتیا هم رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د دومره عظیم شخصیت او لوړو اخلاقو درلودونکی ؤ چې انساني عقل یې له ادراک نه عاجز دی.

لنډه دا چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پدې الهي او غیبي نصرت او کومک چې الله تعالی له آسمانه ورته رالیږلی ؤ، ډیر ډاډه او مطمئن شو، غمونه او حسرتونه یې له زړه نه ووتل او په پوره ډاډ سره د مکې په خوا مخکې لاړ تر څو وادي نخله ته ورسید، هلته څو ورځې پاتې شو. هغه وخت پدې ځای کې یوازې د السیل الکبیر او الزیمه دوې سیمې د اوسیدو وړ وې ځکه هلته اوبه او شنه بوټي وو، خو مونږ له تاریخي مصادرو نه دا معلومه نه شوای کړی چې رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دلته په کومه یوه سیمه کې اوسیدلی ؤ.

په همدې موده او همدې ځای کې الله تعالی رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته یوه ډله پیریان هم راولیږل، قرآنکریم دوه ځایه لدې پیریانو نه یادونه کوي او فرمایي: ((وَإِذْ صَرَفْنَا إِلَيْكَ نَفَراً مِنْ الْجِنِّ يَسْتَمِعُونَ الْقُرْآنَ فَلَمَّا حَضَرُوهُ قَالُوا أَنْصِتُوا فَلَمَّا قُضِيَ وَلَّوْا إِلَى قَوْمِهِمْ مُنْذِرِينَ (٢٩) قَالُوا يَا قَوْمَنَا إِنَّا سَمِعْنَا كِتَاباً أُنْزِلَ مِنْ بَعْدِ مُوسَى مُصَدِّقاً لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ يَهْدِي إِلَى الْحَقِّ وَإِلَى طَرِيقٍ مُسْتَقِيمٍ (٣٠) يَا

قَوْمَنَا أَجِيبُوا دَاعِيَ اللَّهِ وَآمِنُوا بِهِ يَغْفِرْ لَكُمْ مِنْ ذُنُوبِكُمْ وَيُجِرْكُمْ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ (٣١) (الاحقاف: ٢٩ – ٣١)

[او ياد کړه (هغه وخت اي محمده!) کله چې وګرزول مونږ تا ته يو ټولی له پيريانو څخه چې غوږ به يې ايښوده قرآن ته پس کله چې حاضر شول دوی (دې قرآن ته) وويل دوی پخپل منځ کې چپ شئ تاسې اي پيريانو بيا کله چې تمام شو (د قرآن تلاوت) بيرته وګرځيدل قوم خپل ته ويروونکي (له عذابه که همغسې کافران پاتې شي) وويل دوی اې قومه زمونږ بيشکه مونږ واوريده داسې يو کتاب چې نازل کړی شويدی وروسته له موسی پداسې حال کې چې تصديق کوونکی موافق دی له هغو (کتابونو) سره چې پخوا له دې نه وو. لياره ښيي حق دين ته او لياري سمې ته، اې قومه زمونږ! قبول کړئ تاسې قول د بلونکي د الله او ايمان راوړئ په ده باندې چې مغفرت درته وکړي (الله) تاسې ته ګناهونه ستاسې، او خلاص به کړي (الله) تاسې له عذاب دردناک څخه.]

بل ځای د جن په سورت کې داسې فرمايي:

((قُلْ أُوحِيَ إِلَيَّ أَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِنْ الْجِنِّ فَقَالُوا إِنَّا سَمِعْنَا قُرْآناً عَجَباً (١) يَهْدِي إِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهِ وَلَنْ نُشْرِكَ بِرَبِّنَا أَحَداً (٢))) ( الجن: ١–٢)

[ووايه (اې محمده! دوی ته) وحي راغلې ماته چې بيشکه شان دا دی چې واوريده (قرائت زما) يوه ټولي له پيريانو نه، نو وويل (دوی نورو قومونو خپلو ته کله چې بيرته ورغلل چې) بيشکه مونږ واوريده يو قرآن عجيب (په فصاحت او بلاغت سره) چې هدايت کوي رشد (ايمان او حق) ته نو ايمان راوړ مونږ پر هغه (قرآن) او هر ګز به شريک نه کړو (پس له دې ورځې) له رب خپل سره بل هيڅوک.]

ددې آيتونو له سياق او همداراز ددې پيښې په هکله له رانقل شويو روايتونو نه دا ځرګنديږي چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تر هغې پورې د پيريانو ددې ډلې په راتګ نه ؤ خبر تر څو الله تعالی د همدې آيتونو په ذريعه خبر ورکړ. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته دا د پيريانو لومړی ځل راتګ و او له احاديثو نه دا په ډاګه کيږي چې پدې پسې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته د پيريانو تګ راتګ څو ځله تکرار شويدی.

د پيريانو دا راتګ او د هغوی اسلام منل په حقيقت کې يو بل غيبي کومک ؤ چې الله تعالی د خپل غيب مکنون له خزانې نه د هغو لښکرو په واسطه له رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره وکړ کوم چې له الله تعالی (ج) نه پرته بل څوک ورباندې خبر ندي. او بل دا چې ددې پيښې په هکله را نازل شويو آيتونو د رسول الله

(صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د دعوت د بري زیری هم ورکاوه او دا یې په ډاګه اعلانوله چې د ځمکې پر مخ هیڅ قوت هم ددې دعوت مخه نه شي نیولی او نه یې له خپل منزل نه په شا کولی شي لکه چې فرمایي:

((وَمَنْ لا يُجِبْ دَاعِيَ اللَّهِ فَلَيْسَ بِمُعْجِزٍ فِي الأَرْضِ وَلَيْسَ لَهُ مِنْ دُونِهِ أَولِيَاءُ أُوْلَئِكَ فِي ضَلالٍ مُبِينٍ )) (الاحقاف: ۳۲)

[او هغه څوک چې ونه مني (بلنه د) بلونکي پس نه به وي عاجز کوونکی (د الله، په تیښته سره) په ځمکه کې (بلکه هیچیرې) او نه به وي ده ته بې له هغه (الله) څخه دوستان مددګارانو دغه کسان په ګمراهۍ ښکاره کې دي.]

((وَأَنَّا ظَنَنَّا أَنْ لَنْ نُعجِزَ اللَّهَ فِي الأَرْضِ وَلَنْ نُعْجِزَهُ هَرَباً)) (الجن: ۱۲) [او بیشکه مونږ یقین کاوه چې له سره به مونږ عاجز نه کړو الله په ځمکه کې (چې ترې پټ او خلاص شو) او له سره به نه عاجز کوو دغه (الله) په تیښتې سره (که ترې وتښتو).]

د الله تعالی پدې بشارتونو، او کومکونو سره د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له زړه او دماغ نه غمونو او تشویشونو کوچ وکړ، هغه پداسې حال کې له طائف نه راوتلی ؤ چې په سینه کې یې د نورو غمونو ځای نه ؤ، ناهیلي او نا امیدي یې سترګو ته کیدله، خلکو نه یوازې چې خبره یې نه وه منلې بلکه له خپلې سیمې یې راشړلی وو، خو د لارې په اوږدو کې الله تعالی داسې زیري او غیبي کومکونه ورسره وکړل چې غمونه او دردونه یې ټول هیر شول، په ټینګ عزم سره د مکې په لور وخوځید، تر څو هلته له نوي عزم، او نوې روحیې سره خپل دعوت مخکې بوزي او خلکو ته د الله تعالی دین ورسوي.

پدې وخت کې زید بن حارثه (رضي الله عنه) ورته وایي: جنابه (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! ته څنګه بیا مکې ته ننوزې پداسې حال کې چې د مکې خلکو (قریشو) ددې ځای پریښودو ته اړ کړی یې؟ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: (**یا زید، إن الله جاعل لما ترى فرجًا ومخرجًا، وإن الله ناصر دينه، ومظهر نبيه**). [اې زیده( رضي الله عنه)! دا حالات چې ته ګورې، الله تعالی به خوامخوا مونږ ته پکې د نجات او خلاصون لاره پیدا کوي، الله تعالی حتماً د خپل دین مرسته کوي او خپل نبي (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته بری ور په برخه کوي.]

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وخوځید تر څو د حراء لمنې ته ورسید هلته معطل (تم) شو، او له هغه ځای نه یې د خزاعه کورنۍ یو کس اخنس بن شريق ته احوال واستاوه او له هغه نه یې د پناه غوښتنه وکړه، خو هغه معذرت و غوښت او ویې ویل چې زه پخپله د مکې د اوسیدونکو حلیف یم (د تړون او عهد خاوندیم) او حلیف خو چا ته چې ملګرې قبیلې شړلی وي د پناه ورکولو حق او صلاحیت نلري. نو بیا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سهیل بن عمرو ته پیغام ورولیږه چې ده ته پناه ورکړي، خو سهیل په ځواب کې ورته وویل: چې بني عامر د بني کعب په مقابل کې چا ته پناه نه شي ورکولی. نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مطعم بن عدي ته د پناه غوښتنې پیغام واستاوه، په ځواب کې مطعم ورته وویل: هو زه ستا پناه په غاړه اخلم، نور یې خپله وسله راواخیسته، زامن او د قوم خلک یې راوغوښتل ورته ویې ویل خپلې وسلې را واخلئ او د کعبې شریفې سره شا او خوا کې ودریږئ، ځکه ما محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته پناه ورکړیده.
بیا یې محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته پیغام واستاوه چې اوس راځه، مکې ته را دننه شه، نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هم پداسې حال کې چې زيد بن حارثه (رضي الله عنه) هم ورسره ؤ مکې ته ننوت مسجد حرام ته یې تشریف یوړ پدې وخت کې مطعم بن عدي په خپله سپرلۍ ودرید او اعلان یې وکړ اې قریشو! ما محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته پناه ورکړیده، نور به هیڅوک ورسره غرض نلري. هلته رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حجر اسود ته ورغی، مچې یې کړه، دوه رکعته لمونځ یې وکړ بیا خپل کورته روان شو، مطعم او زامن او نور د قوم خلک یې همداسې مسلح تر شا و خوا روان وو تر څو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپل کور ته تشریف یووړ.
ویل کیږي چې ابو جهل له مطعم بن عدي نه پوښتنه وکړه: چې تا محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته پناه ورکړه او که د هغه دین دې ومانه او د هغه پیرو شوې؟ مطعم ورته وویل: ما پناه ورکړه، نو ابو جهل ورته وویل: چا ته چې تا پناه ورکړیده مونږ هم پناه ورکوو.[1]
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د مطعم بن عدي دا نیکي کله هم نده هیره کړی، هلته د بدر په ورځ چې مسلمانانو یو شمیر مشرکان په اسارت نیولي وو،

---

[1]. د طائف د سفر تفصیلات مو له دې کتابونو نه اخیستي دي: ابن هشام ۴۱۹/۱- ۴۲۲ . زاد المعاد ۴۲/۲_۴۷. مختصر سيرة الرسول (ص) للشیخ عبد الله النجدي ۱۴۱_۱۴۳.رحمة للعالمین ۷۲/۱ . تاریخ اسلام للنجیب آبادي ۱۲۳/۱.

او جبير بن مطعم د ځينو بنديانو (اسيرانو) د آزادولو پخاطر د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راغلی ؤ، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) داسې فرمايلي وو:

((**لو كان المطعم بن عدى حيًا ثم كلمنى في هؤلاء النتنى لتركتهم له**))[1] **[**يعنى كه چيرې مطعم بن عدي ژوندی وای او ددې بوينو په هکله يې راته خبره کړې وای، نو ما به دده پخاطر دوی ټول آزاد کړي وو.**]**

---

[1]. صحيح البخاري ۵۷۳/۲

# نورو خلکو او قبايلو ته د اسلام بلنه

د بعثت په لسم کال د ذي القعدې په مياشت کې چې د ۶۱۹م کال د جون د وروستيو او يا جولای له لومړيو سره سمون خوري، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له طائف نه مکې ته راستون شو او دلته يې بيا خلک، او قبيلې د اسلام لور ته رابللې. او څرنګه چې د حج وخت راتلونکی ؤ نو خلک له هر ليرې او نژدې ځای نه د حج پخاطر سواره او پياده مکې ته راتلل، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به لدې موقع نه په استفادې سره هرې قبيلې ته بيل بيل ورته د اسلام بلنه به يې ورکوله او د ملاتړ غوښتنه يې ورنه کوله او پدې سره يې د نبوت له څلورم کال نه پيل شوې لړۍ يو ځل بيا را ژوندۍ کړه.

## هغه قبيلې چې اسلام ته رابللې شوې وې

امام زهري (رحمه الله) وايي: له هغه قبيلو نه چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) هغوی ته تشريف وروړی او اسلام ته يې را دعوت کړې وې ځنې دا وې: بنو عامر بن صعصعه، محارب بن خصفه، فزاره، غسان، مره، حنيفه، سليم، عبس، بنونصر، بنوالبکاء، کلب، حارثه بن کعب، عذره، حضارمه، خو لدې ټولو نه يوه قبيله هم په اسلام مشرفه نه شوه.[1]

يادونه بايد وکړو دا قبيلې چې امام زهري يې نومونه ياد کړيدي ټولې په يوه کال يا د حج په يوه موسم کې اسلام ته ندې رابللې شوې بلکه دا د نبوت له څلورم کال نه تر هجرته مخکې وروستني حج پورې په لس کلنه موده کې اسلام ته رابللې شويدي.[2]

او دا نشو ويلای چې فلانۍ قبيله په فلاني کال اسلام ته رابلل شويده، که څه هم علامه منصور پوري د ځينو قبيلو نومونه اخستي او دا يې ويلي دي چې دا قبيلې د بعثت په لسم کال اسلام ته رادعوت شويدي. ابن اسحاق اسلام ته د ځينو قبايلو د

[1]. ترمذي – مختصر السيرة للشيخ عبدالله ۱۴۹

(2). رحمة للعالمين ۷۴/۱ وګوره. تاريخ اسلام ۱/ ۱۳۵

رابللو کیفیت او د هغوی ځوابونه بیان کړیدي چې مونږ یې لنډیز په لاندې ډول وړاندې کوو:

**١- بنوکلب-** رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ددې قبیلې یوې پښې ته چې بنو عبدالله نومیده ورغی، د الله تعالی لور ته یې راوبلل، د ملاتړ غوښتنه یې ورنه وکړه او دا یې ورته وویل چې دی (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له ځان سره بوزي، د خپلو خبرو په ترخ کې یې دا هم ورته وفرمایل: ((**یا بني عبدالله ان الله قد احسن اسم ابیکم**)). [اې د عبدالله اولادې! الله تعالی ستاسې نیکه ته ډیر غوره نوم ورکړی دی] خو نوموړې قبیلې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دعوت و نه مانه.

**٢- بنوحنیفه:** رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د هغوی دیرې ته ورغی د الله تعالی لور ته یې راوبلل، د اسلام غوښتنه یې ورنه وکړه، او له دوی سره یې د تګ خبره ورته وکړه، خو ددې قبیلې خلکو په ټولو عربو کې ډیر خراب او ناوړه ځواب ورکړ.

**٣- بني عامر بن صعصعه-** رسول الله (صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) دې قبیلې ته هم ورغی، د الله تعالی دین ته یې راوبلل او له دوی سره د تګ هیله یې ورته ښرګنده کړه. په ځواب کې له دوی نه یوه کس چې بحیره بن فراس نومیده داسې ورته وویل: قسم په خدای که زه دا ځوان له قریشو نه خپل کړم، نو ټول عرب به وربانده وخورم یعنی ټول عرب به د ځان کړم، بیا یې رسول الله (صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ته وویل: ښه دا راته ووایه که چیرته مونږ ستا په دې دین بیعت درسره وکړو، بیا الله تعالی پر دښمنانو غلبه او بری در په برخه کړي، نو هغه وخت به بیا د کارونو واګې (واکداري) مونږ ته راکوې او که څنګه؟ رسول الله (صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ورته وفرمایل: د کارونو واک او اختیار له الله تعالی سره دی، هغه چاته یې ورکوي چې خوښه یې وي. بیا هغه سړي ورته وویل: ته دا غواړې چې مونږ له عربو نه ستا د دفاع په لار کې خپل سرونه قربان کړو، خو کله چې الله بری درکړي، نو بیا دې واک او قدرت له بل چاسره وي، نو مونږ ستا دې دین ته اړتیا نلرو. پدې ترتیب سره دې قبیلې هم اسلام ونه مانه.

خو کله چې ددې قبیلې خلک له حج نه وروسته بیرته خپل وطن ته ستانه شول هلته یې خپل مشر ته چې د کمزورۍ او زړښت له وجې حج ته نه و راغلی دا کیسه واوروله

او ورته وېې ويل: د قريشو د بني عبدالمطلب کورنۍ يو ځوان چې د نبوت دعوی يې کوله مونږ ته راغی او دا يې رانه وغوښتل چې مونږ يې ملاتړ وکړو ورسره ودريږو او هغه خپلې سيمې ته راولو. بوډا چې دا خبرې واوريدې غبرګ لاسونه يې په سر کيښودل او ويې ويل: اې د عامر اولادې! آيا ستاسې دا خطا جبران کيدای شي؟ آيا دا له لاسه وتلې مرغه بيرته لاسته راتلی شي؟ قسم په هغه ذات چې د فلانـي نفس د هغه په اختيار کې دی چې اسماعيلي کله هم په دروغو د نبوت دعوه نده کړې، يقيناً چې دا حق دی، هغه وخت ستاسې عقل چيرته ؤ؟[1]

## د ايمان وړانګې له مکې نه د باندې

لکه څرنګه چې رسول الله (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) قبيلې، پلاوي او هيئتونه اسلام ته رابلل، همدا راز يې ځينې افراد او وګړي هم د الله تعالی دين ته رادعوت کړل، چې د ځينو عکس العمل هم ښه ؤ، او لدې موسم نه څه موده وروسته يو شمير افراد په اسلام مشرف هم شول. راځئ ددې کسانو او پيښو په هکله لاندينۍ څرګندونې سره ولولو.

۱- سويد بن صامت: د يثرب اوسيدونکی، ډير زيرک او ذکي شاعر ؤ، او د خپلې سنجيدګۍ، شاعرۍ شرف او نسب له امله په کامل سره مشهور ؤ. مکې ته د حج يا عمرې لپاره راغلی ؤ، رسول الله (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) د اسلام بلنه ورکړه، نو ده ورته وويل: کيدای شي دا کوم څه چې له تاسره دي داسې وي لکه زما سره چې دي. رسول اکرم (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ورته وفرمايل: **(وما الذي معك؟)**. له تاسره څه دي؟ سويد ورته وويل: **قال: حكمة لقمـــان**. له ماسره د لقمان حکمت (علم) دی. رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ورته وفرمايل: **قال: (اعرضها عليَّ)**. ما ته يې وړاندې کړه، نو هغه له دې حکمت نه څه ورته تير کړل. بيا رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ورته وفرمايل: ). **فقال له رسول الله صلى الله عليه وسلم: (إن هذا لكلام حسن، والذي معي أفضل من هذا؛ قرآن أنزله الله تعالى عليّ، هو هدى ونور)**. دا غوره کلام (خبرې) دي، خو هغه څه چې له ما سره

[1]. ابن هشام ۴۲۴/۱، ۴۲۵

دي لدینه غوره او افضل دي، هغه قرآنکریم دی چې الله تعالی پر ما را نازل کړی دی، هغه رڼا ده او هدایت دی. بیایې یو څو آیتونه ورته تلاوت کړل او اسلام ته یې راوباله، نو سوید هم بلنه ومنله او په اسلام مشرف شو او ویې ویل: دا له ټولو نه غوره قول دی. نوموړی چې بیرته مدینې ته ستون شو هلته د بعاث په جګړه کې ووژل شو[1] سوید د نبوت د یوولسم کال په پیل کې په اسلام مشرف شوی و.[2]

۲- ایاس بن معاذ- د یثرب اوسیدونکی ؤ، نوموړی نوی رسیدلی ځوان ؤ چې د اوس قبیلې له یوه هیئت (پلاوي) سره مکې ته راغلی ؤ. دا د نبوت د یوولسم کال پیل او د بعاث له جګړې نه مخکې پیښه وه. نوموړی وفد پدې نیت مکې ته راغلی ؤ چې د خزرج په مقابل کې له قریشو سره حلف او تړون وکړي، هغه وخت د اوس او خزرج تر مینځ د دښمنۍ اور تود ؤ، د اوس قبیلې شمیره هم کمه وه.رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) چې له نوموړي وفد نه خبر شو تشریف یې وروړ او ورته ویې فرمایل: تاسې چې د کوم مقصد لپاره دلته راغلی یاست آیا له هغه نه غوره څیز قبلوئ؟ دوی ورته وویل: هغه به څه وي؟ رسول الله (صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ورته وفرمایل: زه د الله تعالی رسول یم، خلکو ته یې رالیږلی یم، زه انسانان دې ته رابولم چې یوازې د یوه الله عبادت وکړي، هیڅ شریک ورسره ونه نیسي، الله تعالی پر ما کتاب هم رانازل کړیدی، بیا یې د اسلام یادونه ورته وکړه، قرآنکریم یې ورته تلاوت کړ. نو ایاس بن معاذ وویل: اې قومه! قسم په الله تعالی دا له هغه څه چې تاسې ورپسې راغلی یئ ډیر غوره دی، پدې وخت کې د وفد له غړو نه یوه کس چې ابو الحیسر انس بن رافع نومیده یو موټی خاورې راواخیستې او د ایاس مخ ته یې وروشیندلې او ورته ویې ویل: زما په عمر قسم چې مونږ ددې لپاره نه یو راغلي، زمونږ د راتلو مقصد بل څه دی. ایاس چوپ شو او رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) هم پاڅید، وفد هم وروسته لدې چې له قریشو سره په تړون او عهد کولو کې ناکام شو بیرته مدینې ته ستون شو.

مدینې ته له رسیدو وروسته ایاس مړ شو، خو د ځنکندن په وخت کې یې (**لا الـــه الا الله، الله اکبر، الحمدلله، سبحان الله**) په ژبه جاري وو، نو بیشکه چې هغه مسلمان مړ

---

[1]. ابن هشام ۴۲۵/۱- ۴۲۲-۴۲۷ رحمة للعالمین ۷۴/۱

[2]. تاریخ اسلام للنجیب آبادي ۱۲۵/۱.

شويدی.[۳]

**۳- ابوذر الغفاري** : د يثرب د شاو خوا سيمو اوسيدونکی ؤ. کله چې د سويد بن صامت او اياس بن معاذ پواسطه د رسول اکرم(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) د بعثت خبر په مدينه کې خپور شو، نو ابوذر (رضي الله عنه) غوږ ته هم ورسيد او همدايې د اسلام راوړلو سبب شو.

امام بخاري له ابن عباس (رضي الله عنهما) نه روايت کوي وايي: **قال ابوذر: كنت رجلا من غفار، فبلغنا ان رجلا قد خرج بمكة يزعم انه نبي، فقلت: لاخي انطلق الى هذا الرجل و كلمه و اءتني بخبره، فانطلق، فلقيه ثم رجع، فقلت: ما عندك؟ فقال: و الله لقد رايت رجلا يامر بالخير و ينهي عن الشر، فقلت له: لم تشفني من الخبر، فاخذت جرابا و عصا، ثم اقبلت الى مكة، فجعلت لا اعرفه، و اكره ان اسال عنه، و اشرب من ماء زمزم و اكون في المسجد، قال: فمر بي علي فقال: كَاَن الرجل غريب؟ قال: قلت: نعم. فقال: فانطلق الى المنزل، فانطلقت معه، لا يسالني عن شي و لا اساله و لا اخبره. فلما اصبحت غدوت الى المسجد لا اسال عنه و ليس احد يخبرني عنه بشئ. قال: فمر بي علي، فقال: اما زال للرجل يعرف منزله بعد؟ قال: قلت: لا. قال: فانطلق معي، قال: فقال: ما امرك؟ وما اقدمك هذه البلدة؟ قال: قلت له: ان كتمت علي اخبرتك، قال: فاني افعل. قال: قلت له: بلغنا انه قد خرج ههنا رجل يزعم انه نبي الله، فارسلت اخي يكلمه، فرجع و لم يشفني من الخبر، فاردت ان القاه. فقال له: اما انك قد رشدت، هذا وجهي اليه، ادخل حيث ادخل، فاني ان رايت احدا اخافه عليك قمت الى الحائط كاني اصلح نعلي و امض انت. فمضى، مضيت معه حتى دخل و دخلت معه علي النبي (صلى الله عليه و آله وصحبه وسلم) فقلت له: اعرض علي الاسلام، فعرضه، فاسلمت مكاني. فقال لي: يا اباذر، اكتم هذا الامر، وارجع الى بلدك، فاذا بلغك ظهورنا فاقبل، فقلت: والذي بعثك بالحق لاصرخن بها بين اظهرهم، فجئت الى المسجد و قريش فيه! فقلت: يا**

---

[۳]. ابن هشام ۴۲۷/۱- ۴۲۸. تاريخ اسلام للنجيب آبادي ۱۲۲/۱

**معشر قريش. اني اشهد ان لا اله الا الله، و اشهد ان محمدا عبده و رسوله. فقالوا: قوموا الى هذا الصابئ. فقاموا، فضربت لاموت، فادركني العباس فاكب علـــي، ثم اقبل عليهم فقال: ويلكم تقتلون رجلا من غفار؟ و متجركم و ممركم على غفـــار فاقلعوا عني، فلما ان اصبحت الغد، رجعت فقلت مثل ماقلت بـــالامس، فقـــالوا: قوموا الى هذا الصابئ فصنع بي ما صنع بالامس، فادركني العباس، فاكب علي وقال مثل مقالته بالامس.))**[1]

يعنی: ابوذر (رضي الله عنه) فرمايي: زه د بني غفار قبيلې يو کس وم، خبر شوم چې په مکه کې يو داسې څوک پيدا شوی چې ځان نبي بولي، ما خپل ورورته وويل: ته دې کس ته ورشه، خبرې ورسره وکړه او ما ته يې احوال راوړه، هغه لاړ، ملاقات يې ورسره وکړ او بيرته راغی، ما پوښتنه ورنه وکړه چې څه خبر دې راوړی؟ ده راته وويل: په الله قسم چې ما يو داسې شخصيت وليد چې په نيکۍ امر او له بدۍ نه نهي کوي. ما ورته وويل: پوره خبر دې ندې راوړی، زړه مې پرې ډاډه نه شو، نو بيا مې د توښې توبره او همسا راواخيسته او د مکې په لور روان شوم، (مکې ته ورسيدم) خو رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) مې نه پيژانده، او دا هم ښه نه راته ښکاريده چې له چا نه يې پوښتنه وکړم، د زمزم اوبه به مې څښلې او په مسجد حرام کې به وم، بالاخره علي (رضي الله عنه) راغی راته وي‌ی ويل: بيګانه معلوميږې! ما ورته وويل: هو، ده راته وويل: نو راځه زما سره کورته لاړ شه، زه هم ورسره لاړم، خو نه هغه رانه د څه پوښتنه کوله او نه ما ورنه پوښتل او نه مې څه ورته ويل.کله چې سهار شو نو بيا مسجد حرام ته لاړم تر څو د رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) په هکله څه معلومات حاصل کړم خو هيڅوک هم نه ؤ چې د رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) په هکله يې معلومات راکړي وای، بيا علي (رضي الله عنه) راته راغی ويې ليدم، راته وي‌ی ويل: دې سړي تر اوسه خپل ځای (کور) ندی پيژندلئ؟ ما ورته وويل: نه، ده راته وويل: ښه، نو راځه زما سره لاړ شه، بيا يې راته وويل دا راته ووايه ستا کار څه دی؟ او د څه پخاطر دې ښارته راغلی يې؟ ما ورته وويل: که ته زما راز ساتې نو درته وبه وايم: هغه راته وويل: سيي ده، (راز دې ساتم) نو ما ورته وويل: خبر شوی يم چې دلته يو داسې کس پيدا شويدی چې ځان د الله تعالی نبي (صلی الله عليه و اله

---

[1]. صحيح البخاري باب قصة زمزم ۴۹۹/۱ - ۵۰۰ و باب اسلام ابي ذر ۱/ ۵۴۴ - ۵۴۵.

وصحبه وسلم) بولي، ما خپل ورور دلته را استولی ؤ چې راشي خبرې ورسره وکړي، هغه بیرته ته راستون شو، خو څه اطمیناني او تسلي بخش خبر یې نه ؤ راوړی، نو تصمیم مې ونیو چې زه باید پخپله لدې شخص سره وګورم. حضرت علي (کرم الله وجهه) راته وویل ته سیي ځای ته رارسیدلی یې، ګوره زه د همغه په طرف روان یم، په کومه چې زه تلم په همغه لار راپسې راځه او که د لارې په اوږدوکې له داسې چا سره مخامخ شوو چې ستا لپاره خطرناک ؤ، نو زه به د دیوال خوا ته پدې بهانه دریږم چې ګویا زه خپلې څپلې جوړوم، خو ته به تیریږې او خپله لار به وهې، بیا علي (کرم الله وجهه) روان شو، زه ورپسې وم تر څو هغه ننوت او زه هم ورپسې د رسول الله (صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) حضور ته ور ورسیدم او عرض مې ورته وکړ چې اسلام راته را وړاندې کړه! رسول اکرم(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) اسلام راته بیان کړ، نو زه په همغه ځای مسلمان شوم، بیا رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) راته وویل: (**يا أبا ذر، اكتم هذا الأمر، وارجع إلى بلدك، فإذا بلغك ظهورنا فأقبل**).ابو ذره! دا خبره پټه ساته او بیرته خپل وطن ته لاړ شه، او کله چې زمونږ د بري خبر در ورسید نو بیا راشه. ما ورته وویل: په هغه ذات قسم چې ته یې په حقه رالیږلی یې، زه به د دوی په مینځ کې دا په ډاګه اعلانوم. بیا مسجد حرام ته راغلم، قریش ناست وو، ما ورته وویل: اې قریشو! واورئ : (**اشهد ان لا اله الا الله و اشهد ان محمدا عبده و رسوله**)، زه شاهدي ورکوم چې له الله تعالی پرته بل د عبادت وړ څوک نشته، او زه شاهدي ورکوم چې محمد(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د الله تعالی بنده او رسول دی.

دوی وویل: دا بې دین راونیسئ، یو ځل خلک را پاڅیدل او په مرګ یې ووهلم، تر څو عباس (رضي الله عنه) راغی پر ما یې ځان را واچاوه بیا یې قریشو ته مخ وراوړه او ورته ويې ویل: تباه شئ، تاسې د غفار قبیلې سړی وژنئ؟ پداسې حال کې چې ستاسې تجارت او ستاسې لار په غفار قبیله باندې ده! نو پدې سره خلکو زه پریښودم او رانه لاړل. سبا سهار بیا هملته ورغلم او هماغه پرونۍ خبره مې بیا اعلان کړه، خلکو بیا وویل: دا بې دینه ونیسئ، او بیايې همغه پرونۍ معامله راسره وکړه (ډیر یې ووهلم) دا ځل بیا حضرت عباس (رضي الله عنه) ورنه خلاص کړم، پر مايې ځان راواچاوه او هماغه پرونۍ خبره یې ورته وکړه.

**۴- طفیل بن عمرو الدَوسي**: دا یو شریف انسان، د عقل او پوهې خاوند، زیرک

شاعر او د خپل قوم مشر وُ. دده قبيلې (دوس) د يمن پر ځينو برخو پوره حاکميت او يا څه نا څه تسلط درلود. نوموړى د نبوت په يوولسم کال مکې ته راغى. د مکې خلکو يې ډير تود هرکلى وکړ، ډير قدر او عزت يې ورکړ، او دا يې ورته وويل: طفيله! تا زمونږ ښار ته تشريف راوړى، او دا شخص چې زمونږ په مينځ کې پيدا شوى زمونږ لپاره د ډيرو مشکلاتو سبب شويدى، زمونږ اتحاد ته يې صدمه رسولې، زمونږ يووالى يې ختم کړيدى، خبرې يې لکه د سحر او جادو په شان اثر او اغيزه لري، د پلار او زوى، ورونړو، ميړه او ښځې تر مينځ بيلتون راولي، مونږ ويريږو دا مشکلات چې مونږ ورسره مخ يو، ته او ستا قوم هم ورسره لاس او ګريوان شي، نو ته به ورسره هيڅ خبرې نه کوې او له هغه نه هيڅ هم بايد وا نه وري.

حضرت طفيل (رضي الله عنه) وايي: دې خلکو ماته همدا خبرې کولى تر دې چې ما کلکه اراده وکړه چې له رسول الله (صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) سره به نه خبرې کوم او نه به څه ورنه اورم، ان تر دې چې کله سهار مسجد حرام ته لاړم، نو په غوږونو کې مې مالوچ کينبودل چې هسې نه د رسول الله(صلى الله عليه و آله وصحبه وسلم) کومه خبره مې تر غوږو شي، رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) له کعبې سره لمونځ کاوه او زه خوا کې ورسره ودريدم او څرنګه چې د الله تعالى اراده داسې وه چې زه به د رسول اکرم (صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) څه خبرې اورم، نو همداسې وشول ما ورنه ډيره غوره خبره واوريدله، بيا مې په زړه کې وويل: مور دې رابانديې بوره شي! زه يوه زيرک او پوه شاعر يم، ښه او بد پيژنم، نو بيا ولې ددې شخص خبرې نه اورم؟ که يې خبرې ښې او سيې وې وبه يې منم او که خرابې وې، نو نه به يې قبلوم، دا سوچ مې وکړ او همدلته پاتې شوم تر څو رسول الله (صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) کورته روان شو، نو زه هم ورپسې شوم او کله چې رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) کورته ننوت زه ورپسې وم او هلته مې د خپل راتګ، د خلکو د خبرو، په غوږونوکې د مالوچو ايښوولو او لدې سره سره د رسول الله (صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) د ځينو خبرو اوريدلو ټول تفصيلات ورته بيان کړل، بيا مې عرض ورته وکړ چې ته خپلې خبرې راته واوروه! رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) اسلام راته بيان کړ او قرآنکريم يې راته ولوست، الله شاهد دى چې ما کله هم لدې نه غوره قول او لدې نه د زيات عدل او انصاف خبرې نه وې اوريدلې، نو همدا وه چې همدلته په اسلام مشرف شوم او د حق شهادت مې ادا کړ يعنى د شهادت کلمه مې وويله. بيا مې رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) ته عرض وکړ چې زما

قوم زما خبرې مني، زه بیرته ورځم او هغوی اسلام ته رابولم، نو ته الله تعالی ته سوال وکړه چې ماته څه نښانې راکړي! رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ورته دعا وکړه. حضرت طفیل (رضي الله عنه) ته چې کومه نښه ورکړل شوې وه هغه دا وه چې کله هغه خپلې قبیلې ته ورلنډ شو، نو الله تعالی یې په مخ کې لکه ډیوه داسې رڼا پیدا کړه، ده پدې وخت کې دعا وکړه او وې ویل: یا الله! د مخ په ځای دا رڼا په کوم بل ځای کې پیدا کړه، هسې نه چې خلک ووایي چې مُثله دی، نو دعایې قبوله شوه او دا رڼا یې همسا یا متروکې ته لاړه. بیا یې خپل پلار او خپله ښځه اسلام ته راوبلل او هغوی دواړه مسلمان شول، خو قوم یې ژر اسلام رانه وړ. طفیل (رضي الله عنه) خپل دعوت جاري وساته تر څو د خندق له غزا نه وروسته هغه پداسې حال کې هجرت وکړ چې د خپل قوم (۷۰) یا (۸۰) کورنۍ ورسره وې. حضرت طفیل ( رضي الله عنه) د اسلام لپاره ډیره خدمتونه سرته رسولي دي او له ډیرو هلو ځلو وروسته د یمامه په جګړه کې په شهادت رسیدلی دی.

**۵- ضِماد الازدي**- نوموړی د یمن اوسیدونکې او د ازد شنوءه، قبیلې غړی وُ، دم او چوپ یې وظیفه وه. مکې ته راغی هلته یې د سیمې له جاهلانو نه واوریدل چې محمد(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) لیونی دی. ضماد وویل: زه دې سړي ته ورځم، کیدای شي الله تعالی یې زما په دم جوړ کړي. ورغی او له رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) سره یې ملاقات وکړ او ورته وې ویل: اې محمده (ص)! زه د مرضونو او دې باد دم او چوپ کوم څنګه ته دم او چوپ ته ضرورت لرې؟ رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) په ځواب کې ورته وفرمایل:

(**إن الحمد لله نحمده ونستعینه، من یهده الله فلا مضل له، ومن یضلله فلا هادی له، وأشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شریك له، وأشهد أن محمدًا عبده ورسوله. أمـــا بعد**). یعنی: ټول ثنا او صفت خاص د الله تعالی لپاره دی، مونږ د هغه حمد او ثنا وایو، او له همده نه مرسته غواړو چا ته چې الله تعالی هدایت وکړي، نو هیڅوک هم هغه نه شي بې لارې کولی، او الله تعالی چې څوک بې لارې کړي، نو هیڅوک هم هغه ته هدایت نه شي کولی، او زه شاهدي وایم چې له الله پرته هیڅ بل معبود نشته، هغه واحد دی هیڅ شریک نلري، او زه شاهدي وایم چې محمد (صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د الله تعالی بنده او رسول دی. اما بعد.

ضماد ورته وویل: دا خبرې یو ځل بیا راته واوروه! رسول الله(صلی الله علیه و اله

وصحبه وسلم) دا خبرې درې ځله ورته تکرار کړې. بیا ضماد وویل: ما د کاهنانو، جادوګرانو او شاعرانو خبرې اوریدلې دي، خو کله مې هم ستا د خبرو په شان خبرې ندي اوریدلې، دا د سمندر تل ته رسیدلی خبرې دي، راوړه، لاس دې را اوږد کړه تر څو بیعت درسره وکړم. پدې ترتیب سره په اسلام مشرف شو او له رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) سره یې د اسلام بیعت وکړ.[1]

## د مدینې منورې شپږ نیکبخته کسان

د نبوت په یوولسم کال د حج په موسم کې چې د (۶۲۰م) کال د جولای له میاشتې سره سمون خوري اسلامي بلنې داسې نیالګي وموندل چې ډیر ژر په داسې لویو ونو بدل شول چې په کلونو کلونو سترېو او ظلم ځپلیو مسلمانانو یې تر یخې سیورې لاندې د امن او راحت ژوند پیل کړ.

د مکې مشرکنیو د رسول اکرم(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د تکذیب او له اسلام نه د خلکو د منع کولو لپاره چې کومې لارې چارې او هلې ځلې په کار اچولې وې، رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د هغوی د دې کوښښونو د ناکامولو پخاطر دا لاره نیولې وه او دا حکمت یې په کار اچولې ؤ چې د شپې په تیاره کې به قبایلو ته د دعوت لپاره ورته، تر څو د مکې مشرکینو څه موانع ورته ایجاد نه کړای شي[2].

یوه شپه رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د دعوت په منظور ووت ابوبکر او علي (رضي الله عنهما) هم ورسره ملګري وو د بنو ذهل او بنو شیبان بن ثعلبه هستوګنځي ته ورغلل او د اسلام په هکله یې خبرې ورته وکړې، هغوی که څه هم نیک او هیله من کوونکی ځواب ورکړ خو في الحاله یې اسلام قبول نکړ. پدې وخت کې د حضرت ابوبکر (رضي الله عنه) او بنو ذهل د یوه کس تر مینځ د نسب د شجرې په هکله ډیر په زړه پورې سوال او ځواب هم وشو ځکه دوی دواړه نسب پوهان وو.[3]

بیا رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) په منی کې له عقبې نه تیریده چې د

---

(1). صحیح مسلم، مشکاة المصابیح باب علامات النبوة ۵۲۵/۲

(2). تاریخ اسلام للنجیب آبادي ۱۲۹/۱

(3). مختصر السیرة للشیخ عبدالله ص ۱۵۰ - ۱۵۲

خلکو خبرې يې تر غوږو شوې، نو د هغوی په طرف ور روان شو او ورغی دا له يثرب نه راغلي شپږ ځوانان وو، چې ټول د خزرج له قبيلې څخه وو او نومونه يې دا دي:

۱. اسعد بن زراره (له بني النجار قبيلې څخه)
۲. عوف بن الحارث بن رفاعه بن عفراء (له بني النجار قبيلې څخه)
۳. رافع بن مالک بن العجلان (له بني زريق قبيلې څخه)
۴. قطبه بن عامر بن حديده (له بني سلمه قبيلې څخه)
۵. عقبه بن عامر بن نابي (له بني حرام بن کعب قبيلې څخه)
۶. جابر بن عبدالله بن رئاب (له بني عبيد بن غنم قبيلې څخه)

د مدينې د خلکو يوه نيکبختي دا هم وه چې هغوی به د خپلو حليفانو يعنی د مدينې له يهودانو نه دا اوريدل چې ويل به يې پدې زمانه کې يو نبي مبعوث کيدونکی دی، ډير ژر به را ښکاره شي، مونږ به يې متابعت او پيروي وکړو او د هغه په ملګرتيا به تاسې لکه د عاد او ارم په شان ووژنو.[1]

کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) هغوی ته ور ورسيد پوښتنه يې ورنه وکړه چې تاسې څوک ياست؟ هغوی ورته وويل: مونږ د خزرج قبيلې غړي يوو. رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ورته وفرمايل: د يهودانو حليفان؟ دوی وويل: هو. رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ورته وفرمايل: نو تاسې کينئ چې څه خبرې درسره وکړم! هغوی کيناستل، رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) د اسلام حقيقت ورته بيان کړ، د الله تعالی لور ته يې راوبلل، او قرآنکريم يې ورته تلاوت کړ، هغوی پخپل مينځ کې سره وويل: داسې ښکاري چې دا همغه نبي(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) وي کوم چې يهودان يې يادونه کوي او په همدې سره تاسې ويروي او اخطارونه درکوي، نو په کار ده چې يهود درنه مخکې نه شي. پدې پسې هغوی د رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) دعوت ومانه او په اسلام مشرف شول.

دا د يثرب پوه او زيرک خلک وو، هغوی خپل مينځي جګړو چې اورونه يې لا بل وو ډير ستړي کړي وو، نو له همدې امله دا هيله ورسره پيدا شوه چې کيدای شي د رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) دا دعوت جګړې او جنګونه پای ته ورسوي.

رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ته يې داسې وويل: مونږ خپل قوم پداسې حال کې پريښی دی چې بل څوک به د دوی په شان په عداوت او بدبختۍ نه وي

---

[1]. زاد المعاد ۲/ ۵۰. ابن هشام ۱/ ۴۲۹ - ۵۴۱

اخته، هيله ده چې الله تعالى هغوی ستا په برکت سره يو کړي، مونږ ورځو او خلک ستا دعوت ته رابولو، او دا دين چې مونږ ومانه هغوی ته يې هم ور وړاندې کوو، که الله تعالى ستا په واسطه هغوی سره متحد کړل، نو بيا ستا په شان عزيز او معزز کس نشته. او کله چې دا خلک مديني ته ستانه شول، له ځان سره يې د اسلام پيغام هم يوور، او د همدوی په واسطه د مديني په هر کور کې د رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) يادونه پيل شوه.[۱]

## له حضرت عائشې (رضي الله عنها) سره د رسول الله(ﷺ) نکاح

په همدې کال يعنی د نبوت د يوولسم کال په شوال مياشت کې رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) له حضرت عائشې (رضي الله عنها) سره نکاح وکړه. دغه وخت د عائشې (رضي الله عنها) عمر شپږ کاله وُ، او واده يې په مدينه کې د هجرت په لومړي کال د شوال په مياشت کې تر سره شو چې هغه وخت عائشه (رضي الله عنها) نهه (۹) کلنه وه.[۲]

[۱]. ابن هشام ۱/ ۴۲۸ – ۴۲۹ - ۴۳۰

[۲]. تلقيح فهوم اهل الاثر ص ۱۰، صحيح البخاري ۱/ ۵۵۱

# اسراء او معراج

پداسي حال کې چې د رسول اکرم(صلى الله عليـه و الـه وصـحبه وسلم) دعـوت او تبليغ د ظلم او ستم په مينځ کې د بري لار وهله، او د فتحې د افق په ليرو څنډو کې د برلاسۍ او غلبې د ستورو تته شانته رڼا تر سترګو کيدله، په همدې وخت کې د اسـراء او معراج پيښه وشوه.

ددې پيښې د نيټې په هکله اهل سير (تاريخ پوهان) مختلف نظرونه لري:

١ـ ويل کيـږي پـه کـوم کـال چې رسول الله(صلى الله عليـه و الـه وصـحبه وسلم) پـه نبوت مشرف شو په هماغه کال د اسراء پيښه وشوه (دا د طبري قول دی).

٢ـ له بعثت نه پنځه کاله وروسته دا پيښه شوې ده (امام نووي او امام قرطبي دا قـول راجح بولي).

٣ـ د نبوت د لسم کال د رجب مياشتې په اوه ويشتمه د اسراء او معـراج واقعـه پيښـه شويده، (دا قول علامه منصور پوري غوره کړيدی).

۴ـ ويل کيږی چې دا پيښـه د بعثـت د دوولسـم کـال د رمضـان پـه مياشت يعنـی لـه هجرت نه شپاړس مياشتې مخکې واقع شويده.

۵ـ ويل شوي چې دا پيښه له هجرت نـه يـو کـال او دوې مياشـتې مخکې يعنـی د نبوت د ديارلسم کال د محرم په مياشت کې واقع شوې ده.

۶ـ يو روايت دا هم دی چې دا پيښـه لـه هجرت نـه يـو کـال مخکې يعنـی د نـبوت د ديارلسم کال د ربيع الاول په مياشت کې واقع شوې ده.

لدې اقوالو نه درې لومړني قولونه ځکـه سـيي نـه شـميرل کيـږي چې خديجـه (رضـي الله عنها) د نبوت د لسم کال د رمضان په مياشت کې وفات شويده، او دا څو ثابتـه ده چې نوموړې د پنځ ګونو لمونځونو له فرضيت نه مخکې وفـات شـوې، او دا هـم ثابتـه ده چې د پنځګونو لمونځونو ادا کول د اسراء په شپه فرض شويدي[1].

خو د دريو وروستيو روايتونو په هکله هم ما داسې څه ونـه مونـدل چې لـه هغـو نـه

Comment: )

---

[1]. دديګ اقوالو په هکله دا کتابونه وکګوره. زاد المعاد ۴۹/۲. مختصر سيرةالرسول للشيخ عبدالله النجدي ص ۱۴۸ - ۱۴۹ رحمة للعالمين ۷۲/۱، تاريخ الاسلام للنجيب آبادي ۱۲۴/۱

کوم یو ورباندې غوره او راجح وبولم، یوازې دومره ویلی شم چې د اسراء سورت له سیاق نه دا څرګندیږي چې اسراء او معراج ډیر وروسته واقع شویدی.
حدیث پوهانو ددې پیښې ټول تفصیلات رانقل کړیدي، مونږ ورنه په لاندې توګه لنډه غوندې یادونه کوو:
ابن القیم وایي: د صحیح روایت مطابق رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) جسماً پداسې حال کې چې په براق سپور او جبریل (علیه السلام) ورسره ملګری ؤ له مسجد الحرام نه بیت المقدس ته بوتلی شو، هلته کوز شو، براق یې د جومات د دروازې له یوې کړۍ سره وتاړه او نبیانو (علیهم السلام) ته یې لمونځ ورکړ. بیا په همدې شپه کې له بیت المقدس نه د دنیا تر آسمان پورې پورته یوووړل شو، هلته جبریل (علیه السلام) د دروازې خلاصولو (ننوتلو) اجازه ورته وغوښتله، دروازه ورته بیرته شوه او هملته یې آدم (علیه السلام) ولید سلام یې ورباندې واچاوه، هغه هم د سلام ځواب ورکړ او ښه راغلاست یې ورته ووایه او د رسول الله (صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) په نبوت یې اقرار وکړ. او هملته الله تعالی خپل رسول(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ته د هغه (آدم "علیه السلام") ښی خوا نه د شهیدانو او په کیڼې خوا ته یې د بدبختانو ارواوې ورښودلې.
ورپسې دوهم آسمان ته وخیژول شو، د ننوتلو اجازه ورته واخیستله شوه، رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) هلته یحیی بن زکریا او عیسی بن مریم (علیهم السلام) وکتل، سلام یې ورکړ هغوی دواړو د سلام ځواب او ښه راغلاست ورته وویل او دده په نبوت یې اقرار وکړ.
بیا دریم آسمان ته هسک کړی شو، هلته یې له یوسف (علیه السلام) سره ملاقات وشو سلام یې ورکړ، هغه د سلام ځواب او ښه راغلاست ورته وویل او دده په نبوت یې اقرار وکړ.
پدې پسې څلورم آسمان ته بوتلل شو، هلته له ادریس (علیه السلام) سره مخامخ شو، سلام یې ورباندې واچاوه، هغه د سلام ځواب ورکړ، مرحبا یې ورته وویل او دده په نبوت یې اقرار وکړ.
بیا پنځم آسمان ته وخیژول شو، هلته یې هارون بن عمران (علیه السلام) ولید، سلام یې ورکړ، هغه د سلام ځواب او ښه راغلاست ورته وویل او دده په نبوت یې اقرار وکړ.
بیا شپږم آسمان ته وخیژل شو، هلته یې له موسی بن عمران (علیه السلام) سره ملاقات وشو، سلام یې ورکړ، د هغه د سلام ځواب او هرکلی ورته ووایه او دده په

نبوت يې اقرار وکړ، خو کله چې محمد (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) مخ په وړاندې روان شو، موسی (عليه السلام) وژړل، پوښتنه ورنه وشوه چې ولې ژاړې؟ ده په ځواب کې ورته وويل: لدې امله ژاړم چې له ما نه وروسته يو داسې ځوان په نبوت مشرف شويدی چې زما د امتيانو په نسبت به دده د امت زيات شمير خلک جنت ته داخليږي.

وروسته محمد (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) اووم آسمان ته هسک کړی شو، هلته يې له ابراهيم (عليه السلام) سره ملاقات وشو، سلام يې ورباندې واچاوه، هغه د سلام ځواب او ښه راغلاست ورته ووايه او دده په نبوت يې اقرار وکړ.

بيا سدره المنتهی ته وخيژول شو، وروسته محمد (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ته بيت المعمور وښودل شوه، بيا د جبار خدای (جل جلاله) حضور ته يووړل شو، او رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) خپل رب (جل جلاله) ته دومره ورلنډ شو چې د دوو ليندېو د لرګي په اندازه او يا له دې نه هم کمه فاصله پاتې وه. همدلته الله تعالی خپل رسول(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ته هغه څه وحي کړل چې وحي يې کړل، او پنځوس لمونځونه يې ورباندې فرض کړل. بيا رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) بيرته راستون شو تر څو موسی (عليه السلام) ته ورسيد، هغه وپوښته چې الله تعالی په څه مامور کړې؟ محمد (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) په ځواب کې ورته وويل: الله تعالی د پنځوسو لمونځونو امر راته وکړ. موسی (عليه السلام) ورته وويل: ستا امت د پنځوسو لمونځونو توان نلري، بيرته خپل رب ته ورشه او د خپل امت لپاره د تخفيف سوال ورنه وکړه.

رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) جبريل (عليه السلام) ته پداسې انداز کې وکتل لکه چې مشوره ورنه غواړي. هغه ورته وويل: سيې ده که ستا خوښه وي، نو همدا وه چې جبريل (عليه السلام) بيا رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) د الله تعالی حضور ته حاضر کړ، او هغه پخپل ځای وۓ په ځينو طريقو (رواياتو) کې او دا د بخاري شريف لفظ دی- الله تعالی لس لمونځونه ورنه کم کړل، بيا محمد (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) راکوز شو او موسی (عليه السلام) ته يې لدې نه خبر ورکړ. موسی (عليه السلام) ورته وويل:بيرته د خپل رب حضور ته ورشه او د نور تخفيف سوال ورنه وکړه. پدې ډول سره رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) د الله تعالی او موسی (عليه السلام) تر مينځ تر هغې پورې تله، راتله تر څو الله تعالی يوازې پنځه لمونځونه فرض پرېښودل. بيا هم موسی (عليه السلام) ورته وويل: بيرته خپل رب ته ورشه او د نور تخفيف (آسانۍ) سوال ورنه وکړه، خو محمد (صلی الله

عليه و اله وصحبه وسلم) ورتـه وويـل: **[قد اســتحييت مــن ربي، ولكــني أرضــى وأسلم]** نور له الله تعالی نه شرم او حيا راځي، زه ورنه راضي او ورته تسليم يم. او كله چې رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) لږ ليرې لاړ، نو آواز وشو چې ما خپله فريضه نافذه كړه او پخپلو بندګانو مې تخفيف او آساني وكړه.[١]

پدې پسې ابن القيم ددې خبرې په هكله اختلاف ذكر كړی چې آيا رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) الله تعالی ليدلی او كه نه؟ بيا يې د ابن تيميه تحقيق رانقل كړی چې د هغه لنډيز داسې دی: په سترګو سره د الله تعالی ليدل ثابت ندي شوي او نه هم كوم صحابي (رضي الله عنه) پدې قول قايل دی، او دا چې له ابن عباس (رضي الله عنهما) نه په يوه روايت مطلق ليدل او په بل روايت د زړه ليدل را نقل شويدي، نو دا لومړنی روايت (مطلق ليدل) د دوهم روايت ( زړه ليدلو) منافي ندي.

ابن قيم بيا وايي: ((د الله تعالی دا قول چې فرمايي: (( **ثُمَّ دَنَا فَتَدَلَّى** )) (الـنجم: ٨) [بيا نژدې شو (جبريل، محمد ته) پس ښه نژدې شو] د اسراء په كيسه كې ذكر شوی نژديوالی پدې آيت شريف كې له ذكر شوي نژديوالي سره توپير لري، ځكه د نجم سورت پدې پورته ذكر شوي آيت كې نژديوالی د جبريل (عليه السلام) له نژديوالي او تدلي څخه عبارت دی، لكه څرنګه چې حضرت عائشې او حضرت ابن مسعود (رضي الله عنهما) فرمايلي او همدا راز د جملې سياق هم په همدې دلالت كوی، او هلته د اسراء په حديث كې نقل شوی نژديوالی په صريحه د الله تعالی له نژديوالي او تدلي څخه عبارت دی، پدې هكله هيڅ اشكال نشته او د نجم په سورت كې دې ته اشاره نده شوې بلكه هلته داسې ويل شوي چې رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) هغه د دوهم ځل لپاره له سدره المنتهی سره وليد او دا جبريل (عليه السلام) وُ چې رسول الله (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) دوه ځله پخپل اصلي شكل كې ليدلی، يو ځل يې په ځمكه كې ليدلی او بل ځل يې هلته له سدره المنتهی سره ليدلی دی.[٢] (الله تعالی له هر چانه ښه پوهيږي).

په همدې ځل د رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) د مباركې سينې د

---

[1]. زاد المعاد ٢/٤٧ - ٤٨

[2]. زاد المعاد ٢/٤٧ –٤٨ صحيح البخاري: ١/٥٠، ٤٥٥، ٤٥٦، ٤٧٠، ٤٧١، ٤٨١، ٥٤٨، ٥٤٩، ٥٥٠، ٢/ ٦٨٤. صحيح مسلم: ١/ ٩١، ٩٢، ٩٣، ٩٤، ٩٥، ٩٦.

ځیرولو پیښنه هم شوې ده، او په همدې سفر کې رسول الله(صلی الله علیه واله وصحبه وسلم) ډیر شیان لیدلي دي.
رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ته شیدې او شراب وړاندې شول هغه جناب(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) شیدې غوره کړې، نو ورته وویل شول: د فطرت لاره درته ښودل شویده، یا دا چې فطرت دې غوره کړ، او په یاد ولره که چیرې دې شراب غوره کړي وای، نو امت به دې بې لارې شوی وای.
رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) په جنت کې څلور رودونه ولیدل چې دوه یې ظاهري او دوه نور یې باطني وو، ظاهري یې د نیل او فرات رودونه وُو او ددې معنی دا ده چې د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) رسالت به د نیل او فرات په حاصلخیزه ځمکو کې خوریږي، او د هغه ځای خلک به پشت په پشت د اسلام پیروان وي، او ددې معنی دا نده چې ګویا ددې دواړو رودونو اوبه له جنت نه راوزي.
رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) مالک د دوزخ خازن هم ولید، هغه نه خندل او نه یې په مخ کې د خوشالۍ او خوښۍ څه نښې نښانې ښکاریدې. همدا راز د الله تعالی رسول(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) جنت او دوزخ هم ولیدل. رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) هغه کسان هم ولیدل چې په ظلم او ناحقه د یتیمانو مالونه خوري، هغوی د اوښانو په شان شونډې لرلې، د تیږو په شان د اور سکروټې به یې په خوله کولې چې بیرته به یې د مقعد له لارې وتلې.
سود خواره یې هم ولیدل چې دومره لویې، لویې خیټې یې وې چې له ځایه به نه شوای خوځیدای او کله به چې آل فرعون (د فرعون لښکرې یا پیروان) د دوزخ په لور بیول کیدل، نو پدې سود خورو به د پاسه تیریدل او تر پښو لاندې کول به یې.
رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) هلته زنا کاران هم ولیدل چې مخې ته یې ښه پاکه، تازه او چاغه غوښه ایښې وه او خوا ته یې نوره خوسا، وچه او بد بویه غوښه وه، هغوی به دا پاکه او تازه غوښه پریښوله او هغه مرداره او خوسا غوښه به یې خوړله.
هلته رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) هغه ښځې هم ولیدلې چې په خپلو میړونو پسې د بل چا اولاد تړي (پدې معنی چې له بل چا سره زنا کوي او له زنا نه حمل اخلي، او بیا په بې خبرۍ کې دا اولاد د هغې د میړه شمیرل کیږي) رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) دا ډول ښځې ولیدلې چې د آسمان او ځمکې تر مینځ په تیو (سینو) راځړوندې شوې وې.

همدا راز رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) په تګ راتګ کې د لارې په سر د مکې د خلکو یوه قافله هم ولیدله، او هغوی ته یې هغه اوښ هم وروښود کوم چې ورنه تښتیدلی او ورک شوی ؤ. رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ددې کاروان له یوه سر پټې لوښې نه اوبه هم وڅښلې، د کاروان خلک ټول ویده وو، او د هغه لوښې سر یې همداسې پټ پریښود، او همدغه خبره د اسراء د شپې په سهار د رسول الله (ص)، د صدق او رېښتینولی یو د لیل هم شو.[1]

ابن قیم وایي: کله چې سهار شو، نو رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) خپل قوم ته د هغه لویو، لویو نښو نښانو خبر ورکړ کومې چې الله تعالی ده ته ورښوولې وې. قوم یې دا خبرې ونه منلې، د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) تکذیب یې وکړ، او دده په خلاف یې ظلمونه او جبرونه لا پسې زیات کړل، او له رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) نه یې وغوښتل چې دوی ته د بیت المقدس کیفیت بیان کړي، نو پدې وخت کې الله تعالی خپل رسول(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ته بیت المقدس را ښکاره کړ، د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) سترګو ته ودرید ورته کتل یې او خپل قوم ته یې د هغه نښې او نښانې ویلې، هغوی ونه شوای کولای چې دده مبارک کومه خبره رد کړي. همدا راز رسول اکرم(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) قریشو ته د دوی د هغه کاروان خبره هم وکړه کوم چې ده معراج ته د تګ او راتګ په وخت کې لیدلی ؤ، او دوی ته یې د نوموړي کاروان د راتګ نیټه هم وښودله، او د هغه اوښ نښې یې هم ورته وویلې کوم چې د کاروان په سرکې روان ؤ. وروسته څرګنده شوه چې حقیقت همداسې ؤ لکه څرنګه چې رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) بیان کړی ؤ، خو لدې ټولو سره سره هغوی حق و نه مانه بلکه لا پسې بې لارې شول او د خپل کفر او انکار له امله یې هیڅ ډول حقیقت ته غاړه نه ایښوده.[2]

ویل کیږي چې ابوبکر (رضي الله عنه) ته په همدې وخت کې د صدیق لقب ورکړ شو، ځکه نوموړي پداسې وخت کې ددې پیښې (اسراء او معراج) تصدیق وکړ چې نورو خلکو یې تکذیب کاوه.[1]

د اسراء او معراج د سفر د ګټو او علتونو د بیانولو په هکله تر ټولو نه لویه او تر ټولو

---

[1] مخکې یاد شوي مصادر. ابن هشام ۱/ ۳۹۷، ۴۰۲ _ تر _ ۴۰۲

[2] زاد المعاد ۴۸/۱. صحیح البخاري ۲/ ۲۸۴. صحیح مسلم ۹۲/۱. ابن هشام ۴۰۲/۱. ۴۰۳

[1] ابن هشام ۳۹۹/۱

نه لنډه خبره د الله تعالی دا قول دی چې فرمايي: ((لِنُرِيَهُ مِنْ آيَاتِنَا)) (الاسراء : ۱) [چې (هلته وښيو مونږ دغه (محمد) ته ځینې له دلايلو (د قدرت) خپل.] د انبياؤ (عليهم السلام) په هکله د الله تعالی سنت همدادی، فرمايي: ((وَكَذَلِكَ نُرِي إِبْرَاهِيمَ مَلَكُوتَ السَّمَوَاتِ وَالأَرْضِ وَلِيَكُونَ مِنْ الْمُوقِنِينَ)) (الانعام: ۷۵) [او (لکه مو وښوده ابراهيم ته دده د قوم د گمراهۍ قبحه) هم دا رنگه ښيو مونږ ابراهيم ته عجائبات د آسمانونو او د ځمکې (دپاره ددې چې دلیل ونيسي په وحدانيت زما) او له پاره ددې چې شي له يقين کوونکو (عياناً هم لکه چې ؤ بياناً).]

بل ځای حضرت موسی (عليه السلام) ته خطاب کوي او فرمايي: ((لِنُرِيَكَ مِنْ آيَاتِنَا الْكُبْرَى)) (طه: ۲۳). [دپاره ددې چې وښيو تاته ځینې له هغو معجزاتو چې ډيرې لــوي دي.

الله تعالی ددې نبنو نبنانو د ښوولو هدف او مقصد ته اشاره کوي فرمايي: ((وَلِيَكُونَ مِنْ الْمُوقِنِينَ)) [ تر څو له يقين کوونکو څخه شي.] او کله چې د انبياء (عليهم السلام) علومو ته د داسې مشاهداتو ليدنه او کتنه هم ورزياته شي، نو ورته د عين اليقين هغه درجه حاصليږي چې اندازه کول يې ممکن ندي، په فارسی کې يو متل دی وايي ((شنيدن کی بود مانند ديدن)). او همدا وجه ده چې انبياوو (عليهم السلام) د الله تعالی په لار کې داسې مشکلات او کړاوونه گاللي چې د بل چا له وسه نه وو پوره، او د همدې عين اليقين په برکت د دنيا ټولو قوتونو د دوی په وړاندې د ماشې د يوه وزرقدرې ارزښت هم نه درلود، او له همدې امله وه چې هغوی د هيڅ کړاو او عذاب پروا نه ساتله.

دا چې د معراج ددې عظيم سفر تر شا نور کوم حکمتونه او اسرار پراته دي د هغې د بيانولو اصلي ځای د شريعت د اسرارو کتابونه دي، خو څه داسې حقايق هم شته چې له دې مبارک سفر نه سرچينه اخلي او د نبوي سيرت د گلشن په لور امتداد مومي، نو دې ډول حقايقو ته داسې اشاره کوو:

گورو چې الله تعالی د اسراء سورت يوازې په يوه آيت کې د اسراء کيسه ياد کړيده او بيا يې د يهودانو جرائم بيان کړي او د هغوی له جناياتو يې پرده اوچته کړيده، وروسته يې هغوی ديته متوجه کړيدي چې دا قرآن تر ټولو نه نيغې او سمې لارې ته هدايت او لارښوونه کوي. کيدای شي چې د قرآنکريم تلاوت کوونکي ددې آيتونو په تلاوت سره داسې وانگيري چې د دواړو خبرو او مسئلو تر مينځ څه ارتباط او

تړاو نشته، خو حقیقت داسې ندی، بلکه الله تعالی پدې اسلوب سره دې ته اشاره کوي چې دا سفر (اسراء) د بیت المقدس په خوا او له همغه ځای نه ترسره شویدی، او دا هم ځکه چې یهودان به نور د انساني امت له قیادت او مشرتابه نه لیرې کیږي، ځکه دوی داسې جرائم او جنایتونه کړیدي چې نور ددې وړ ندي چې د بشریت رهبري وکړي شي، نو الله تعالی اوس دا منصب خپل رسول(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ته سپاري، او د ابراهیمي دعوت دواړه مرکزونه (مکه – بیت المقدس) دده تر امر لاندې راولي، اوس هغه وخت رارسیدلی دی چې معنوي مشرتابه او قیادت له یوه امت نه بل امت ته وسپارل شي. په بل عبارت اوس ددې وخت دی چې دا معنوي قیادت له هغه امت نه واخستل شي کوم چې تاریخ یې ټول له غدر، خیانت، ظلم او بدکاریو نه ډک دی، او داسې یوه امت ته وسپارل شي چې نیکي او صلاح یې شعار، او رسول(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) یې له ټولو نه نیغې لارې ته د لارښوونکي قرآن په وحي مشرف دی.

خو خبره دا ده چې دا قیادت به څه ډول انتقال مومي، پداسې حال کې چې ددې امت رسول(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د خلکو د ظلم له لاسه د مکې په غرونو کې لالهانده ګرزي؟ دا سوال له یوه بل حقیقت نه پرده اوچتوي او هغه دادی چې د اسلامي دعوت دا پړاو نور سرته رسیدلی، اوس به بل نوی پړاو پیلیږي او له همدې امله ده چې قرآنکریم په صریحه او شدیده لهجه مشرکین تهدیدوي لکه چې فرمایي:

((وَإِذَا أَرَدْنَا أَنْ نُهْلِكَ قَرْيَةً أَمَرْنَا مُتْرَفِيهَا فَفَسَقُوا فِيهَا فَحَقَّ عَلَيْهَا الْقَوْلُ فَدَمَّرْنَاهَا تَدْمِيراً )) ( الاسراء: ۱۷) [او کله چې اراده وفرمایو مونږ ددې چې هلاک کړو کوم کلی (ښار) نو امر وکړو مونږ غټانو (او متمولانو) د هغه (ښار) ته (په طاعت د الله سره) نو فسق وکړي دوی په هغه کې نو حق (او ثابت) شي پر (ذمه د اوسیدونکو) هغه خبره (د عذاب) نو هلاکوو مونږ دوی په هلاکولو سختو سره له ګډولو کلیو او ښارونو د دوی).]

((وَكَمْ أَهْلَكْنَا مِنْ الْقُرُونِ مِنْ بَعْدِ نُوحٍ وَكَفَى بِرَبِّكَ بِذُنُوبِ عِبَادِهِ خَبِيراً بَصِيراً)) (الاسراء: ۱۷)

[او ډیر هلاک کړیدي مونږ له (اهل د) قرنونو پس له نوح (لکه عادیان او ثمودیان) او کافي دی رب ستا په ګناهونو د بندګانو خپلو ښه خبردار ښه لیدونکی(عالم په پټو او

ښکاره وي.]
او ددې وعید لرونکو آیتونو تر څنګ داسې آیتونه هم راغلي چې مسلمانانو ته د هغه تمدن اصول او قواعد ور په ګوته کوي په کوم سره چې د دوی اسلامي ټولنه ودانیږي، داسې ښیي لکه چې دوی په کوم ځای کې میشته شوي، ټول کارونه د دوی په لاس کې دي او یو له بل سره د یووالي پداسې مزي تړل شویدي چې ټولنه د همغې په محور را څرخي، نو پدې آیتونو کې دې ته اشاره ده او یا دا په ګوته کوي چې رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) به ډیر ژر داسې یوه پناه ګاه او مېنــه ومومي چې هلته به یې دین استقرار پیدا کړي، او همدا نوی مېنــه به یې په ټوله دنیا کې د دعوت د خوریدو مرکز وي. دا و د اسراء او معراج د مبارک سفر له پټو حکمتونو او اسرارو نه هغه حکمت او راز چې زمونږ له بحث او موضوع سره یې پیوند درلود او له همدې کبله مو دلته ورنه یادونه وکړه.
پدې ترتیب سره دې حکمت او دې ته ورته نورو حکمتونو ته له نظر کولو وروسته ویلی شو چې اسراء او معراج یا له بیعت عقبه اولی نه مخکې او یا د دواړو بیعتونو تر مینځ واقع شویدی. (والله اعلم)

# د عَقَبه لومړنی بیعت

مخکې مو وویل چې د نبوت د یوولسم کال د حج په موسم کې د یثرب له خلکو نه شپږو کسانو ایمان راوړ، او له رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) سره یې ژمنه وکړه چې د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) رسالت به خپل قوم ته رسوي. ددې نتیجه دا شوه چې په راتلونکې کال یعنی د نبوت د دوولسم کال د حج په موسم کې چې د ۶۲۱م کال د جولای له میاشتې سره سمون خوري دوولس کسان د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) حضور ته راغلل، له دې جملې نه پنځه کسان هماغه وو کوم چې تیر کال حاضر شوي وو، او جابر بن عبدالله بن رئاب د هغوی شپږم وُ چې پدې کال نه وُ راغلی، او ددې دوولسو کسانو د پاتې اوو کسانو نومونه دا دي:

۱. معاذ بن الحارث بن عفراء له بني النجار کورنۍ نه (خزرج)
۲. ذکوان بن عبدالقیس له بني زریق کورنۍ نه (خزرج)
۳. عباده بن الصامت له بني غنم کورنۍ نه (خزرج)
۴. یزید بن ثعلبه د بني غنم له ملګرو (حلیفانو) نه (خزرج)
۵. عباس بن عباده بن نضله له بني سالم کورنۍ نه (خزرج)
۶. ابو الهیثم بن التیهان له بني عبدالاشهل کورنۍ نه (اوس)
۷. عویم بن ساعده له بني عمرو بن عوف کورنۍ نه (اوس)

لدې کسانو نه یوازې دوه وروستي له اوس قبیلې څخه وو، نور ټول د خزرج قبیلې غړي وو.[1]

دې کسانو په منی کې له عقبې سره خوا کې له رسول اکرم(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) سره ملاقات وکړ، او له رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) سره یې د داسې خبرو بیعت وکړ، چې بیا وروسته یعنی د مکې د فتحې په وخت کې له ښځو نه د همغه خبرو بیعت واخیستل شو، او دې بیعت ته بیعه النساء (د ښځو بیعت) ځکه وایي چې د بیعت بندونه (مادې) لکه د ښځو د بیعت د بندونو او مادو په شان وې.

[1]. رحمة للعالمین ۸۵/۱. ابن هشام ۱/ ۴۳۱_ ۴۳۲_۴۳۳.

امام بخاري له عباده بن صامت نه روايت کوی وايي: رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) وفرمايل: **[تعالوا بايعوني على ألا تشركوا بالله شيئًا، ولا تسرقوا، ولا تزنوا، ولا تقتلوا أولادكم، ولا تأتوا ببهتان تفترونه بين أيديكم وأرجلكم، ولا تعصوني في معروف، فمن وفي منكم فأجره على الله ، ومن أصاب من ذلك شيئًا فعوقب به في الدنيا، فهو له كفارة، ومن أصاب من ذلك شيئًا فستره الله ، فأمره إلى الله ؛ إن شاء عاقبه، وإن شاء عفا عنه]. قال: فبايعته ــ وفي نسخة: فبايعناه ــ على ذلك.**

[راشئ له ماسره پدې بيعت وکړئ چې : له الله تعالی سره به هيڅ شريک نه نيسئ، غلا به نه کوئ، زنا به نه کوئ، خپل اولادونه به نه وژنئ، بهتان به نه کوئ، په ښو کارونو کې به زما نافرماني نه کوئ، چا چې پدې خبرو پوره عمل وکړ نو اجر يې په خدای دی، او که څوک لدې امورو نه د کوم يوه مرتکب شو يعنی پدې هکله يې په کوم څه کې زما له امر نه سرغړونه وکړه او بيا يې په دنيا کې د همغه عمل جزا وليده، نو همدا دده لپاره کفاره ده، او که چا پدې امورو کې کوم يو تر سره کړ يعنی له دې کارونونه د يوه کار مرتکب شو، بيا الله تعالی د هغه پرده وکړه، نو دده معامله له الله تعالی سره ده که د جزا اراده يې وکړه نو جزا به ورکړي، او که يې د عفوې اراده وکړه، نو عفوه به ورته وکړي. عباده بن صامت وايي نو پدې شيانو مې بيعت ورسره وکړ، او په بل نسخه کې د جمعې په صيغه راغلي يعنې: نو په همدې شيانو مو بيعت ورسره وکړ.[1]]

## د اسلام سفير په مدينه کې

کله چې بيعت سرته ورسيد او د حج موسم هم تير شو، نو رسول اکرم(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) له هغو خلکو سره مدينې ته خپل لومړنی سفير واستاوه، تر څو مسلمانانوته د اسلام احکام او هدايات ور زده کړي او د مشرکينو په مينځ کې د اسلام تبليغ وکړي. رسول اکرم(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ددې دندې لپاره د سابقين اولين له جملې نه يو ځوان انتخاب کړ چې نوم يې مصعب بن عمير عبدري (رضي الله عنه) و.

---

[1]. صحيح البخاري، باب علامة الايمان، حب الانصار ۱ /۷، باب و فود الانصار ۱/ ۵۵۰، ۵۵۱ دلته را نقل شوی لفظ له همدې باب نه دی). باب قوله تعالی: (اذا جاءك المؤمنات) ۷۲۷/۲ باب الحدود، كفارة ۱۰۰۳/۲

## لويه کاميابي

کله چې مصعب بن عمير يثرب ته ورسيد نو د اسعد بن زراره (رضي الله عنهما) په کورکې يې واړول، دوی دواړو په ډيره مينه او جوش او خروش سره د اسلام تبليغ کاوه، مصعب بن عمير (رضي الله عنه) د مقرئ په نامه مشهور شو.(مقرئ يعنی ويونکی هغه وخت به يې استاذ او معلم ته مقرئ ويل).

د دعوت او تبليغ په ډګر کې د مصعب (رضي الله عنه) له سترو کاميابيو څخه يوه دا ده چې يو ځل اسعد بن زراره (رضي الله عنه) هغه د بني عبدالاشهل او بني ظفر ځای ته ور ووست، هلته د بني ظفر د يوه باغ په د ننه کې له مرق نومي څاه سره کيناستل. څه شمير مسلمانان ورته راټول شول، هغه وخت د بني عبدالاشهل دواړه سرداران سعد بن معاذ او اسيد بن حضير مشرکان وو او لا تر اوسه په اسلام نه وو مشرف شوي. دوی دواړه چې کله لدينه خبر شول، نو سعد د بني عبدالاشهل بل سردار اسيد ته وويل: لاړ شه او دغه دواړه (مصعب او اسعد (رضي الله عنهما) ښه تهديد کړه او زمونږ ځای ته له راتلو نه يې منع کړه ځکه دوی دواړه راغلي تر څو زمونږ کمزوري کسان بې لارې او خراب کړي، او که چيرې اسعد بن زراره (رضي الله عنه) زما د خاله (ترور) زوی نه وای نو دا کار ما پخپله کاوه.

پدې سره اسيد خپله نيزه واخيسته او د دوی په لور ور روان شو، او کله چې د اسعد (رضي الله عنه) سترې ورباندې ولګيدلې نو مصعب (رضي الله عنه) ته يې وويل: دا دی د خپل قوم سردار را روان دی، دده په هکله له الله تعالی سره رېښتينولي غوره کړه. مصعب (رضي الله عنه) ورته وويل: که کيناست نو خبرې به ورسره وکړم. اسيد راغی، دوی ته ودريد او سختې سختې خبرې يې ورته وکړې ورته ويې ويل: تاسې د څه پخاطر دلته راغلي يئ؟ راغلي يئ تر څو زمونږ کمزوري کسان احمقان جوړ کړئ؟ که خپل ژوند درته ګران وي، نو له مونږ ته ليرې شئ! مصعب (رضي الله عنه) ورته وويل: بده به نه وي که لږ څه کينې او زما خبرې واورې، که دې کومه خبره خوښه شوه، نو قبوله به يې کړې او که دې خوښه نه شوه، نو مه يې منه. حضرت اسيد ورته وويل: د انصاف خبره دې وکړه، خپله نيزه يې ودروله او کيناست. مصعب (رضي الله عنه) د اسلام خبره ورته وکړه او قرآنکريم يې ورته ولوست، هغه وايي: قسم په خدای مخکې لدينه چې حضرت اسيد خبرې وکړي مونږ يې په مخ کې د اسلام رڼا وليدله، بيا يې وويل: دا څومره ښکلی او خوږ کلام دی؟ دا راته ووايئ چې که څوک پدې دين کې شامليدل وغواړي، نو څه به کوي؟

هغوی ورته وويل: لومړی غسل وکړه، پاکې جامې واغونده، بيا د حق او شهادت کلمه

ووايه، او دوه رکعته لمونځ ادا کړه. حضرت اسيد پاڅيد غسل يې وکړ، جامې يې پاکې کړې، د شهادت کلمه يې وويله او دوه رکعته لمونځ يې وکړ، پدې پسې يې دا خبره وکړه: ما پسې يو بل شخص هم دی، که چيرې هغه ستاسې متابعت غوره کړ، نو د هغه قوم به ټول په تاسې پسې روان شي او له دوی نه به هيڅوک هم ستاسې مخالفت ونکړي، زه اوس هغه تاسې ته رالیږم. سعد بن معاذ ته اشاره ده.

بيا حضرت اسيد (رضي الله عنه) خپله نيزه واخيستله او سعد بن معاذ ته ورغی، هغه له خپل قوم سره په ديره کې ناست ؤ، سعد چې کله هغه وليد نو وې ويل: قسم په خدای دا چې په کوم مخ تللی ؤ په هغه بيرته ندی راغلی. حضرت اسيد (رضي الله عنه) راورسيد، نو سعد بن معاذ وپوښته چې څه دې وکړل؟

ده ورته وويل: ما له هغو دواړو سره خبرې وکړې، خو قسم په خدای چې څه مشکل مې پکې ونه ليد، ما هغوی منع کړل، او دوی راته وويل څه چې ستا خوښه وي هغه به کوو. او بله دا چې زه خبر شوم بني حارثه راوتلي تر څو اسعد بن زراره ووژني، او دا پدې خاطر چې هغوی پدې خبر دي اسعد ستا د ترور زوی دی او غواړي پدې ډول له تا سره خپل ترون مات کړي. سعد بن معاذ چې دا خبرې واوريدلې، قهر او غوسې په سر واخيست فوراً راپاڅيد، خپله نيزه يې راواخيستله او د هغوی دواړو په خوا ورغی، خو کله يې چې هغوی ډاډه وليدل پوه شو چې پدې خبره سره اسيد غوښتل چې هغه (سعد) د دوی خبرې واوري، او کله چې ښه ورلنډ شو ورته ودريد او دوی دواړو ته يې ډيرې سپورې ستوغې وا ورولې بيايې اسعد بن زراره (رضي الله عنه) ته وويل: اې ابو امامه! قسم په الله که زما او ستا تر مينځ خپلوي نه وای، نو بيا به تا له مانه دا طمعه او اميد نه ؤ کړی، ته راځې او زمونږ په کلي او کور کې داسې کارونه کوې چې زمونږ نه خوښيږي؟

لدينه مخکې حضرت سعد، حضرت مصعب (رضي الله عنهما) ته ويلي ؤ: دا دی داسې سردار درته را روان دی چې تر شا يې ټول قوم ولاړ دی که چيرې ده ستا پيروي غوره کړه ټول قوم به يې ستا پيروان ګرزي. همدلته وه چې مصعب (رضي الله عنه) ورته وويل: مهرباني وکړه لږ کينه او زما څو خبرې واوره، که د کومه خبره خوښه شوه قبوله به يې کړې، او که د خوښه نه وه نو مه يې منه! سعد بن معاذ په ځواب کې ورته وويل: د انصاف خبره دې وکړه، بيا يې خپله نيزه ودروله او کيناست. حضرت مصعب (رضي الله عنه) اسلام ورته بيان کړ او د قرآنکريم تلاوت يې ورته وکړ. وايي: قسم په خدای مخکې لدينه چې څه ووايي مونږ يې په مخ کې د اسلام رڼا وليدله، بيا يې راته وويل: کله چې اسلام منئ نو څه کوئ؟ دوی دواړو ورته وويل: ته لومړی غسل وکړه، خپلې جامې پاکې کړه، بيا د حق او شهادت کلمه ووايه او ورپسې دوه رکعته

لمونځ ادا کړه. حضرت سعد بن معاذ (رضي الله عنه) هم پاڅيد او دا ټول کارونه يې تر سره کړل. بيا يې خپله نيزه واخيستله او د خپل قوم په لور ور روان شو، هغوی چې وليد يو بل ته يې وويل: قسم په خدای په کوم مخ چې تللی ؤ په هغه بيرته ندی راغلی، او چې مجلس ته را ورسيد نو ويې ويل: اې بني عبدالاشهل! ستاسې په مينځ کې زما مقام او معامله څنګه ده؟ دوی ورته وويل: ته زمونږ سردار يې، او له مونږ ټولو نه د پاخه نظر خاوند، او له مونږ ټولو نه برکتي او زمونږ نماينده او سرپرست يې. نو ده ورته وويل: ښه واورئ، ستاسې ټولو (نارينه او ښځو) سره تر هغې زما خبرې حرامې دي تر څو مو په الله تعالی او د هغه په رسول(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ايمان نه وي راوړی. د سعد بن معاذ (رضي الله عنه) ددې خبرې اثر دا ؤ چې تر ماښامه پورې دده ټول قوم نر او ښځې په اسلام مشرف شول، يوازې يوه کس چې (اصيرم) نوميده اسلام رانه ووړ هغه هم بيا وروسته د احد په جګړه کې مسلمان شو د الله په لار کې يې جګړه وکړه او پداسې حال کې په شهادت ورسيد چې الله تعالی ته يې يوه سجده هم نه وه کړې. رسول اکرم(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) دده په هکله فرمايلي: ((**عمل قليلا و اجر كثيرا**)) يعنی نوموړی عمل کم کړی، خو اجر يې زيات تر لاسه کړ.حضرت مصعب (رضي الله عنه) تر هغې پورې د اسعد بن زراره (رضي الله عنه) په کور کې ؤ او د اسلام تبليغ يې کاوه تر څو په انصارو کې داسې کورنۍ پاتې نه شوه چې څو کسان (نر او ښځې) نه وي پکې مسلمان شوي، يوازې د بني اميه بن زيد او خطمه او وايل کورنۍ داسې وې چې څوک نه وو ورنه مسلمان شوي، او دا هم ځکه چې مشهور شاعر قيس بن اسلت د دوی له ألی نه ؤ او دوی به دده خبره په کلکه سره منله، او همدې شاعر دوی د خندق تر غزا (پنځم هجري کال) پورې له اسلام نه بيل او ليرې ساتلي وو. حضرت مصعب بن عمير (رضي الله عنه) د بعثت د ديارلسم کال د د حج له موسم نه مخکې مکې مکرمې ته ستون شو او هلته يې خپل عظيم لاربنود حضرت محمد(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ته د فتحې زيري وارول، او هغه يې د يثرب د خلکو له حال احوال، د دوی له جنګي او دفاعي صلاحيتونو او نورو ښو ښو استعدادونو نه خبر کړ.[1]

---

[1]. ابن هشام ۴۳۵/۱، ۲۳۲، ۴۳۷، ۴۳۸، ۲ / ۹۰ زاد المعاد ۵۱/۲

# د عَقَبه دوهم بیعت

د نبوت د دیارلسم کال د حج په موسم یعنی د (۶۲۲م) کال د جون په میاشت کې د مدینې منورې له اوسیدونکو نه له اویاوو نه زیات مسلمانان د خپل قوم له مشرکانو سره یو ځای د حج ادا کولو پخاطر مکې ته ورسیدل. دا مسلمانان لا په مدینه او یا د مکې په لاره وو چې دا خبره یې سره یاده کړه ترکومه به رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د مکې په غرونو کې لا لهانده او له غمونو او مشکلاتو سره لاس او ګریوان پاتې وي؟

دوی مکې ته له رسیدو نه وروسته په پټه له رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) سره تماس ونیو او پدې سره سلا شول چې د ذي الحجې په دولسمه شپه به په منی او د جمره عقبه خوا کې سره غونډیږي.

اوس راځئ کعب بن مالک الانصاري (رضي الله عنه) ته غوږ شو چې ددې تاریخي غونډې په هکله کومې چې د کفر او اسلام د جګړې مخه یې بدله کړه څه وایي:

((حج ته لاړو، او له رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) سره مو د تشریق منځنې ورځ وعده وټاکله، بالاخره ټاکل شوې شپه را ورسیده، مونږ دا خبره د خپل قوم له مشرکینو نه پټه ساتله، خو یوازې له عبدالله بن عمرو بن حرام سره مو پدې هکله څه خبرې وکړې، نوموړی زمونږ له مشرانو او شریفو خلکو نه شمیرل کیده. مونږ ورته وویل: ابو جابره! ته زمونږ له مشرانو او شریفانو نه یې، مونږ نه غواړو چې د دوزخ په اور کې وسوځې، بیا مو اسلام ته راوباله، او له رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) سره له کړې وعدې نه مو خبر کړ، کعب وایي: نو هغه هم په اسلام مشرف شو او د عقبې په بیعت کې یې ګډون وکړ او د خپل قوم نقیب (استازی) وټاکل شو)).

کعب وایي: ((د نوموړې شپې په سر کې له خپل قوم سره یو ځای پخپله مېنه کې ویده شوو، خو د شپې د دریمې بـــرخې له تیریدو نه وروسته راپاڅیدو او په پټه سره د ټاکل شوي ځای په خوا وخوځیدو تر څو د عقبې خوا کې سره غونډ شوو. زمونږ شمیره دري اویا سړي او دوه ښځې چې یوه یې د بني مازن بن النجار نسیبه د کعب لور (ام عماره) او بله یې د بني سلمه قبیلې اسماء د عمرو لور (ام منیع) وه)).

همله تړول سره راټول شوو، او د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د راتلو انتظار مو يوست، تر څو تشريف يې راوړ، له ده سره يې تره عباس (رضي الله عنه) هم وۀ، نوموړی هغه وخت لا مسلمان شوی نه وۀ خو دا يې غوښتل چې د خپل وراره پدې معامله کې برخه ولري او ټينګ عهد ورته واخلي، او ددې غونډې لومړنی خبرې کوونکی هم عباس (رضي الله عنه) وۀ.[1]

## د خبرو پیل او د عباس (رضي الله عنه) له پلوه د مسئلې په اهمیت رڼا اچول

کله چې د مجلس غړي پوره شول، نو د ديني او عسکري تړون په اړوند خبرې پيل شوې، له ټولو نه مخکې عباس (رضي الله عنه) په پوره صراحت سره د مسئلې د ارزښت او د دوی د مسئوليت د دروندوالي په هکله خبرې وکړې او ويې ويل:

((اې خزرجيانو! -د هغه وخت عربو ټول انصارو يعنی اوس او خزرج دواړو ته خزرجيان ويل – تاسې زمونږ په مينځ کې د محمد(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) مقام او منزل وينئ، مونږ هغه د خپل قوم له مونږ سره په عقيده کې شريکوخلکو نه په امن ساتلی، هغه پخپل قوم کې د عزت خاوند دی، او دلته پخپل وطن کې زمونږ له ملاتړ او حمايې نه برخمن دی، خو هغه غواړي تاسې ته درشي، ستاسې لوري ته ميلان لري، نو اوس که چيرې تاسې له ده سره په کړې وعده وفا کوئ، او له مخالفينو نه يې ساتئ، نو سيي ده، تاسې پوه شئ او مسئوليت مو، خو که ستاسې خيال دا وي چې له دې ځای نه له وتو وروسته يې ملاتړ پريږدئ، نو سر له اوس نه يې پريږدئ، ځکه پخپل وطن کې د عزت خاوند او زمونږ له ملاتړ نه برخمن دی)).

کعب وايي: مونږ په ځواب کې ورته وويل: مونږ ستا خبرې واوريدې، نو اوس ته خبرې وکړه يا رسول الله (صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم)! او د خپل ځان او رب لپاره پخپله خوښه عهد او تړون واخله[2]. د انصارو له دې ځواب نه دا ښه په ډاګه کيږي چې هغوی د دې عظيم مسئوليت په ادا کولو کې څومره مخلص او ټينګ ولاړ وو، او پدې لاره کې يې د هر راز مشکلاتو زغمولو ته په پوره ايمانداری سره اوږه ورکوله. پدې پسې رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) خپلې خبرې وکړې، او بيعت

---

[1]. ابن هشام ۱/ ۴۴۰ - ۴۴۱

[2]. ابن هشام ۱/۴۴۱ - ۴۴۲

ورسره وشو.

## د بيعت بندونه

امام مالک پدې هکله د جابر روايت په مفصله توګه رانقل کړيدی. جابر وايي: مونږ رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) ته وويل: په څه شي بيعت درسره وکړو؟ ويې فرمايل: پدې بيعت راسره وکړئ چې: **[على السمع والطاعة في النشاط والكسل. وعلى النفقة في العسر واليسر. وعلى الأمر بالمعروف والنهي عن المنكر. وعلى أن تقوموا في الله ، لا تأخذكم في الله لومة لائم.وعلى أن تنصروني إذا قدمت إليكم، وتمنعوني مما تمنعون منه أنفسكم وأزواجكم وأبناءكم، ولكم الجنة]**.

١ـ په هر حالت، سستۍ او چالاکۍ (کمزورۍ او پياوړتيا) کې به زما خبرې اورئ او منئ به يې يعنې اطاعت به مې کوئ.

**٢**ـ په فقر اوشتمنۍ دواړو يا نيستۍ اوهستۍ کې به مال خرڅوئ او مصرفوئ.

**٣**ـ په نيکۍ به امر او له بدۍ نه به نهي کوئ.

**۴**ـ د خدای د دين په خاطر راپورته شئ، او پدې لاره کې د هيچا پروا ونه ساتئ.

**۵**ـ کله چې زه درغلم نو ملاتړ به مې کوئ، او د خپلو ځانونو، ښځو او اولادونو په شان به زما دفاع هم کوئ، او ددې ټولو په بدله کې زه د جنت وعده درکوم.(١)

د کعب په هغه روايت کې چې ابن اسحاق راوړی دی يوازې وروستی بند ذکر شويدی او هغه داسې دی چې: کعب وايي: نو بيا رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) خبرې وکړې، د قرآنکريم له تلاوت، د الله لور ته له بلنې او اسلام ته له ترغيب او هڅونې وروسته يې وفرمايل: **[أبايعكم على أن تمنعوني مما تمنعــون منــه نسائكم وأبناءكم]**.پدې بيعت درنه اخلم چې زما داسې دفاع او ملاتړ وکړئ لکه څرنګه چې دخپلو ښځو او اولادونو دفاع کوئ. نو براء بن معرور په خپل لاس دده مبارک لاس ونيو او وې‌ی ويل: قسم په هغه ذات چې ته يې په حقه نبي را استولی يې چې د خپلو اولادونو په شان به دفاع درنه کوو، له مونږ نه بيعت واخله اې د الله رسوله ! مونږ د جنګ بچيان يو، وسله زمونږ سينګار ده، دا مونږ ته له پلرونو نه په ميراث را پاتې ده.

---

(١). امام احمد دا په حسن اسناد را نقل کؤيدی، حاکم او ابن حبان دا روايت صحيح بللی دی، د عبدالله النجدي مختصر سيره الرسول نومی کتاب **١٠٥** مخ هم وکګوره، ابن اسحاق هم له عباده بن الصامت نه دې ته ورته روايت راوؤی خو په هغه کيګ دا ماده زياته ده چيګ وايي: د حکومت پخاطر به له حاکمانو سره مخالفت نه کوو. ابن هشام ١/ **۴۵۴**

راوي وايي: ابو الهيثم بن التيهان د براء خبرې ور پرې کړې او و يې ويل: اې رسول الله (ص)! زمونږ او يهودو تر منځ اوس ښې اړيکې دي، خو زمونږ هغه غوڅوو، هسې نه چې اوس مونږ دا اړيکې هم غوڅې کړو، بيا ته له فتحې او برې نه وروسته مونږ په ډاګ پريږدې او بيرته خپل قوم ته راشې؟ رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) تبسم وکړ او ويې فرمايل: **[بل الدَّمُ الدَّمُ، والهَدْمُ الْهَدْمُ، أنا منكم وأنتم منى، أحارب من حاربتم، وأسالم من سالمتم]**. نه، داسې نده ستاسې وينه زما وينه، او ستاسې تباهي زما تباهي ده، زه د ستاسې او تاسې زما يئ، له چا سره چې تاسې جګړه کوئ زه هم ورسره جنګيږم، او له چاسره چې سوله کوئ نو زه هم ورسره سوله کوم.(1)

## د بيعت په هکله نور ټينګار

وروسته له دې چې د بيعت د شرطونو په هکله خبرې وشوې او خلکو يې د تړون اراده وکړه. د لومړۍ ډلې مسلمانانو له جملې نه دوه هغه کسان چې د نبوت په (۱۱) او (۱۲) کال يې اسلام راوړی وُ يو په بل پسې پاڅيدل تر څو خپل قوم ددې بيعت له اهميت او خطر نه يو ځل بيا خبر کړي، چې هغوی له بيعت کولو نه مخکې ښه پوه شي، او په پټو سترګو او ناپوهۍ کې دا مسئوليت په غاړه وانخلي او تر څو دا معلومه کړي چې قوم يې پدې لاره کې څومره قربانۍ ورکولو ته تيار دی.

ابن اسحاق وايي: کله چې خلکو د بيعت کولو اراده وکړه عباس بن عباده بن نضله وويل: اې خلکو آيا تاسې پوهيږئ چې لدې سړي سره د څه بيعت کوئ؟ دوی وويل: هو. ده ورته وويل: تاسې ددې بيعت ورسره کوئ چې له ټولو خلکو سور پوټکو او تور پوټکو سره به جنګيږئ نو که ستاسې دا خيال وي چې د خپلو مالونو له مکملې تباهۍ او د مشرانو له وژلو نه وروسته د هغه ملاتړ پريږدئ، نو همدا اوس يې پريږدئ، ځکه هغه وخت دده له ملاتړ نه لاس اخيستل د دنيا او آخرت تباهي او رسوايي ده، او که دا اراده لرئ چې د مالونو له تباهۍ او سردارانو له مرګ سره سره به له ده سره پخپل تړون وفا کوئ، نو بيا يې له ځان سره واخلئ، ټينګ يې کړئ ځکه دا د دنيا او آخرت خير او ګټه ده.

---

(1). ابن هشام ۴۴۲/۱

دوی وویل: پدې لاره کې مونږ د مالونو د تباهۍ مشرانو او رهبرانو د مرګ ژوبلې خطر په ځان منو، یا رسول الله (ص)! دا راته ووایه که مونږ پدې وفا وکړو، نو ددې په بدله کې به زمونږ لپاره څه وي؟ ده وفرمایل: ددې په بدله کې د تاسې لپاره جنت دی. دوی وویل: لاس دې را اوږد کړه، ده(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) خپل مبارک لاس ور اوږد کړ او دوی بیعت ورسره وکړ.[۱]

او د جابر په روایت کې راځي (وېې ویل): پاڅیدو تر څو بیعت ورسره وکړو کله یې چې اسعد بن زراره لاس ونیو، نوموړی تر ټولو کشر و او وېې ویل: لږ تم شئ اې د یثرب خلکو، مونږ دده حضور ته د حاضرۍ پخاطر دا اوږد سفر لدې یقین او باور سره کړی چې بیشکه هغه د الله رسول دی، نن ورځ دده وتل له ټولو عربو سره د مقاطعې او دښمنۍ معنی لري، دا ستاسې د سردارانو د مرګ او تورو چلولو غوښتنه کوي که تاسې دې قربانۍ ته تیار وئ، نو درسره واېې خلئ، خدای به اجر درکوي، او که چیرې تاسې پخپلو ځانونو ویریږئ نو بیا یې پریږدئ او دا به د الله په وړاندې ستاسې څه نا څه مقبول عذر وي.[۲]

## د بیعت تړون

د بیعت په شرطونو او بندونو له مو افقې او له یاد شوي تاکید وروسته د بیعت سلسله په مصافحې (لاس ورکولو) سره پیل شوه. جابر د اسعد بن زراره د خبرو له روایت نه وروسته وایي: نو هغوی وویل: اې اسعده! لاس دې لیرې کړه، قسم په خدای چې مونږ دا بیعت حتماً کوو او بیا یې نه ماتوو[۳]. پدې سره اسعد پوه شو چې قوم یې پدې لاره کې څومره قربانۍ ورکولو ته تیاردی، دی له دې پلوه ډاډه او مطمئن شو، نوموړی د بیعت کوونکو دیني رئیس و ځکه د مصعب بن عمیر ملګری داعي و او له ټولو نه لومړی همده بیعت وکړ. ابن اسحاق وایي: بنو النجار دا ګومان کوي چې ابو امامه اسعد بن زراره لومړنی کس و چې له رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) سره یې د بیعت لاس ورکړ.[۴]

وروسته عام بیعت پیل شو، جابر وایي: مونږ یو یو ورپاڅیدو او بیعت به مو کاوه، په

---

(1). ابن هشام ۴۴۲/۱

(2). د امام احمد له خوا د جابر په روایت نقل شوی حدیث

(3). پخوانی مصدر

(4).ابن اسحاق وایي: بنو عبدالاشهل وایي: چیګ لومړنی بیعت کونکی ابو الهیثم بن التیهان دی او کعب بن مالك وایي: لومړنی کس چې بیعت یې وکړ براء بن معرور و' (ابن هشام ۱/ ۴۴۷) خو زه وایم: شاید دوی به د بیعت کوونکو او رسول الله (ص) تر مینځګ تیری شوی خبریګ بیعت ککنګي، خو سییګ دا ده چیګ لومړنی بیعت کوونکی اسعد بن زراره دی. و الله اعلم.

مقابل کې به يې د جنت وعده راکوله.[۱]
خو د هغو دوو ښځو چې هلته موجودې وې بيعت يوازې زباني وُ ځکه رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) له پردی ښځې سره کله هم لاس ندی ورکړی.[۲]

## د دوولسو مشرانو (استازيو) ټاکل

د بيعت له تکميل نه وروسته رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) د دوولسو کسانو د انتخاب غوښتنه وکړه، دا کسان به د خپل قوم مشري او د بيعت د بندونو د تطبيق او تنفيذ مسئوليت په غاړه لري. دوی ته يې وفرمايل: تاسې له خپل مينځ نه دوولس کسه وټاکئ چې دوی به د خپل قوم استازي او د هغوی له طرفه مسئول وي، نو فوراً دا دوولس کسه وټاکل شول، چې نه (۹) يې د خزرج او (۳) د اوس قبيلې څخه وو.

**د خزرج نقيبان (استازي):**

۱ـ اسعد بن زراره بن عدس.
۲ـ سعد بن الربيع بن عمرو.
۳ـ عبدالله بن رواحه بن ثعلبه.
۴ـ رافع بن مالک بن العجلان.
۵ـ البراء بن معرور بن صخر.
۶ـ عبدالله بن عمرو بن حرام.
۷ـ عباده بن الصامت بن قيس.
۸ـ سعد بن عباده بن دليم.
۹ـ المنذر بن عمرو بن خنيس.

**د اوس قبيلې نماينده ګان:**

۱ـ اسيد بن حضير بن سماک.
۲ـ سعد بن خيثمه بن الحارث.

---

[۱] مسند امام حمد.
[۲] صحيح مسلم باب کيفية بيعة النساء ۱۳۱/۲ مخ وګوره.

۳ـ رفاعه بن عبدالمندز بن زبير.[۳]

دا هم ويل کيږي چې دا وس دريم نماينده ابو الهيثم بن التيهان وُ. کله چې دا دوولس کسه وټاکل شول، نو رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) له دوی نه د رئيسانو او مسئولينو په حيثيت يو بل تړون هم واخيست، او داسې يې ورته وفرمايل: **[أنتم على قومكم بما فيهم كفلاء، ككفالـــة الحواريين لعيسى ابن مريم، وأنا كفيل على قومي]** تاسې د خپل قوم داسې استازي او کفيلان يئ لکه څرنګه چې حواريون د عيسی (عليه السلام) کفيلان وو، او زه د خپل امت يعنی مسلمانانو کفيل يم. دوی وويل: هو، سمې ده.[۱]

## شيطان د تړون راز افشا کوي

تړون او بيعت ترسره شو، خلک د خوريدو په حالت کې وو، په همدې وخت کې يوه شيطان د تړون او بيعت راز افشا کړ، خو څرنګه چې غونډه تقريباً پای ته رسيدلې وه او دا ممکنه نه وه چې د قريشو مشران په پټه سره خبر کړي تر څو بيعت ته حاضر شوي کسان په نابېره توګه راګير کړي، نو دا شيطان په يوه هسک ځای ودريد او په ډير لوړ آواز يې چيغه کړه، اې خلکو! اې ددې کورونو اوسيدونکو! محمد(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) او ورسره بې دينان – له خپل دين نه اوړيدلي – کسان وګورئ، چې ستاسې سره د جګړې پخاطر راټول شويدي.

رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) وفرمايل: **[هذا أزَبُّ العقبة، أما والله يا عدو الله لأتفرغن لك. ثم أمرهم أن ينفضوا إلى رحالهم]**. (دا ددې عقبې شيطان دی، اې د الله دښمنه! واوره، زه اوس درته وزګاريږم) بيا يې حاضرو کسانو ته امر وکړ چې خپلو مېنو ته لاړ شي.[۲]

## له قريشو سره د مقـابـلې لپاره د انصارو تياري

د شيطان ددې آواز په اوريدو سره عباس بن عباده بن نضله وويل: ((قسم په هغه ذات

---

[۳]. زبير په ب سره ، که څه هم ځينو په ن يعنی زنير ذکر کړيدی، او يو شمير مورخينو د رفاعه په ځای د ابوالهيثم بن تيهان نوم راوړی دی.

[۱]. زاد ابن هشام ۴۴۳/۱ –۴۴۴- ۴۴۲

[۲]زاد المعاد ۵۱/۲

چې تـه یې پـه حقـه رسـول رالیـږلی یې، کـه تـه وغـواړې نـو مونـږ بـه سـبا د منـی پـر اوسیدونکو د تورو حمله وکړو)).

رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ورتـه وفرمایـل: **[لم نؤمر بذلك، ولكـــن ارجعوا إلی رحالكم]** تر اوسه ددې اجازه نه ده راکړل شوې، خپلو مېنو تـه سـتانه شـئ. بیا دوی هم ستانه او هملته خپلو ځایونو کې ویده شول.[1]

## قریش د یثرب مشرانو ته خپل احتجاج رسوي

دې آواز د قریشو غم او غصه راوپاروله، ځکه دوی ښـه پوهیـدل چې پـردوی او د دوی پر مالونو به د داسې یوه بیعت اغیزه او اثر څه وي، نو کله چې سهار شـو د قریشـو له مشرانو نه یوه لویه ډله خلک د یثربیانو مېنې ته ورغلل تـر څـو هغـوی ددې بیعت پـه هکلـه لـه خپـل عکـس العمـل او احتجـاج نـه خبـر کـړي، او داسـې یـې ورتـه وویـل: ((خزرجیانو! مونږ خبر شوي یو چې تاسې راغلي یئ تر څو زمونږ ملګری لـدې ځـای نـه وباسئ او له مونږ سره د جګړې بیعت مـو هـم ورسـره کړیـدی، خـو قسـم پـه خـدای چې مونږ د ټولو عربي قبیلو په نسبت ستاسې سره جګړه بده ګڼو)).[2]

خو څرنګه چې دخزرج مشرکان لدې مسئلې څخه نه وو خبر، ځکه دا بیعت د شپې په تیاره کې په ډېره پټه ترسره شوی وُ، یو ځل راپورته شول، قسـمونه یـې خـوړل چې هـیڅ داسې پیښه په مینځ کې نشته او مونږ لدې نه هیڅ خبر نه لرو. بـالاخره د قریشـو وفـد عبدالله بن ابي بن سلول ته ورغی، هغه هم ورته وویل: چې دا خبره دروغ ده، داسې څه ندي تر سره شوي، او دا هم امکان نلري چې زما قوم دې له مانه پټ داسې کـار وکـړي، که هلته مدینه کې هم وم، زما قوم زما له مشورې پرته داسې کار نه کوي. مسـلمانانو هم یـو بـل تـه وکتـل، او چپ ناست وو پـدې هکلـه یـې هـیڅ هـم ونـه ویـل: قریشـو هـم د مشرکانو خبره ومنله، او بې فایدې ستانه شول.

## د بیعت د خبر په هکله د قریشو باور او د یثربیانو تعقیبول

د قریشو مشران د دوی له مېنې نه پداسې حالت کې ستانه شول، چې د بیعت د خبر

---
[1]. ابن هشام ۴۸۸/۱
[2]. ابن هشام ۱/ ۴۴۸

په دروغوالي څه نا څه یقیني شوي وو، خو سر بیره پر دې پدې لټه کې وو چې سیي معلومات لاسته راوړي او پدې هکله یې خپله پلټنه جاري وساتله. بالاخره پدې باوري شول چې د بیعت خبر سیي دی، خو دا داسې وخت ؤ چې حاجیان ټول د خپلو وطنونو په لور خوځیدلي وو.په هر ترتیب د قریشو سپاره په یثربیانو پسې ووتل، مخکې لاړل تر څو سعد بن عباده او منذر بن عمرو یې ولیدل، تعقیب یې کړل منذر ورنه وتښتید، خو سعد یې ونیو، لاسونه یې له ورمیږه سره دده د کجاوې په رسۍ وتړل، تر وهلو او ټکولو لاندې یې ونیو ویښتان یې کشول او په کښولو کښولو یې مکې ته ورساوه. هلته مطعم بن عدي او حارث بن حرب بن امیه ولید او د دوی له بنده یې آزاد کړ، ځکه سعد به په مدینه کې د دوی له قافلو نه ملاتړ کاوه. انصار چې پوه شول سعد ورنه پاتې شویدی، نو پدې سره سلا شول چې بیرته ورپسې ورشي، خو دوی لا خوځیدلي نه وو چې هغه ورته راورسید، او ټول یو ځای مدینې ته ورسیدل.[1]

دا و د عقبې دویم بیعت چې د لوی بیعت په نامه یادیږي، دا بیعت پداسې حالت کې ترسره شو چې د مسلمانانو زړونه یو له بل سره له مینې او محبت نه ډک وو، او پدې لاره کې په پوره همت او میړانه سره هر راز قربانۍ ورکولو ته چمتو وو. د مدینې مسلمان په مکه کې پخپل مسلمان ورور باندې شفقت کوي، زړه ورباندې سیځي، غم شریکي ورسره کوي، د هغه چا په وړاندې چې د مکې پر مسلمان ظلم کوي خپل قهر او غوسه ځرګندوي، لنډه دا چې د خپل دیني ورور سره په هر څه کې ځان ګډ او شریک بولي. دا مینه او محبت هسې هم نه و چې د وخت په تیریدو سره له مینځه لاړ شي، ځکه ددې مینې سبب او مصدر پر الله، رسولانو او کتابونو باندې ایمان ؤ، داسې ایمان چې هیڅ ظالم او جابر یې د مینځه وړلو توان او قدرت نلري. دا داسې ایمان ؤ چې د عمل او عقیدې په ډګر کې به یې داسې کارنامې ترسره کولې چې د عادي بشر له وسه ندي پوره او پدې ایمان سره د هغه وخت مسلمانانو داسې کارونه او قهرمانۍ ترسره کړې چې نه یې اوس مثال شته، نه پخوا او نه به یې هم په راتلونکې کې مثال ولیدل شي.

[1]. زاد المعاد ۵۱/۲. ابن هشام ۴۴۸/۱ –۴۴۹_ ۴۵۰.

# د هجرت پيل

وروسته له هغې چې د عقبې دويم بيعت ترسره شو، او اسلام وتوانيد له کفر او جهالت نه ډکې بيديا کې د ځان لپاره مېنه ومومي او د فتحې په درشل پښه کېږدي. -په ربښتيا چې دا د دعوت له پيل نه د اسلام لويه سوبه او لاسته راوړنه وه ـ رسول الله (صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) مسلمانانو ته د هجرت کولو اجازه ورکړه.

دغه وخت د هجرت معنی د ځان د احتمالي نجات او خلاصون پخاطر د ټولو ګټو او مصلحتونو تر پښو لاندې کول، او هر راز مالي قرباني په ځان منل وُ. هر هجرت کوونکی به پدې ښه پوهيده چې سر يې هم په باوري توګه په امن ندی، کيدای شي د لارې په سر او يا پای کې ووژل شي، راتلونکې يې هم مجهول او نامعلوم دی، خدای خبر چې سبا به له څه ډول مشکلاتو او کړاوونو سره مخ کيږي.

مسلمانانو د هجرت سفر پيل کړ، دا ټول تکليفونه يې په ځان ومنل، مشرکينو هم د خطر په درک کولو سره زيار ايسته د دوی د هجرت مخه ونيسي، راځئ پدې اړه لاندې خبرې واورو:

١. لومړنی مهاجر ابو سلمه وُ- ابن اسحاق وايي: نوموړي د عقبې له دويم بيعت نه يو کال وړاندې هجرت کړی وُ – کله چې ده د هجرت اراده وکړه، نو خپله ښځه او زوی هم يې له ځان سره روان کړل، خو خسرګنۍ يې ورته وويل: د خپل ځان په هکله څه نه شو درته ويلی، خو دا ستا ښځه چې زمونږ خپله ده، څنګه يې درسره پريږدو چې ليرې وطن ته يې بوزې؟ همدا وه چې ښځه يې ورنه ستنه کړه. پدې وخت کې د ابو سلمه کورنۍ په غوسه شوه او وې ويل: مونږ هم خپل ماشوم نه پريږدو چې له مور سره يې ستاسې سره وي. د دواړو قبيلو خلکو ماشوم ونيو يو له بل نه يې را کاږه تر څو د ماشوم لاس ووت او بيا د ابو سلمه کورنۍ واخيست، او ابو سلمه يوازې د هجرت لاره ونيوه لاړ. ښځه به يې هر سهار له کوره وته او ابطح نومې ځای ته به تلله او ترماښامه به يې هلته ژړل، پوره يو کال يې همداسې بده ورځه وه. بالاخره يې د خپلوانو له جملې نه ديوه تن زړه وربانديې وسوځيده او نورو ته يې وويل: دا مسکينه پريږدئ، له زوی او ميړه نه مو جدا کړيده! نو دوی ورته وويل: که غواړې خپل ميړه ته

ورشي، تلی شي، لاړه شه، همغه وه چې دې خپل زوی د ميړه له پلرګنۍ نه بيرته راواخيست، او د مدينې په لور وخوځيده. هو، دې اوږد سفر ته يې چې تقريباً پنځه سوه کيلو متره اوږد و په يوازې صورت ملا وتړله. لاړه پسې لاړه تر څو تنعيم ته ورسيده هلته عثمان بن طلحه بن ابي طلحه وليده، د حال احوال له پوښتنې وروسته ورسره روان شو تر څو قباء ته ورسيدل هلته يې ورته وويل: ميړه دې دلته دی، ورشه، او دی پخپله بيرته مکې ته روان شو.[1]

**۲- هغه وخت چې صهيب** د هجرت نيت وکړ، د قريشو کفارو ورته وويل: ته چې کله دلته را غلې يو حقير او ناداره سړی وې، همدلته د مال او شتمنۍ خاوند شوې، اوس غواړې دلته ګټلی مال له ځان سره يوسې، دا کله هم نه شي کيدلی. صهيب په ځواب کې ورته وويل: که زه خپل مال تاسې ته درکړم، نو بيا مې پريږدئ چې ولاړ شم؟ دوی وويل: هو. ده ورته وويل: ځه زما مال ستاسې شو. دا خبره رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ته ورسيده نو ويې فرمايل: صهيب ګټه کړې، صهيب ګټه کړې.[2]

**۳- عمر بن الخطاب**، عياش بن ابي ربيعه او هشام بن العاصي بن وائل يو ځای سره وټاکه چې سهار به هملته سره غونډيږي بيا به مدينې ته هجرت کوي، خو سهار عمر او عياش راغلل او هشام ورنه وګرزول شو. او کله چې دوی دواړه قباء ته ورسيدل ابوجهل او ورور يې حارث راغلل او عياش ته يې وويل: مور دې قسم خوړلی چې تر هغې به نه سر موږمنځوی او نه به سيورې ته کيني تر څو يې ته نه وې ليدلی، نو د عياش زړه پرې وسوځيد ورته خفه شو.- د دوی دری واړو مور يوه وه - پدې وخت کې عمر (رضي الله عنه) ورته وويل: عياشه! دوی غواړي تا له خپل دين نه واړوي، متوجه اوسه، مور دې که له سپږو نه په عذاب شي حتماً به خپل سر ږومنځ کړي، او که ګرمي يې پسې واخلي خوامخوا به سيورې ته ځي. خو عياش تصميم ونيو چې له دوی سره بيرته مکې ته لاړ شي، تر څو د خپلې مور قسم رېښتونی کړي، نو عمر ورته وويل: اوس چې دا اراده لرې، نو دا زما اوښه درسره بوزه، دا ډيره ښه ارامه او چټکه اوښه ده، مه ورنه کوزيږه که چيرې دې د خلکو له طرف نه څه شکمن حرکت وليد فوراً را تښته. بيا دری واړه روان شول، په لاره کې ابو جهل ورته وويل: قسم په خدای چې دا زما اوښه سرکشه ده، څه کيږي که زه هم ستا سره سپور شم؟ عياش وويل: سمه ده، اوښې يې ودرولې بيا يې چو کړې، په همدې وخت کې دواړو (ابوجهل او حارث)

---

[1]. ابن هشام ۱/ ۴۶۸ – ۴۶۹ - ۴۷۰
(2). ابن هشام ۱/۴۷۷

ناڅاپي حمله وربانديې وکړه راويې نيو، ټينګ يې وتاړه، او مکې ته يې يووړ، هلته يې خلکو ته وويل: تاسې هم له خپلو بې عقلانو سره داسې چلن وکړي لکه څرنګه چې مونږ له خپل دې جاهل سره وکړ.[1]

دا ډول ځ له هجرت کوونکو سره د مشرکينو چلن، خو سربيره پردې هم مسلمانان يو په بل پسې له مکې نه ووتل او د عقبې له دويم بيعت نه يوازې دوی مياشتې او څو ورځې تيرې شوې وې چې په مکه کې له رسول الله (صلی الله عليه واله وصحبه وسلم)، ابوبکر، علي او له هغو مسلمانانو نه پرته چې مشرکينو په زور نيولي وو، بل مسلمان نه ځ پاتې شوی.

ابوبکر او علي (رضي الله عنهما) د رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) په امر دلته پاته شوي وو، رسول(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) او ابوبکر (رضي الله عنه) د سفر تياري نيولې وه، خو پدې انتظار ځ چې کله به ورته د وتو امر کيږي.[2]

امام بخاري له حضرت عايشي (رضي الله عنها) نه روايت کوی فرمايي: رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) مسلمانانو ته وويل: **[أني أريت دار هجرتكم، ذات نخل بين لابَتَيْن]** ما ته ستاسې د هجرت ځای رابنودل شويدی، د لارې د دوو غرونو تر مينځ يوه نخلستاني علاقه ده. پدې پسې مسلمانانو مدينې ته هجرت وکړ، د حبشې مهاجرين هم ټول مدينې ته راغلل، ابوبکر (رضي الله عنه) هم مدينې ته د سفر تياري ونيوله، خو رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ورته وفرمايل: **[على رِسْلِك، فأني أرجو أن يؤذن لي]**. لږ څه صبر وکړه، هيله ده ما ته هم د هجرت اجازه راکړل شي. نو ابوبکر (رضي الله عنه) ورته وويل: زما پلار له تا قربان، آيا ته ددې اميد لرې؟ رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) وفرمايل: **[نعم]** هو زه اميد لرم. نو ابوبکر (رضي الله عنه) هم پاتې شو تر څو له رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) سره ملګری شي. ده دوې اوښې هم برابرې کړې وې او پوره څلور مياشتې يې د سمر ونې پاڼې ورکړې او ښې ي‌ې وساتلې.[3]

---

(1). هشام او عياش همداسې د کفارو په قيد کې وو تر څو رسول الله (ص) هجرت وکړ، يوه ورځ يې وفرمايل: څوك به هشام او عياش راخلاص کړي؟ د وليد زوی وليد وويل: زه يې درته راخلاصوم يا رسول الله (ص)! همدا وه چې وليد په پټه مکې ته لاړ، هلته يې يوه ښځه وليده چې دوی ته خواړه وروړي په دې سره يې د دوی د اوسيدو ځای معلوم کړ او دا بو بې چته کور و، ماښام په ديوال ورواوښت ، دواړه يې را خلاص کړل او له ځان سره يې مدينې ته بوتلل ابن هشام ۱/۴۷۴- ۴۷۲.عمر له ۲۰ نورو کسانو سره يو ځای مدينې ته تللی وُ بخاري ۱/ ۵۵۸

(2). زاد المعاد ۲/۵۲

(3). صحيح بخاري باب هجرة النبي (صلی الله عليه وسلم) و اصحابه ۱/۵۵۳

# د دارالندوه یا د قریشو د پارلمان غونډه

کله چې قریشو ولیدل د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) اصحاب مهاجر شول، اولادونه او څه اندازه مالونه یې د مدینې اوس او خزرج ته یووړل، نو یو ځل یې په زړونو کې بې ساري غم او غوبه را وپاریده. اور ورباندې بل شو، خپل دیني او اقتصادي وجود یې په خطر کې ولید، ځکه دوی محمد(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ښه پیژانده او پوهیدل چې هغه څومره عظیم او موثر لارښود دی. پدې هم پوه وو چې اصحاب (رضي الله عنهم) څومره د صبر، استقامت خاوندان او قرباني ته تیار کسان دي، د اوس او خزرج قوت او زور یې هم لیده او پدې هم پوره باوري وو چې ددې دواړو قبیلو مشران او د عقل خاوندان ددې توان او استعداد لري چې خپل مینځي دښمنۍ ختمې کړي او یو بل ته د وروري او همکارۍ لاس ورکړي.
د مدینې استراتیژیک موقعیت یې هم له سترګو پټ نه و، او پدې خبر وو چې دا علاقه د هغه تجارتي لارې لپاره د څومره اهمیت درلودونکې ده کومه چې د سرې بحیرې په غاړه له یمن نه تر شام پورې غزیدلې ده. د مکې خلکو به هر کال شام ته د (۲۵۰) زرو طلایي دینارونو په بیه تجارت درلود د طائف او نورو ځایونو د اوسیدونکو تجارت لدینه جدا و، او ښکاره ده چې ددې لارې امن او آرامې د دوی د تجارت لپاره ډیره ضروري وه. خو دا هم باید ووایو چې قریشو په مدینه کې د اسلامي دعوت له ځای په ځای کیدو او د دوی په مقابل کې د هغه ځای د خلکو له راپاریدو نه هم غټ خطر احساساوه، دا ټول خطرونه یو ځای د قریشو سترګو ته ودریدل، نو پدې لټه کې شول چې د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) په لاس را پیدا شوی خطر بالکل او په پوره توګه له مینځه یوسي.
د عقبې له دویم بیعت نه تقریباً دوې نیمې میاشتې وروسته د پنجشنبې په سهار د نبوت د څوارلسم کال د صفر میاشتې په (۲۶) مه چې د (۶۲۲)م کال د سپتمبر میاشتې له (۱۲) مې سره سمون خوري[1] د قریشو پارلمان (دارالندوه) پخپل تاریخ

[1]. دا نیتګه مو د هغه تحقیقاتو له خګیړنې وروسته غوره کړه کوم چیګ علامه محمد سلیمان منصور پوري په رحمه للعالمین نومیګ کتاب کیګ لیکلي دي ۱/ ۹۵ –۹۷_ ۱۰۲، ۲/ ۴۷۱.

کې له ټولو نه خطرناکه غونډه پرانيستله[1]، پدې غونډه کې د قريشو د ټولو قبيلو استازو برخه واخيستـه، تر څو د اسلامي دعـوت د ستر لاربنـود د لـه مينځـه وړو او اسلامي ډيوې د وژلو لپـاره لارې چارې ولټوي او پـدې هکله پريکنده فيصله وکړي.
پدې غونډه کې د قريشو له استازو نه لاندنيو مشهورو کسانو برخه اخيستې وه:
۱ـ ابو جهل بن هشام د بني مخزوم له قبيلې نه.
۲ـ جبير بن مطعم، طعيمه بن عدي، او حارث بن عامر د بني نوفل بن عبد مناف نه.
۳ـ د ربيعه زامن شيبه او عتبه، او ابو سفيان بن حرب لـه بني عبد شمس بن عبد مناف قبيلې نه.
۴ـ نضر بن حارث لـه بني عبدالدار قبيلې نـه، دا همغـه سړی دی کـوم چې پر رسـول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) يې د اوښې پريوان وراچولې ؤ.
۵ـ ابو بختري بن هشام، زمعه بن اسود او حکيم بن حزام له بني اسد بن العزی قبيلې نه.
۶ـ د حجاج زامن نبيه او منبه له بني سهم قبيلې نه.
۷ـ اميه بن خلف له بني جمح قبيلې نه.
ټول د وعدې سره سم راغلل، که ګوري چې شيطان د يوه مخور مشر په شکل کې په دروازه کې ولاړ دی، قيمتي چپنه يې اغوستې، دوی ورته وويل: دا مشر څوک دی؟ ده ورته وويل: زه د نجد قبيلې يو مشر يم ستاسې د غونډې خبر مې واوريد، راغلم تر څو ستاسې خبرې واورم، او کيدای شي پدې هکله ښه مشوره درکړم. دوی ورته وويل: ډير ښه، راځه، او پدې ترتيب هغه هم په غونډه کې شريک شو.

## له مناقشې وروسته د رسول الله(ﷺ) د وژلو پريکړه

د پارلمـان غـړي ټـول حاضـر شـول، خبرې او مناقشـې پيـل شـوې، هـر چـا خپلـه طرحـه وړاندې کوله، ابو اسود وويل: راځئ محمد(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) له خپـل وطن نه وشړو، هر چيرته چې ځي لاړ دې شي، زمونږ څه کـار ورسره نشـته، خو دده په اخراج به زمونږ مشکل حل شي او اړيکې به مو بيرته سره ټينګې او وحدت به مو

[1]. ابن اسحاق روايت کوی چيګ جبريل (عليه السلام) رسول الله (صلی الله عليه وسلم) ته دديګ غونأيګ په هکله خبر ورکؤ او د هجرت اجازه ييګ ورکؤه. او پديګ هکله بل دليل د عايشی (رضي الله عنها) روايت دی چيګ وروسته به ييګ سره ولولو.

قائم شي.

خو نجدي سپين ږيري وويل: نه دا سيي نظر ندی، تاسې نه ګورئ چې محمد (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) څومره بليغ او منطقي شخصيت دی، د هغه زړه وړونکې او خوږې خبرې نه وينئ، او دا نه ګورئ چې هغه د نورو زړونه څه ډول ځانته راکاږي، نو ددې ويره موجوده ده چې هغه يوی بلې عربي قبيلې ته لاړ شي، او هغوی د ځان پيروان وګرزوي، بيا به پر تاسې حمله وکړي او دلته پخل وطن کې به مو تس او نس کړي او بيا به خپله رايه دربانديې تحميل کړي، بهتره دا ده چې پدې هکله نور فکر وکړئ او بل پلان جوړ کړئ.

ابو البختري وويل: هغه د ا وسپنې په پنجرو کې بند کړئ، تر څو د پخوانيو شاعرانو زهير او نابغه په څير مړ شي. د نجد مشر بيا وويل: نه دا هم چندان سيي نظريه نده، ځکه که تاسې هغه بند هم کړئ، هغه به خپل ارشادات خپلو اصحابو ته رسوي، کيدای شي هغوی حمله وکړي او له قيد نه يې آزاد کړي، بيا به يې پيروان ډير شي او پر تاسې به برلاسي وموممي، نو يوه بله لاره وګورئ.

پارلمان دا دواړه پيشنهادونه رد کړل، خو دا ځل د مشرکانو مشر او د مکې غټ مجرم ابو جهل داسې ظالمانه وړانديز وکړ چې ټولو ورسره موافقه وکړه. او هغه داسې ؤ چې ابو جهل وويل: زه دده په هکله داسې نظر لرم چې تاسې يو به يې هم نلرئ، دوی ورته وويل: وايه ستا څه نظر دی؟ ده وويل: چې مونږ بايد له هرې قبيلې نه يو يو غښتلی، تکړه او د ښه نسب خاوند ځوان غوره کړو، دوی ټولو ته توري ورکړو او دده (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) د مرګ لپاره يې ورواستوو، ټول به يو ځای وربانديې ګوزار وکړي او په قتل به يې ورسوي، نو مونږ به ورنه بيغمه شو، که داسې وکړو خون به يې په ټولو قبيلو وويشل شي او عبدمناف به هم ددې وس ونلري چې له ټولو قبيلو سره جګړه وکړي، نو مجبور به شي ديت اخيستل ومني او مونږ به يې ديت ورکړو. نجدي مشر وويل: ددې سړي خبره او نظريه د منلو وړ ده، زما نظر هم دا دی[1]. نو د پارلمان ټولو غړو دا نظريه او وړانديز ومانه، او تصميم يې ونيو چې دا طرحه به ژر او فوراً عملي کوي، او په همدې سره غونډه پای ته ورسيده.

[1]. ابن هشام ۱/ ۴۸۰، ۴۸۱، ۴۸۲

# د رسول الله(ﷺ) هجرت

کله چې قریشو د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د وژلو ظالمانه فیصله وکړه، نو جبریل (علیه السلام) وحي راوړه، رسول (علیه السلام) یې د قریشو لدې توطئې نه خبر کړ، او د ا يې ورته وويل چې الله تعالی د هجرت اجازه درکړیده، د هجرت کولو وخت یې ورته وټاکه او داسې یې ورته وویل: نن پخپل ځای مه ویده کیږه.[۱]

نو رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) په همدې غرمه کې د ابوبکر (رضي الله عنه) کورته ورغی تر څو د هجرت په هکله پلان جوړ کړي. عائشه (رضي الله عنها) وایي: تکنده غرمه وه مونږ د ابوبکر (رضي الله عنه) په کور کې ناست وو، چې یو کس آواز وکړ، دا دی رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) راغی سر یې پټ کړیدی. دا داسې وخت ؤ چې عادتاً به هغه(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) پدې وخت کې زمونږ کره نه راته. ابوبکر وویل: زما مور او پلار دې ورنه قربان شي، قسم په خدای چې د کوم مهم کار لپاره راغلی دی.

عائشه (رضي الله عنها) وایي: رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) راغی او له اجازې وروسته کور ته را ننوت، ابوبکر ته یې وویل: **[أخـــرج مَـــنْ عنـــدك]**. دا حاضرین وباسه. ابوبکر (رضي الله عنه) ورته وویل: زما پلار له تا قربان یا رسول الله (صلی الله علیه وسلم)! دا خو ټول ستا اهل دی. ده وفرمایل: **[فـأني قـد أذن لي في الخروج]**. ما ته د هجرت اجازه شویده، نو ابوبکر ورته وویل: اې رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) پلار مې درنه قربان، آیا ما درسره ملګری کوې، زما لپاره به د ملګرتیا شرف وي؟ رسول(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) وفرمایل: هو.[۲]

د هجرت له پلان جوړولو وروسته رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) بیرته خپل کورته لاړ، او د شپې انتظار یې یوست.

---

(1). ابن هشام ۴۸۲/۱، زاد المعاد ۵۲/۲

(2). صحیح بخاري، باب هجرة النبي (ص) و اصحابه ۱/ ۵۵۳

## د رسول الله (ﷺ) د کور محاصره

د قريشو مجرمانو مشرانو ټوله ورځ پدې تيره کړه چې د مکې پارلمان (دارالندوه) پريکړه بـه څنګـه عملي کوي، او لـه تيـاری وروستـه يـې د دې کـار د عملـي کـولـو لپاره يوولس مشران وټاکل چې نومونه يې دا دي:

۱- ابو جهل بن هشام. ۲- حکم بن ابي العاص.۳- عقبه بن ابې معيط.۴- نضر بن حارث.۵- اميه بن خلف.۶- زمعه بن اسود.۷- طعيمه بن عدي. ۸- ابو لهب. ۹- ابې بن خلف.۱۰- نبيه بن حجاج.۱۱- منبه بن حجاج.[۱]

ابن اسحاق وايي: کله چې د شپې تياره خوره شوه، هغوی ټول د رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) تر کور راتاو شول او ددې انتظار يې يوست چې هغه ويده شي او دوی حمله ورباندې وکړي.[۲]

مشـرکانو پـوره بـاور درلـود چې د دوی دا توطئـه بـه حتمـا کاميابيـږي، تـر دې حده چې ابـو جهـل د کبـر او غـرور پـه حالـت کـې خپلـو ملګـرو تـه مـخ کـوي او وايـي: محمـد(صلی الله عليـه و الـه و صـحبه و سلم) وايـي کـه تاسـې دده پيـروی وکـړی، نـو د عربو او عجمو پاچايان به شئ، او بيا به له مرګ نه وروسته بيا راژوندي شئ، او هلتـه به د اردن د باغونو په شان باغونه درکړل شي، او که داسې مـو ونـه کـړل- دده ديـن مـو ونه ما نه – نو بيا به دده له لاسه ستاسې په مينځ کې قتل و قتال وشي، او چې بيـا را ژوندي کړی شي، نو بيا به په اور کې سوځئ[۳]!!

د توطئې د پلي کولو وخت نيمه شپه ټاکل شوی و، هغوی ټول بيـدار او ويـښ ولاړ وو، د ټاکل شوي وخت انتظار يې يوست، خو الله تعالی تر ټولـو لـوی او غـالب ذات دی، د ځمکې او آسمان پاچايي لـه ده سره ده څـه يـې چې اراده وي همغـه کـوي، هغـه پناه ورکوونکې دی، چا تـه چې پناه ورکړي هيڅوک هغه ته ضـرر نـه شـي رسـولی، او کـه وغواړي څوک را ګير کړي، نو بيـا د هغـه خلاصـون نشـته. پـدې ترتيـب سره غـالب الله تعالی خپـل رسول وساته، د قرآنکريم لانـدينی آيت چې لـدې پـيښې وروسـته را نـازل شوی دا موقف داسې تشريح کوي:

((وَ إِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِيُثْبِتُوكَ أَوْ يَقْتُلُوكَ أَوْ يُخْرِجُوكَ وَيَمْكُرُونَ وَيَمْكُرُ اللَّهُ

---

[۱]. زاد المعاد ۵۲/۲

[۲]. ابن هشام ۴۸۲/۱

[۳]. ابن هشام ۴۸۳/۱

وَاللَّهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ)). (الانفال: ۳۰)
[ او یاد کړه (اې محمده) هغه وخت چې مکر فریب به کاوه له تا سره کافرانو لپاره د دې چې بندي کړي تا یا ووژني تا، یا وباسي تا (له مکې نه) او پټ فریب کوي دوی (له تا سره) او جزا د قریب ورکوي الله (دوی ته) او الله بهتر د جزا ورکوونکو د مکر دی.]

## رسول الله (ﷺ) خپل کور پریږدي

سره لدې چې قریشو د خپل وحشیانه پلان د تطبیق لپاره پوره تیاري نیولې وه، خو بیا هم له فـا حشې ناکامۍ سره مخ شول. په همدې سخت او مشکل وخت کې رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د ابو طالب زوی علي (رضي الله عنه) ته وویل: ته نن شپه زما په بستره کې ویده شه، او دا زما شین حضرمي چادر دربانديواچوه[۱] ویده شه تا ته به د هغوی له لاسه هیڅ ضرر در و نه رسیږي. رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) به په همدې چادر کې ویده کیده.[۲]
بیا رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ووت، د دوی له مینځه تیر شو، او یو موټې شګلنه خاوره یې واخیسته او د دوی پر سرونو یې ورو‌شنله، الله تعالی د هغوی سترګې ورباندې ړندې کړې او ویې نه لیده او ده مبارک دا آیت تلات کاوه: ((وَجَعَلْنَا مِنْ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ سَدّاً وَمِنْ خَلْفِهِمْ سَدّاً فَأَغْشَيْنَاهُمْ فَهُمْ لا يُبْصِرُونَ)) (یــس: ۹). [او ګرځولی مو دی په مخ د دوی کې سد (دیوال) او له وروسته د دوی دیوال، پس پټې کړې مو دي (سترګې د دوی) پس دوی هیڅ نه ویني.]
رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د ټولو مشرکانو پر سرونو خاوره واچوله، او سیخ د ابوبکر (رضي الله عنه) کورته ورغی، له هغه ځای نه دواړه د شپې له مخې د یوې کړکۍ له لارې ووتل د یمن په طرف روان شول ترڅو غار ثور ته ورسیدل[۳]. هلته محاصره کوونکي د ټاکل شوي وخت د رارسیدو انتظار باسي، خو د وخت له رارسیدو لږ شیبه مخکې پخپله نامرادۍ او ناکامۍ پوه شول. یو سړی ورته راغی او

---

[۱]. په حضرموت ( جنوبیګ یمن) کیګ جوړ شوی خګادر په حضرمي چادر شهرت لري.
(2). ابن هشام ۴۸۲/۱ - ۴۸۳
(3). ابن هشام ۴۸۳/۱- زاد المعاد ۵۲/۲

ورته وي‍ې ويل: د څه انتظار باسئ؟ دوی ورته وويل: د محمد (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) انتظار باسو. ده ورته وويل: نامراده شوئ، ناکام شوئ، هغه خو در نه تللی، او ستاسې پر سرونو يې خاورې در اچولې، هغه پخپله لار تللی. دوی وويل: قسم په خدای مونږ خو ندی ليدلی، سرونو ته يې لاس کړ او خاورې يې ورنه پاکې کړې.

خو د دروازې له چاک نه يې د ننه وکتل، که ګوري چې علي (رضي الله عنه) ويده دی، دوی وويل: قسم په خدای هغه دی محمد (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) تر اوسه لا ويده دی. هغوی تر سهاره منتظر وو تر څو سهار شو او علي ( رضي الله عنه) له ځايه پاڅيد، دوی هغه را ونيو او د محمد (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) په هکله يې معلومات ورنه وغوښتل. ده ورته وويل: زه د هغه په هکله هيڅ معلومات نلرم.[1]

## له کور نه تر غاره

رسول (صلی الله عليه وسلم) د نبوت د څوارلسم کال د صفر مياشتې په (۲۷) مه شپه چې د (۶۲۲م) کال د سپتمبر مياشتې له ۱۲/ ۱۳[2] سره سمون خوري له خپل کور نه ووت، د ابوبکر (رضي الله عنه) کورته ورغی، او له هغه ځای نه دواړه د کور له وروستۍ کړکۍ نه لدې ويرې نه چې ورباندې سهار نه شي په ډيره چټکۍ ووتل.

رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) پدې پوهيده چې مشرکين به يې په لټه پسې را وزي او لومړنۍ لار چې دوی به يې نيسي هغه دشمال خوا ته د مدينې لويه لاره ده، نو ده پخپل حکمت سره ددې مقابله يعنی د جنوب لاره ونيوله، دا لاره يمن ته تللې وه، تقريباً پنځه ميله مخکې لاړل تر څو د ثور غره ته ورسيدل. دا ډير لوړ، سخت او د لويو لويو تيږو درلودونکې غر دی.

د رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) دواړه پښې لوڅې وې بلکه دا هم ويل کيږي چې رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) د پښو په سرو (ګوتو) تله تر

---

[1]. ابن هشام – زاد المعاد

[2]. رحمة للعالمين ۹۵/۱. که د دې کلونو پيل له محرم مياشتی نه فرض کؤو نو دا مياشت ( صفر) د نبوت د خګوارلسم کال مياشت راحګي او که د کلونو پيل د بعثت له مياشتی نه فرض کؤو نو بيا دا د نبوت ديارلسم کال مياشت راحګي.

او د سيرت زيات ليکونکيګ کله لومؤنی او کله هم دوهمه فرضيه سييګ کګنګي او همدا وجه ده چيګ د حوادثو په ترتيب کيګ خګه غلطی هم ورنه وشي، نو موئږ ددیګ شيانو په پام کيګ نيولو سره دا غوره کګنګو چيګ د کلونو پيل د محرم له مياشتيګ وي.

څو د پلونو اثر یې پاتې نه شي او پدې سره یې پښې زخمې شوې. په هر حال ابوبکر (رضي الله عنه) د غره له لمنې نه د غره په څوکه کې تر واقع غار پورې چې په تاریخ کې د ثور غار په نامه یادیږي رسول(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) په بیړه، بیړه په خپله شا یووړ. [1]

## په غار کې

کله چې غار ته ورسیدل ابوبکر (رضي الله عنه) وویل: یا رسول الله (صلی الله علیه وسلم)! ته به تر هغې پورې غار ته نه ننوزې تر څو زه پکې ننوتلی نه وم او کتلی مې نه وي، ځکه که هلته څه مضر شی وي، نو لومړی به زه ورسره مخامخ شم. ابوبکر (رضي الله عنه) غار ته ننوت او جارو یې کړ، ټول سوري یې د خپل لنگ په ټوټو پټ کړل، یوازې دوه سوري (سوړې) پاتې شول چې هغه یې هم پخپلو پښو بند کړل پښې یې پکې کیښودلې بیا یې رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ته وویل: مهرباني وکړه غار ته را ننوزه. رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) غار ته تشریف یووړ او هلته یې د ابوبکر (رضي الله عنه) په غیږ کې سر کیښود او ویده شو. ابوبکر (رضي الله عنه) له یوه سوري نه په پښه څه شي وچیچه، او ددې له ویرې چې رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) راویښ نه شي هیڅ ونه خوځید، خو اوښکې یې د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) پر مبارک مخ را تویې شوې هغه را ویښ شو او ورته ویې فرمایل:څه خبره ده ابوبکره؟ ده ورته وویل: څه شي وچیچلم زما مور او پلار له تا قربان شه! نو رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) په هغه ځای خپلې مبارکې لاړې (زیړې) واچولې او پدې سره د ابوبکر (رضي الله عنه) درد ورک او آرام شو. [2]

دوی درې شپې یعنی د جمعې، هفتې او یکشنبې شپې په غار کې پټ وو[3].

د ابوبکر زوی عبدالله (رضي الله عنهما) به د شپې له دوی سره ویده کیده. عائشه (رضي الله عنها) وایي: عبدالله (رضي الله عنه) تنکی، پوه او زیرک ځوان ؤ سهار د

---

[1]. رحمة للعالمین ۹۵/۱. مختصر سیرةالرسول للشیخ عبدالله النجدي ص ۱۲۷

[2]. دا روایت رزین له عمر (رضي الله عنه) نه هم روایت کړی خو په هغه کیگ دا هم شته چیگ ددیگ زهرو اثر د ابوبکر (رضي الله عنه) د مرکگ په وخت کیگ بیرته را شگکاره شو او همدا زهر ییگ د مرکگ سبب شول، مشکاة المصابیح باب مناقب ابیگ بکر ۵۵۲/۲

(3). فتح الباري ۷/ ۳۳۲

وخته به له دوی نه راووت، او داسې وخت به مکې ته رارسیده چې گومان به کیده شپه یې همدلته تیره کړیده.
او قریشو به چې د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) په خلاف کومې خبرې کولې، ټولې به یې اوریدلې ځان به یې ورباندې پوهاوه او بیا به د شپې په تیاره کې دوی ته ورتله او دا خبرې به یې ورسولې. د ابوبکر (رضي الله عنه) غلام (عامر بن فهیره) به رمه پووله، او کله به چې شپه پخه شوه، نو رمه به یې د غار خولې ته راوستله، او د غار دواړو ملگرو به شیدې څښلې او ارام به ویده کیدل، او عامر به بیا سهار وختي رمه بیرته بیوله. هغه دا درې واړه شپې همداسې کول[1] او د سهار له خوا به یې رمه په هغه لاره بیوله په کومه به چې عبدالله بن ابوبکر (رضي الله عنهما) تللی ؤ تر څو د هغه پلونه ړنګ کړي اثر او نښه یې پاتې نه شي.[2]

## د قریشو منډې ترړې

هلته د توطئې د تطبیق د شپې په سهار قریش له خپلې ناکامۍ او د رسول(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) له نجات نه باوري شول نژدې وو چې لیونیان شي، لاره ورنه ورک شوه، لومړی خو یې علي (رضي الله عنه) راونیوه ښه یې وواهه، کعبې ته یې یووړ او هلته یې بندي کړ تر څو د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) په هکله معلومات ورنه واخلي.[3] او کله یې چې له علي (رضي الله عنه) نه څه بود (تر لاسه) نکړل، نو د ابوبکر (رضي الله عنه) کور ته ورغلل دروازه یې ور وټکوله د ابوبکر لور اسماء (رضي الله عنها) راووته، دوی ورته وویل: پلار دې چیرته دی؟ دې ځواب ورکړ، والله که خبره وم چې پلار مې چیرته دی. پدې ځواب سره خبیث ابوجهل داسې کلکه څپیړه ورکړه چې د غوږ لښتۍ یې ایسته ولویده.[4]
قریشو د یوې عاجلې او فوق العاده غونډې په نتیجه کې فیصله وکړه چې باید د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) او ملگري د نیولو لپاره یې ټول وسایل او امکانات په کار واچول شي، نو فوراً یې له مکې نه د باندې وتلې ټولې لارې تر کلکې وسله والې څارنې لاندې ونیولې، او اعلان یې وکړ هر چا که هغوی دواړه مړه یا

---

[1]. صحیح البخاري ۵۵۳/۱ . ۵۵۴
[2] ابن هشام ۴۸۲/۱
[3]. رحمة للعالمین ۹۲/۱
[4]. ابن هشام ۱/ ۴۸۷

ژوندي دوی ته راوستل، نو دوی به د هريوه په بدل کې سل اوښان جائزه ورکړي.[۱]

ددې لويې جائزې له اعلان نه وروسته ټولو خپلې هڅې ګړندۍ کړې، پلي او سپاره او پل پيژوندونکي يوې خوا بلې خوا ته خواره شول، غرونه، دښتې، خوړونه او درې يې پلټلې، خو ټول نامراده وو او هيڅ يې په لاس نه ورتلل.

څنې پلټونکي ان د غار خولې ته ورغلل، خو الله پخپل کار کې غالب او برلاسى دى. امام بخاري له انس او هغه له ابوبکر (رضي الله عنه) نه روايت کوي وايي: زه له نبي(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) سره په غار کې وم، کله مې چې سر راپورته کړ که ګورم چې د خلکو پښې راته ښکاريږي، نو رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) ته مې وويل: که د هغوى کوم يو هسې لاندې وګوري نو مونږ به ويني. ده وفرمايل: **[اسكت يا أبا بكر، اثنان، الله ثالثهما]، وفي لفظ: [ما ظنك يا أبا بكر باثنين الله ثالثهما]**. چپ يا ابوبکره! مونږ دوه يو دريم مو الله دى، او په بل لفظ کې راځي: ابوبکره! د هغو دوو کسانو په هکله څه ګومان کوې چې دريم يې الله دى.[۳]

دا يوه معجزه وه چې الله تعالى خپل رسول پرې مشرف کړ، پلټونکي بيرته نا مراده ورنه وګرځيدل پداسې حال کې چې دده(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) او هغوى تر مينځ يوازې څو قدمه فاصله وه او بس.

## د مدينې په لار

کله چې د لټې او پلټنې هلې ځلې غلى غلى شوې، او قريش له دريو ورځو مسلسلو خو بې نتيجې منډو، ترړو نه وروسته څه نا څه آرام شول. نو رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) او ملګري يې له غار نه د وتو تياري ونيوله.

دوى له مخکې نه له عبدالله بن اريقط الليثي سره چې په صحرايي لارو پيژندنه کې يې خاص مهارت درلود د پيسو په مقابل کې مدينې ته د رسولو خبره کړې وه.

---

[۱]. صحيح البخاري ۵۵۴/۱

(3). صحيح البخاري ۵۱۲/۱ - ۵۵۸. د ابوبکر (رض) ويره د خپل ځان پخاطر نه وه، بلکه د ويرې سبب ييګ دا و ْلکه چيګ په يوه روايت کيګ راحګي ده چيګ کله هغوى وليدل نو د رسول الله (ص) په هکله أير غمجن شو او ويى ويل: که زه ووژل شم نو يو سؤي يم پروا ميګ نشته، خو که ته ووژل شى يا رسول الله !نو تګول امت هلاك شو ، پديګ وخت کيګ رسول الله (ص) ورته وويل:مه خفه کيإه الله زمونإ سره دى، مختصر سيرة الرسول (صلى الله عليه وسلم) ۱۲۸.

نومـوړی هغـه وخـت لا مشـرک وُ، خـو دوی تـه د اعتمـاد وړ وُ خـپلې اوښـې يـې ورتـه سپارلې وې او دا وعده يې ورسره کړې وه چې درې ورځې وروسته بـه د غـار خـولې تـه راځي. همدا وه چې عبدالله بـن اريقـط د دوشـنبې پـه شـپه د هجرت د لومـړي کـال د ربيـع الاول پـه لومـړۍ نيټـه چې د (۶۲۲م) کـال د سپتمبر لـه (۱۶) مې سره سمون خوري اوښې د غار خولې ته راوستې. ابوبکر (رضي الله عنه) رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ته وويل: پلار مې له تا قربان شه يا رسول الله! لـه دې دوو اوښـو نـه يوه د تا ، او هغه بهتره اوښه يې ور وړاندې کړه. رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ورته وويل سيې ده خو په بيه.

پدې وخت کې اسماء بنت ابي بکر (رضي الله عنهما) ورته د لارې توښه راوړه، خو ددې د تړلـو لپـاره يـې څـه نـه وُ ورسره راوړي، او کلـه چې دوی د سفر اراده وکـړه اسـماء (رضي الله عنها) څه پيدا نکړل چې هغه توښه پکې وتړي، نـو فـوراً يې د خـپلې مـلا کمربند دوه ځايه کړ، په يوه ټوټه يې خوراک وتاړه او بله يـې تـر مـلا کـړه او پـه دې سره ذات النطاقين وبلله شوه.[1]

بيا رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) او ابوبکر (رضي الله عنـه) روان شـول، عـامر بـن فهيـره هـم ورسره وُ او لارې پيژنـدونکي ـ عبـدالله بـن اريقـط د بحـر د غـاړې (ساحل) لاره غوره کړه او همداسې مخکې لاړل.کلـه چې لـه غـار نـه ووتـل لومـړی د جنوب پلو ته د يمن په لور لاړل، بيـا د بحـر د غـاړې پـه خـوا د غـرب (لويـديز) لـوري تـه راوګرځيـدل او مخکې لاړل تـر څـو داسـې لارې تـه ورسـيدل چې عـام خلـک بـه نـه وربانـدې تلل، بيا د شمال لوري ته وګرځيدل او د سرې بحيرې غاړې ته نژدې په داسې لار روان شول چې له کوم يوه سړي پرته بل هيڅوک هم نه وربانـدې تلل.

ابن اسحاق د هغو ځايونو نومونه ذکر کړيدي لـه کومـو نـه چې رسـول الله(صـلی الله عليـه و الـه وصـحبه وسـلم) پـه دې سفر کـې تيـر شـويدی. هغـه وايـي: لارې پيژنـدونکي لومړی هغوی د مکې په لاندينۍ برخه کې بوتلل، بيـا د سـاحل پـه لاره روان شـول او د عسفان په لاندينۍ برخه کې يې لاره غوڅه کړه، بيا د امـج پـه لاندينـۍ برخـه کـې روان وو او کله چې له قديـد نـه تيـر شـول،نو بيـا يـې لاره غوڅـه کـړه، همداسې مخکـې د خرار په لاره لاړل بيا په ثنيه المره او وروسې په لقفا او بيا د لقف له بيابان نه تير شول، وروسې يې د مجاح بيابان (دښته) ونيوه، بيا د مجاح له ګرزندي (موړ) نه پورې وتل او د ذي الغضوين ګرزندی يې ونيو په ذي کشر ورننوتل او داسې په جداجد بيا پـه اجـرد ،

---

[1]. صحيح بخاري ۵۵۳/۱ – ۵۵۵. ابن هشام ۴۸۲/۱

ذاسلم او د اعداء لـه لارې د تعهـن پـه دښتـه او مخکې پـه عبابيد او داسې پـه فاجـه بالاخره په عرج راکوز شول، بيا د رکوبه په ښي خوا کې له ثنيه العائر نه تير شول، او د رئم په وادی کې راکوز شول او مخکې د قبا[۱] په لور لاړل.
اوس راځئ د لارې په دوران کې واقع شوې ځنې پيښې تر نظر تيرې کړو:
۱- <u>بخاري روايت کوي</u> چې ابوبکر الصديق (رضي الله عنـه) وايي: کله چې د شپې (له غاره ووتلو) نو دا ټوله شپه او سبا ورځ تر غرمې مو مزل وکړ، دغه وخت لاره بالکل خالي وه هيڅ لاروی هم نه ليدل کيده، که ګورو چې يوه لويه پرښه ده او پـه سيوره يې تر اوسه لا لمر نه ؤ راغلی، مونږ همدلته واړول. ما پخپل لاس رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ته ځای برابر کړ، او يو پوستين مې وربانـدې اوار کړ او ورته ومې ويل: دلته ويده شه يا رسول الله (ص)! زه به د شا او خوا څارنه او مراقبت کوم. رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ويده شو او ما څارنه کوله، پدې وخت کې مې يو شپون وليد چې رمه يې د پـــرښې په خوا را روانه کړيده، غواړي زمونږ په شان دلته واړوي، ما ورته وويل: ته د چا يې؟ هغه د مکې يا د مدينې د کوم سړي نوم واخيست. ورته ومې ويل: ميږې دې شيدې لري؟ ده وويل: هو. ورتـه و مې ويل : آيا لـوشې يې؟ و يې ويل: هو، يوه ميږه يې راونيوه تر څو ويې لوشي. ما ورته وويل: دا تی يې له خاورو، ويښتانو او نورو شيانو نه پاک کړه، بيا يې په يوه لوښي کې شيدې را ولوشلې. له ما سره يوه چرمې بدنۍ وه چې رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) بـه اوبـه ورنـه څښلې او اودس بـه يې وربانـدې کاوه. بيا رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ته راغلم، خو مناسبه مې ونه ليده چې راويښ يې کړم، همدلته ورته ولاړم تر څو راويښ شو، نو فورا مې په شيدو لږ اوبه ورواچولې تر څو لانديني برخه يې يخه شوه او ورته ومې ويل: مهرباني وکړه شيدې وڅښه يا رسول الله (صلی الله عليه وسلم)! رسول الله(صلی الله عليه و الـه وصحبه وسلم) دومره شيدې وڅښلې چې زه ډير پرې خوښ شوم، بيا يې وفرمايل: د حرکت وخت ندی؟ ما ځواب ورکړ: هو د تګ وخت دی، بيا روان شوو.[۲]
۲- <u>پدې سفر کې د ابوبکر</u> (رضي الله عنـه) عادت دا ؤ چې پـه رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) پسې به وروسته په اوښه سپور ؤ. او څرنګه چې له عمره

[1]. ابن هشام ۴۹۱/۱ - ۴۹۲
(2). صحيح بګخاري ۵۱۰/۱

پوخ ښکاريده نو د خلکو توجه به هم همده ته وه، او د رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) په څيره کې د ځوانۍ نښې ډيرې وې، نو د خلکو زياته توجه به نه وه ورته. او همدا وجه وه چې کله به له چاسره مخامخ شول نو لومړی به يې له ابوبکر (رضي الله عنه) نه پوښتنه کوله چې دا سړی څوک دی؟ ابوبکر (رضي الله عنه) به يې په ځواب کې ويل: دا زما لارښود دی، اوريدونکي به داسې ګومان کاوه چې دا لار ښيي په کومه چې روان دي، خو دده مراد به هغه د خير او دين لاره وه.[1]

**۳- سراقه بن مالک** چې د هغوی په لټه پسې وتلی ؤ وايي: زه د خپل قوم بني مدلج له خلکو سره ناست وم چې له دوی نه يو سړی راغی راته ودريده او وې ويل: اې سراقه! ما همدا اوس له ساحل سره څو کسان وليدل، فکر کوم چې هغه محمد(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) او ملګري يې دي. سراقه وايي: زه پوه شوم چې دا کسان همدوی دي، خو ده ته مې وويل: دا هغوی نه شي کيدلای، او دا تا چې څوک ليدلي هغه فلانی او فلانی دي چې زمونږ له مخې تير شول، بيا څه وخت همدلته مجلس کې پاتې شوم، وروسته پاڅيدم او کور ته لاړم. خپلې وينځې ته مې امر وکړ، چې آس وباسي او هلته د غونډۍ شا کې راته انتظار وکړي. ما خپله نيزه راواخيسته او د کور له وروستنۍ دروازې نه پداسې حال کې ووتلم چې د نيزې څوکه مې په ځمکه لګوله او پورتنۍ خوا مې يې هم کښته نيولې وه، آس ته ورغلم ورباندې سپور شوم او پوه شوم چې هغه مې د معمول په شان په منډو منډو مخکې وړي ان تر دې چې دوی ته ورلنډ شوم، دلته مې آس بودري وکړه او زه ورنه راپريوتم، بيا راپورته شوم توبرې ته مې لاس کړ او د فال غشي مې ورنه راوايستل، فال مې ورباندې واچوه چې آيا دوی ته زيان ور ورسوم او که نه؟ نو هغه غشی راووت چې زما خوښ نه ؤ، خو ددې غشي پروا مې ونکړه، په آس سپور شوم او په چټکۍ سره يې دوی ته دومره ورلنډ کړم چې د رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) د قرائت آواز مې واوريد. هغه خپل قرائت کاوه هيڅ بل طرف ته يې التفات نه کاوه، خو ابوبکر (رضي الله عنه) ډير يوې خوا بلې خواته کتل، پدې وخت کې زما د آس پښې ان ترګونډو په ځمکه کې ښخې شوې زه هم ورنه ولويدم، بيا مې آس وواهه او هغه په ډير مشکل سره خپلې پښې راوايستلې کله چې نيغ ودريد، نو د پښو له نښانو نه يې د دود په شان ګرد پورته شو، دلته مې بيا په غشو فال واچوه، بيا هغه غشی راووت چې زما نه ؤ خوښ، نو د امان غږ مې ورباندې وکړ.

---

[1]. صحيح بخاري له انس (رضي الله عنه نه ۱/ ۵۵۲

هغوی راته ودريدل، ما په آس پښه ورواړوله او ورغلم او هغه وخت چې زه له دوی نه منع کړی شوی وم، نو دا خبره مې په زړه کې پخه شوې وه چې رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) به غالب او امر به يې برلاسی کيږي، ورته ومې وويل: ستا قوم ستا په سر جايزه ټاکلې ده، او لدينه مې هم خبر کړ چې خلک دده په هکله څه نيت او اراده لري، او خپل زاد او توښه مې ور وړاندې کړه، خو هغوی څه ورنه وانخستل نه يې تکليف راکړ او نه يې د څه سوال رانه وکړ، يوازې دومره يې راته وويل: چې حال پټ ساته. ما ورته وويل: د امن خط راته وليکه، نو عامر بن فهيره ته يې د خط ليکلو امر وکړ، هغه د پوستکي په يوه ټوټه خط وليکه، بيا رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) مخ په وړاندې لاړ.[1]

پدې هکله له ابوبکر (رضي الله عنه) نه هم يو روايت را نقل شويدی هغه وايي: مونږ روان شوو، او خلک زمونږ په لټه کې وو، خو له سراقه پرته هيچا هم و نه موندو، او کله چې د سراقه آس را لنډ شو ما وويل: يا رسول الله! دا دی دا پلټونکی راورسيده ده وفرمايل: (**لا تحزن ان الله معنا**)[2]

سراقه بيرته مکې ته ستون شو او خلک لا په تپ او تلاش کې وو، ده ورته وويل: ما مکمل او پوره احوال درته راوړی، نور دلته ستاسې هلې ځلې بې ګټې دي، پدې خوا کې چې څه لازم وُ هغه وشول. (او پدې سره يې خلک راستانه کړل، نوموړی د ورځې په پيل کې د هغوی په لټه پسې وتلی وُ،خو د همدې ورځې په پای کې د هغوی نګهبان او ساتونکی ګرزيدلی وُ.[3].

۴- <u>پدې سفر کې يې</u> د خزاعيه کورنۍ د ام معبد نومې ښځې په دوو خيمو هم ګذر وشو. نوموړې مشهوره او تکړه ښځه وه، زياتره به څرخ په لاس د خيمې په خوله کې ناسته وه، او چې څوک به ورتلل نو د خوراک او څښاک بند وبست به يې ورته کاوه. رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) او ملګري يې د څه شي غوښتنه ورنه وکړه، دې ورته وويل: قسم په خدای که مو څه درلودلی نو ستاسې په ميزبانۍ کې به مو کوتاهي نه وای کړې، زمونږ ميږې هم ډيرې ليرې دي. دغه کال هم ډير وچ وُ.

---

(1). نفس المصدر ۵۵۴/۱. د بني مدلج مېنه رابغ ته نژدې وه، سراقه هغه وخت ورپسې ووت چې دوی له قديد نه بر ختلي وو. په غالب ګومان سره سراقه د دوی د سفر په دريمه ورځ ورپسې وتلی وُ.

(2). صحيح البخاري ۵۱۲/۱

(3). زاد المعاد ۵۳/۲

رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) وکتل او د خیمې په کنج یې یوه میږه ولیده، نو یې وفرمایل: [ما هذه الشاة یا أم معبد؟]دا څه ډول میږه ده؟ اې ام معبد! دې وویل: دا د ډیرې کمزورۍ له امله له رمې پاتې شویده. هغه (صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) وفرمایل: [هل بها من لبن؟]شیدې کوي؟ دې وویل: دا له پښو لویدلې او شیدې؟! ده ورته وفرمایل: [أتأذنين لی أن أحلبها؟] اجازه راکوې چې ویې لوشم؟ دې وویل: مور او پلار مې له تا قربان، که لازم وینې نو ویې لوشه!

نو رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) پخپل مبارک لاس د هغې غولانځه مسحه کړه، بسم الله یې وکړه او دعا یې ولوستله، یو ځل یې غولانځه ډکه شوه، او پښې یې سره لیرې کړې، نو رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د ام معبد هغه لوی لوښی وغوښت کوم چې د یوه ټولګي لپاره بس وُ، میږه یې پکې ولوشله تر څو په مورګو یې ځګ ودرید، بیا یې ام معبد ته شیدې وروڅښلې تر څو ښه مړه شوه، بیا یې خپل ملګري ماړه کړل په پای کې یې پخپله وڅښلې، او ورپسې یې میږه بیا ولوشله تر څو لوښی ښه ډک شو او له دې سره یې پریښود او دوی وخوځیدل.

لږ ساعت وروسته ابو معبد له خپلو کمزوریو، سستو او ډنګرو وزو سره راورسید، او کله یې چې شیدې ولیدلې، حیران شو، خپلې ښځې ته یې وویل: دا شیدې له کومه شوې؟ رمه خو لیرې ده، او په کور کې هم شیدې ورکوونکې میږه نشته. دې ورته وویل: قسم په خدای همدا اوس یو ډیر مبارک سړی رانه رخصت شو، چې دا او داسې خبرې یې وې، او حال یې داسې او داسې وُ. ده وویل: هو فکر کوم دا هغه څوک دی چې قریش یې لټوي، نو اې ام معبد راته معرفي یې کړه او نښې یې راته ووایه! دې هم پخپله بلیغه ژبه د هغه عظیم صفات داسې ورته بیان کړل که ته به وایې همدا اوس یې په مخ کې ولاړ دی، د کتاب په پای کې به دا بیان رانقلوو. ابو معبد وویل: قسم په خدای چې دا د قریشو هماغه ملګری دی د کوم په هکله چې دوی مختلفې خبرې کوي، زه د هغه د ملګرتیا اراده لرم، او د امکان په صورت کې به حتماً دا کار سرته رسوم.

له بلې خوا هلته مکه کې یو داسې آواز پورته شو چې ټول خلک یې اوري، خو ویونکی یې نه ښکاري دا آواز داسې وُ:

جزی الله رب العرش خیر جزائه رفقین حـــلا خیمـــتي ام معبد

هـــما نـــزلا بالبر و ارتحـــلا به و افلـــح من امسی رفیق محمد

فيـــا لقصـــي ما زوی الله عنکم به من فعال لا يجازی و سؤدد
ليهـــن بني کعـــب مـــکان فتاهم و مقعـــدها للمـــؤمنين بمرصد
سلـــوا اختـــکم عن شاهٔا و انائها فانکم ان تســـالوا الشاة تشهد

[ ترجمه: د عرش مالک الله دې دوو هغو ملګريو ته بهترينه جزا او بدله ورکړي کوم چې د ام معبد خيمې ته راغلي وو، دوی دواړه هلته په خير او نيکۍ راغلي وو او بيرته په خير او نيکۍ سره ولاړل، او بريالي دي هغه څوک چې د محمد (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ملګرتيا کوي، اې قصي! الله تعالی له هغه سره څومره بې مثاله کارنامې او سرداری له تاسې نه يووړه (او يا: مبارکې دې وي تا قصي ته چې الله (جل جلاله) د محمد (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) په واسطه له تاسې نه يې ساري سرداري وانه خستله). بنو کعب ته دې د دوی د سياه سرې کور او د مؤمنانو د نګهداشت ځای مبارک وی، تاسې له خپلې خور نه ددې د ميږې او لوښي په هکله پوښتنه وکړئ، که تاسې له هغه ميږې نه هم وپوښتئ نو هغه به هم شاهدي ووايي.]

اسماء (رضي الله عنها) وايي: مونږ نه و خبر چې رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) کومې خوا ته تللی، تر څو د مکې له لانديني برخی نه يو جن (پيری) راغی او دا پورتني ابيات يې وويل، خلک ورپسې ورغلل او ورپسې ورتلل آواز يې اوريده خو هغه يې ليده نه، تر څو هغه د مکې له پورتنۍ برخې نه ووت. اسماء (رضي الله عنها) وايي: کله مو چې دا خبرې واوريدلې نو پوه شوو چې رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) د مدينې لوري ته تللی دی.(۱)

**۵**- رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) د لارې په اوږدو کې له بريده بن حصيب اسلمي سره هم مخامخ شوی ؤ. نوموړی د خپل قوم مشر ؤ او د قريشو له طرفه د اعلان شوې لويې جايزې ګټلو په طمعه د رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) او ابوبکر (رضي الله عنه) په لټه پسې وتلی ؤ، خو کله چې له رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) سره مخ شو او د هغه مبارکې خبرې يې واوريدې، نو په همغه ځای د خپل قوم له اويا کسانو سره يو ځای په اسلام مشرف شو، بيايې خپله پګړۍ را خلاصه کړه او د بيرغ په څير يې د نيزې په څوکه کې ټينګه کړه، پدې سره يې دا اعلانول غوښتل چې دا دی د امن او سلامتيا پاچا را روان دی تر څو دا دنيا په

(1). زاد المعاد ۵۳/۲ - ۵۴

عدل او انصاف سره ودانه کړي.[۲]

**وعن عبد الله بن بريدة أن النبي صلى الله عليه وسلم كان يتفاءل ولا يتطير، فركب بريدة في سبعين راكبًا من أهل بيته من بني سهم، فلقى النبي صلى الله عليه وسلم، فقال له: [ممن أنت؟] قال: من أسلم، فقال: لأبي بكر: سلمنا، ثم قال: [مِمنْ بني مَنْ؟] قال: من بني سهم. قال: [خرج سهمك].**

**له عبد الله بن بريده نه روايت دی چې رسول (صلى الله عليه وسلم) به بد شګوني نه کوله هر څه يې په نيک فال نيول، د خپل قوم بني سهم له اويا سپرو کسانو سره ووت، کله چې له رسول (صلى الله عليه وسلم) سره مخ شو، پوښتنه يې ترې وکړه: له کوم قوم نه يې؟ ده وويل: له اسلم نه. رسول (صلى الله عليه وسلم) وفرمايل: په امن شوو. بيا يې وفرمايل: له کومې کورنۍ نه. ده وويل: له بني سهم نه. رسول (صلى الله عليه وسلم) وفرمايل: برخه دې ووته.**

۶- د هجرت په لاره زبير (رضي الله عنه) هم د رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) په ملاقات مشرف شو، زبير (رضي الله عنه) چې له يوې ألې مسلمانو تاجرانو سره له شام نه راګرزيدلی ؤ، رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) او ابوبکر (رضي الله عنه) ته يو يو جوړ سپينې جامې هديه کړې.[۱]

## قبا ته د رسول الله(ﷺ) تشريف راوړل

د د وشنبې په ورځ د نبوت د څوارلسم او د هجرت لومړني کال د ربيع الاول په اتمه چې د (۶۲۲م) کال د سپتمبر له (۲۳) مې سره سمون خوري رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) قبا ته ورسيد.[۲]

عروه بن الزبير وايي: په مدينه کې مسلمانانو له مکې نه د رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) د روانيدو خبر اوريدلی ؤ، نو هر سهار وختي به د حره (ډاګ) په خوا

---

(2). رحمة للعالمين ۱۰۱/۱

[۱]. دا له عروة بن الزبير نه د امام بخاري روايت دی ۵۵۴/۱

[۲]. رحمىٰ للعالمين ۱۰۲/۱. پدې ورځ د رسول الله (ص) عمر پوره **۵۳** کاله ؤ او که د نبوت پيل دعام الفيل د (۴۱) کال د ربيع الاول له ۹ نه ومنو، نو پدې ورځ د نبوت پوره ديارلس کاله تير شوي ؤو او که د هغوکسانو رايه ومنو چې وايي رسول الله (ص) د عام الفيل په (۴۱) کال د رمضان په مياشت کې په نبوت مشرف شوی ؤ، نو پدې ورځ ( قباء ته رسيدو په ورځ) د نبوت (۱۲) کاله پنځه مياشتې (۱۸) يا (۲۲ ) ورځې تيرې شوې وې.

راوتل او هلته به یې تر ټکنده غرمې پورې د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) انتظار یوست. یوه ورځ هغوی له ډیر انتظار وروسته بیرته کورونو ته ستانه شول، پدې وخت کې یو یهودی د کوم شي د کتلو لپاره خپل برج ته ختلی ؤ که ګوري چې رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) او ملګري یې په سپینو جامو کې چې د سپوږمۍ په شان رڼا کوي را روان دي، نو یو ځل یې له خولې نه په لوړ آواز داسې الفاظ ووتل: اې عربو! دا دی ستاسې هغه پلار چې تاسې یې په انتظار کې وئ! ددې آواز په اوریدو سره مسلمانان ټول راپورته شول خپلې وسلې یې واخیستې او د خپل رهبر استقبال ته ور روان شول.[1]

ابن قیم وایي: په همدې وخت کې په بني عمرو بن عوف (د قبا اوسیدونکي وو) کې هم د تکبیر آوازونه اوچت شول. مسلمانانو له ډیرې خوشالۍ نه په لوړ آواز تکبیرونه ویل او دده مبارک استقبال ته ور روان وو، تر څو حضور ته ورسیدل او د نبوت په تحیه (سلام) سره یې دده استقبال وکړ او لکه د بوراګانو په شان له خپل لاربنود نه راتاو وو، او رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د وقار او عظمت د لوی غر په شان د دوی په مینځ کې تشریف درلود او د الله تعالی له خوا نه دا آیتورباندې نازل شو[2] :

((...فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ مَوْلاهُ وَجِبْرِيلُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمَلائِكَةُ بَعْدَ ذَلِكَ ظَهِيرٌ)) (التحریم-٤) [نو بیشکه الله همغه مدد ګار دی د هغه (نبي) او جبریل او صالح د مومنانو (یې هم مدد ګاران دي) او ملائکې (یې هم) وروسته له دغه (مددګارۍ نه) مددګارانې دي.]

عروه بن الزبیر وایي: له خلکو سره له لیدو کتو وروسته رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) له خلکو سره یو ځای ښي طرف ته لاړ او د بني عمرو بن عوف په مېنه کې یې واړول. دا د ربیع الاول میاشت او د دوشنبې ورځ وه.

دلته ابوبکر (رضي الله عنه) د خلکو د هرکلي لپاره ودرید او رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) چوپ ناست ؤ او هغه انصار (رضي الله عنهم) چې رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) یې مخکې نه ؤ لیدلی هغوی به د سلام او ښه راغلاست پخاطر مستقیما ابوبکر (رضي الله عنه) ته ورتلل، تر څو په رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) لمر راغی، نو ابوبکر (رضي الله عنه) خپل څادر

[1]. صحیح البخاري ۵۵۵/۱
[2]. زاد المعاد ۵۴/۲

و اخيست او په رسول (صلی الله عليه وسلم) يې سيوره جوړه کړه، پس لدينه خلکو رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) وپيژانده.[1]

مدينه د استقبال او هرکلي پخاطر ټوله شور او زوږ اخيستې وه، او داسې يوه ورځ وه چې د مدينې په تاريخ يې ساری نه موندل کيږي. پدې ورځ يهودانو هم د نبي حبقوق (عليه السلام) د هغه زيري ريښتينوالی په سترګو ليده چې ويل به يې: الله د جنوب تيمان له لوري او هغه چې قدوس دی د فاران د غرونو له خوا راغلی.[2]

رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) په قبا کې د کلثوم بن هدم او په بل روايت د سعد بن خيثمه په کور کې واړول، خو لومړنی قول راجح دی.

علي (رضي الله عنه) درې ورځې نور په مکه کې پاتې شو، تر څو يې له رسول الله (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) سره د خلکو ايښودل شوي امانتونه ېې ټول خپلو خاوندانو ته تسليم کړل. بيا يې په پليو پښو د هجرت لار ونيوه، له مکې مکرمې نه د مدينې منورې په لور وخوځيد تر څو په قبا کې رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) او ابوبکر (رضي الله عنه) سره د کلثوم بن الهدم په کور کې يو ځای شو.[3]

رسول الله (صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) په قبا کې څلور ورځې (دوشنبه، سه شنبه، چارشنبه، پنجشنبه)[4] تيرې کړې او دلته يې د قباء جومات جوړ کړ او لمونځ يې پکې ادا کړ. دا دده له نبوت نه وروسته لومړنی جومات دی چې تهداب يې په تقوی سره ايښودل شويدی، تر څو په پنځمه يعنی د جمعې په ورځ د الله تعالی د امر مطابق په خپله سپرلۍ چې ابوبکر يې رديف (ملګری) ؤ سپور شو، خپلو ماما خيلو (بني نجار) ته يې اطلاع ورکړه، هغوی له تورو سره ورته راغلل او بيا د مدينې په لور ورسره روان شول. او کله چې بني سالم بن عوف ته ورسيدل، نو د جمعې د لمانځه وخت شو، رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) د بطن وادي په هغه ځای کې د

---

(1). صحيح البخاري ۵۵۵/۱

(2). صحيفۍ حبقوق بايبل (۳: ۳)

(3). زاد المعاد ۵۴/۲. ابن هشام ۴۹۳/۱. رحمت للعالمين ۱۰۲/۱

(4). دا د ابن اسحاق روايت دی. ابن هشام ۴۹۴/۱وګوره، علامه منصور پوري هم همداروايت غوره ګڼلی دی . رحمۍللعالمين ۱۰۲/۱ وګوره، په بخاري کې راځي چې رسول الله (ص) په قبا کې (۲۴) ورځې تم شوی ؤ (۱-۶۱) په بل روايت له لسو ورځو نه څو شپې زياته موده (۵۵۵/۱) او په دريم روايت (۱۴) ورځې پاتی شوی ؤ، ابن قيم دا (۱۴) ورځې غوره ګڼی او پخپله وايي چې رسول الله (ص) په دوشنبه قباته رسيدلی او د جمعی په ورځ ورنه روان شويدی. ( زاد المعاد ۵۴/۲-۵۵) او ښکاره ده چې د دوشنبې او جمعی تر مينځ له لسو ورځو زياتی نه وی بيله دې چې د وتو او رسيدو دوی ورځې ورسره حساب کړو او پدې سره هم له (۱۲) ورځو نه شی زياتيدای البته په دوو هفتو کې.

جمعې لمونځ ادا کړ چيرته چې اوس يو جومات ورباندې جوړ شويدی، او ددې لمونځ کوونکو شميره سلو تنو ته رسيده[1].

## رسول الله(ﷺ) په مدينه کې

د جمعې له لمانځه وروسته رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) مدينې ته تشريف يوړ، او له همدې ورځې نه د يثرب نوم مدينه الرسول شو، او اوس د اختصار په توګه مدينه ورته ويل کيږي. دا يوه تاريخي او بې ساري ورځ وه، د مدينې ټولې لارې او کوڅې د تکبير، تحميد او تقديس نارو په سر اخيستې وې.
او د انصارو لوڼو له ډيرې خوشالۍ نه دا ابيات ويل:

طلع البـــدر علينا من ثنيات الوداع
وجب الشكر علينا مـــا دعا لله داع
ايهـــا المبعوث فينا جئت بالامر المطاع

[ترجمه: د جنوبي لوري له غرو (ثنيات وداع) نه په مونږ باندې د څوارلسمې سپوږمۍ راوختله. په مونږ تر هغې د الله شکر واجب دی، تر څو بلونکی د خدای لورته بلنه کوي. اې مونږ ته راليږلی شويه! دا ستا د حکم اطاعت فرض دی.][2]
انصار (رضي الله عنهم) که څه هم د زياتې سرمايې خاوندان نه وو، خو هر يوه يې دا هيله او آرزو درلوده چې رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) يې ميلمه شي، او دده په کورکې واړوي، نو په هر يوه کور به چې تيريده د کور مالک به يې د اوښې واګې نيولې او ورته ويل به يې: تشريف راوړئ دلته زيات تعداد ډير ساز او سامان،

---

[1].صحيح البخاري ۵۵/۱_۵۶۰. زاد المعاد ۵۵/۲. ابن هشام ۴۹۴/۱. رحمۍ للعالمين ۱۰۲/۱.
[2]. ابن قيم ليکي چې دا اشعار له تبوک نه د رسول الله (ص) د راستنيدو په وخت کې ويل شويدی او وايي څوک چې ګمان کوي دا اشعار مدينې ته د رسول الله (ص) د داخليدو په وخت کې ويل شوي هسې بې اساسه خبره کوي ( زاد المعاد ۱۰/۱/۳ خو ابن قيم پدې هکله څه قوي دليل ندی وړاندې کړی. او دده په خلاف منصور پوري دا خبره ثابته او راجحه بولي چې وايي دا اشعار مدينې ته د داخليدو په وخت کې ويل شويدي او له ده سره د خپلې خبرې د اثبات لپاره کافي او معقول دلايل هم موجود دي چې ردول يې ممکن ندي . رحمۍ للعالمين ۱۰۶/۱ وګوره.

وسله او حفاظت ستاسې په خدمت کې دي. رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) به ورته فرمایل: **[خلوا سبیلها فإنها مأمورة]**اوښه پرېږدئ دا مأموره شویده! او ښه روانه وه تر څو د مسجد نبوي ځای ته ورسیده او هلته چو شوه، خو رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ورنه کوز نه شو، اوښه پاڅیده لږ وړاندې لاړه، بیایې یوې خوا بـلې خواته وکتل بیرته راوګرځیده او پخپل لومړني ځای چو شوه. رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ورنه کوز شو. دا د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د ماما خیلو بني النجار ځای ؤ، او دا د الله له لوري اوښې ته توفیق ؤ ځکه ده غوښتل چې د خپلو ماما خیلو د عزت او احترام پخاطر له دوی سره واړوي، پدې وخت کې خلکو رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ته له دوی سره د تلو پیشنهادونه کول، خو ابو ایوب الانصاري (رضي الله عنه) وار ړومبی کړ او د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) بار او کجاوه یې خپل کورته یووړه، نو رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) وفرمایل: **[المرء مع رحله]**. مسافر له خپل بار او کجاوې سره وي. او اسعد بن زراره راغی او د اوښې پړی یې ونیوه او له ځان سره یې بوتلله او له همده سره وه.[1]

امام بخاري له انس نه روایت کوي وایي: رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) وفرمایل: **[أي بیوت أهلنا أقرب؟]** . زمونږ د خلکو نه دکوم یوه سړي کور ډیر نژدې دی؟ ابو ایوب ورته وویل: **فقال أبو أيوب: أنا يا رسول الله ، هذه داری، وهذا بأبي،** زما کور ډیر نژدې دی یا رسول الله ! دا مې کور او دا یې دروازه ده. نو رسول الله (صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ورته وفرمایل: **قال: [فانطلق فهيئ لنا مقيلًا]** درځه، او زمونږ لپاره د قیلولې (د غرمې په وخت د خوب) ځای برابر کړه. هغه عرض وکړ: **قال: قوما على بركة الله** تاسې دواړه مهرباني وکړئ د الله په برکت سره[2].

څو ورځې وروسته د رسول (صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) بي بي ام المؤمنین سوده او دواړه لوڼې یې فاطمه او ام کلثوم، او اسامه بن زید او ام ایمن له عبدالله بن ابوبکر چې عائشه او د ابوبکر نوره کورنۍ یې را ایستلې وه را ورسیدل (رضي الله

---

[1]. رحمة للعالمين ۱۰۲/۱ زاد المعاد ۵۵/۲

[2]. صحیح البخاري ۵۵۲/۱

عنهم اجمعين) خو حضرت زينب (رضي الله عنها) هملته په مکه کې له ابو العاص سره پاتې شوه ځکه هغه اجازه نه ورکوله، تر څو له بدر وروسته را مهاجره شوه.[٣]
عائشه (رضي الله عنها) وايي: کله چې رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) مدينې ته ورسيد، هلته ابوبکر او بلال (رضي الله عنه) سختې تبې ونيوله، زه ورغلم او ورته ومې ويل: پلار جانه څنګه يې؟ او بلاله ته څنګه يې؟ دا وايي چې ابوبکر (رضي الله عنه) به د تبې په وخت کې داشعر وايه:

**كل امرئ مصبح في اهله و الموت ادنى من شراك نعله**

هر چا ته پخپل کور کې سهار په خير (صبح بخير) ويل کيږي، پداسې حال کې چې مرګ يې د څپلۍ له تسمې نه هم ورلنډ دی. او وايي کله به چې د بلال حالت لږ غوندې ښه شو نو پخپل ښکلي آواز سره به يې داسې ويل:

**الا ليت شعري هل ابيتن بواد و حولي اذخر و جليل**

**وهل اردن يوما مياه مجنة وهل يبدون لي شامة و طفيل**

[کاشکي خبر وای چې کومه شپه په وادي (مکه) کې تيرولی شم او شا او خوا مې اذخر او جليل بوټي وای او آيا کومه ورځ به مې د مجنی په چينه ګذر شي، او آيا د شامې او طفيل غرونه به بيا ووينم.] عائشه (رضي الله عنها) وايي: زه بيا رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ته ورغلم او لدې حال نه مې خبر کړ. نو رسول (صلی الله عليه وسلم) د اسې وفرمايل: **[اللهم العن شيبة بن ربيعة، وعتبة بن ربيعة، وأمية بن خلف، كما أخرجونا من أرضنا إلى أرض الوباء]**.

خدايه! په شيبه بن ربيعه او عتبه بن ربيعه، او اميه بن خلف لعنت وکړې، هغوی مونږ له خپل وطن نه د رنځونو ځمکې ته راوشړلو. ثم قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: **[الله م حبب إلينا المدينة كحبنا مكة أو أشد، وصححها، وبارك في صاعها ومدها، وانقل حماها فاجعلها بالجُحْفَة]**. يا الله ته زمونږ په زړونو کې د مکې د محبت په شان او يا له هغې نه هم زيات د مدينې محبت واچوې، اې خدايه! ته د مدينې فضا او هوا صحيح او صحت ورکوونکې وګرزوې، او ددې ځای د غله جاتو په پيمانو کې برکت واچوې، او ددې

---

[٣]. زاد المعاد ۲/٥٥

Comment:

ځای تبه له دې ځایه اوچته کړې او په جحفه کې یې و ګرځوې [1].
الله تعالی د رسول الله (صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) دعا قبوله کړه د مدینې حالات یې بدل کړل. دلته د دعوت مکي دور پای ته ورسید ، او د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د ژوند د لومړۍ برخې حالات او واقعات مو هم همدلته تر نظر تیر کړل.

---

۱. صحیح البخاري ۱/۵۸۸ - ۵۸۹

# د مدينې ژوند

## مدني دور په دريو مختلفو مرحلو ويشلای شو:

۱- لومړنۍ مرحله چې مختلف مشکلات او فتنې پکې راولاړې شوې وې، له يوې خوا کورني خنډونه بې شميره وو، له بلې خوا دښمنانو له بهر نه د مدينې د ختمولو کوښښونه کول. دا مرحله د حديبيې په سوله يعنی د شپږم هجري کال د ذي القعدې په مياشت کې پای مومي.

۲- له شرک او بت پرستانو سره د اوربند، او اسلام ته د پاچايانو د رابللو مرحله، چې د مکې په فتحه يعنی د اتم هجري کال د رمضان په مياشت کې پای ته رسيږي.

۳- د الله په دين کې د ډلو ډلو خلکو داخليدلو، او مدينې ته د بيلابيلو اقوامو او قبايلو د راتګ مرحله، او دا د رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) د ژوند تر پايه يعنی د يوولسم هجري کال تر ربيع الاول پورې ادامه مومي.

لومړنۍ مرحله

# د هجرت په وخت کې د مدینې حالات

هجرت یوازې له شر، فتنې او ملنډو نه د نجات په معنی نه ؤ، بلکه ددې تر څنګ هجرت په نوي او آرام وطن کې د یوې نوې ټولنې د جوړېدو ګډکوښښ او پیغام هم ؤ. او همدا وجه وه چې په هر مسلمان باندې دا فرض شول چې د خپل توان په اندازه ددې نوي وطن په جوړېدو کې برخه واخلي، او ددې وطن په ترقۍ، آرامۍ او دفاع کې خپل ټول زور او توان په کار واچوي.

بیشکه چې رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ددې نوې ټولنې یوازینی امام، مشر، او لارښود و، او د ټولو امورو او کارونو واګې په بشپړه توګه د همده په لاس کې وې.

رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) په مدینه کې له دریو مختلفو او بېلا بېلو داسې قومونو سره مخامخ ؤ چې حالاتو یې یو له بل سره ډېر توپیر درلود، مسائل او مشکلات یې هم سره بېل او ګوښې وو، دا درې قومونه عبارت وو له:

١ـ نیک، مکرم او غوره اصحاب (رضي الله عنهم).

٢ـ د مدینې هغه اصلي اوسیدونکي چې لا تر اوسه یې له شرک نه نجات نه ؤ موندلی.

٣ـ یهود.

الف: د اصحابو (رضي الله عنهم) له هغه مسایلو نه چې رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ورسره مخ ؤ، یوه هم دا مسئله وه چې دلته د مدینې حالات د مکې له حالاتو نه بالکل جدا او بېل وو، ځکه هغوی په مکه کې که څه هم د یوې کلمې او یوه هدف درلودونکي وو، خو په بېلابېلو کورونو کې ویشل شوي، رټل شوي، غم ځپلي او مظلومان وو، د هیڅ شي واک او اختیار یې نه درلود، ټول کارونه د دوی د دښمنانو په لاس کې وو، هغوی هلته ددې وس او توان نه درلود چې د ځانګړیو موادو او اصولو درلودونکي داسې یوه نوې اسلامي ټولنه جوړه کړي چې له همغو اصولو پر ته په نړۍ کې هیڅ یوه انساني ټولنه په پښو نه شي دریدای، او همدا علت دی چې مکي سورتونه یوازې اسلامي اصول او مبادئ په ګوته کوي، داسې

امرونه نه کوي چې هر څوک په ګوښې توګه عمل وربانديې کولی شي، او ورسره د نیکو اخلاقو، خیر او نیکۍ لورته بلنه او له رذائلو او بد اخلاقیو نه منع کوي.
خو په مدينه کې وضعه بدله وه، دلته له لومړنۍ ورځې نه مسلمانان د خپل واک او اختيار خاوندان وو، هيڅا وربانديې تسلط او واکمني نه درلوده. نو اوس ددې وخت ؤ چې هغوی نور بايد د ترقۍ، آبادۍ، اقتصاد، سياست، حکومت، سولې، جنګ، او نورو ژوندينو امورو په هکله فکر وکړي، او نور دا په کار وه چې دوی ته حلال، حرام، عبادت ، اخلاق او نور مسايل په مفصله توګه بيان او توضيح کړای شي.
اوس ددې وخت رارسيدلی ؤ چې هغوی يوه بيله ټولنه جوړه کړي، داسې اسلامي ټولنه چې په هر څه کې له جاهلي ټولنې نه مختلفه، او د بشري نړۍ له هرې بلې ټولنې نه اوچته او ځانګړې وي.او د هغه اسلامي دعوت ممثله او نماينده ټولنه وي د کوم په لار کې چې مسلمانانو پوره لس کاله ډول ډول کړاونه او تکليفونه ګاللي وو.
او دا خو څرګنده ده چې ددې ډول يوې ټولنې جوړول د ورځې، مياشتې او کال خبره نده، بلکه دا اوږد وخت په کار لري تر څو تشريع او قانون جوړول له تربيې، تعليم او عملي تمرين سره خوا په خوا په تدريجي توګه د تکامل پړاو ووهي. الله تعالی پخپله ددې تشريع کفيل ؤ، او د رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) وظيفه ددې قانون تنفيذ او تطبيق او دې لور ته لارښوونه او په همدې قانون سره سم د مسلمانانو روزنه وه: ((هُوَ الَّذي بَعَثَ فِي الأُمِّيِّينَ رَسُولاً مِنْهُمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمْ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ)) ( الجمعة: ٢) [دغه (الله) هغه ذات دی چې پورته کړی (ليږلی يې دی) په ايمانو ناپوهانو کې يو رسول (محمد (صلی الله عليه وسلم) له دوی څخه چې لولي پر دوی باندې آيتونه ددې (قرآن) او پاکوي دوی (له شرکه له نورو رذيله (اخلاقو) او ښيي دوی ته کتاب (قرآن) او احکام (د قرآن)...]
د اصحابو (رضي الله عنهم) زړونه پخپل رهبر او قانون پورې تړلي وو، د هغه احکام به يې په ډيره خوشالۍ سره پلي کول ((وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَاتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَانًا)) (الانفال: ٢) [او کله چې ولوستی شي پر دوی باندې آيتونه (کلام) د الله نو زياتوي ( پياوړی کوي) دغه (آيتونه) دوی لره ايمان.]
او څرنګه چې دا مسائل زمونږ د بحث موضوع نده، نو ځکه يوازې هغو امورو ته اشاره کووچې يادول يې ضروري بولو.

په هر حال دا د مسلمانانو له هغو لویو مسایلو نه یوه مساله ده چې رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ورسره مخ ؤ، او په حقیقت کې دا په پراخه پیمانه سره د محمدي رسالت او اسلامي دعوت هدف او مقصد هم ؤ. خو دا مساله عاجله نه بلکه مستقله او دایمي مساله وه، هلته داسې نور مسایل هم وو چې عاجل او فوري حل او اقدام ته یې اړه درلوده.

په مدینه کې د مسلمانانو ټولګی له دوه ډوله خلکو نه جوړ شوی ؤ:

یوه ډله انصار وو چې د خپلې ځمکې وطن او مال خاوندان وو، او پدې هکله د دوی فکر او غم د هغه چا د فکر او غم په اندازه ؤ چې له خپل عیال او اولاد سره یو ځای د امن په کور کې شپې او ورځې تیروي، خو دومره وه چې د دوی تر مینځ ډیره زړه او کلکه دښمني موجوده وه. بله ډله هغه مهاجرین وو چې هیڅ یې هم نه درلودل ټول یې له لاسه وتلي وو، یوازې ځانونه یې مدینې ته رارسولي وو او بس، دلته یې نه ځای و نه ځایګی، نه د کار او کسب درک ؤ، او نه یې دومره څه درلودل چې خپل ژوند ورباندې روان کړي. ددې مهاجرینو تعداد هم ډیر ؤ، او ورځ په ورځ پسې ډیریده، ځکه دا اعلان شوی و چې هر مسلمان باید مکه پریږدي او مدینې ته هجرت وکړي. او دا هم په ډاګه ده چې د مدینې اقتصادي بنسټ هم دومره پیاوړی نه ؤ چې دا ډول مشکلات وزغملی شي، نو همدا وه چې یو ځل یې اقتصادي حالت مخ په خرابیدو شو، او په همدې سختو شرایطو کې اسلام دښمنه ځواکونو له بهر نه له مدینې سره د اقتصادي پریکون (بندیز) او دیته ورته لار او پالیسي غوره کړه او پدې سره د وارداتو اندازه کمه او مشکلات نور پسې زیات او حالات کړکیچن شول.

<u>ب:</u> دوهم قوم یعنی د مدینې اصلي اوسیدونکي مشرکان – دوی پر مسلمانانو څه واک او حاکمیت نه درلود، ځنې یې داسې وو چې له شکوکو سره مخ وو او د پلرنی دین پریښودو ته یې زړه نه شوی ښه کولی، خو له مسلمانانو او اسلام سره یې کینه او دښمني هم نه درلوده، بالاخره لږ وخت وروسته په اسلام مشرف شول.

په مشرکینو کې ځنې داسې هم وو چې زړونه یې له رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) او مسلمانانو سره له بغض او دښمنۍ نه ډک وو، خو په عین وخت کې یې ددې جرات او همت هم نه درلود چې مخامخ مقابله ورسره وکړي، او دې حالاتو دیته مجبور کړي وو چې له مسلمانانو سره د مینې او خلوص ښکارونه وکړي، ددې ډلې مشرکانو مشر عبدالله بن ابي ؤ. اوس او خزرج چې د هیچا په مشرۍ نه وو راضي شوی د بعاث له جنګ نه وروسته یې پدې اتفاق کړی ؤ چې نوموړی به خپل مشر ټاکي. او عملاً یې دده د پاچایی لپاره تیاري پیل کړې وه، قیمتي مرۍ او غمي

يې راټول کړي وو تر څو تاج ورته جوړ کړي او په تخت يې کينوي، خو يو ځل رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) مدينې ته تشريف راوړ او ټول قوم د هغه په خوا ورمات شو، نو له عبدالله بن ابي سره دا عقيده پيدا شوه چې رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) دده تخت او پاچايي په لغته ووهله. او له همدې امله يې سخته کينه ورسره درلوده، خو کله چې پوه شو نور شرک دده په ګټه ندی او حالات داسې دي چې د شرک په واسطه يې ډيرې دنيوي ګټې له لاسه وزي، مجبور شو چې د بدر له غزا نه وروسته په خوله اسلام راوړي، خو زړه يې هماغسې له کفر او شرک نه ډک ؤ. او هر کله به يې چې لاس بر شو نو د رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) او مسلمانانو په خلاف به يې له هيڅ ډول فريب او غدر نه ډډه نه کوله. له ده سره هغه کسان هم ملګري ووکوم چې دده په ناجوړه شوې پاچايۍ کې لوی لوی منصبونه ورته په نظر کې نيول شوي وو. هغوی به دده د شيطاني پلانونو او توطئو په پلي کولو کې مرسته ورسره کوله، او کله کله به يې له ځينو واقعاتو او پيښو او حتی له ځينو کمزورو او کم عقلو مسلمانانو نه هم د خپلو شومو اهدافو د تحقق په لاره کې ګټه اوچتوله.

ج: دريم قوم (يهودان): هغه چې د آشوريانو او روميانو له ظلم نه حجاز ته راغلي وو. دوی اصلا عبرانيان وو، خو دلته په حجاز کې له ميشته کيدو وروسته يې ژبه، عادات، د افرادو او قبايلو نومونه عربي شوي وو له عربانو سره يې د خپلوۍ اړيکې هم ټينګې کړې وې، خو له دې ټولو سره سره يې خپل ملی هويت ساتلی ؤ او په پوره توګه په عربي ټولنه کې نه وو منحل شوي، بلکه پخپل يهودي مليت (اسرائيليت) يې فخر او وياړ کاوه. عربان يې ډير زيات تحقير او سپکول ان تر دې چې هغوی ته به يې اميين يعنی چارپايان، مرتجعين او رذيلان ويل، د عربو مالونه يې د ځان لپاره مباح بلل، او کله به يې چې لاس پرې بر شو نو خوړل به يې ((**قَالُوا لَيْسَ عَلَيْنَا فِي الْأُمِّيِّينَ سَبِيلٌ**)) (آل عمران: ۷۵). [وويل (کتابيانو) نشته پر موږ باندې په (حق) ددې اميانو کې هيڅ ګناه (چې مالونه يې وخورو).]

هغوی د خپل دين په نشر او ترويج کې ډير فعال نه وو، او د دوی ټول دين په دم، چپ، فال، سحر او جادو کې خلاصه کيده. او يوازې په همدې سره يې ځانونه د پوهې، روحانيت، قيادت او صلاحيت خاوندان ګڼل. هغوی په کسب او کار، مال ګټلو او لاسته راوړلو کې خاص مهارت درلود، د غلې دانې، خرما، شرابو او ټوکر تجارت له

همدوی سره وځ. ټوکر، غلي داني او شراب به يې راوړل او په مقابل کې به يې خرما صادروله، او د تجارت تر څنګ يې نور کسبونه هم کول، له عربانو نه به يې څو چنده ګټه اخيستله پدې يې هم اکتفا نه کوله بلکه د سود بازار يې هم ښه تود کړی وځ. د عربانو مشايخو او مشرانو ته به يې قرضونه ورکول، هغوی به دا پيسې بې مطلبه او بې ځايه په مداحانو، شاعرانو او ځان ښوونه او ستاينه کې خرڅولې. يهودانو به لومړی ددې قرضونو په بدل کې د دوی ځمکې، باغونه او پټي ګرو کړل، خو څو کاله وروسته به يې د ملکيت قبضه وربانديې ولګوله. دوی په فتنو، فساد، توطئو او دسيسو کې له هر چانه مخکې وو، په دې مکر او چالاکۍ سره به يې شا او خوا پرتې عربي قبيلې يو بل کې سره اچولې، او تر مينځ به يې د اوږدو جګړو اور بلاوه او په ډيره مرموزه توګه به يې ددې اور لمبې غوړې ساتلې. عربان به سره جنګيدل او دوی به ورته د خير په غونډۍ ناست وو، خو که به د کوم طرف پيسې کمې شوې، نو دوی به په سود باندې ډير قرض ورکاوه تر څو د پيسو د کمي له امله جګړه بنده نه شي. يهودانو به پدې سره دوه ګټې کولې يعنی په يوه غشي به يې دوه مرغۍ ويشتلې يو به يې خپل يهودي موجوديت، شخصيت او هويت ژوندی ساته او له بل پلوه به يې د سود بازار ښه ګرم ساته، ډيرې پيسې او سرمايې به يې ګټلې.

<u>په مدينه کې د يهودانو درې مشهورې قبيلې اوسيدلې:</u>

۱. بنو قينقاع، دې قبيلې له خزرج سره تړون درلود او کورونه يې په مدينه کې د ننه وو.

۲. بنو نضير.

۳. بنو قريظه. دوی دواړو له اوس سره تړون درلود، او د مدينې په شا او خوا برخو کې اوسيدل.

همدې قبيلو به له ډير پخوا نه د اوس او خزرج تر مينځ د جګړو اور بلاوه، د بعاث په جګړه کې خو پخپله دوی هم هره يوه له خپل حليف سره په جنګ کې شريکه وه.

طبيعي وه چې يهودو به له اسلام او مسلمانانو سره کينه او عداوت کاوه، له هغوی نه د خير طمعه بې ځايه وه ځکه رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) له دوی څخه نه و تر څو د دوی نژادي او توکمي عصبيت ته چې په ذهن او زړه يې حاکم وځ سکون او اطمينان حاصل شي. او بله دا چې اسلامي دعوت د سولې او يووالي داسې يو پيغام او آواز و چې مات زړونه يې سره پيوندول، د کينې او دښمنۍ اورونه يې مړه کول، په ټولو کارونو کې د امانت او امانتدارۍ غوښتونکی وځ، او په هر

څه کې يې يوازې د پاک او حلال شيز د خوړلو اجازه ورکوله او ددې لازمي معنی دا وه چې نور به په مدينه کې ميشتې عربي قبيلې سره يوکيږي او پدې سره به د يهودانو له خبيثو پنجو نه آزادي مومي، چې په نتيجه کې به د يهودانو تجارت زيانمن کيږي او د سود له هغو ګټو به بې برخې کيږي چې د دوی دکار و بار او شتمنيو اساس ورباندې ولاړ وُ.

او دا هم کيدای شوای چې دا عربي قبيلې متوجه شي او هغو مالونو ته يې فکر شي کوم چې يهودانو په سود کې ورنه اخيستي وو، او له يهودانو نه په سود کې د تللو ځمکو، باغونو او پټيو د بيرته اخيستلو هڅې وکړي.

يهودانو دا ټول حساب کړی و، او له کومې ورځې نه چې پوه شول اسلام په مدينه کې ميشته کيدل غواړي نو دا ټول شيان يې د ذهن پر پرده تير را تير شول، او له همدې امله يې مدينې ته د رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) له تشريف آوری سره سم له اسلام او رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) سره دښمني پيل کړه، خو دا دښمني يې څه موده پټه وه چې وروسته يې ښکاره او په ډاګه کړه.

ددې موضوع ښه تصوير او تفسير د ابن اسحاق هغه روايت کولی شي کوم چې له حضرت صفيه (رضي الله عنها) نه يې رانقل کړيدی، ابن اسحاق وايي:

له صفيه بنت حيي بن اخطب نه روايت دی چې وايي: زه مې په پلار او تره (ابو ياسر) له ټولو اولادونو نه زياته ګرانه وم، او هر کله به چې د دوی له بل کوم يوه اولاد سره زه ورسره مخامخ شوم، نو حتماً به يې زه اخيستلم.

وايي: خو کله چې رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) مدينې ته را روان و او په قبا کې يې له بني عمرو بن عوف سره واړول، پلار مې (حيي بن اخطب) او تره مې (ابو يا سر بن اخطب) سهار وختي ورغلل، او ان له لمر لويدو سره بيرته راستانه شول، وايي: داسې سست پست، له پښو لويدلي، کشال کشال را روان وو. وايي: زه د خپل عادت سره سم ورپه منډو شوم، خو قسم په خدای هغوی دومره غم اخيستي وو چې يوه يې هم زما خوا ته التفات او توجه ونکړه.

وايي: وا مې وريدل چې تره مې (ابو ياسر) پلار ته وايي: ايا ته يې ښه سيي پيژنې؟ ده وويل: بالکل ښه يې پيژنم. تره مې بيا ورته وويل: نو ته د هغه په هکله څه نظر لرې؟ پلار مې ورته وويل: دښمني، قسم په خدای تر مرګه به ورسره دښمني کوم.[1]

---

(1). ابن هشام ۱/ ۵۱۸- ۵۱۹

ددې خبرې تایید د بخاري هغه روایت هم کوي کوم چې د عبدالله بن سلام (رضي الله عنه) د اسلام راوړلو په هکله یې را نقل کړیدی.

نوموړی د یهودانو لوی او عظیم عالم و، کله چې خبر شو رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) مدینې ته د بني النجار مېنې ته تشریف راوړی، نو په بیړه سره د هغه(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) حضور ته ورغی، او داسې پوښتنې یې ورنه وکړې چې ځواب یې یوازې نبي ویلی شي. او څنګه یې چې د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ځوابونه واوریدل نو فوراً په هماغه ځای په اسلام مشرف شو.

بیا یې رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ته وویل: یهودان خبرې جوړونکي او بهتان کوونکي خلک دي که هغوی مخکې لدینه چې ته ورنه زما په هکله پوښتنه وکړې پدې خبر شي چې زه په اسلام مشرف شوی یم، نو بهتانونه به راپسې وتړي. همدا وه چې رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) یهودان راوغوښتل، هغوی راغلل، عبدالله بن سلام په کور کې د ننه ناست و، رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ورته وویل: عبدالله بن سلام څنګه سړی دی؟ او ستاسې په مینځ کې د کوم مقام خاوند دی؟

دوی وویل: هغه د لوی عالم زوی او له مونږ ټولو نه د زیات علم څښتن دی او له مونږ ټولو نه غوره او د ډیر غوره سړي زوی دی. په بل روایت کې راځي چې وایي: هغه زمونږ مشر او زمونږ د مشر زوی دی، او په بل لفظ – هغه له مونږ ټولو نه بهتر او د بهترین سړي زوی دی، او په بل لفظ هغه زمونږ افضل او د افضل سړي زوی دی.

رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ورته وویل: ښه، نو اوس دا راته ووایاست که هغه اسلام راوړ نو بیا؟ یهودانو دوه، درې ځله وویل: الله دې هغه لدینه وساتي! همدلته عبدالله بن سلام راووت او ویې ویل: ((**اشهد ان لا الـــه الا الله و اشـــهد ان محمدا رسول الله**)) نو دوی یو ځل خپلې ژبې بدلې کړې او ویې ویل: دا زمونږ په مینځ کې تر ټولو زیات شریر او د شریر زوی دی او داسې نورې خبرې یې ورپسې وکړې. ده (عبدالله) په ځواب کې ورته وویل: یهودانو! له خدای نه وویریږئ، قسم په هغه ذات چې له ده پرته بل د عبادت مستحق نشته تاسې پدې ښه پوهیږئ چې دا د الله رسول دی، او په حقه راغلی دی. دوی ورته وویل دروغ دې وویل.[1]

دا وه په مدینه کې د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د ژوند په لومړنۍ ورځ له یهودانو سره لومړنۍ تجربه.

(1). صحیح البخاري ۴۵۹/۱- ۵۵۲-۵۷۱

دا وو د مدینې داخلي حالات، او له مدینې نه د باندې د اسلام تر ټولو ستر او سخت دښمن قریش وو. قریشو پوره لس کاله د مسلمانانو په خلاف له هر ډول، ظلم، زیاتي، تهدید او جبر نه کار اخیستی و، د مظلومو مسلمانانو د ځورولو او ځپلو پخاطر یې د ورې کولو او اقتصادي بندیزونه سیاست خپل کړی ؤ او د مصیبتونو او کړاوونو تر څنګ یې د هغوی په خلاف سترې کوونکی عصبي، نفسیاتي او تبلیغاتي جنګ هم پیل کړی و. او کله چې مسلمانانو مدینې ته هجرت پیل کړ، نو دوی به یې ځمکې او مالونه مصادره کول، او هغوی به یې له خپلو ښځو او اولادونو نه بیلول، او که به یې په چا لاس ورسیده، نو ښه به یې تعذیباوه. دا خو لا څه هغوی د دعوت د لاربنود(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د مرګ او وژلو اراده او فیصله وکړه، او ددې توطئې د عملي کولو لپاره یې ډیرې منډې ترړې هم وکړې. او له دې نه اخوا هغه وخت چې مسلمانان مدینې ته ورسیدل او د دوی له ظلمونو نه یې نجات وموند، او له دوی نه (۵۰۰) کیلو متره لیرې لاړل، نو دوی (قریش) دلته هم په آرام کینناستل. او څرنګه چې دوی د حرم اوسیدونکي او د بیت الله ګاونډیان وو، نو د عربو په مینځ کې یې په دیني او دنیوي لحاظ اوچت او د قدر وړ مقام درلود، نو دلته یې له خپل همدې اثر او رسوخ نه په استفادې سره یو سیاسي رول لوبول وغوښتل، پاڅیدل او د عربې جزیرې نور مشرکان یې د مدینې د اوسیدونکو په خلاف راوپارول او مدینه یې له اقتصادي بحران سره لاس او ګریوان کړه. نژدې وه تر بشپړې اقتصادي محاصرې لاندې راشي، واردات یې ډیر کم شول، دا هم پداسې حال کې چې د مهاجرینو شمیر ورځ په ورځ مخ په زیاتیدو و. حقیقت دا دی چې د مکې د مشرکینو او مسلمانانو تر منځ د اسلام په نوی مېنه (مدینه) کې د جنګ حالات او اسباب برابر شوي وو، او دا به ډیره بې عقلي او بې انصافي وي چې ددې جګړو او دښمنیو پړه پر مسلمانانو ور واچول شي.[۲]

مسلمانانو حق درلود چې د خپلو مصادره شویو مالونو په بدل کې د قریشو مالونه مصادره کړي او حق یې درلود چې د دوی د ظلم ځواب ورکړي. او د دوی د ژوند د قافلې په وړاندې داسې خنډونه را پیدا کړي لکه چې دوی د مسلمانانو د ژوند په مخه کې پیدا کړیدي. او حق یې درلود د خپل ځان او هویت دفاع وکړي او د دوی ټولې هغه توطئې شنډې کړي چې هدف یې د اسلام ختمول و.

---

(2). دا وروستی خبره د محمد الغزالي خبره ده، فقه السیرة ص ۱۲۲

د ا وو هغه مشکلات او مسائل چې رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) مدینې ته د رسول، رهبر، امام او لارښوونکي په صفت له رسیدو نه وروسته ورسره لاس او ګریوان و.

رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) په مدینه کې د رسول او رهبر په څیر معامله کوله، له هر چا او هر قوم سره یې د هغه د مقام او اهلیت سره برابر عمل کاوه، څوک چې د رحم او کرم وړ وو د هغوی په سر یې د رحمت او شفقت لاس راکاږه، او که د چا چاره او علاج به یوازې شدت او سختي وه، نو د هغه دوا او علاج به یې په سختۍ سره کاوه، خو دا باید له یاده ونه باسو چې د رحمت او شفقت پله یې ډیره درنده وه. او د همدې حکیمانه قیادت په برکت په څو لنډو کلونو کې ټول کارونه د اسلام او مسلمانانو لاس ته ورغلل، لوستونکي ته به راتلونکو پاڼو کې پدې هکله پوره معلومات وړاندې کړو.

# د نوې ټولنې جوړول

مخکې مو وويل چې رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) د جمعې په ورځ د هجرت د لومړي کال د ربيع الاول په (۱۲) مه چې د (۶۲۲م) کال د سپتمبر لـه (۲۷) مې سره سمون خوري په مدينه کې د بني النجار مـــيني ته تشريف يوور، د ابو ايوب د کور مخې ته يې واړول او ويې فرمايل: همدلته زمونږ منزل دی (ان شاء الله) بيا د ابو ايوب کور ته منتقل شو.

## د نبوي مسجد ودانول

لدينه وروسته د رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) لومړنی کار د نبوي مسجد جوړول ؤ. د مسجد لپاره يې هغه ځای وټاکه په کوم کې يې چې اوښه چو شوې وه، دغه ځمکه د دوو يتيمانو وه، چې په بيه يې ورنه واخيستله. رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) پخپله د مسجد په جوړولو کې فعاله ونډه درلوده، خښتې او تيږې به يې رانقلولې او داسې به يې فرمايل:

اللهم لا عيش الا عيش الاخرة فاغفر للانصار و المهاجرة

[اې خدايه زندګي او ژوند خو يوازې د آخرت ژوند دی، نو ته انصارو او مهاجرينو ته بخشش وکړه.]
او دا شعر به يې هم زمزمه کاوه:

هذا الحمال لاحمال خيبر هذا ابر ربنا و اطهر

[دا بار د خيبر بار ندی دا زمونږ د رب پاک او سپيڅلی بار دی]
د رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) کار به د اصحابو (رضي الله عنهم) نشاط او فعاليت نور هم زياتوه، او يوه صحابي به د کار په وخت کې داسې ويل:

**لئن قعدنا والنبي يعمل لذاك منا العمل المضلل**

[که چیرته مونږ کینو او نبي(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) کار کوي، نو دا به زمونږ د ګمراهۍ او بې لارۍ کار وي.]

پدې ځای کې د مشرکینو یو شمیر قبرونه، خرابه، د غرقد او خرما څه ونې هم وې، رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) امر وکړ چې قبرونه را لوځ او پاک شي، دا خرابه هوار کړی شي، ونې یې ووهل او لرګي یې د قبلې لور ته واچول شي (هغه وخت قبله بیت المقدس ؤ).

د دروازې دواړه پایې (څنګدرې) یې له تیږو جوړې کړې، دیوالونه یې د خښتو او خټو وو، چت یې د خرما په تنو ، ښاخونو او پاڼو پټ کړ، په غولي کې یې ریګ او شګې اوارې کړې، ټول جومات ته یې درې دروازې ورکړې وې. د قبلې د دیواله او د مخامخ دیوال اوږده سل ګزه، او د څنګ دواړو نورو دیوالونو اندازه یې هم تقریبا همدومره وه، تهداب یې نژدې درې ګزه راته.

د جومات له خوا سره یې د خټو او تیږو څو خونې هم جوړې کړې، چتونه یې د خرما په تنو او شاخونو پټ کړل، دا د امهات المؤمنین ( رض) خونې وې. او کله چې تکمیلې شوې، نو رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د ابو ایوب (رضي الله عنه) له کورنه ور منتقل شو.[1]

دغه جومات یوازې د لمانځه ځای نه ؤ، بلکه د یوه داسې پوهنتون حیثیت یې درلود چې مسلمانانو به پکې خپل دین زده کاوه، او داسې یو غونډه ځای ؤ چې پخپل زړه کې به یې په ډیره مینه او محبت سره هغه کسان سره راغونډول چې کلونه کلونه د جاهلیت او عداوت لمبو سیځلي وو.

او همدا جومات د داسې یوه عمومي مرکز په شان ؤ چې د مسلمانانو ټول کارونه له همدې ځایه اداره کیدل، د هر څه قومانده له همدې ځایه وه او په نننۍ ژبه دا یو داسې پارلمان ؤ چې ټول مشورتي او تنفیذي (اجرایوي) مجلسونه به همدلته ترسره کیدل. او ددې تر څنګ دا جومات د هغو فقیرانو مهاجرینو کور هم ؤ کوم چې نه یې کور درلود ، نه مال او نه خپل او خپلوان.

د هجرت په لومړیو کې د آذان حکم هم وشو. آذان دا آسماني آواز چې هره ورځ پنځه ځلې د ځمکې او آسمان تر مینځ انګازې کوي، او ټول عالم په لړزه راولي.

پدې هکله د عبدالله بن زید بن عبد ربه د خوب کیسه مشهوره ده، چې تفصیلات

---

[1]. صحیح البخاري ١/ ٧١-٥٥٥- ٥٢٠. زاد المعاد ٥٢/٢

يې پدې کتابونو جامع الترمذي، سنن ابي داود، مسند احمد او صحيح ابن خزيمه کې روايت شوي او کولی شو هملته يې ولولو.[1]

## د مسلمانانو تر مينځ ورورګلوي

لکه څرنګه چې رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) د نبوي جومات په جوړولو سره د غونډېدو او يو کېدو يو عظيم مرکز مينځ ته راوړ همدا ډول يې د انصارو او مهاجرينو په ورورۍ سره په انساني تاريخ کې يوه بل نه هېريدونکې او بې ساري کارنامه تر سره کړه. ابن قيم وايي: بيا رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) د انس بن مالک په کور کې (۹۰) کسه چې نيم يې انصار او نيم نور يې مهاجرين وو سره ورونه کړل، ددې ورورګلوۍ اصل او اساس دا و چې دا ورونه به يو له بل سره همدردي او غمشريکي کوي، او د نسبي خپلولۍ په ځای به دوی يو د بل ميراث وړي. دا حکم د بدر غزا تر وخته باقي پاتې و،تر څو د الله تعالی دا حکم رانازل شو: ((وَأُوْلُوا الأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَى بِبَعْضٍ)) (۸-۷۵). [او خاوندان د خپلوۍ ځينې د دوی غوره دي (د ميراث په وړلو سره) په ځينو نورو...]

دې آيت د ديني وروڼو تر مينځ د ميراث وړلو حکم لغوه کړ، خو د ورورۍ عقد او پيمان همداسې باقي پاتې دی. ويل کيږي چې رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) دويم ځل د مهاجرينو تر مينځ ورورګلوي ټينګه کړې وه، خو دا خبره کمزورې غوندې ښريښي، ځکه مهاجرين چې يو له بل سره يې ديني، وطني، نژادي او نسبي وروري او خپلوي درلوده د ورورۍ دې ډول عقد او تړون ته اړ نه وو، په داسې حال کې چې د انصارو او مهاجرينو خبره او معامله بيا دغه ډول نه وه[2].

لکه چې محمد غزالي وايي ددې ورورۍ معنی دا وه چې جاهلي تعصب او عصبيت له مينځه يوسي، ننګ، حميت او غيرت که وي، نو بايد يوازې د اسلام پخاطر وي او بس، د رنګ، نسل، وطن او نسب په بناء د برترۍ او امتياز دور نور ختم دی، ځکه د بلندۍ او پستۍ يوازينی معيار انسانيت، مروت او تقوی ده نه بل څه.

رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) دا وروري يوازې تر ژبې او کلماتو پورې محدوده نه وه ساتلې، بلکه دې تړون ته يې د عمل داسې جامه وراغوستې وه چې له

---

(1). بلوغ المرام د ابن حجر عسقلاني ليکنه ص ۱۵ وګوره.
(2). زاد المعاد ۵۲/۲

امله يې دا ژمنه تر وينې او مال پورې تړلې وه. دا ټرون د ژبې او الفاظو له دايرې نه وتلی د قربانۍ، همدردۍ، او غمشريکۍ په ډګر کې داسې پلی شوی و، چې دې نوې ټولنې ته يې تر ټولو لوړ مثالونه وړاندې کول او دا ورورولي له نسبي ورورولۍ نه زياته په مينه او خلوص ولاړه وه.[1]

بخاري روايت کوي، کله چې مهاجرين مدينې ته راغلل، رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) عبدالرحمن بن عوف له سعد بن الربيع سره د ورورۍ په مزي وتاړه. سعد خپل ورور عبدالرحمن ته وويل: زه په انصارو کې د ډېر مال او دارايۍ خاوند يم، ته زما مال دوې برخې کړه، (نيم يې ستا) همدا راز زه دوې ښځې لرم، وګوره کومه يوه دې چې خوښه وي ما ته ووايه، زه هغه طلاقوم، او چې عدت يې پوره شو، نو ته يې په نکاح کړه. ده (عبدالرحمن) ورته وويل: خدای دې ستا په مال او اولاد کې برکت واچوي، ما ته بازار راوښيه. هغوی د بنو قينقاع بازار وروښود، هغه بازار ته لاړ او کله چې بېرته راوګرځيد، نو يوه اندازه غوړي او کــروت يې هم له ځان سره راوړل. په همدې ترتيب هغه هره ورځ بازار ته تلو او ګټه يې کوله څه وخت وروسته داسې ورځ راغله، چې د څه زيړوالي اثر وربانـدې ښکاريده. رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ورته وويل: دا څه دي؟ ده ورته وويل: واده مې کړی. رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) وفرمايل: څومره مهر دې ورکړ؟ ده وويل: تقريباً پاو باندې يوه توله سره زر (تقريبا ۱۵ ګرامه)[2].

له ابو هريره (رضي الله عنه) نه روايت دی وايي: انصارو رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ته وويل: ته زمونږ د خرما باغونه زمونږ او زمونږ د وروڼو (مهاجرينو) تر منځ وويشه! ده وفرمايل: نه. نو دوی وويل: نو تاسې (مهاجرين) زمونږ سره کار وکړئ او مونږ به تاسې په ميوو کې را سره شريک کړو، دوی (مهاجرينو) وويل: دا بالکل سمې او مقبوله ده.[3]

لدينه دا ښه په ډاګه کيږي چې انصارو د خپلو مهاجرينو وروڼو د عزت او احترام، همکارۍ او همدردۍ پخاطر له څومره زيات اخلاص، قربانۍ، مينې او محبت نه کار اخيسته. او لدينه دا هم څرګنديږي چې مهاجرينو د دوی د عزت او همکارۍ، احسان او کرم څومره قدر او پاس درلود، او د دوی له همکارۍ او اخلاص نه يې يوازې دومره ګټه اخيستله چې خپل مات او ګوډ ژوند يې وربانـدې روانولی شوای.

---

[1]. فقه السيرة ص ۱۴۰ - ۱۴۱

[2]. صحيح البخاري، باب اخاء النبي (ص) بين المهاجرين و الانصار ۵۵۳/۱

[3]. صحيح البخاري - باب اذا قال: اکفني مئونة النخل ۱-۳۱۲

بيشكه چې دا ورورولي لويه وه او دا يو عظيم حكمت، پوخ، عاقلانه سياست، او د مسلمانانو د زيات شمير ياد شويو مشكلاتو لپاره كافي او شامل حل و.

## د اسلامي يووالي تړون

لكه څرنگه چې رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) مؤمنان د ورورلۍ په ټينگ مزي سره وتړل، همدا ډول يې يو بل داسې عهد او تړون هم ترسره كړ چې د هغه پواسطه يې د جاهليت ټول كشمكشونه، ناروا قومي او قبيلوي عصبيتونه له هر ډول جاهلانه رسم او رواج سره يو ځای له مينځه يو وړل. دا دی لاندې ددې تاريخي تړون مادې په لنډه توگه وړاندې كوو:

دا د محمد رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) له خوا ليک دی د قريشي ، يثربي او نورو هغو مؤمنانو او مسلمانانو ترمنځ چې د دوی پيروي وكړي، ورسره يو ځای شي او يو ځای جهاد ورسره وكړي:

۱ـ دوی ټول له دوی نه پرته ټولو انسانانو نه جدا يو امت دی.

۲ـ قريشي مهاجرين به د خپلو پخوانيو رواياتو مطابق يو بل ته ديت او د مؤمنانو په مينځ كې به په نيكۍ او انصاف سره د خپلو بنديانو فديه وركوي. د انصارو ټولې قبيلې به هم د پخوا په شان يو بل ته ديت وركوي، او د دوی هره ډله او طايفه به د مؤمنانو په مينځ كې په نيكۍ او انصاف سره د خپلو بنديانو فديه وركوي.

۳ـ مؤمنان به د فديې او ديت په معامله كې خپل بې وسه او بې كسه له خپلې نيكې وركړې او سخا نه بې برخې كوي.

۴ـ ټول رينښتيني مؤمنان به يو موټی د هر هغه چا مقابلې ته دريږي چې پر دوی ظلم كوي، يا غواړي د مؤمنانو تر مينځ ظلم، گناه، تيری او فساد خور كړي.

۵ـ دوی (مؤمنان) به ټول يو لاس د دا ډول كس په خلاف وي، كه څه هم هغه د دوی د كوم يوه زوی وي.

۶ـ هيڅ مؤمن به د كافر په بدل كې بل مؤمن نه وژني.

۷ـ او نه به د مؤمن په مقابل كې د كوم كافر ملاتړ كوي.

۸ـ د الله ذمه (عهد) يوه ده، تر ټولو بې وسه مسلمان هر چا ته چې وغواړي پناه وركولی شي د يوه معمولي انسان له خوا وركړل شوې ذمه (ژمنه) پر ټولو مسلمانانو لازمه او واجب ده.

۹_ هغه یهودان چې زمونږ پیروي غوره کړي، نو د هغوی مدد او کومک به کیږي، نه به ظلم وربانديې کیږي، او نه به د دوی په خلاف د چا ملاتړ کیږي.
۱۰_ د ټولو مسلمانانو سوله یوه ده، هیڅ مسلمان له بل مسلمان پرته د خدای په لار کې په جنګ او جګړه کې سوله او جوړه نه کوي، بلکه ټول به یو ځای د عدل او برابرۍ په بناء کوم عهد او تړون سرته رسوي. (د مسلمانانو سوله به د ټولو په موافقه وي، فردي سوله نشي کولی).
۱۱_ مسلمانان په هغه خون (وینه) کې یو له بل سره برابر دي، کومه چې څوک یې د خدای په لار کې تویوي.
۱۲_ هیڅ مشرک به قریشو ته د ځان یا مال پناه نه ورکوي، او نه به د هغوی د ساتنې پخاطر د مسلمان په وړاندې دریږي.
۱۳_ که هر چا کوم مومن بې موجبه وواژه، او قتل په شاهدۍ او دلیل سره وربانديې ثابت شو، نو هغه (قاتل) به قصاص کیږي، خو که د مقتول ولي راضي شو بیا به نه وژل کیږي.
۱۴_ دا ټول مؤمنان به د هغه په خلاف راپورته کیږي، او پرته لدې چې د هغه په خلاف ودریږي په بل څه یې نه مسئولیت ادا کیږي او نه بل څه ورته روا دي.
۱۵_ هیڅ یوه مسلمان ته ندي روا چې د کوم مشکلات را پیدا کوونکي یا بدعتي مرسته وکړي، او یا پناه ورکړي، او که څوک یې مرسته کوي یا پناه ورکوي، نو پر هغه به د قیامت په ورځ د الله تعالی لعنت او غضب وي، او د هغه به هیڅ هم نه قبلیږي یعنی نه به یې فرض قبلیږي او نه نفل.
۱۶_ تاسې که په هر کار کې له اختلاف سره مخ شوئ، نو هغه باید یوازې الله او محمد (صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ته راجع کړئ.[1]

[1]. ابن هشام ۵۰۲/۱-۵۰۳

## پر ټولنه د معنویاتو اغیزه

په دومره عظیم حکمت او زیرکۍ سره رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ددې نوې ټولنې تهداب کیښود، خو د ټولنې دا ظاهري ښه د هغو معنویاتو اثر او تصویر وُ چې د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د صحبت او ملګرتیا په برکت ددې عظیمو پرګنو په برخه شوی وُ. رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) به همیشه د هغوی د ښوونې او روزنې، تزکیې او نیکو اخلاقو باندې د آراسته کولو زیار یوست، او هغوی به یې په مینه، ورورۍ، عزت، شرف، عبادت او اطاعت سره روزل.

یوه صحابي له رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) نه وپوښتل: کوم ډول اسلام ډیر غوره دی؟ (یعنی په اسلام کې کوم یو عمل ډیر بهتر دی؟)

رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه وسلم) ورته وفرمایل: **[تطعم الطعام، وتقرئ السلام على من عرفت ومن لم تعرف]**.(۱). خلکو ته خواړه ورکوه، په ټولو پیژندګلو او نا پیژندګلو سلام اچوه .

عبدالله بن سلام وایي: **لما قدم النبي صلى الله عليه وسلم المدينة جئت، فلما تبينت وجهه، عرفت أن وجهه ليس بوجه كذاب، فكان أول ما قال: [يا أيها الناس، أفشوا السلام، وأطعموا الطعام، وصلوا الأرحام، وصلوا بالليل والناس نيام، تدخلوا الجنة بسلام]**. رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) چې مدینې ته تشریف راوړ، زه ورغلم، او کله مې چې د مبارک مخ ولید، نو پوه شوم چې دا د کوم دروغجن مخ نه شي کیدای. او د رسول (صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) لومړنۍ خبره دا وه چې ویې فرمایل: اې خلکو سلام خور کړئ، خواړه ورکړئ، صله رحمي کوئ (د خپلوۍ اړیکې ټینګې ساتئ) د شپې هغه وخت لمونځ کوئ چې خلک ویده وي، نو په سلام او سلامتۍ سره به جنت ته داخلیږئ.(۲)

(۱). صحیح بخاري ۱/ ۲-۹

(۲). رواه الترمذي، ابن ماجة، الدارمي. مشکاة المصابیح ۲۸/۱

رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) فرمایي: **[لا يدخل الجنة من لا يأمن جاره بوائقه]**. هغه څوک به جنت ته داخل نه شي چې ګاونډیان یې له شر او زیان نه په امن نه وي.[۳]

همدا راز فرمایي: **المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده]**. کامل مسلمان هغه دی چې نور مسلمانان یې د ژبې او لاس له شر نه په امن وي.[۴]

بل ځای فرمایي: **[لا يؤمن أحدكم حتى يحب لأخيه ما يحب لنفسه]**. له تاسې نه هیڅوک ترهغې کامل مؤمن نه شي کیدای تر څو یې د خپل ورور لپاره هغه څه نه وي خوښ کړي کوم چې د خپل ځان لپاره یې خوښوي.[۱]

او فرمایي: **[المؤمنون كرجل واحد، إن اشتكى عينه اشتكى كله، وإن اشتكى رأسه اشتكى كله]**. ټول مؤمنان د یوه سړي په شان دي، که سترګه یې په درد شي، نو ټول جسد یې په درد راځي، او که یې سر وخوږیږي، نو ټول بدن یې دردمند کیږي.[۲]

او فرمایي: **[المؤمن للمؤمن كالبنيان يشد بعضه بعضاً]** مؤمن بل مؤمن ته د عمارت او تعمیر حیثیت لري چې پخپل مینځ کې یو بل سره مضبوط او پیاوړی کوي.[۳]

او فرمایي: **[لا تباغضوا، ولا تحاسدون، ولا تدابروا، وكونوا عباد الله إخواناً، ولا يحل لمسلم أن يهجر أخاه فوق ثلاثة أيام]**. یو له بل سره بغض، کینه او حسد مه کوئ، یو بل ته شامه اړوئ (یو له بل نه نفرت مه کوئ) د الله بندګان او یو د بل وروڼه اوسئ، هیڅ مسلمان ته نده روا چې له خپل مسلمان ورور نه له دریو ورځو نه زیات مرور و اوسي.[۴]

فرمایي: **[المسلم أخو المسلم لا يظلمه ولا يسلمه، ومن كان في حاجة أخيه كان الله في حاجته، ومن فرج عن مسلم كربة فرج الله عنه كربة من كربات يوم القيامة، ومن ستر مسلماً ستره الله يوم القيامة]** مسلمان د مسلمان ورور دی، نه پر هغه ظلم

---

(۳). مسلم، مشکاة المصابیح ۱/ ۴۲۲
(٤). صحیح بخاري ۲/۱

(1). بخاري ۲/۱
(2). مسلم، مشکاة ۴۲۲/۲
(3). متفق علیه، مشکاة۴۲۲/۲
(4). صحیح بخاري ۸۹۲/۲

کوي او نه به يې دښمن ته سپاري، څوک چې د خپل ورور د حاجت او ضرورت پوره کولو زيار باسي، الله تعالی به د هغه ضرورتونه رفع کوي، او هغه څوک چې د کوم مسلمان غم او درد دوا کړي، الله تعالی به له هغه نه د قيامت د ورځې له غمونو او دردونونه کوم غم ليرې کړي، او څوک چې د مسلمان پرده کوي الله تعالی به قيامت په ورځ د هغه پرده کوي.[۵]

فرمايي: **[ارحموا من في الأرض يرحمكم من في السماء]**. د ځمکې پر اوسيدونکو رحم وکړئ تر څو هغه ذات رحم درباندې وکړي چې په آسمان کې دی.[۶]

فرمايي: **[ليس المؤمن بالذي يشبع وجاره جائع إلى جانبه]**. هغه څوک کامل مؤمن ندی چې پخپله موړ او په خوا کې ګاونډی يې وږی وي.[۱]

فرمايي: **[سِباب المؤمن فسوق، وقتاله كفر]**. د مسلمان کنځل فسق او جګړه ورسره کفر ده.[۲]

په همدې ترتيب سره رسول (صلى الله عليه وسلم) له لارې نه د ضرري څيزونو ليرې کول صدقه بولي، او دا د ايمان له ښاخونو نه يو ښاخ شميري.[۳]

اصحاب يې خيرات او صدقې ورکولو ته هڅول، او د صدقې دومره فضائل يې ورته بيانول چې زړونه به پخپله ورماتيدل. فرمايل به يې: **[الصدقة تطفئ الخطايا كما يطفئ الماء النار]**. صدقه ګناهونه داسې له مينځه وړي لکه اوبه چې اور وژني.[۴]

همدا راز فرمايي: **[أيما مسلم كسا مسلماً ثوباً على عُرى كساه الله من خُضر الجنة، وأيما مسلم أطعم مسلماً على جوع أطعمه الله من ثمار الجنة، وأيما مسلم سقى مسلماً على ظمأ سقاه الله من الرحيم المختوم]** کوم مسلمان چې بل لوڅ مسلمان په جامو پټ کړي، الله تعالی به هغه ته د جنت شنې جامې وراغوندي. او کوم مسلمان چې بل مسلمان ته د لوږې په حال کې خواړه ورکړي الله تعالی به هغه ته د جنت ميوه وروخوري. او کوم مسلمان چې بل تږي مسلمان ته اوبه ورکړي، الله به هغه ته د جنت

---

(5). متفق عليه – مشكاة ۴۲۲/۲
(6). سنن ابيگ داوُد ۳۳۵/۲. الترمذی ۱۴/۲
[۱]. البيهقي، مشكاة: ۴۲۴/۲
[۲]. بخاري ۸۹۳/۲
[۳]. پدې هکله حديث په بخاري او مسلم کې روايت شويدی. مشكاة ۱۲/۱-۱۲۵
[٤]. احمد، ترمذي، ابن ماجة، مشكاة ۱۴/۱

مهر شوي پاک شراب وروښبي.[۵]

فرمايي: **[اتقوا الناء ولو بشق تمرة، فإن لم تجد فبكلمة طيبة]** له اور نه ځان وساتئ، كه څه هم د خرما د يوې ټوټې په صدقه كولو سره وي، او كه دا هم نلرئ، نو په نيكې خبرې سره.[۶]

او ددې تر څنګ يې له سوال نه د ځان ساتلو كلک امر هم كاوه، د صبر اوقناعت فضائل يې بيانول، او سوال كول يې د سوال كوونكي لپاره د مخ داغ، درز او زخم باله،[۱] خو لدينه هغه فقير او محتاج مستثنى دى چې له سوال نه پرته بله هيڅ چاره ونلري.

رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) به د عبادتونو فضائل، اجر او ثواب هم بيانوه. او مسلمانان به يې پر ده (صلى الله عليه وسلم) باندې له آسمان نه را نازل‌ې شوې وحې سره ټينګ تړل. وحي به يې دوی ته لوستله، او هغوی به پخپله هم لوستله، او تكراروله تر څو پدې كار سره له پوهې او تدبر نه علاوه د هغوی په زړونو كې د دعوت د حقوقو او رسالت د مسئوليتونو احساس ښه پوخ او ژوندی شي. پدې ترتيب سره رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) د اصحابو معنويات او روحيات اوچت كړل، د هغوی استعدادونو ته يې نيكه وده وركړه، هغوی يې د فضل او كمال هغې درجې ته وخيژول چې په انساني تاريخ كې يې له انبياوو (ع) پرته مثال نه ليدل كيږي.

عبدالله بن مسعود (رضي الله عنه) وايي: څوک كه په چا پسې اقتداء كوي يا كومه لاره غوره كول غواړي، نو ورته ښ ايي، د مخكې تلليو خلكو په لار پل كيږدي، ځكه د ژونديو په هكله د فتن‌ې احتمالات شته، خو هغه مخكيني خلک د رسول الله(صلى الله عليه و اله وصحبه وسلم) اصحاب وو، هغوی ددې امت غوره او افضله ډله وه. له ټولو نه د نيكو او صافو سپيڅلو زړونو، زيات او ژور علم او د ډير كم تكلف خاوندان وو. الله تعالى هغوی د خپل نبي (ع) د صحبت، او خپل دين د قيام او حاكميت لپاره غوره كړي وو، نو د هغوی فضل او مقام و پيژنئ، متابعت او پيروي يې وكړئ، او د امكان تر اندازې د هغوی اخلاق او سيرت خپل كړئ، ځكه هغوی د هدايت په نيغه لار برابر خلک وو.[۲]

---

[۵]. ابو داود، الترمذي، مشكاة

[۶]. بخاري ۱۹۰/۱، ۲/ ۸۹۰

[۱]. ابو داوٗد، ترمذي، نسائي، ابن ماجة، دارمي، مشكوة ۱۲۳/۱ وكګوره

[۲]. د رزين روايت – مشكوة ۳۲/۱

بله دا چې زمونږ عظيم رسول او لارښود(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) پخپله د دومره اوچتو معنوي او ظاهري صفاتو، مجد، عظمت، فضل او نيکو اخلاقو، غوره کردار او بې ساري عمل درلودونکی وُ چې زړونه به ورپورې نښتل، ځانونه او نفسونه به ورنه قربانيدل. او کله به يې چې له مبارکې خولې نه کوم امر صادريده، نو اصحابو (رضي الله عنهم) به فورا هغه ته د عمل جامه وراغوستله او که به يې د کومې نـيکۍاو هدايت خبره کوله نو هغوی به فوراً خپل ځانونه په هغې سره سينګارول.
پدې ډول کوښښونو او هلو ځلو سره رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) پدې وتوانيد چې په مدينه کې يوه نوې ټولنه جوړه کړي. داسې ټولنه چې په ټول تاريخ کې له ټولو نه اوچته او د زيات شرف درلودونکې ټولنه وه. او ددې ټولنې مشکلاتو ته يې داسې يو حکيمانه حل راويوست چې له اوږدو زمانو په تورو تيارو کې ستړې انسانيت پکې د اطمينان او آرامۍ ساه وکښله.
ددې نوې ټولنې عناصرو او اجزاوو پدې ډول لوړو ارشاداتو او معنوياتو سره د تکامل داسې پړاو وواهه، چې نور د زمانې هر ډول مقابلې ته تيار وُ، په پوره ځوانمردۍ يې د حالاتو مقابله کوله. بالاخره يې د زمانې مخه او د تاريخ تګلاره بدله او په نيغه برابر کړه.

## له يهودانو سره معاهده

کله چې رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) مدينې ته له هجرت نه وروسته د نظام، سياست او عقيدې د يووالي په واسطه د نوې اسلامي ټولنې تهدابونه ټينګ کړل، نو يې خپله توجه له نامسلمانو قوتونو سره د اړيکو ټينګولو خواته واړوله. د رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) هيله او هدف دا وُ چې ټول انسانان د امن، نيکبختۍ، خير او آرامۍ تر سيورې لاندې ژوند وکړي. او دا يې غوښتل چې مدينه او شا و خوا سيمې تر يوې ادارې لاندې سره راټولې کړي، د زغم، عفوې او ګذشت داسې قوانين يې جوړ کړل چې د هغه وخت له تعصب او افراط نه ډکې دنيا کې يې تصور غوندې هم نه شوای کيدای.
د مدينې تر ټولو نژدې ګاونډيان يهودان وو، هغوی که څه هم په زړه کې له مسلمانانو سره دښمني درلوده خو په خوله يې لا تر اوسه ددې دښمنۍ اظهار نه وُ کړی. نو رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) له هغوی سره داسې يو تړون لاسليک کړ چې د

هغه په رڼا کې يهودانو ته د دين او مال پوره آزادي ورکړل شوې وه، او له دوی سره د دښمنۍ، مال او جائيداد ضبطولو او اخراج يا شړلو له سياست نه بالکل ډډه شوې وه. دا تړون د مسلمانانو د خپل مينځي تړون – کوم چې مخکې تير شو – په ضمن کې ترسره شوې و، دا دی ددې تړون ځنې مهم ټکي:

## د معاهدې مادې

۱- د بني عوف يهودان له مسلمانانو سره يو دي، يهودان به پخپل او مسلمانان به په خپل دين عمل کوي. دا د دوی او د دوی د پيروانو او غلامانو حق دی. له بني عوف نه علاوه د نورو يهودانو هم همدا حقوق دي.

۲- مسلمانان او يهودان هره ډله بيله بيله د خپلو مصارفو او لګښتونو مسئوليت او ضمانت په غاړه لري.

۳- هر څوک چې ددې تړون د کوم طرف په خلاف جګړه اعلان کړي، د تړون ټول اطراف به د هغه په خلاف درېږي.

۴- ددې معاهدې د تړون کوونکو اړيکې به د خير خواهی، نصيحت او ګټې رسولو پر بنا ولاړې وي نه د ګناه پر اساس.

۵- هيڅوک هم د خپل حليف د جرم په وجه مجرم نه شميرل کيږي.

۶- له مظلوم سره به مرسته او مدد کيږي.

۷- تر څو چې جګړه روانه وي تر هغې پورې به يهودان له مسلمانانو سره د جنګ په خرڅ او مصرف کې پوره ونډه اخلي.

۸- د معاهدې په ټولو اړخونو باندې په مدينه کې فتنه او فساد راولاړول او وينه تويول حرام دي.

۹- که د معاهدې د اړخونو تر مينځ کومه داسې منازعه او اختلاف را پيدا شي چې د خطر او فساد احساس ورنه کيږي، نو د هغه فيصله به الله او محمد رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) کوي.

۱۰- قريشو او د دوی همکارانو ته به پناه نه ورکول کيږي.

۱۱- هر څوک که په مدينه حمله وکړي، نو د معاهدې ټول اطراف به د هغوی په خلاف يو ځای جګړه کوي او هر څوک به د خپل طرف دفاع او ساتنه کوي.

۱۲- دا تړون د ظالم او مجرم لپاره پناه او د نجات سبب نه شي کيدلی[۱].

---

[1]. ابن هشام ۵۰۳/۱، ۵۰۴

پـدي تـړون سـره مدينـه او شـا و خـوا سـيمې د يـوه فـدرالي حکومـت تـر اداري لانـدې راټول ی شوې. ددې حکومت مرکز مدينه او رئيس يې رسول الله(صلی الله عليـه و الـه وصحبه وسلم) وُ چې واک او خبره د مسلمانانو پکې چليده، او پدې سره مدينه واقعاً د مسلمانانو او اسلام مرکز وګرزيد.

په ټوله سيمه کې د امن او آرام ی د ټينګښت پخاطر له نورو قبايلو سره هم د حالاتو او واقعاتو مطابق معاهدې وشوې چې په راتلونکو پاڼو کې به ورنه يادونه وکړو.

# وسله واله مبارزه

## له هجرت نه وروسته د مسلمانانو په خلاف د قريشو فتنې او له عبدالله بن ابي سره يې تماسونه

مخکې مو ولوستل چې د مکې کفارو پر مسلمانانو څه ډول ظلم او زياتی کاوه، او د هجرت په وخت کې يې څه ډول وحشيانه معامله ورسره کوله، نو د دا ډول ظلمونو او تيريو له امله کفار ددې مستحق وو چې مالونه يې ضبط او د جنګ لاره ورسره ونيول شي. هغوی په سد نه راتلل، ظلم او وحشت يې نه پرېښوده، بلکه د مسلمانانو په خلاف يې غوسه او کينه هغه وخت نوره هم پسې زياته شوه کله چې مسلمانانو د دوی له ظلم نه نجات وموند او په مدينه کې د امن د کور خاوندان شول. همغه وه چې عبدالله بن ابي بن سلول ته يې چې هغه وخت لا مشرک ؤ ليک واستاوه. نوموړی له هجرت نه وړاندې د انصارو رئيس ؤ که رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) هجرت نه وی کړی او انصارو ورباندې ايمان نه وی راوړی، نو عبدالله بن ابي به يې خپل پاچا ټاکلی وای. قريشونوموړي او مشرکانو ملګروته يې ډېر تونـد لـيـک وليکـه چې پکې راغلي وو:

تاسې زمونږ ملګري ته پناه ورکړې، قسم په خدای چې يا به ورسره جنګيږئ او يا به يې له وطن نه شړئ، او که نه نو مونږ ټول درځو تر څو ستاسو ټول جنګيالي ووژنو، او د ښځو عزت او حرمت موتر پښو لاندې کړو.[1] د ليک له رسيدو سره سم عبدالله بن ابي د خپلو مشرکينو ورونو د امر د تنفيذ او پلي کولو پخاطر متيې را ونـغښتـلې.

دده زړه لـه مخکې نـه رسول الله(صلی الله عليـه و الـه وصحبه وسلم) تـه ډک ؤ ځکـه ګومان يې کاوه چې رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) يې پاچايي ورخرابه کړه. عبدالرحمن بن کعب وايي: کله چې عبدالله بن ابي او ورسره مشرکو ملګرو ته يې د قريشو دا خبر ورسيد ، نو لـه رسول الله(صلی الله عليـه و الـه وصحبه وسلم) سره د جګړې لپاره راټول شول، خو کله چې رسول الله(صلی الله عليـه و الـه وصحبه وسلم) لـه

[1]. ابو داوٗد باب خبر النضير

موضوع نه خبر شو، ورغی او ویې فرمایل: **(لقد بلغ وعید قریش منکم المبالغ، ما کانت تکیدکم بأکثر ما تریدون أن تکیدوا به أنفسکم، تریدون أن تقاتلوا أبناءکم وإخوانکم)**.د قریشو اخطار او تهدید پر تاسې ډیره ژوره اغیزه کړیده، خو تاسې پخپله خپل ځانونه دومره زیانمن کوئ چې قریش درته دومره لوی زیان او ضرر نه شي رسولی، آیا تاسې غواړئ له خپلو زامنو او ورونو سره جګړه وکړئ؟! مشرکینو چې د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) دا خبرې واوریدې، نو بیرته سره خواره شول.[۱]

پدې سره عبدالله بن ابي د جنګ اراده پریښوده، ځکه ویې لیدل چې ملګري یې وترییدل او یا دا چې په خبره پوه شول او سد یې سر ته راغی. خو دا ښکاره وه چې نوموړي له قریشو سره سر خوځاوه، او کله به یې چې مناسب فرصت موند، نو د مسلمانانو او مشرکانو تر منځ به یې د شر او فتنې اور بلاوه. له ده سره د یهودو همکاري هم وه، خو رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) به تل د دوی د شر او فتنې په اور د خپل حکمت یخې اوبه اچولې او فساد به یې سر اوچتولو ته نه پریښوده.[۲]

## د مسلمانانو په مخ د مسجد حرام د دروازې تړلو اعلان

څه وخت وروسته سعد بن معاذ (رضي الله عنه) د عمرې ادا کولو پخاطر مکې ته لاړ. هلته د امیه بن خلف میلمه شو او امیه ته یې وویل: داسې مناسب او د فرصت وخت راته ګوره چې طواف وکړم. هغه غرمې ته نژدې وخت کې حرم شریف ته بوته، هلته ابو جهل ورسره مخامخ شو او امیه ته یې وویل: ابو صفوانه ! دا څوک دی ؟ امیه ورته وویل: دا سعد دی. ابو جهل ورته وویل: ته ګوره دلته مکه کې په امن او آرام ىسره طواف کوې، خو هلته مدینه کې مو زمونږ بې دینانو ته پناه ورکړیده او دا مو هم پتیلې ده چې د دوی مرسته او مدد به کوئ، قسم په خدای که ته له ابو صفوان سره نه وای، نو بیرته به ژوندی نه وای رانه تللی! سعد په لوړ آواز ځواب ورکړ ورته ویې ویل: قسم په خدای که ته ما لدینه (طواف) منع کړې، زه به دې له هغه څه نه منع کړم

---

[۱]. نفس المصدر

[۲]. صحیح البخاري۲/ ۲۵۵، ۲۵۲، ۹۱۲، ۹۲۴ وګګوره.

چې تا ته له دینه ډیر سخت او درونـد دی، یعنـی لـه مـدینې نـه تیـره شـوې ستاسـې (تجارتي) لار به ستاسې په مخ بنده کړم.(۱)

## مهاجرینو ته د قریشو ګوابن

بیا قریشو مسلمانانو ته داسې اخطار او تهدید ولیږه: ګورئ پدې غره نه شئ چې مدینې ته رانه ولاړئ، مونږ در پسې درځو، او هملته مو تس، نس کوو.(۲) دا هسې لفظي تهدید او اخطار نه ؤ. رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) د قریشو لـه فتنو او فاسدو ارادو نه ښه خبر ؤ، نو ځکه به یې ټوله شپه په رڼو سترګو تیروله او یا به د اصحابو (رضي الله عنهم) تر پیرې لاندې ویده کیده. مسلم لـه عائشې (رضي الله عنها) نه روایت کوي وایي: رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) مدینې تـه لـه راتګ نه وروسته یوه شپه همداسې ویښ ناست ؤ، او ویې فرمایل: (**لیت رجلاً صالحاً من أصحابي یحرسني اللیلة**)، **قالت: فبینما نحن کذلك سمعنا خشخشة سلاح، فقال: (من هذا ؟) قال: سعد بن أبي وقاص، فقال له رسول الله صلی الله علیه وسلم: (ما جاء بك؟) فقال: وقع في نفسي خوف علی رسول الله صلی الله علیه وسلم، فجئت أحرسه، فدعا له رسول الله صلی الله علیه وسلم، ثم نام.** کاشکي له اصحابو نـه مې یوه صالح سړي نن شپه پیره راباندې کړې وای. عائشه وایي: مونږ په همدې حالت کې وو چې د وسلې کرپ کروپ مو واورید، رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) وفرمایل: څوک دي؟ هغه وویل: سعد بن ابي وقاص یم، نو رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ورته وویل: ولې راغلی یې؟ ده وویل: هسې په زړه کې مې د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) په هکله ویره را پیدا شوه، نو راغلم چې پیره وربانـدې وکړم. بیا رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) دعا ورته وکړه او ویده شو.(۳)

دا پیره او بیداري د کومې یوې دوو شپو خبره نه وه، بلکه د رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) همدا حال ؤ. له عائشې نه روایت دی فرمایي: په رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) باندې به د شپې پیره کیدله تر څو دا آیت را نازل شو:

(1) صحیح بخاري کتاب المغازي ۵۲۳/۲
(2).رحمة للعالمین ۱۱۲/۱
(3).مسلم باب فضل سعد بن ابي وقاص ۲۸۰/۲ . البخاري ۴۰۴/۱

((وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنْ النَّاسِ)) (المائدة:٦٧) [الله تعالی تا له خلکو نه ساتي.]
نو رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) خپل مبارک سر لـه قبې نـه را ویوست او ویې فرمایل: (یا أیها الناس، انصرفوا عني فقد عصمني الله عز وجل). اې خلکو! ورځئ لاړ شئ الله تعالی زما حفاظت کوي.(۱)
داسې هم نه وه چې دا خطر یوازې رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) ته متوجه وٴ، بلکه ټول مسلمانان تر ویرې او خطر لاندې وو. ابي بن کعب روایت کوي وایي: کله چې رسول الله(صلی الله علیه و اله وصحبه وسلم) او اصحاب یې مدینې ته راغلل، انصارو پناه ورکړه، ټول عرب د دوی په خلاف سره یو موټی شول، نو مسلمانان به د شپې او ورځې له مخې بې وسلې نه ګرزیدل.

## مسلمانانو ته د جنګ اجازه

پدې حساسو او خطرناکو حالاتو کې چې د مسلمانانو وجود تر خطر لاندې وٴ، او داسې ښکاریده چې قریش په سد نه راځي، او په هیڅ قیمت هم خپل کبر او ظلم نه پریږدي. په همدې وخت کې الله تعالی مسلمانانو ته د جنګ اجازه ورکوي، خو دا جنګ ورباندې فرض کوي نه بلکه ورته فرمایي: ((أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا وَإِنَّ اللَّهَ عَلَى نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ)) (الحج: ۳۹). [حکم ورکړی شویدی (د قتال) هغو کسانو ته چې قتال ورسره کاوه شي (د کفارو له خوا) پدې سبب چې بیشکه په دوی ظلم شویدی، او بیشکه چې الله په مرسته د دوی ښه قادر دی.]
دا آیت له هغو آیاتونو سره رانازل شو چې مسلمانان یې پدې پوهول چې ددې اجازې هدف جنګ د جنګ پخاطر نه بلکه ددې اصلي هدف دا دی چې باطل له مینځه یوووړل شي او د الله احکام او شعائر په ځای شي. الله فرمایي: ((الَّذِينَ إِنْ مَكَّنَّاهُمْ فِي الأَرْضِ أَقَامُوا الصَّلاةَ وَآتَوْا الزَّكَاةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنْ الْمُنْكَرِ وَلِلَّهِ عَاقِبَةُ الأُمُورِ )). (الحج: ٤١) [دغه مهاجر مظلومان، هغه کسان دي چې که چیرې قدرت ورکړو مونږ دوی ته په ځمکه کې (په دښمن باندې دغلبې په اعتبار) نو قائموي دوی (سم ادا کوي له سره له ټولو حقوقو) لمونځ او ورکوي به زکات، او امر (حکم) به کوي

(۱). جامع الترمذي ابواب التفسیر ۱۳۰/۲

(خلکو ته) په معروف (نيک شرعي کار) سره او منع کوي به (خلک) له بد کار څخه او د کارونو پايله له الله سره ده.]
سيي خبره دا ده چې د جنګ دا اجازه له هجرت نه وروسته په مدينه کې نازله شويده، خو دا مو و نه شوای کړی چې د نزول معين او دقيق تاريخ يې وټاکو.
د جنګ اجازه خو وشوه، خو پداسې حالاتو کې چې د قريشو زور او زياتی ښه په جوش کې ؤ د حکمت تقاضا دا وه چې مسلمانان د مکې او شام تر مينځ د قريشو تجارتي لارې تر خپلې ولکې لاندې راولي. رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) ددې هدف د تحقق لپاره دوې لارې غوره کړې:
١- د مکې او شام تر مينځ د لارې په سر او يا ددې لارې او مدينې تر مينځ پرتو قبيلو سره د همکارۍ او يا يو پر بل د عدم تجاوز او نه تيري تړونونه ترسره کول. مخکې مو له يهودو سره د رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) له معاهدې نه يادونه وکړه. له وسلې والې مبارزې نه مخکې همدې ته ورته يو تړون له جهينه قبيلې سره هم شوی ؤ. ددې قبيلې مېنې له مدينې نه د دريو مزلونو يا تقريبا ۴۰- ۵۰ ميله په مسافه کې پرتې وي. همدا راز رسول الله(صلی الله عليه و اله وصحبه وسلم) له نورو قبايلو سره هم د خپلو عسکري عملياتو په وخت کې تړونونه لاسليک کړيدي چې په راتلونکې کې به ورنه يادونه وکړو.
٢- دی لارې نه د ګزمې او ګشتي ګروپونو استول. ددې تفصيل به په راتلونکو پاڼو کې راشي:

## له بدر نه مخکې سرېې او غزا ګانې[١]

د جنګ د اجازې له نزول نه وروسته مسلمانانو د پورته يادو شوو دواړو پلانونو د تطبيق پخاطر عملاً په عسکري تحرکاتو لاس پورې کړ.
شا و خوا ته به يې د کشف او ګزمې ګروپونه استول تر څو له يوې خوا د مدينې تر څنګ له پرتو برخو نه مکې ته غزيدلې لارې ځانته معلومې کړي، او له بلې خوا دلته له پرتو قبايلو سره د همکارۍ تړونونه لاسليک کړي او د مدينې مشرکينو، يهودانو او نورو اعرابو (کوچيانو) ته دا وښيي، چې نور مسلمانان د پخوا په شان کمزوري ندي

---

(1). مؤرخين هغې پوځې اقدام ته چې پخپله رسول الله (صلی الله عليه وسلم) پکې وتلی دی، جګړه يې کړې ده که نه غزوه وايي، او په کومو عملياتو کې يې چې پخپله ګډون ندی کړی کوم بل قوماندان يې استولی وي هغې ته سر يه وايي.

بلکه اوس د قوي ځواک او زیات قدرت خاوندان ګرزیدلي.
ددې عسکري تحرکاتو بل هدف دا هم ؤ چې قریش وویروي، سد یې سر ته راولي ترڅو د کبر او غرور له نیلي نه راکوز شي، او د خپل اقتصاد او مهمو ژوندینو لارو په هکله د خطر احساس وکړي او د سولې لاره غوره کړي، له مسلمانانو سره د جنګ اراده پرېږدي، د الله په لاره کې نور خنډونه را پیدا نکړي، په مکه کې د مسلمانانو له تعذیب او ځورولو نه لاس واخلي او مسلمانان پرېږدي په پوره آزادۍ سره په عربي جزیره کې د الله پیغام خپور کړي.

## راځئ اوس په لنډه توګه لدې سرایاوو نه یادونه وکړو:

۱- د **سیف البحر** سریه: د هجرت د لومړي کال د رمضان په میاشت کې چې د (۶۲۳م) کال د مارچ له میاشتې سره سمون خوري، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د مهاجرینو یو دیرش کسیز ګروپ چې مشري یې د حمزه (رضي الله عنه) په غاړه وه، پدې وګوماره چې د قریشو د هغې درې سوه کسیزې قافلې مخه ونیسي کومه چې ابو جهل هم پکې ؤ او له شام نه را روانه وه. مسلمانان چې کله د عیص[1] له خوا د سیف البحر منطقې ته ورسیدل او هملته له مشرکینو سره مخامخ شول. دواړو طرفونو د جنګ تیاري ونیوله، خو مجدي بن عمرو الجهني چې له دواړو لوریو یعنې مسلمانانو او مشرکینو سره یې تړون درلود راغی، منځګړیتوب یې وکړ او هغوی یې له جنګ نه واړول.
د حمزه (رضي الله عنه) بیرغ لومړنی بیرغ ؤ چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پورته کړ یا یې وتاړه، رنګ یې سپین او ورونکی یې ابو مرثد کناز بن حصین الغنوي(رضي الله عنه) ؤ.

۲- د **رابغ** سریه: د هجرت د لومړي کال د شوال په میاشت کې چې د ۶۲۳م کال د اپریل له میاشتې سره سمون خوري، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د عبیده بن الحارث بن المطلب (رضي الله عنه) په مشرۍ د مهاجرینو یو شپیته کسیزه ګروپ تیار کړ او ویې لیږه. دا ګروپ د ابو سفیان په مشرۍ د قریشو له دوه سوه کسیز کاروان سره د رابغ په سیمه کې مخامخ شو، په یو بل یې غشي و ورول، خو لاس په

[1]. عیص: دع په زبر سره د ینبع او مروه چې له سرې بحیری سره واقع دی په مینځ کې د یوې سیمې نوم دی.

لاس جګړه ونه شوه. پدې سریه کې د مشرکینو له لښکر نه دوه کسه مقداد بن عمرو البهراني او عتبه بن غزوان المازني له مسلمانانو سره یو ځای شول. دوی دواړه له مخکې نه په اسلام مشرف شوي وو او له مشرکینو سره پدې خاطر راوتلي وو، تر څو ځانونه مسلمانانو ته ور رسولی شي. د عبیده بیرغ سپین او ورونکی یې مسطح بن اثاثه بن المطلب بن عبد مناف وُ.

**۳- د خرار سریه** [۱]: د لومړي هجري کال د ذي القعدې په میاشت کې چې د ۶۲۳م کال د مې له میاشتې سره سمون خوري رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د سعد بن ابي وقاص تر مشرۍ لاندې د سپرو یوه شل کسیز ګروپ ته امر وکړ چې د قریشو د کاروان مخې ته ورشي، خو دا یې ورته وویل چې د خرار له سیمې نه به اخوا نه تیریږي. دوی پیاده حرکت وکړ، د شپې یې مزل کاوه او د ورځې به چیرته غلي کیدل تر څو د پنځمې ورځ په سهار خرار ته ورسیدل. او هلته خبر شول چې کاروان پرون لدې سیمې نه تیر شویدی.د سعد (رضي الله عنه) بیرغ سپین او علمبردار یې مقداد بن عمرو وُ.

**۴- د ابواء یا ودان غزا** :[۲] د دویم هجري کال د صفر په میاشت کې چې د۶۲۳م کال د اګست له میاشتې سره سمون خوري، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپله له او یا کسو مهاجرینو سره ووت. سعد بن عباده یې په مدینه کې خلیفه وټاکه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) غوښتل د قریشو د کاروان مخه ونیسي، مخکې تر ودان پورې ورسید، خو له کوم خطر سره مخامخ نه شو. پدې غزا کې یې د بني ضمره له رئیس عمرو بن مخشي الضمري سره د تعاون تړون وکړ ددې تړون متن دا دی: (**هذا كتاب من محمد رسول الله لبني ضمره، فإنهم آمنون على أموالهم وأنفسهم، وإن لهم النصر على من رامهم إلا أن يحاربوا دين الله ن ما بل بحر صوفة وأن النبي إذا دعاهم لنصره أجابوه**).

[دا بني ضمره ته د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لیک دی، د دوی

---

[۱]. خرار – دخ په زور او د را په تشدید له جعفی سره نژدې د یوه ځای نوم دی

[۲]. ودان – د واو په زور او د دال په تشدید سره ویل کیږي دا د مکې او مدینې ترمنځ د یوې سیمې نوم دی، ددې ځای او رابغ ترمنځ (۲۹) میله مسافه ده . او ابواء د ودان تر خوا یوه بله منطقه ده .

سرونه او مالونه په امن دي که چاورباندې حمله وکړه، نو مرسته به یې کیږي، خو که هغوی د الله د دین په خلاف جګړه وکړي نو بیا ورسره کومک او مرسته نشته.] (دا معاهده) تر هغه وخته د اعتبار وړ ده تر څو د سمندر اوبه وجود لري. یعنی د همیشه لپاره معتبره ګڼلی شي. او هر کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له دوی نه مرسته وغواړي، نو دوی به یې مرستې ته ور دانګي[1]. دا د رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لومړنی غزا وه، ده مبارک (۱۵) ورځې له مدینې نه د باندې تیرې کړې، بیرغ یې سپین او وړونکی یې حمزه بن عبدالمطلب (رضي الله عنه) وُ.

**۵- د بواط غزا**: د دویم هجري کال د ربیع الاول په میاشت کې چې د ۶۲۳م کال د سپتمبر له میاشتې سره سمون خوري رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له دوه سوه اصحابو (رضي الله عنهم) سره د قریشو د کاروان مخې ته ورغی. پدې کاروان کې امیه بن خلف الجمحي، او د قریشو سل نور کسان او دوه زره پنځه سوه اوښان وُو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مخکې لاړ تر څو د رضوی له طرفه بواط ته ورسید، خو له څه واقعې سره مخامخ نه شو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په دې غزا کې سعد بن معاذ (رضي الله عنه) په مدینه کې خپل خلیفه ټاکلی وُ. ددې غزا بیرغ سپین او وړونکی یې سعد بن ابي وقاص (رضي الله عنه) وُ. (بواط او رضوی د جهینه د غرونو د لړۍ دوه فرعي غرونه دي چې له مکې نه د شام د لارې پر غاړه پراته دي او له مدینې نه ۴۸ میله مسافه لري.)

**۶- د سفوان غزا**: د دویم هجري کال د ربیع الاول په میاشت کې چې د ۶۲۳م کال له سپتمبر سره سمون خوري، د جابر الفهري زوی کرز له یو شمیر مشرکانو سره د مدینې په څړ ځایونو یا ورشو حمله وکړه او څه شمیر څاروي یې بوتلل. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له اویا کسه اصحابو (رضي الله عنه) سره وریسې ووت او د بدر له طرفه د سفوان سیمې ته ورسید. خو کرز یې له لاسه وتلی وُ او بیرته بې جګړې راستون شو. دا غزا د بدر د لومړنی غزا په نامه یادیږي.دا ځل یې زید بن حارثه (رضي الله عنه) په مدینه کې خلیفه وټاکه، بیرغ یې سپین او وړونکی یې علي

[1]. المواهب اللدنية ۷۵/۱ و شرحه للزرقاني.

بن ابي طالب (رضي الله عنه) ؤ.

**۷- د ذي العشيرة[5] غزا:** د هجرت د دويم کال د جمادي الاولی او جمادي الاخر په مياشت کې چې د ۶۲۳م کال له نومبر او ديسمبر سره سمون خوري، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له (۱۵۰) يا (۲۰۰) کسو مهاجرينو سره ووت. هيڅوک يې له ځان سره په زور نه ؤ بوولي، ټول په خپله رضا او خوښه روان شول. له دوی سره يوازې ديرش اوښان ؤ چې په نوبت به وربانديې سپريدل. هدف يې د هغې کاروان نيول ؤ چې له مکې نه شام ته روان و. داسې خبر راغلی ؤ د قريشو په خاص او قيمتي مالونو بار کاروان له مکې نه روان شويدی، نو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مخکې لاړ تر څو د ذي العشيرې سيمې ته ورسيد ، هلته خبر شو چې کاروان څو ورځې مخکې تير شويدی. او دا همغه کاروان دی چې له شام نه د بيرته ستنيدو په وخت کې يې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) بيا مخې ته ورغلی ؤ کاروان نجات وموند خو د بدر لويه غزا پيښه شوه.

د ابن اسحاق په خوله دا ځل رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د جمادي الاولی په وروستيو کې وتلی او د جمادي الاخر په لومړيو ورځو کې بيرته راستون شوی ؤ.کيداې شي همدا د مورخينو تر مينځ د دې غزا د نيټې په هکله د اختلاف سبب وي.پدې غزا کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له بني مدلج او د دوی له حليفانو سره د عدم تجاوز تړون هم لاس ليک کړ.ابو سلمه بن عبدالاسد المخزومي يې په مدينه کې خپل خليفه پرې اينبی ؤ، بيرغ سپين او وړونکی يې حمزه بن عبدالمطلب (رضي الله عنه) ؤ.

**۸- د نخله سريه:** د دوهم هجري کال د رجب په مياشت کې چې د ۶۲۴م کال د جنوري له مياشتې سره سمون خوري رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د عبدالله بن جحش اسدي تر مشرۍ لاندې د مهاجرينو يو دوولس کسيز ګروپ د نخلې سيمې ته واستاوه. له دوی سره شپږ اوښان وو چې په نوبت به وربانديې سپريدل.

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ګروپ قوماندان ته يو خط ليکلی ؤ او امر يې ورته کړی ؤ چې ليک به له دوو ورځو مزل نه وروسته ګوري. عبدالله دوه

---

[5]. ذي العشيرة په تصغير سره، ځينو يې نوم العشيراء او العسيرة هم بللی دی چې د ينبع خواته د يوې سيمې نوم دی.

ورځې مزل وکړ بیایې لیک ولوست چې داسې پکې لیکل شوي وُ: (**إذا نظرت في كتابي هذا فامض حتى تنزل نخلة بين مكة والطائف، فترصد بها عير قريش وتعلم لنا من أخبارهم**). [کله دې چې زما دا لیک ولوست، نو مخکې لاړ شه د مکې او طائف تر مینځ پرتې نخلې سیمې کې واړوه، هلته د کاروان لاره څاره او مونږ ته خبر راکوه].
خط یې چې ولوست ویې ویل: امر په سترګو قبول دی، خپل ملګري یې خبر کړل، خو دا یې ورته وویل: چې زه تاسې نه مجبوروم، څوک که شهادت غواړي نو راسره ځي دي او که د چا مرګ نه وي خوښ، نو بیرته دې وګرځي، زه به ځم. ملګري یې ورسره موافق شول، ټول وخوځیدل، د لارې په اوږدو کې سعد بن ابي وقاص او ملګري یې عتبه بن غزوان خپل اوښ ورک کړ چې په لټه کې یې له ګروپ نه پاتې شول.
عبدالله بن جحش مخکې لاړ او نخلې ته ورسید، چې ګوري د قریشو یو کاروان چې ممیز، څرمنې او نور تجارتي سامان یې نقلاوه لدې ځای نه تیریږي. له کاروان سره عمرو بن الحضرمي، د عبدالله بن المغيره دوه زامن، عثمان او نوفل او د بني مغيره مولی (غلام) حکم بن کیسان یې ملګري وو. مسلمانانو په خپل مینځ کې سلا او مشوره وکړه چې څه باید وکړو نن د رجب وروستۍ شپه ده، که اوس ورسره جنګیږو، نو د شهر حرام بې حرمتي کیږي او که یې نن پریږدو، نو بیا د حرم حدودو ته داخلیږي! بالاخره فیصله پدې وشوه چې همدا نن مقابله ورسره وکړي او له دوی نه کوم یوه عمرو بن الحضرمي وویشت او مړ یې کړ، عثمان او حکم یې اسیران کړل، نوفل ورنه وتښتید. بیایې کاروان له اسیرانو سره یو ځای مدینې ته راوست، لدې مال نه یې خمس بیل کړ دا په اسلام کې لومړنی خمس او لومړنی مړی او لومړني اسیران وو.
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د دوی دا کار وغانده، او ورته ویې فرمایل: (**ما أمرتكم بقتال في الشهر الحرام**) [ما خو په شهر حرام کې د قتال امر او اجازه نه وه درکړې.] د کاروان او اسیرانو په هکله یې خپله فیصله محفوظه وساتله، او فعلاً یې هر ډول تصرف پکې متوقف کړ.
پدې پیښې سره مشرکینو ته فرصت په لاس ورغی چې د مسلمانانو په خلاف خپل زهرجن تبلیغات لا پسې زیات کړي. هغوی دا پروپاګند شروع کړ چې مسلمانان د شهر حرام احترام نه ساتي، او د الله تعالی له خوا حرام شوي شیان حلال ګرزوي. پدې هکله یې ډیر څه ویل، تر څو د قرآن کریم آیتونه نازل شول او دا مسئله یې حل کړه، په ډاګه یې کړه چې د مسلمانانو ددې کار په انډول د مشرکینو جرم او ګناه ډیره لویه ده...

((يَسْأَلُونَكَ عَنْ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيهِ قُلْ قِتَالٌ فِيهِ كَبِيرٌ وَصَدٌّ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ وَكُفْرٌ بِهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَإِخْرَاجُ أَهْلِهِ مِنْهُ أَكْبَرُ عِنْدَ اللَّهِ وَالْفِتْنَةُ أَكْبَرُ مِنْ الْقَتْلِ...)) (البقرة: ۲۱۷). [پوښتنه کوي خلک له تا نه (اې محمده) له میاشتې حرامې څخه له جنګ کولو پدې کې (چې روا دی که ناروا؟) ووایه (اې محمده) دغه (سائلينو ته) چې جنګ کول پدې (اشهر الحرام) کې (عمدا) لويه ګناه ده، او منع کول له لارې (دين) د الله څخه او کافر کيدل په الله او (منع کول له) مسجد حرام او ايستل د اهل د مسجد حرام له ده څخه (ګناه) ډيره لويه ده په نزد د الله (له قتاله په اشهر الحرام کې) او فتنه (له دين څخه د خلکو ايستل) ډير لويه (ګناه) ده له جنګ څخه.]

قرآنکريم پدې سره دا په ډاګه کړه چې د مسلمانو جنګياليو د سيرت او اخلاقو په هکله چې مشرکينو دا نارې سورې په کار اچولې دي ټولې بې ځايه او بې بنياده دي، ځکه قريشو له اسلام سره په دښمنۍ او پر مسلمانانو باندې په ظلم زياتي سره ټول حرمتونه تر پښو لاندې کړيدي. آيا قريشو له هجرت نه وروسته د مسلمانانو د مالونو د ضبط او غصب، او د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د قتل او وژلو فيصله په همدې حرم (مکه) کې نه وه کړې؟ اوس څه وشول چې د دوی له خوا تر پښو لاندې شوی حرمت بيرته را پيدا شو او څه وشول چې اوس ددې شيانو د حرمت ماتول د شرم او عيب خبره وګرزيده؟ بې شکه د مشرکانو له خوا د ناروا او بې بنياده پرو پاګند د د دوی د بې شرمۍ او بې حيايۍ يوه نمونه ده. لدينه وروسته رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دواړه اسيران خوشي کړل، او د وژل شوي کس خپلوانو ته يې د هغه ديت ورکړ.[1]

دا وې له بدر نه مخکې پيښې شوې غزا ګانې او سريې، پدې ټولو کې تر هغې د مالونو لوټ او د خلکو وژلو ته خبره نه وه رسيدلې، تر څو پورې چې مشرکينو د کرز بن جابر فهري تر مشرۍ لاندې د مسلمانانو څاروي نه وو لوټ کړي. بناءً ددې شروع هم د مشرکينو له خوا شوې ده، دا خو پريږده چې لدينه مخکې يې څه کړي وُ. د عبدالله بن جحش له سريې نه وروسته د مشرکينو په زړه کې ريښتينې ويرې ځای ونيو، لوی خطر يې سترګو ته ودريد ، او د څه ويره يې چې درلوده همغه وشول. او پدې

---

-[1]. ددې غزاګانو او سراياوو تفصيلات مو لدې کتابونو اخيستې دي!. زاد المعاد ۸۳/۲. ۸۴. ۸۵ ابن هشام / ۵۶۱ تر ۶۰۵، رحمة للعالمين ۱۱۵/۱، ۱۱۶، ۲۱۵/۲، ۲۱۶، ۴۶۹، ۴۷۰. دا مراجع د غزواتو او سراياوو د ترتيب او ګډون کوونکو د شميرې په هکله اختلاف لري خو مونږ د ابن قيم او علامه منصور پوري په تحقيق تکيه کړيده.

باوري شول چې د مدينې قيادت ويښ، او با حکمته قيادت دی، د دوی ټول تجارتي حرکات يې تر کلکې څارنې لاندې نيولي. اوس مسلمانان ددې توان لري چې ان دری سوه ميله مخکې لاړ شي، او بيا هلته مشرکان ووژني يا يې اسيران کړي او مالونه يې له ځان سره يوسي او پخپله روغ رمټ مدينې ته ستانه شي. مشرکين پدې پوه شول چې نور شام ته د دوی تجارت تر دايمي خطر لاندې دی، خو لدې ټولو سره سره هغوی خپله د کبر او حماقت لاره نه پريښوده، او په ځای ددې چې د بني ضمره او جهينه په شان د سولې او اخلاص لاره ونيسي، کينه او دښمني يې نوره هم په ځوښ راغله. مشران يې د خپلو تهديدونو او اخطارونو د پلي کولو لپاره ميدان ته راوراندې شول، او اراده يې وکړه چې د مسلمانانو پر وطن حمله وکړي او هملته خپل وطن کې يې تصفيه کړي. د مسلمانانو وينو ته د دوی همدا تنده وه چې هغوی يې د بدر تر ميدانه را ورسول.

د عبدالله بن جحش له سريې وروسته يعني د دويم هجري کال د شعبان په مياشت کې په مسلمانانو باندې جنګ او قتال فرض شو، او پدې هکله دا څرګند آيتونه را نازل شول: ((وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ وَلا تَعْتَدُوا إِنَّ اللَّهَ لا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ (١٩٠) وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ وَأَخْرِجُوهُمْ مِنْ حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ وَالْفِتْنَةُ أَشَدُّ مِنْ الْقَتْلِ وَلا تُقَاتِلُوهُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتَّى يُقَاتِلُوكُمْ فِيهِ فَإِنْ قَاتَلُوكُمْ فَاقْتُلُوهُمْ كَذَلِكَ جَزَاءُ الْكَافِرِينَ (١٩١) فَإِنْ انتَهَوْا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ (١٩٢) وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ لِلَّهِ فَإِنْ انتَهَوْا فَلا عُدْوَانَ إِلاَّ عَلَى الظَّالِمِينَ)). (البقرة: ١٩٠ – ١٩٣)

ترجمه: [او جنګ کوئ (اې مؤمنانو) په لاره دالله کې له هغو کسانو سره چې جنګ کوي له تاسې سره، او مه کوئ زيادت (پر هيچا باندې) بيشکه چې الله نه خوښوي تيريدونکي له حده. او وژنئ دوی په هر ځای کې چې مومئ دوی او وباسئ دوی له هغه ځايه چې ايستلي وئ دوی تاسې او فتنه (شرک او له دين ځنې اړول) ډير سخت دي له وژلو څخه. او جنګ مه کوئ له دوی سره په نزد د مسجد الحرام کې تر هغه پورې چې وجنګيږي دوی له تاسې سره په دغه (حرم) کې پس که جنګ وکړي دوی له تاسې سره نو وژنئ دوی هم داسې. (لکه تيرې شوې جزا) جزا ده د کافرانو. پس که منع راوړي (له شرکه نو الله به يې وبښي) نو بيشکه الله ډير ښښونکی پوره رحم لرونکی دی.

او جنګ کوئ تاسي له دوی سره تر هغه پورې چې پاتې نشي فتنه (شرک او فساد) او شي دين (حکم) خاص الله لره، پس که چيرې وګرځيدل (دوی له شرکه نو تاسې تجاوز مه کوئ پر دوی باندې) نو نشته هيڅ تيرې مګر (خو شته جزا د ظلم) پر ظالمانو باندې.]

پدې پسې لږ وخت وروسته الله تعالی بل ډول آيتونه نازل کړل چې په هغې کې يې د جنګ طريقه ښوولې او مسلمانان يې د جنګ لور ته هڅول او پدې هکله يې څه احکام ورته بيانول هغه مبارک آيتونه دا دي: ((**فَإِذا لَقِيتُمْ الَّذِينَ كَفَرُوا فَضَرْبَ الرِّقَابِ حَتَّى إِذَا أَثْخَنتُمُوهُمْ فَشُدُّوا الْوَثَاقَ فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَاءً حَتَّى تَضَعَ الْحَرْبُ أَوْزَارَهَا ذَلِكَ وَلَوْ يَشَاءُ اللَّهُ لانتَصَرَ مِنْهُمْ وَلَكِنْ لِيَبْلُوَ بَعْضَكُمْ بِبَعْضٍ وَالَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَلَنْ يُضِلَّ أَعْمَالَهُمْ * سَيَهْدِيهِمْ وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ * وَيُدْخِلُهُمْ الْجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمْ * يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تَنصُرُوا اللَّهَ يَنصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ**)).(۱) (**محمد: ٤ – ٧**)

ترجمه: [نو کله چې مخامخ شوئ (په جنګ کې) له (هغو کسانو) سره چې کافران شويدي نو ووهئ وهل د ورميږونو (د هغو) تر هغه پورې چې ښه ډير مو ووژل دوی او پرې غالب شوئ نو (وتړئ دوی) بيا سخت محکم کړی تړل (د دوی چې ورڅخه خلاص نشي) پس بيا احسان ورسره وکړئ احسان کول وروسته (له بندي کولو او تړلو نه يې) او يا تاسې فديه کړئ دوی فديه کول (په عوض کې يې مال واخلې يا مسلمانان بنديان را خلاص کړئ) (جنګ) ورسره کوئ تر هغه پورې چې کيږدي (جنګيالیان د) جنګ وسلې خپلې دغه (حکم الله په دوی کې) دی او که اراده فرمايلی وی الله (د بدل اخيستلو) نوخوا مخواه به بدل اخيستی ؤ الله له دوی څخه (بې له جنګه) او ليکن (امر يې درته وکړ په جهاد له دوی سره) لپاره ددې چې ازموينه وکړي الله د ځينو ستاسو په ځينو نورو (په جنګ کې) او هغه کسان چې وژلی شويدي په ليار د الله کې پس له سره به ضايع نکړي (الله) عملونه د دوی ژر به سمه لياره وښيي دوی ته (الله په دنيا او آخرت کې) او ښه به کړي حال د دوی (په دارينو کې) او داخل به کړي (الله) دوی په جنت کې چې معلوم کړيدی (الله) دغه (جنت) دوی ته. اې هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعنی اې مؤمنانو) که مددګاري وکړئ تاسی (له دين (الله او رسول) د الله سره نو مدد به وکړي (الله) تاسې سره (په غلبه پر (دښمن) او ثابت به کړي قدمونه ستاسې (په

---

(1). استاذ سيد ابو الاعلی مودودي له مـدلـل ی څيړنې وروسته وايي چې د محمد سورت د بدر له غزا وروسته نازل شويدی.تفهيم القرآن **۱۱/۵**-۱۲ ته مراجعه وکړه.

ځای د جنګ کې).]

پدې پسې الله تعالی د هغې خلکو مذمت وکړ او ويې غندل کوم چې د جنګ د حکم په اوريدو سره ويرې اخيستي وو، او له ډير خوف نه يې زړونه رپيدل. الله تعالی فرمايي:

((وَيَقُولُ الَّذِينَ آمَنُوا لَوْلا نُزِّلَتْ سُورَةٌ فَإِذَا أُنزِلَتْ سُورَةٌ مُحْكَمَةٌ وَذُكِرَ فِيهَا الْقِتَالُ رَأَيْتَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ نَظَرَ الْمَغْشِيِّ عَلَيْهِ مِنْ الْمَوْتِ فَأَوْلَى لَهُمْ)).(محمد: ۲۰) [نو پس کله چې نازل کړ شي يو سورت محکم او ياد کړی شي په هغه کې جنګ نو وينې به ته هغه کسان چې وي په زړونو د دوی کې ناروغي (د نفاق) ګوري تا ته لکه کتنه د هغه چا چې بيخودي راغلې وي پر هغه باندې له ويرې د مرګ نه، هلاکت دې وي دوی لره.]

حقيقت دادې چې د جنګ فرضيت، او جنګ ته د تيارۍ امر او دې لور ته هڅونه د هغه وخت د حالاتو او شرايطو له غوښتنې سره بالکل مطابقه او برابره خبره وه. که له حالاتو خبر او زيرک کوم قوماندان هم وای، نو هغه به هم خپل لښکر ته ددې فوق العاده او عاجلو حوادثو او حالاتو د مقابلې لپاره خپل پوځ ته د نمبر اول احضاراتو او آماده باش حکم صادراوه، نو په هر څه عالم او له هر څه لوړ خدای به ولې له حالاتو سره برابر حکم نه کاوه. دا واقعيت دی چې حالاتو د حق او باطل تر مينځ د يوې سرنوشت ټاکونکې او فيصله کونکې جګړې غوښتنه کوله. خصوصاً د عبدالله بن جحش له سريې وروسته کومه چې د مشرکينو په غيرت او حميت لوی او ملاماتونکی ګذار وُ او کومه چې ټول مشرکان يې په سرو سکروټو کينولي وو.

د جنګ د آيتونو له سياق او سباق نه دا څرګنديده چې نور د داسې خونړيو جګړو وخت را لنډ شويدی چې بری او برلاسي به پکې د مؤمنانو وي. ګوره الله تعالی مسلمانانو ته څه ډول حکم کوي چې مشرکان له هغه ځايه وباسئ له کوم نه يې چې تاسې ايستلې يې، بيا هغوی ته د فاتح لښکر په حيث څه ډول د اسيرانو د تړلو، نيولو او د دښمنانو تر مکملې خاتمې پورې د جګړې کولو ښوونه کوي. دا ټول دې لوري ته اشاره وه چې وروستی بری د مسلمانانو دی. خو دا خبره يې همداسې د اشارو تر پردو لاندې پټه وساتله، تر څو هر مسلمان د الله په لار کې د خپلې جذبې عملي ښکارونه هم وکړی شي.

په همدې ورځو يعنې د دوهم هجري کال د شعبان په مياشت کې چې د ۶۲۴م ميلادي کال د فبروري له مياشتې سره سمون خوري الله تعالی د بيت المقدس په ځای کعبه

شریفه د مسلمانانو قبله اعلان کړه. ددې فایده دا شوه چې هغه کمزوري او منافق یهودان چې یوازې د شر او فتنې را ولاړولو پخاطر مسلمان شوي وو، بیرته خپل حالت ته وګرزیدل، له مسلمانانو نه بیل شول او پدې سره د مسلمانانو لیکې له ډیرو غدارانو او فساد کارانونه پاکې شوې.

د قبلې بدلولو دیته هم اشاره کوله چې اوس یوه نوې داسې مرحله شروع کیدونکی ده چې پر قبله باندې د مسلمانانو تر تسلط او حاکمیت نه مخکې پاې نه مومي. ځکه دا د ډیر حیرت او تعجب خبره ده چې د کوم قوم قبله دې د هغوی د دښمنانو ترولکې لاندې وي، او که فرضاً د هغوی تر قبضې لاندې وي، نو باید حتماً د هغوی له سلطې نه آزاده کړی شي.

لدې اوامرو او اشاراتو وروسته د مسلمانانو حرکت او نشاط زیات شو، د خدای په لار کې یې د جهاد جذبې په مستۍ راغلې او له دښمن سره د پریکندې جګړې لپاره لیوال شول.

# د بدر لویه غزا
# د اسلام لومړنۍ پریکنده جګړه

**د غزا سبب:** د عشیرې په غزا کې مو وویل چې د قریشو یو کاروان چې له مکې نه شام ته روان وُ د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له لاسه ووت، خو کله چې همدا کاروان له شام نه بیرته راستنیده، نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) طلحه بن عبیدالله او سعید بن زید د کاروان د خبر راوړلو پخاطر د شمال لوري ته واستول. دوی تر حوراء پورې لاړل او هملته پاتې شول تر څو د ابو سفیان کاروان وربانديې تیر شو، دوی په منډه ځانونه مدینې ته ورسول او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یې له احوال نه خبر کړ.

پدې کاروان کې د قریشو ډیر مالونه وو یعنې زر اوښان چې د پنځوس زره طلایي دینارونو (دوه سوه دوه شپیته نیم کیلو سره زر) په اندازه سامان وربانديې بار وُ، او یوازې څلویښت ساتونکي ورسره وو.

دا د مدینې د خلکو لپاره طلایي موقع وه، خو د مکې د مشرکینو لپاره لدې دومره ډیر مال نه محرومیدل ملاماتونکې نظامي، سیاسي او اقتصادي ضربه وه. همدا وجه وه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مسلمانانو ته وفرمایل:(**هذه عیر قریش فیها أموالهم، فاخرجوا إلیها لعل الله ینفلکموها**). [دا د قریشو په مال او سامان بار کاروان دی، مخې ته یې ورشئ کیدای شي الله تعالی هغه تاسې ته د غنیمت په ډول درکړي.]

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د کاروان مخې ته ورتلل په هیچا لازمي نکړل، بلکې یې خپلې خوښې ته پریښودل، ځکه پدې وخت کې دا ګومان نه کیده چې د قافلې په ځای به د بدر په میدان کې له مشرکینو سره یوه پریکنده جګړه صورت مومي. له همدې امله ډیر اصحاب (رضي الله عنهم) په مدینه کې پاتې شول ځکه هغوی فکر کاوه چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دا عملیات به له پخوانیو عملیاتو سره څه توپیر ونلري. او په همدې سبب له جګړې نه پاتې شویو کسانو باندې څه عتاب او ملامتیا هم نه شته.

## د اسلامي لښکر شمیره او په ګروپونو ویشل

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د روانیدو لپاره تیار شو، (۳۱۳ یا ۳۱۴ یا ۳۱۷) کسان ورسره وو، له دې جملې نه ۸۲ یا ۸۳ یا ۸۶ مهاجرین، نور انصار چې ( ۶۱) له اوس او ( ۱۷۰) له خزرج قبیلې څخه وو. دې لښکر د جګړې څه انتظام نه ؤ کړی او نه یې پوره تیاري نیولې وه، په ټول لښکر کې یوازې دوه آسان چې یو یې د زبیر بن عوام او بل یې د مقداد بن اسود کندي ؤ. او د پاتې کسانو د هرو دوو یا دریو په سر یو اوښ رسیده څکه ټول ایله اویا اوښان ورسره وو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او علي او مرثد بن ابي مرثد غنوي درې واړه په یوه اوښ په نوبت سره سپریدل.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لومړی د مدینې د ادارې او لمانځه ادا کولو لپاره ابن ام مکتوم خپل خلیفه وټاکه، خو کله چې روحاء ته ورسید، نو ابو لبابه بن عبد المنذر یې په مدینه کې د خلیفه په حیث ور ولیږه.

د لښکر عمومي بیرغ سپین او علمبردار یې مصعب بن عمیر قرشي عبدري ؤ. لښکر یې په دوو برخو یا غونډونو وویشه:

۱- د مهاجرینو غونډ چې بیرغ یې له علي (رضي الله عنه) سره ؤ.

۲- د انصارو غونډ او علمبردار یې سعد بن معاذ (رضي الله عنه) ؤ.

د میمنې (ښي اړخ) قوماندانی یې زبیر بن عوام، او د میسرې قوماندانی یې مقداد بن عمرو او د ساقې مشري یې قیس بن ابي صعصعه ته سپارلې وه، او د لښکر عمومي قومانده رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د لښکر د عمومي قوماندان په توګه پخپل لاس کې اخیستې وه.

## د بدر په لور د لښکر روانیدل

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له دې غیر مجهز لښکر سره روان شو، له مدینې نه ووت او مکې ته غزیدلې عمومي لاره یې ونیوه مخکې د روحاء تر کوهي پورې ورسید. او کله چې له هغه ځاې نه وخوځید نو د مکې لاره یې خپلې چپې خوا ته پریښوده او ښی خواته وګرزید، نازیې ته ورسید، د بدر په لور د نازیې له یوې برخې تیر شو او د صفراء د تنګې او نازیې تر مینځ پرته رحقان نومې وادي یې ووهله بیا له تنګې تیر، او د صفراء په خوا مخکې لاړ، له هغه ځای نه یې د جهینه قبیلې دوه

کسه بسيس بن عمرو او عدي بن ابي الزغبا جهيني د کاروان په هکله د معلوماتو راټولولو پخاطر د بدر لور ته واستول.

## په مکه کې د خطر اعلان

له بل پلوه د کاروان مشر ابو سفيان په ډېر احتياط سره د حالاتو څارنه کوله، ځکه هغه پوهيده چې د مکې لاره له ډيرو خطرونو سره مخامخ ده، هر وخت يې په اوضاع ځان پوهاوو او له نورو کاروانونو نه يې د لارې په هکله معلومات اخيستل. بالاخره پدې خبر شو چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپل اصحاب پر قافلې باندې د حملې لپاره تيار کړيدي، نو فورا يې ضمضم بن عمرو غفاري ته پيسې ورکړې او مکې ته يې واستاوه تر څو قريشو د کاروان د نجات او مرستې لپاره راوبولي. ضمضم په ډيره بيړه ځان مکې ته ورساوه، او هلته يې د عربو د عاداتو سره سم د اوښ پزه او خپل کميس څيرې کړ، کجاوه يې چپه کړه او پاس پر اوښ ودريد او په لوړ آواز يې نارې کړې اې قريشو! قافله.... قافله...... محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او اصحاب يې له ابو سفيان سره ستاسې پر مالونو حمله کوي، فکر نه کوم چې په لاس به درشي، کومک... کومک.....

## د مکې خلک د جنګ تياري نيسي

ددې اواز په اوريدو سره د مکې ټول مشرکين په حرکت راغلل، او ويې ويل: آيا محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او اصحاب يې فکر کوي چې دا هم د ابن حضرمي کاروان دی؟ قسم په خدای چې ژر به پوه شي چې زمونږ معامله بل ډول ده ټول پدې سلا شول چې يا به هر څوک پخپله ځي او يا به خپل عوض ليږي، خو زياترو جنګ ته تلل غوښتل خصوصا مشرانو او رئيسانو. پدې سره له ابو لهب پرته نور ټول مشران جنګ ته تيار شول ابو لهب د ځان په عوض خپل پوره وړی واستاوه. قريشو شاو خوا عربي قبيلې هم له ځان سره ملګرې کړې او له بني عدي پرته چې يو کس يې هم جنګ ته ونه ووت نورې ټولې قريشي قبيلې جګړې ته روانې شوې.

## د مکې لښکر شميره

د روانیدو په وخت کې ددې لښکر شمیره یو زر او دری سوه (۱۳۰۰) جنګیالو ته رسیده چې ورسره سل آسان (۶۰۰) زغرې او بې شمیره اوښان چې دقیقه شمیره یې نده معلومه. عمومي قومندان یې ابو جهل ؤ او د قریشو ( ۹) مشرانو د لښکر لوژستیکي امور، تمویل او رسد په غاړه اخیستی ؤ، دوی به هره ورځ (۹) او کله (۱۰) اوښان حلالول.

## د بني بکر قبیلو لانجه

کله چې لښکر د تلو تیاري ونیوله، نو قریشو ته یو ځل له بني بکر سره خپله دښمني او لانجه وریه یاد شوه، او وویریدل چې هسې نه هغوی د شا له خوا ورباندې حمله وکړي چې پدې سره به دوی له دوو خواو نه راګیر شي! نژدې ؤ چې دا تشویش یې له مخکې تګ نه پښېمانه کړي، په همدې وخت کې شیطان د بني کنانه د مشر سراقه بن مالک بن جعشم المدلجي په شکل کې ورته راغی او ورته ویې ویل: زه ستاسې ملګری یم او ضمانت درکوم چې کنانه به د شا له خوا ستاسې په حق کې داسې څه نه کوي چې تاسې یې نه خوښوئ.

## د مکي لښکر روانیدل

لدې اطمینان او ډاډ ګیرنې وروسته د مشرکینو لښکر په ډیر کبر او غرور سره له مکې نه روان شو. قرآنکریم د دوی حالت ته اشاره کوي فرمایي:((بَطَراً وَرِئَاءَ النَّاسِ وَيَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ)) (الانفال: ٤٧).ترجمه :[په ډیر کبر، خیال او خلکو ته ځان ښودنې په حالت (روان دي) او د خدای له لارې نه منع کوي]

او لکه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) فرمایي له خپل زور او وسلې سره پداسې حال کې چې له الله تعالی او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره یې د دښمنۍ بیرغ اوچت کړی ؤ د مدینې په لور وخوځیدل ((وَغَدَوْا عَلَى حَرْدٍ قَادِرِينَ)) (القلم: ۲۵) [ترجمه: سهار مهال پداسې حال کې دخپل کښت د ریبلو لپاره ووتل (چې فقیرانو ته د نه ورکولو نیت یې درلود) او ځانونه یې توانمند شمېرل.]

د ټولو زړونه له کینې، غوسې او غضب نه په جوش راغلې وو تر څو له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او اصحابو نه ددې انتقام او پور واخلي چې

هغوی څنګه او په کوم جرات سره د دوی په کاروان کې سترګې خښې کړيدي؟
لنډه دا چې په ډيره بيړه د شمال په لور د بدر خوا ته لاړل، د عسفان له وادي، قديد او جحفی نه تير شول او هلته يې د ابو سفيان له طرفه داسې خبر تر لاسه کړ چې ورته وايي: تاسې د خپلو مالونو، کاروان، او افرادو د ساتلو پخاطر راوتلي يئ، الله تعالی هغه ټول وساتل، نجات يې ورکړ، نو بيرته ستانه شئ.

## کاروان نجات وموند

هلته ابو سفيان په ډير احتياط او تدبير سره په عمومي لار روان ؤ، د څارنې او کشف عمليات يې څو چنده کړي وو، خو کله چې بدر ته را لنډ شول خپله د قافلې تر مخ شو وړاندې لاړ او مجدي بن عمرو يې وليد د مدينې د لښکر په هکله يې معلومات ورنه وغوښتل. هغه ورته وويل: ما خو څه نا آشنا څوک ندي ليدلي، يوازې دوه سواره وو دلته راغلل له هغه غونډۍ سره يې اوښان چو کړل، ژي يې له اوبو ډک کړل او بيرته لاړل. ابو سفيان فورا دې ځای ته ورغی او د اوښانو پچې يې راواخيستې، ماتې يې کړې که ګوري چې د خرما مندکې (زړي) دي پکې، نو ويې ويل: قسم په خدای چې دا د مدينې واښه دي. بيا په بيړه خپل کاروان ته ورغی عمومي لاره يې چې په بدر ورغلې وه چپې خوا ته پريښوده، او په لويديځ کې د ساحل په لور روان شو، او پدې سره يې قافله د مدينې له لښکر نه خلاصه کړه او د مکې مشرانو ته يې هغه پيغام ورواستوه چې هغوی ته په جحفه کې ورسيد.

## مکي لښکر د بيرته ستنيدو له ارادې وروسته سوړه کوي

د ابو سفيان د پيغام له رسيدو نه وروسته د مکې لښکر د بيرته ستنيدو تکل وکړ، خو ابو جهل په ډير کبر او غرور سره وويل: نه والله که تر هغه ستانه شو تر څو بدر ته نه وو تللي او هلته مو درې شپې نه وي تيرې کړي. هلته به څو اوښان حلالوو، خلکو ته به ډوډۍ ورکوو، د شرابو څښلو ګرم محفلونه به د ډمانو په آوازونو او سندرو لا پسې ګرموو، تر څو عربان زمونږ د راتګ دبدبې او غونډيدو خبر واوري، او د تل لپاره زمونږ رعب ورباندې کيني.
خو اخنس بن شريق د ابو جهل لدې خبرې سره سره د بيرته ستنيدو خبره وکړه، مګر چا وا نه وريده. بالاخره يوازې هغه د بني زهره له تقريبا دری سوه کسانو سره بيرته ستون

شو. ابن شريق د بنو زهره حليف او پدې وخت کې د دوی قوماندان و. د بدر په غزا کې د بنو زهره قبيلې يوه فرد هم ګډون ونکړ، د اخنس پدې نظريه او عمل د بنو زهره خلک له حده زيات خوشاله وو، او هميشه يې ده ته خاص احترام او اطاعت درلود.
د بنو هاشم خلکو هم د بيرته ستنيدو اراده وکړه، خو ابو جهل په ډېره سخته او تونده لهجه ورته وويل:تاسي به له مونږ څخه نه جدا کيږئ، او تر هغه به راسره وئ تر څو مونږ ټول نه وو ستانه شوي. د بنو زهره له جدا کيدو وروسته د مکې لښکر پاتې تقريبا زر کسان د بدر په لور روان شول مخکې لاړل، او د هغه غونډۍ شا ته يې واړول چې د بدر په وادي کې د ننه له جنوبي خولې (العدوه القصوى) سره پرته ده.

## د اسلامي لښکر لپاره د حالاتو حساسيت او نزاکت

رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) لا د لارې په اوږدو کې د ذفران له سيمې سره و چې استخباراتو ورته د کاروان او مکې د لښکر خبرونه راوړل. ده مبارک ته پدې خبرونو کې له غور او څېړنې وروسته دا ثابته شوه چې بې له جګړې بله چاره نشته او اوس داسې يوه جراتمندانه، غيرتي او مدبرانه اقدام ته ضرورت دی چې د شرک د لښکر دا غرور ورمات کړي. واقعيت دا دی که چيرې قريش همداسې پريښودل شوي وای چې پدې سيمه کې د غرور او فساد نيلې وزغلوي، نو پدې سره به په عسکري ډګر کې د هغوی لاس نور هم مضبوط او په سياسي ميدان کې به يې نفوذ او اثر زيات شوی وای. او ددې په مقابل کې به د مسلمانانو شان او عظمت زيانمن کيده، بلکه اسلامي حرکت به د يوه بې روحه کالبد حيثيت غوره کاوه او د اسلام دښمنانو ته به نوره دا آسانه وه چې پر مسلمانانو باندې د حملې او تيري جرات وکړي.
بله مهمه خبره دا چې مسلمانانو ته ددې ضمانت چا ورکاوه چې د مکې لښکر به د مدينې په لور وړاندې نه ځي، او هملته به پردوی حمله او تيری نه کوي؟! هيچا هم دا ضمانت نه شوی ورکولی، که پدې حساس وخت کې مسلمانانو ابتکار له لاسه ورکړی وی، نو د خلکو په مينځ کې به د دوی هيبت او عظمت ډېر زيانمن شوی وای.

## د شورى غونډه

پدې خطرناک، او ناڅاپه رامخ ته شوي وخت کې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د مشورتي شورى غونډه دايره کړه. ده پخپله په حالاتو رڼا واچوله، او له اصحابو سره يې پدې هکله نظريات تبادله کړل. ځنې خلک داسې هم وو چې په حالاتو

له خبریدو وروسته ویرې واخیستل، زړونه یې په رپیدو راغلل او دا همغه کسان دي چې الله تعالی یې په هکله فرمایي:

((كَمَا أَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنْ بَيْتِكَ بِالْحَقِّ وَإِنَّ فَرِيقاً مِنْ الْمُؤْمِنِينَ لَكَارِهُونَ (٥) يُجَادِلُونَكَ فِي الْحَقِّ بَعْدَ مَا تَبَيَّنَ كَأَنَّمَا يُسَاقُونَ إِلَى الْمَوْتِ وَهُمْ يَنظُرُونَ )). (الانفال: ٥-٦)

ترجمه: [همداسې لکه چې ستا رب ته له خپل کور نه له حق سره راویستې، او یوې ډلې مسلمانانو ته دا کار سخت ښکاریده، او د همدې حق (جګړې) په هکله یې له معلوماتو وروسته په همدې حق کې له تا سره مناقشه کوله او داسې ښکاریدل لکه چې په ړنړو سترګو مرګ ته بوول کیږي.]

خو د لښکر د قوماندانانو موقف بل ډول وُ، ابوبکر (رضي الله عنه) پاڅید او ډیرې ښې خبرې یې وکړې، وروسته عمر (رضي الله عنه) پاڅید دې ته ورته نیکې خبرې یې وکړې. بیا مقداد بن عمرو (رضي الله عنه) وویل: یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! مونږ درسره یو هغه وکړه چې الله یې امر کړی، قسم په خدای مونږ به کله هم د بنو اسرائیلو په شان درته و نه وایو چې ته او ستا رب جنګ ته لاړ شئ، او مونږ به دلته ناست وو، بلکه مونږ داسې درته وایو: ته او ستارب جنګ ته لاړ شئ، مونږ هم په جګړه کې درسره یو، قسم په خدای که امر راته وکړې چې تر برک الغماد پورې درسره لاړ شو، نو تر همغه ځایه به له تاسره اوږه په اوږه جګړې ته ادامه ورکوو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مننه ورنه وکړه او دعا يې ورته وفرمایله.

دا درې واړه مشران مهاجرین وو، او څرنګه چې پدې لښکر کې د مهاجرینو تعداد لږ و، نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) غوښتل د انصارو رایه هم معلومه کړي، ځکه له یوې خوا په جګړه کې د هغوی رول اساسي وُ، او له بلې خوا د عقبې د معاهدې په اساس هغوی پدې نه وو مجبور چې له مدینې نه د باندې جګړې ته داخل شي، نو همدا وجه وه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د هغوی درې واړو د خبرو له اوریدو نه وروسته وفرمایل: اې خلکو ستاسې رایه څه ده؟ مقصد يې انصار وو. د انصارو مشر او علمبردار سعد بن معاذ (رضي الله عنه) د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په مطلب پوه شو او ویې فرمایل: لکه چې د تا اشاره زمونږ خوا ته ده یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! ده

وفرمایل: هو. سعد (رضي الله عنه) وویل: مونږ ایمان درباندې راوړی، او ستا تصدیق مو کړی، او ددې شاهدي مو ورکړې څه چې تا راوړي هغه ټول حق دي، او پدې مو د اطاعت او پیروی عهد او پیمان درسره کړئ، یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! څه چې غواړې همغه وکړه، قسم په هغه خدای چې ته یې په حق رالیږلی یې، که وغواړې پدې بحر کې ځانونه واچوو، نو مونږ به ټول له تاسره یو ځای ځانونه په بحر کې ور لاهو کړو، ددې پروا نلرو چې سبا مو له دښمن سره مخامخ کړې، مونږ په جګړو کې د ډیر صبر او د مقابلې په وخت کې د ځوانمردۍ او پایمردۍ خاوندان یو، کیدای شي الله تعالی زمونږ هغه جوهردروښیي چې د تا مبارکې سترګې پرې یخې او رڼې شي، نو د خدای په برکت سره حرکت وکړه.

په یوه بل روایت کې راځي چې سعد بن معاذ (رضي الله عنه) رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته وویل: فکر کوم چې ته لدینه ویریږې چې انصار به یوازې پخپل وطن کې ځانونه ستا په دفاع ملزم ګڼي! زه د انصارو خبره کوم او د هغوی ځواب وایم، لاړ شه چیرته دې چې زړه وي، پوره واک لرې چې له خپلې خوښې سره سم د هر چا سره اړیکې ټینګې کړې، او که غواړې چې له چا سره اړیکې وشلوې، نو ویې شلوه. زمونږ له مالونو نه د خپلې خوښې په اندازه واخله، او څه چې دې زړه وي همغه راکړه او مونږ ته هغه مال چې ته یې رانه اخلې د هغه په نسبت ډیر غوره دي چې راته پرې یې ږدې. او په څه چې ته امر کوې هغه مونږ ته منظوره ده. والله که تر برک الغماد پورې لاړ شې، مونږ به هم درسره روان وو او که وغواړې پدې بحر کې به له تاسره یو ځای ځانونه لاهو کړو.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د سعد (رضي الله عنه) له خبرو نه ډیر ډاډه او راضي شو، بیا یې وفرمایل: (**سیروا وأبشروا، فإن الله تعالی قد وعدني إحدی الطائفتین، والله لكأني الآن أنظر إلی مصارع القوم**). [حرکت وکړئ، او زیری واورئ، الله تعالی له ماسره له دې دوو شیانو (کاروان یا لښکر) نه د یوه وعده کړې ده قسم په خدای دا دی لکه چې زه همدا اوس ددې خلکو (مشرکینو) د وژلو ځایونه وینم.]

## اسلامي لښکر مخ په وړاندې درومي

بیا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له ذفران نه وخوځید، د اصافر غرونه یې ووهل او (الدیه) نومې باندې ته کوز شو وروسته یې حنان نومې غونډۍ ښۍ خوا ته پریښوده مخکې لاړ او له بدر سره نژدې یې واړول.

## د رسول الله (ﷺ) له خوا د کشف او څارنې عمليات

په همدې ځای کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له خپل ملګري ابوبکر (رضي الله عنه) سره يو ځای د کشف او څارنې لپاره ووت، د قريشو د لښکرو په شاو خوا سيمو کې يې يو عربي سپين ږيری وليد. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: د قريشو او محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په هکله څه معلومات لرې؟- د راز پټ ساتلو پخاطر يې د دواړو لښکرو پوښتنه ورنه وکړه – هغه بوډا ورته وويل: لومړی دا راته ووايئ چې تاسې څوک يئ؟ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وويل: (**إذا أخبرتنا أخبرناك**). لومړی ته خبر راته ووايه، بيا به مونږ ځانونه در معرفي کړو. بوډا وويل: سمه ده دا پدې. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: هو. بوډا وويل: خبر شوی يم چې محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او اصحاب يې په فلانۍ ورځ راخوځيدلي دي، که دا خبر رښتيا وي، نو نن به محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په فلانۍ سيمه کې وي. همغه ځای يې ښوولی ؤ په کوم کې چې د مدينې لښکر پروت ؤ- او د مکې د لښکر په هکله خبر راکړل شوی چې هغوی په فلانۍ ورځ حرکت کړی، که خبر ورکوونکی ريښتونی وي نو هغوی به نن په فلانې ځای کې وي- او همغه ځای يې ښوولی ؤ کوم ته چې قريش را رسيدلي وو. او کله يې چې خبره خلاصه کړه، نو دوی ته يې وويل: تاسې څوک يئ (تاسې له چا نه يئ؟) رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: مونږ له ماء (اوبو) څخه يو. دا يې وويل او روان شو. بوډا له ځان سره وايي: د کومو اوبو؟ آيا د عراق له اوبو؟

## د مکې لښکر په هکله د مهمو معلوماتو لاسته راوړل

د همدې ورځې په ماښام رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د مهاجرينو درې سرداران علي بن ابي طالب، زبير بن عوام او سعد بن ابي وقاص (رضي الله عنهم) له يو شمير نورو اصحابو (رضي الله عنهم) سره پدې مکلف کړل چې لاړ شي او د دښمن په هکله تازه معلومات راوړي. هغوی د بدر اوبو ته ورغلل هلته د مکې

لښکر دوه کسه وو چې لښکر ته یې اوبه وړې. د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) عسکرو هغوی دواړه ونیول او له ځان سره یې راوستل، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دغه وخت لمونځ ادا کاوه، نو اصحابو (رضي الله عنهم) ورنه تحقیقات شروع کړل. بندیانو ورته ویل: مونږ د قریشو سقاوان یو اوبو پسې راغلي وو. اصحابو (رضي الله عنهم) دا نه منل او ګومان یې کاوه چې دا به د ابو سفیان د کاروان خلک وي، ځکه هغوی لا تر اوسه په کاروان باندې د قبضې هیله او طمعه درلودله. په دواړو یې د وهلو شروع وکړه تر هغه یې ووهل تر څو دې ته اړ شول چې ووایي مونږ د ابوسفیان کسان یوو، نو بیایې پریښودل. کله چې رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لمونځ خلاص کړ، اصحابو ته یې په تهدید آمیزه لهجه وفرمایل: (**إذا صدقاکم ضربتموهما، وإذا کذباکم ترکتموهما، صدقا والله، إنهما لقریش**). [کله یې چې ریښتیا درته ویل نو وهل مو، خو کله یې چې دروغ درته وویل، نو پرې مو ښوول، دوی ریښتیا وایي دا دواړه د قریشو کسان دي.]

بیا یې هغو دواړو ځوانانو ته مخ وراړاوه او ورته ویې فرمایل: (**أخبراني عن قریش**) د قریشو په هکله معلومات راکړئ! دوی ورته وویل: هغویددې وادي په وروستۍ خوله کې پرته غونډۍ شاته دي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: (**کم القوم؟**) شمیر یې څومره دی؟ دوی وویل: ډېر زیات دی. ده وفرمایل: (**ما عدهم؟**) څومره؟ دوی وویل: په دقیق شمیر یې نه پوهیږو. ده وفرمایل: (**کم ینحرون کل یوم؟**) د ورځې څو اوښان حلالوي؟ دوی وویل: یوه ورځ نهه او یوه ورځ لس. نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (**القوم فیما بین التسعمائة إلی الألف**) د دوی تعداد د (۹۰۰) او (۱۰۰۰) تر مینځ اټکل کیدای شي.

بیایې بندیانو ته وفرمایل: (**فمن فیهم من أشراف قریش؟**) له دوی سره کوم مشران راغلي دي؟ دوی وویل: له دوی سره د ربیعه زامن عتبه او شیبه، ابو البختري بن هشام، حکیم بن حزام، نوفل بن خویلد، حارث بن عامر، طعیمه بن عدي، نضر بن حارث، زمعه بن اسود، ابو جهل بن هشام، امیه بن خلف او نور....

بیا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپلو اصحابو (رضي الله عنهم) ته مخ کړ او ویې فرمایل: (**هذه مکة قد ألقت إلیکم أفلاذ کبدها**). مکې د خپل زړه کترې (د جګر ټوټې) درته رالیږلې دي.

## د رحمت باران

الله تعالی په همدې شپه ښه باران وکړ. همدا باران د مشرکینو لپاره عذاب او وبال ؤ هغوی یې له وړاندې تګ نه منع کړل، او د مسلمانانو لپاره رحمت ؤ د هغوی زړونه او بدنونه یې وربانديې پاک کړل ځمکه یې ورته برابره کړه، تر پښو لاندې یې ریګ کلک شو، حالات برابر او زړونه مضبوط شول.

## اسلامي لښکر د مهمو عسکري مرکزونو په لور وړاندې ځي

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپل لښکر ته د وړاندې تګ قومانده ورکړه، تر څو له مشرکینو نه مخکې د بدر اوبو ته ورسیږي او هغوی ته اجازه ورنکړي چې پر اوبو ولکه ولګوي.

لښکر مخکې لاړ او لماسختن یې د بدر له ټولو نه نژدې چینې سره واړول. په دې وخت کې حباب بن منذر لکه د نظامي امورو د متخصص په حیث رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته وویل: آیـا الله تعالی پدې ځای کې د اړولو امر درته کړیدی؟ او مونږ همدلته تم کیدو باندې مامور یو د مخکې او وروسته تګ اجازه نلرو؟ او که نه تا خپله د جنګي حکمت او تدبیر په اساس دا ځای غوره کړیدی؟

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (**بل هو الرأي والحرب والمكيدة**). دا زما نظر او یو جنګي تاکتیک دی. نو ده ورته وویل: یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! دا مناسب ځای ندی، لښکر ته امر وکړه چې قریشو ته تر ټولو نه لنډې چینې باندې واړوي، هلته به بیا مونږ نورې ټولې چینې پټوو او پخپله چینه به حوض جوړوو او له قریشو سره به په جګړه لاس پورې کوو، نو هغه وخت به له مونږ سره اوبه وي او دوی به له اوبو نه محروم وي.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (**لقد أشرت بالرأي**). تا ډیره ښه مشوره راکړه.

وروسته یې لښکر ته د وړاندې تګ امر وکړ، او په نیمایي شپه کې یې دښمن ته له ټولو نه نژدې چینه باندې واړول، هلته یې د اوبو ډنډونه جوړ کړل، او نورې ټولې چینې یې پټې کړې.

## د قیادت مرکز

وروسته له هغه چې مسلمانان ځای په ځای شول، سعد بن معاذ (رضي الله عنه) رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته وړاندیز وکړ چې باید د خاصو او عاجلو حالاتو سره د مقابلې او احتمالي ماتې د جبران لپاره د قیادت لپاره یو خاص مرکز جوړ شي. خپل وړاندیز یې داسې وړاندې کړ: یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! خوښه دې نده چې ستاسې لپاره یوه څپره جوړه کړو ته به پکې تشریف لرې، او ستاسې سورلې به هم هملته تیاره درته ولاړه وي، مونږ به له دښمن سره د جګړې ډګر ته ننوزو که چیرته الله عزت راکړ او پر دښمن یې بر لاسي کړو، نو دا به هغه څه وي چې مونږ یې غواړو، او که داسې ونه شول نو بیا به ته پخپله سپرلۍ سپور او له مونږ نه پاتې شوو کسانو سره به یو ځای شې. یا نبي الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! زمونږ له قوم نه هغه کسان وروسته پاتې دي چې مونږ له تاسره له هغوی نه ډیره مینه نلرو، که چیرې هغوی خبر وای چې ته به له دښمن سره مخامخ کیږې، نو چیرې به هم نه وای پاتې شوې، الله تعالی به د هغوی په واسطه د تا ساتنه کوي، هغوی به ستا خیر غواړي او په جهاد کې به ستا ملګري وي.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د سعد (رضي الله عنه) ستاینه وکړه او د خیر دعا یې ورته وفرمایله.مسلمانانو خپل عظیم قائد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته د جګړې د میدان شمال ختیځې خوا ته د غونډۍ په سر په یوه حاکمه نقطه کې څپره جوړه کړه.او د سعد بن معاذ (رضي الله عنه) تر مشرۍ لاندې د انصارو ځوانانو یو ګروپ پدې موظف شو چې د قیادت د مرکز یعنې د لښکر د عمومي قوماندانۍ ساتنه او حفاظت وکړي.

## د لښکر ترتیب او د شپې سبا کول

بیا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لښکر ترتیب او تنظیم کړ[1]. د جګړې په میدان کې وګرزید او پخپل مبارک لاس سره به یې اشاره کوله. چې دا سبا د فلاني د وژل کیدو ځای دی (ان شاء الله)[2] او دا د فلاني. ورپسې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هلته د یوې ونې سره لمونځ کاوه، مسلمانانو ټولو په ډاډ او

[1]. جامع الترمذي ابواب الجهاد، باب ما جاء في الصف والتعبئة ۲۰۱/۱.
(2). مسلم له انس نه روایت کړی، مشکاة المصابیح ۵۴۳/۲ وګوره.

راحت سره شپه سبا کړه، زړونه يې له سکون او هيلو نه مالا مال وو او ددې طمعه يې درلوده چې سبا د خپل رب رحمت او کرم د سر په سترګو ويني ((**إِذْ يُغَشِّيكُمُ النُّعَاسَ أَمَنَةً مِنْهُ وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُمْ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً لِيُطَهِّرَكُمْ بِهِ وَيُذْهِبَ عَنكُمْ رِجْزَ الشَّيْطَانِ وَلِيَرْبِطَ عَلَى قُلُوبِكُمْ وَيُثَبِّتَ بِهِ الأَقْدَامَ**)) (الانفال-۱۱). [ياد کړه هغه وخت چې د الله له لوري د امن پخاطر خوب درباندې راغی، او له آسمان نه يې اوبه درباندې نازلې کړې تر څو تاسې درباندې پاک کړي او د شيطان پليتي درنه ليرې کړي، او زړونه مو سره وتړي او قدمونه درباندې استوار او ثابت وګرزوي.]

دا شپه د جمعې مبارکې شپه وه چې د دوهم هجري کال د رمضان مياشتې له اوولسمې سره سمون خوري او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د همدې مياشتې په ۸ يا ۱۲ له مدينې نه راخوځيدلی وُ.

### د جنګ په ميدان کې د مکي لښکر اختلاف

قريشو هلته العدوه القصوي (ليرې خوا)کې شپه سبا کړه، او سهار ټول له غونډۍ نه راکوز او د بدر په لور روان شول، يو څو کسان يې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د حوض په خوا راغلل، چې اوبه وڅښي. رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: پرې يې ږدئ. وروسته له حکيم بن حزام پرته نور ټول چې لدې حوض نه يې اوبه څښلی وي په همدې جګړه کې مړه شول، حکيم وروسته په اسلام مشرف شو، او کله به يې چې کلک قسم کاوه، نو ويل به يې: قسم په هغه ذات چې ماته يې د بدر په ورځ نجات راکړی.

کله چې قريش ډاډه شول، نو عمير بن وهب الجمحي ته يې وظيفه ورکړه چې لاړ شي او د مدينې د لښکر په قوت او اندازه ځان پوه کړي. عمير په خپل آس سپور او د اسلامي لښکر له قرار ګاه نه راتاو شو، بيا قريشو ته ورغی ويې ويل: دوی څه کم يا څه زيات درې سوه کسان دي، خو اجازه راکړئ وګورم چې هغوی خو کوم کمين او يا نور کومک نلري؟ آس يې د وادي په مينځ کې تر ډيره وزغلوه خو هيڅ يې هم ونه ليدل، بيرته راغی او ورته ويې ويل: ماڅه ونه ليدل، خو اې قريشو! داسې بلاوې مې وليدلې چې د مرګ پيغام يې درلود، د مدينې اوښانو خالص مرګ راوړی دی، دا داسې خلک دي چې له تورو پرته هيڅ ملجا د تيښتې ځای او پناه ګاه نلري، د قوت راز يې هم په تورو کې دی، زه قسم خورم چې له هغوی نه هيڅوک تر هغې نه مري تر

څو يې له تاسې نه څوک نه وي وژلي، نو که چيرې هغوی ستاسې د سرکسان ووژني، نو بيا به د ژوند خوند او ارزښت څه وي؟ درته وايم چې ښه فکر وکړئ.

دلته د ابوجهل په خلاف يو بل مخالفت راولاړ شو، چې غوښتل يې د ابو جهل د نظر بر عکس بې له جګړې بيرته مکې ته ستانه شي. حکيم بن حزام پدې هکله د خلکو په مينځ کې فعاليت شروع کړ، عتبه بن ربيعه ته ورغی او ورته ويې ويل: ابو الوليده! ته د قريشو مشر او سردار يې ټول ستا خبرې اوري، نو ته ولې يو داسې نيک کار نکوې چې تر قيامته د نوم ښه پرې ياديږې؟! ده وويل: حکيمه دا به کوم کار وي؟ ده ورته وويل: هغه دا چې دا خلک بيرته ستانه کړې، او په سريه نخله کې د وژل شوي عمرو بن الحضرمي چې ستا حليف ؤ معامله ته پخپله غاړه واخلې! عتبه وويل: سمې ده، دا خبره زما قبوله ده، ته زما له خوا ددې ضامن يې، هغه زما حليف ؤ زه يې د ديت او ټول ضايع شوي مال ضامن او ذمه وار يم. بيا عتبه ورته وويل: لاړ شه حکيمه بن حنظليه ته ورشه - حنظليه د ابو جهل مور وه - ځکه زه د خلکو په معاملاتو کې له ده پرته له بل چا نه د مخالفت او مشاجرې تشويش نلرم. بيا عتبه بن ربيعه پاڅيد او خلکو ته په خطاب سره يې وويل: اې قريشو! تاسې له محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او اصحابو سره يې له جګړې نه څه نه شئ ګټلئ او نه پدې سره کومه خاصه کارنامه تر سره کولای شئ که چيرې تاسې هغه ووژنئ هم، نو داسې مخونه به ووينئ چې ليدل يې نه خوښوئ، ځکه هر چا به يا د تره زوی، يا د ماما زوی او يا بل خپلوان وژلی وي، نو بيرته ستانه شئ او محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له نورو عربو سره پريږدئ، وګورئ که عربانو هغه وواژه، نو ستاسې هيله به پوره شوې وي، او که داسې ونه شول نو بيا به هم تاسې پداسې حالت کې ورسره مخامخ کيږئ چې له ده سره به مو هغه څه نه وي کړي چې کړل مو يې غوښتل.

حکيم بن حزام ابوجهل ته ورغی، هغه خپله زغره برابروله او ورته ويې ويل: ابو الحکمه! عتبه دا پيغام درته را استولی دی. ابو جهل ددې خبرې په اوريدو سره وغوړمبيد او ويې ويل: د محمد او اصحابو په ليدو سره د عتبه سينه پړسيدلې ده، يعنې ويرې اخيستې دی، دا نه منو، قسم په خدای تر هغې به ستانه نه شو تر څو الله زمونږ او محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تر مينځ فيصله نه وي کړې. عتبه دا خبره ځکه کړې چې فکر کوي محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او اصحاب يې اوښ خوړونکي دي. او بله دا چې زوی يې حذيفه چې مخکې مسلمان او مهاجر شوی ؤ هم له دوی سره دی. او له همدې کبله تاسې له هغوی نه ويروي. کله چې عتبه د ابو جهل په خبرو خبر شو نو ويې ويل: ابو جهل ويرې اخيستئ، دا په کوناټې

خوشبويي وهونکی به پوه شي چې د چا سينه له ويرې نه پړسيدلې ده، ډارن زه يم او که هغه؟ ابو جهل لدې ويرې چې هسې نه دا مخالفت زور و نه نيسي، په حرکت راغی او ژر يې په سريه نخله کې د وژل شوي عمرو ورور عامر بن الحضرمي ته احوال وليږه چې وګوره ستا حليف (عتبه) غواړي خلک بيرته ستانه کړي، تا خو خپل انتقام پخپلو سترګو ليدلی، پاڅه او خلک له خپل مظلوميت او د ورور د مرګ له انتقام نه خبر کړه. پدې پسې عامر پاڅيد خپل کوناټی يې لوڅ کړ او چيغه يې کړه، واعمراه! و اعمراه! خلک يو ځل را سره شول، معامله سخته او د جنګ اراده پخه شوه، د عتبه د عقل مندۍ خبره هيره شوه، او پدې ترتيب سره جوش پر هوش يعنې جذبه پر عقل بر لاسې شوه او دا مخالفت هم ختم شو.

## دواړه لښکرې يو بل ته مخامخ

کله چې مشرکين را ښکاره شول، او دواړه لښکر يو بل ته مخامخ ودريدل، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**اللهم هذه قريش قد أقبلت بخُيَلائها وفَخْرها تُحَادُّك وتكذب رسولك، اللهم فنصرك الذي وعدتني، اللهم أحْنِهُم [الغداة]**). يا الله! دا قريش چې په ډير کبر او غرور سره دلته پداسې حالت کې راغلي چې ستا سره دښمني کوي او ستا رسول تکذيبوي، يا الله! ستا مدد... هغه چې تا يې وعده راسره کړيده، يا الله! ته نن د دوی ملا ورماته کړې! رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) چې کله عتبه بن ربيعه وليد چې په يوه سره اوښ سپور دی، نو ويې فرمايل: (**إن يكن في أحد من القوم خير فعند صاحب الجمل الأحمر، إن يطيعوه يَرْشُدُوا**). که چيرې پدې خلکو کې له چا سره خير وي، نو هغه د سره اوښ له خاوند سره دی، که خلک دده خبره ومني، نو په نيغه لار به تللي وي. بيا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د مسلمانانو ليکې برابرول پيل کړل، په همدې وخت کې يوه عجيبه پيښه وشوه، هغه داسې چې له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره يو غشی ؤ چې خلک به يې پرې برابرول، همدا غشی يې د سواد بن غزيه چې له صف نه لږ وتلی ؤ په خيټه ور چوخ کړ او ورته ويې فرمايل: (**استو يا سواد**) سواده! برابر شه. سواد وويل: يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) زه خو

دي خوږ کړم، بدله غواړم! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپله مبارکه خيټه ورته لوڅه کړه او ويې فرمايل: (**استقد**) بدله دې واخله. سواد يو ځل ورنه تاو شو او مبارکه خيټه يې ورته مچې کړه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل:(**ما حملك على هذا يا سواد؟**).ولې دې داسې وکړل؟ سواد عرض وکړ يا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! حالات خو وينې چې څه ډول دي، ما وغوښتل چې له تاسره مې آخري معامله دا وي چې زما پوستکی ستا له مبارک جلد سره ولګيږي. بيا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته د خير دعا وفرمايله. کله يې چې صفونه برابر کړل نو ورته ويې فرمايل: تر هغې به جنګ نه شروع کوئ تر څو زما آخرينۍ قومانده نه وي صادره شوې، بيايې د جنګ په هکله خصوصي لارښوونه ورته وکړه او ويې فرمايل: (**إذا أكثبوكم ـــ يعنى اقتربوا منكم ـــ فارموهم، واستبقوا نبلكم، ولا تسلوا السيوف حتى يغشوكم**).کله چې د قريشو ټولي درته را لنډ شول، نو د غشو باران ورباندې وکړئ، د غشو ساتلو خيال کوئ يعنې هسې بې فايدې غشي مه ولئ.[1] او تر هغه پورې توري مه وهئ تر څو دوی درنه را تاو شوي نه وي[2] بيايې له ابوبکر سره څپرې ته تشريف يووړ، او سعد بن معاذ د ساتنې له ګروپ سره د څپرې په خوله کې ولاړ و.

د مشرکينو له مينځه ابو جهل پدې ورځ د فتحې دعا وکړه او ويې ويل: اې خدايه! زمونږ نه هغه ډله ماته او ټوټې ټوټې کړه چې د خپلوۍ د مزي شلوونکې وي، او هغه څوک مات کړې چې موږ ته يې داسې څه راوړي چې مونږ يې نه پيژنو. اې خدايه! هر څوک چې تاته ډيره ګران او نژدې وي هغه نن بريالی کړه. الله تعالی دې ته په اشارې سره فرمايي:

((**إِنْ تَسْتَفْتِحُوا فَقَدْ جَاءَكُمُ الْفَتْحُ وَإِنْ تَنتَهُوا فَهُوَ خَيْرٌ لَكُمْ وَإِنْ تَعُودُوا نَعُدْ وَلَنْ تُغْنِيَ عَنكُمْ فِئَتُكُمْ شَيْئاً وَلَوْ كَثُرَتْ وَأَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُؤْمِنِينَ**)). (**الانفال:١٩**) [که تاسو د فتحې او فيصلې غوښتنه کوئ، نو فيصله خو در وشوه ، اوس که منع شئ نو همدا ستاسې لپاره ډيره ښه ده او که بيا وګرځئ او هماغه حماقت تکرار کړئ نو مونږ به هماغه سزا تکرار کړو او ستاسې ډله که هر څومره زياته هم وي ستاسې په درد به هيڅ ونه شي خوږ لای، الله د مؤمنانو ملګري

---

(1). صحيح البخاري ٥۶٨/٢

(2). سنن ابي داود باب في سل السيوف عند اللقاء ١٣/٢

دی.]

## د صفر ګړی او د جګړې لومړی قرباني

ددې جګړې لومړنی قرباني اسود بن عبدالاسد المخزومي ؤ. دا ډير شرير او بد اخلاق انسان ؤ پدې وخت کې د لښکر له مينځ نه راووت او ويې ويل: په خدای مې دې قسم وي چې يا به د دوی له حوض نه اوبه څښم، يا به يې ړنګوم او يا به همدلته مرم. مقابلې ته يې حمزه (رضي الله عنه) راووت او له حوض سره خوا کې يې د توري داسې ګوزار پرې وکړ چې پښه يې په پنډۍ کې بوټه ور پرې کړه او د شا په تخته ولويد، خو هغه پداسې حال کې چې له پښې نه يې وينو دارې وهلې په خيوړو خيوړو حوض ته ځان ورساوه او غوښتل يې حوض ړنګ او خپل قسم پوره کړي، خو حمزه (رضي الله عنه) بل ګوزار ورباندې وکړ او همهلته حوض کې د ننه په وينو کې خولم شو.

## مقابله

دا لومړنی فتل ؤ چې د جګړې اور ورباندې بل شو، پدې پسې د قريشو د سردارانو د يوې کورنۍ درې غړي د ربيعه زامن عتبه او شيبه، او وليد بن عتبه ميدان ته را وړاندې شول او د مقابلې چيلنج يې ورکړ. په ځواب کې د انصارو دری ځوانان د حارث او عفراء زامن عوف او معوذ، او عبدالله بن رواحه ميدان ته ور ووتل. مشرکانو ورته وويل: تاسې څوک يئ؟ دوی ځواب ورکړ، مونږ انصار يو. هغوی وويل: تاسې قدرمن سيالان يئ، مونږ له تاسې سره غرض نلرو، مونږ خپل تربرونه غواړو. بيايې غږ اوچت کړ اې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! مونږ ته له خپل قوم نه زمونږ سيالان رامخکې کړه! رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) امر وکړ او ويې فرمايل: عبيده بن حارث، حمزه اوعلي (رضي الله عنه) راووزئ. هغوی را مخکې شول او کله چې مشرکينو ته ورنژدې شول، ورته ويې ويل: تاسې څوک يې؟ دوی ځانونه وروپيژندل.

مشرکينو وويل: تاسې قدرمن سيالان يئ. مقابله پيل شوه. عبيده چې له ټولو نه مشر

ؤ د عتبه بن ربيعه او حمزه د شيبه او علي د وليد مقابلې ته ودريد.[1] حمزه او علي (رضي الله عنه) په دير لږ وخت کې خپل حريفان د مرګ په خوله ورکړل، خو د عبيده او مقابل لوري تر مينځ د تورو ګوزارونه تبادله شول او دواړه سخت ټپيان شول، پدې وخت کې حمزه او علي (رضي الله عنهما) په عتبه ورتاو شول او ويې واژه. عبيده يې له ځان سره يوور. د هغه پښه غوڅه شوې وه او له خبرو لويدلې ؤ، بالاخره د جنګ په څلورمه يا پنځمه ورځ کله چې مسلمانان د مدينې په لور روان وو د صفرا په سيمه کې وفات شو. علي (رضي الله عنه) به قسم يا داوه او ويل به يې چې دا لاندينی آيت د دوی په حق کې نازل شويدی ((**هَذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ**)) (**الحج :١٩**) [دا دواړه مخالفان دي چې د الله په خاطر يې مخالفت سره کړی.]

## عمومي يرغل

ددې مقابلې پای د مشرکينو لپاره د يوې لويې غميزې پيلامه وه، هغوی په يو ځل د درې تکړه او پياوړي مشران له لاسه ورکړل. ټول يو ځل له قهراو غوسې نه په جوش راغلل او په مسلمانانو يې ور ودانګل. مسلمانان پداسې حال کې چې له خپل رب نه يې په پوره عجز او زاريو د مرستې او نصرت سوالونه کول، پخپلو ځايونو ټينګ ولاړ وو، ژبې يې د احد احد په ويلو لمدې وې، کلکه دفاع يې کوله او مشرکينو ته يې ډير زيانونه ور واړول.

## رسول الله (ﷺ) خپل رب ته د سوال لاس اوږدوي

له کله نه چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) صفونه برابر کړل او څپرې ته راغی له همغه وخت نه يې خپل پروردګار ته د سوال لاسونه پورته کړې وو او د کړې وعدې د پوره کيدو غوښتنه يې ورنه کوله، داسې يې فرمايل: (**اللهم أنجز لي ما وعدتني، اللهم إني أنشدك عهدك ووعدك**) ((اې خدايه! له ماسره خپله وعده پوره کړه، خدايه! زه له تانه ستا د عهد او وعدې سوال کوم)). کله چې جګړه ښه ګرمه شوه رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا دعا فرمايله: (**اللهم إن تهلك هذه**

---

[1]. دا د ابن اسحاق خبره ده. د احمد او ابو داود په روايت کې راځي چې عبيده د وليد، علي د شيبة او حمزة د عتبة مقابلې ته ودريد. مشکاة المصابيح ٣٤٥/٢.

**العصابة اليوم لا تعبد، اللهم إن شئت لم تعبد بعد اليوم أبدًا**). ((اې پروردګاره! که نن دا ډله هلاکه شوه، نو بيا به ستا عبادت ونشي، خدايه! که ستا اراده وي نو له ننه وروسته به هيڅکله هم ستا عبادت ونشي)). ده مبارک دومره خشوع او خضوع کوله چې ان چادر يې له مبارکو اوږو نه ولويد، ابوبکر (رضي الله عنه) هغه بيرته ورسم کړ او ورته ويې ويل: بس کړه يا رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم)! تا له خپل رب نه په ډير اصرار سوال وکړ. الله تعالى هم خپلوملائکو ته وحي وفرمايله :((**أَنِّي مَعَكُمْ فَثَبِّتُوا الَّذِينَ آمَنُوا سَأُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا الرُّعْبَ**)) (الانفال:۱۲) [زه له تاسې سره يم موءمنانو ته ثبات ورکړئ او زه به د مشرکينو په زړونوکې ويره اچوم.] او خپل رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته يې داسې وفرمايل:((**أَنِّي مُمِدُّكُمْ بِأَلْفٍ مِنْ الْمَلائكَةِ مُرْدِفِينَ**)) .(الانفال:۹) [ترجمه : زه مو په زرو فرښتو سره چې يو په بل پسې وي مرسته کوم.]

## د ملائکو نزول (راکوزيدل)

رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) يوه لحظه پرمخې پريوت، ژر يې خپل سر را پورته کړ او ويې فرمايل: (**أبشر يا أبا بكر، هذا جبريل على ثَنَاياه النَّقْعُ**) [**أي الغبار**] **وفي رواية ابن إسحاق: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم:** (**أبشر يا أبا بكر، أتاك نصر الله، هذا جبريل آخذ بعنان فرسه يقوده، وعلى ثناياه النقع**). زيرى مې درباندې ابوبکره! دا دی جبريل له مخې سره يې ګرد او غبار را ولاړ شويدی.

د محمد بن اسحاق په روايت کې راغلي: رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: ابوبکره! خوشاله اوسه، د الله تعالى کومک درته راورسيد، دا دی جبريل (ع) پداسې حال کې چې د آس قيزه يې نيولې او له مخې سره يې ګرد او دوړې اوچتې شوې را روان دی. بيا رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) له څپرې نه پداسې حال کې راووت چې زغره يې اغوستې او دا خبرې يې په خوله وې: ((**سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ**)) (القمر: ٤٥)) ترجمه :[ژر به د دښمن ټولي ماتې وخوري او په تېښته به شي].

په ډير جوش او هيبت سره روان و، يو موټی شګې يې واخيستې د قريشو خوا ته يې

مخ واړاوه او ويې فرمايل: ((**شاهت الوجوه**)) (ورک دي دا مخونه شي) او شګې يې ددوی په طرف وروشيندلې، دا شګې د ټولو مشرکينو په سترګو، سږمو، او خولو کې ولګيدې. الله تعالی پدې هکله فرمايي: ((**وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَكِنَّ اللَّهَ رَمَى**)) (الانفال:۱۷) **[حقيقت دادی چې تا و نه ويشتې بلکه الله وويشتلې.]**

## ځوابي بريد

په همدې وخت کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپل لښکر ته د ځوابي يرغل قومانده ورکړه او ورته ويې فرمايل: (**شدوا**) يعنی پرې ور ودانګئ. بيا يې جنګ ته وهڅول ويې فرمايل: (**والذي نفس محمد بيده، لا يقاتلهم اليوم رجل فيقتل صابرًا محتسبًا مقبلًا غير مدبر، إلا أدخله الله الجنة**).په هغه ذات مې دې قسم وي چې د محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نفس دده په واک دی، هر څوک چې نن له دښمنانو سره جګړه کوي، بيا پداسې حال کې ووژل شي چې د جګړې په ميدان کې دښمن ته مخامخ د ثواب په نيت ټينګ او صابر ولاړ او له ميدان نه تښتيدلی نه وي، الله تعالی به يې جنت ته داخلوي. د خپل لښکر حماسې راپاروي او ورته فرمايي: (**قوموا إلى جنة عرضها السموات والأرض**).پاڅئ د هغه جنت په لور پاڅئ چې د ځمکې او آسمانونو په اندازه پراخه دی. پدې وخت کې **عُمَيْر بن الحُمَام** وويل: بَخْ بَخْ. (واه، واه څومره ښه). رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وويل: (**ما يحملك على قولك: بخ بخ؟**) ولې دې بخ، بخ وويل؟ ده ورته وويل: يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! دا مې يوازې پدې هيله او اميد وويل چې زه هم دې جنت ته له داخليدونکو نه شم. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**فإنك من أهلها**). ته جنتي يې. وروسې هغه له خپلې توبرې نه څوداني خرماوې را وايستلې او خوړلی يې، بيا يې وويل: که زه دومره ژوندی پاتې شم چې دا خرماوې وخورم، نو دا به هم ډير اوږد ژوند وي، نو ژر يې پاتې خرماوې وغورځولې او په مشرکينو ورګډ شو، تر هغې وجنګيد تر څو شهيد شو.[1] همدا راز د مشهورې ښځې عفرا زوی عوف بن حارث له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه پوښتنه وکړه: يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! الله تعالی د

[1]. مسلم ۱۳۹/۲. مشكاة المصابيح ۳۳۱/۲

بنده په کوم کار دومره خوښيږي چې وخاندي؟ ده ورته وفرمايل: (**غَمْسُه يده في العَدُوّ حاسرًا**). الله تعالی پدې سره ډير خوښيږي چې بنده بې له زغرې او ډال نه خپل لاس په دښمن کې ور د ننه کړي، يعنی په دښمنانو وردانګي. نو عوف خپله زغره وايسته او توره په لاس د دښمن په ليکو ورګډ شو تر هغې وجنګيد تر څو د شهيدانو له کاروان سره يوځای شو.

کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ځوابي حملې قومانده ورکړه هغه وخت د دښمن څو حملې تيرې شوې وې، د هغوی جوش او خروش مخ په سړيدو و، نو دا يو داسې با حکمته تاکتيک و چې د مسلمانانو د موقف په ټينګولو کې يې ژوره اغيزه درلوده، ځکه هغوی ته پداسې وخت کې د حملې او يرغل امر ورکړ شوی و چې د دوی د جهاد روحيه ځوانه او په پوره زور کې وه. همدا وه چې پر مشرکينو يې داسې سخته او پريکنده حمله وکړه چې ليکی يې ورماتې او ډيرې ککرۍ يې پر ځمکه راوغورځولې. د اسلام د سپاهيانو جوش او خروش هغه وخت لا پسې ډير شو کله چې دوی خپل عظيم رهبر پداسې حال کې وليد چې زغره يې په تن ده په ډير کلک عزم او لوړ همت را روان دی او فرمايي: ((**سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ**)) [**دا لښکر به ماتې خوري او شا به را اړوي، تښتي به.**]

مسلمانانو ډيره سخته جګړه وکړه، ملائکو يې هم مرسته کوله. ابن سعد له عکرمه نه په يوه روايت کې وايي: پدې ورځ به موږ کتل چې د سړي سر پرې کيږي خو دا نه معلوميږي چې چا وواهه او د بل سړي به لاس پرې کيده او دا به نه معلوميده چې چا وواهه. ابن عباس وايي: يوه مسلمان د جنګ په ميدان کې يو کافر تعقيباوه او ورپسې و، پدې وخت کې ناڅاپه پر مشرک باندې د درې (متروکې) د ګوزار آواز واوريدل شو او د يوه سواره غږ پورته شو چې ويل يې:((**اقدم حيزوم**)) حيزومه! وړاندې ځه، مسلمان هغه مشرک وليد چې په شا راولويد، ورته راوګرزيد که ګوري چې پزه يې زخمي او مخ يې داسې څيرې شويدی لکه چې په متروکه وهل شوی وي، دا ټول زخمونه يې نوي او تازه وو، دا انصاري مسلمان راغی او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته يې ټوله کيسه بيان کړه، نو ده ورته وفرمايل: (**صدقت، ذلك من مدد السماء الثالثة**). ته رينښتيا وايې دا د دريم آسمان کومک او مدد ؤ.[1]

---

[1]. مسلم ۹۳/۲ او نور.

ابو داود مازني وايي: زه په يوه مشرک پسې وم چې ويې وهم، خو مخکې لدينه چې زما توره ورورسيږي د هغه سر راپريوت، نو زه پوه شوم چې بل چا وواژه. يوه انصاري حضرت عباس (رضي الله عنه) اسير کړی او له ځان سره يې راووست. عباس (رضي الله عنه) وويل والله که زه دې سړي اسير کړی وم، زه يوه داسې سړي اسير کړم چې په سر يې ويښتان نه وو، ښکلی او روڼ مخ او په يوه تور و سپين آس سپور ؤ، زه اوس هغه دلته نه وينم. انصاري وويل: يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! دا ما اسير کړيدی. ده ورته وفرمايل: (اسكت فقد أيدك الله بملك كريم). چپ شه، الله تعالی د کريمې ملکې په واسطه ستا مرسته کړيده.

## ابليس د جنګ له ډګر نه پښې سپکوي

ابليس چې د سراقه بن مالک بن جعشم مدلجي په شکل کې له قريشو سره راغلی ؤ، تر هغې پورې له دوی سره حاضر ؤ تر څو يې ملائکې وليدلې چې پر مشرکينو باندې حملې کوي، نو پدې وخت کې يې شا  واړوله او د تيښتې لاره يې ونيوه. دلته حارث بن هشام هغه راونيو ځکه ګومان يې کاوه چې سراقه دی، خو ابليس ټټر کې داسې ګوزار ورکړ چې ايسته يې ورغوځاوه او په تيښته له ميدان نه ووت. مشرکينو ورته وويل: سراقه چيرته ځې تا خو ويلي ؤ چې زه به تر پايه درسره ولاړ اوملګری وم؟ ده ورته وويل: زه هغه څه وينم چې تاسې يې نه وينئ، زه له خدايه ويريږم، الله تعالی شديد عذاب ورکوونکی دی، بيا همداسې تښتيده تر څو ځان يې په بحر کې لاهو کړ.

## بشپړه ماتې

د مشرکينو په مينځ کې ماتې ګډه شوه، تړول ويرې او پريشانۍ ونيول. د مسلمانانو د ملاماتوونکو ګوزارونو په وړاندې يې قوت او مقاومت ختم شو، جګړه د ختميدو حالت ته نژدې کيده. مشرکينو د جګړې له ډګر نه د تيښتې کوښښونه کول، مسلمانان ور پسې وو څوک به يې ورنه وژل او نور به يې ژوندي رانيول، پدې ترتيب سره د کفر او شرک لښکر له پريکنده او کاملې ماتې سره مخ شو.

## د ابو جهل مقاومت

ابو جهل چې کله پخپل لښکر کې د ماتې نښې او آثار وليدل، نو هڅه يې کوله چې

ددې عظیم طوفان مخې ته بند واچوي، خپلو عسکرو ته یې په ډیر کبر او غرور سره آواز وکړ: ګورئ د سراقه ماتې او تیښته ستاسې د ماتې سبب نه شي، هغه له مخکې نه له محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره سازش کړی ؤ. او ګورئ د عتبه، شیبه او ولید په وژل کیدو خپل همت له لاسه ورنکړئ، هغوی بیځایه بیړه وکړه، په لات او عزی مې دې قسم وي چې تر هغې به بیرته ستانه نه شو تر څو مو هغوی په رسیو نه وي تړلي، تاسې د هغوی د وژلو کوښښ مه کوئ، بلکه هغوی ژوندي رانیسئ تر څو د خپلو کړو مزه وروڅکو.

خو ډیر ژر ده ته د خپل کبر او بې ځایه غرور حقیقت څرګند شو، د لښکر لیکې یې د مسلمانانو د حملو په وړاندې دړې وړې، تیت او پرک شوې.د ابو جهل شا و خوا یو ګروپ پاتې ؤ چې تر ده یې د تورو او نیزو کلا راتاو کړې وه، خو د مسلمانانو د ایمان او تورې زور د شرک دا کلا هم ونړوله او ستر طاغوت په آس سپور د مسلمانانو مخې ته راښکاره شو، دا هغه وخت ؤ چې مرګی هم ورته رارسیدلی ؤ او ددې انتظار یې یوست چې دوه انصار ځوانان دده سر پرې کړي او مرګی یې وینې وڅښي.

## د ابو جهل وژل کیدل

عبدالرحمن بن عوف وایي: زه د بدر په ورځ په صف کې د ننه وم، که ګورم چې ښي او چپې خوا ته مې دوه تنکي ځوانان دي، زه د دوی په لیدو حیران شوم. په همدې وخت کې له دوی نه کوم یوه پټ راته وویل: تره! ابو جهل راوښیه. ما ورته وویل: وراره! په ابوجهل څه کوې؟ ده وویل زه خبر شوی یم چې هغه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په حق کې نا مناسبه ژبه استعمالوي، او خپلو خبرو ته یې ادامه ورکړه ویې ویل: قسم په هغه ذات چې زما نفس د هغه په لاس کې دی، که زه ابو جهل ووینم نو تر هغې به یې پرې نه ږدم تر څو چې له مونږ دواړو نه هغه یو مړ شوی نه وي کوم ته چې مرګ مخکې لیکل شوی دی. عبدالرحمن زیاتوي: زه د ځوان دې خبرو ته ډیر تعجب شوم، بیا وایي: دلته یې هغه دوهم ځوان هم په پټه همدا ډول خبرې راته وکړې، لږ درنګ وروسته مې ابوجهل ولید چې د خلکو په مینځ کې کارته پورته کیږي. نو دوی دواړو ته مې وویل: نه وینئ؟ هغه دی هغه څوک چې تاسې یې پوښتنه کوئ.

عبدالرحمن وایي: دوی دواړو ورمنډه کړه او د تورو ګوزارونه یې پرې وکړل او ویې واژه. بیا دواړه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضورته ورغلل، ده

مبارک پوښتنه ورنه وکړه چې: (**أيكما قتله؟**) له تاسې دواړو نه کوم يوه وواژه؟ دوی هر يوه ويل ما وواژه. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: (**هل مسحتما سيفيكما؟**)آيا تاسې خپلې تورې پاکې کړيدي؟ دوی وويل: نه. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې تورې وکتلې او ويې فرمايل: (**كلاكما قتله**). تاسو دواړو وژلی دی، خو د ابو جهل مال او سامان يې معاذ بن عمرو بن جموح ته ورکړ. دا دواړه تنکي ځوانان ورونه د يوه نوم معاذ بن عمرو بن جموح او د بل نوم يې مُعَوِّذ بن عفراء وُ[1].

ابن اسحاق وايي: معاذ بن عمرو بن جموح ويل: ما له مشرکينو نه واوريدل چې وايي: ابو الحکم ته څوک نه شي ورسيدی، ځکه هغه دغه وخت د خپلو سپاهيانو د تورو او نيزو پداسې يوه دايره کې د ننه وُ چې مشرکينو له هغې ونې سره تشبيه کاوه چې رسيدل ورته ممکن نه وي. وايي: ما چې دا واوريدل: نو خپل هدف مې په نښه کړ، ځان مې ورته برابر کړ او کله چې موقع په لاس راغله، نو حمله مې ورباندې وکړه او داسې ګوزار مې ورکړ چې پښه يې په پنډۍ کې بوټه ماته شوه او ايسته پريوته، پښه يې داسې والوته لکه چې کوم زړی د زړيو ماتوونکي د سوټي له ګوزار نه والوزي. معاذ وايي: پدې وخت کې يې زوی عکرمه ګوزار راباندې وکړ او زما لاس يې بوټې پرې کړ، لاس مې تش په پوستکي ځوړند وُ، خو څرنګه چې زه په جنګ بوخت وم ډير فکر مې ورته نه وُ ټوله ورځ مې جګړه وکړه او لاس مې همداسې راپسې ځړيده، خو کله يې چې درد زيات شو، نو پښه مې ورباندې کيښوده، کش مې کړ او ايسته مې واچاوه[2]، بيا معوذ ورغی او په ابوجهل يې چې دغه وخت ما زخمي کړی وُ يو داسې ګوزار وکړ چې هملته پريوت، خو نفس لا پکې چليده، او معوذ تر هغې وجنګيده تر څو شهيد شو. او کله چې جګړه پای ته ورسيده نو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**من ينظر ما صنع أبو جهل؟**).څوک به وګوري چې ابوجهل څه کړيدي؟ خلک ورپسې لاړل،ګوري يې، دا دی چې عبدالله بن مسعود ورباندې ور برابر شو او هغه آخرينۍ سلګۍ وهي، عبدالله بن مسعود يې په غاړه پښه ورکيښوده، تر ږيره يې راونيو چې سر يې ورپرې کړي او ورته ويې ويل: د خدای دښمنه! خدای

---

[1]. صحيح بخاري ۴۴۴/۱، ۵۶۸/۲. مشکاة المصابيح ۴۵۲/۲. د ابو جهل مال يې ځکه يوه ته ورکړ چې هماغه بل په همدې غزا کې شهيد وی وُ. خو د ابو جهل توره يې عبدالله بن مسعود ته ورکړه ځکه هغه د ابو جهل سر غوڅ کړی وُ. سنن ابو داود ۳۷۳/۲.

(2). همدا معاذ د عثمان (رضي الله عنه) تر وخته ژوندی وُ.

څنګه سپک کړي؟ ده ورته وویل: څه یې سپک کړم؟ آیا له هغه چا غوره څوک شته چې ستاسې په لاس وژل شوی وي؟ یعنې دا څه سپکاوی ندی چې څوک د خپل قوم له لاسه ووژل شي. بیا یې وویل: کاشکې د بزګر په ځای بل چا وژلی وای؟ زیاته یې کړه: وایه چې نن بری د چا دی؟ عبدالله بن مسعود ورته وویل: بری د الله او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دی. بیا یې ابن مسعود ته چې دده پر غاړه یې پښه ایښې وه وویل: شپونکیه! نن ډیر لوړ او خطرناک ځای ته پورته شوی یې. (عبدالله بن مسعود (رضي الله عنه) به په مکه کې رمه پووله).لدې خبرو نه وروسته عبدالله بن مسعود (رضي الله عنه) د ابوجهل سر پرې کړ او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته یې وړاندې کړ، او عرض یې ورته وکړ: یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! دا دی د الله د دښمن ابوجهل سر. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) درې ځله داسې وفرمایل: **الله الذي لا اله الا هو)) بیایې** وویل: (**الله أكبر، الحمد لله الذي صدق وعده، ونصر عبده، وهزم الأحزاب وحده، انطلق أرنيه**). الله اکبر، ثنا او صفت دی هغه خدای لره چې خپله وعده یې رېښتونې کړه، د خپل بنده مرسته یې وکړه، او یوازې (الله) ټولو مشرکینو ته ماتې ورکړه. بیا یې ابن مسعود ته وویل: راځه راو یې ښیه. هغه وایي: بیا لاړو او د هغه جسد مې ور وروښود، هلته یې وفرمایل:(**هذا فرعون هذه الأمة**).دا د دې امت فرعون ؤ.

## پدې جګړه کې د ایماني عظمت څو نښانې

مخکې مو د عمیر بن حمام او عوف بن حارث دوی مثالي کارنامې تر نظر تیرې کړې. پدې غزا کې نورې هم ډیرې داسې پیښې شویدي چې د عقیدې قوت او د مبدا عظمت له ورایه پکې ښکاري. پدې جګړه کې زوی د پلار، ورور د ورور په ضد سنګر نیولی ؤ د عقیدې او اصولو د اختلاف له وجې یو بل ته توري له تکیو راووتې، او فیصله د تورې وه. او په همدې جګړه کې مظلومان د ظالمانو مخې ته ودریدل او خپل زړونه یې ښه ورباندې یخ کړل.

۱- ابن اسحاق له ابن عباس (رضي الله عنهما) نه روایت کړی چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اصحابو ته وفرمایل: (**إني قد عرفت أن رجالًا من بني هاشم وغيرهم قد أخرجوا كرهًا، لا حاجة لهم بقتالنا، فمن لقى أحدًا من بني هاشم**

**فلا يقتله، ومن لقی أبا البَخْتَرِيّ بن هشام فلا يقتله، ومن لقی العباس بن عبد المطلب فلا يقتله، فإنه إنما أخرج مستكرهًا)، فقال أبو حذيفة بن عتبة: أنقتل آباءنا وأبناءنا وإخواننا وعشيرتنا ونترك العباس، والله لئن لقيته لألحمنه ــ أو لألجمنه ــ بالسيف، فبلغت رسول الله صلی الله عليه وسلم، فقال لعمر بن الخطاب: (يا أبا حفص، أيضرب وجه عم رسول الله صلی الله عليه وسلم بالسيف)، فقال عمر: يا رسول الله، دعني فلأضرب عنقه بالسيف، فوالله لقد نافق.** زه پوه يم چې بني هاشم او څه نور خلک دلته په راتلو باندې مجبور شويدي، هغوی زمونږ سره جګړې ته اړتيا نلري، نو که هر چا ته د بني هاشم کوم کس په لاس ورغی نه يې دې وژني، او که چا ته ابو البختري بن هشام په مخه ورغی هغه دې هم نه وژني، او که چا ته عباس بن عبدالمطلب په مخه ورغی هغه دې نه وژني، ځکه هغه په زور او جبر راوستل شويدی. نو ابو حذيفه بن عتبه وويل: مونږ به خپل پلرونه، زامن، وروڼه او نور خپلوان وژنو او عباس به پريږدو، قسم په خدای که هغه زما مخې ته راغی نو په توره به يې ووژنم او يا به يې سوری کړم. دا خبره رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ورسيده هغه مبارک (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) عمر (رضي الله عنه) ته وفرمايل: ابو حفصه! آيا د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د تره مخ په توره وهي؟ عمر (رضي الله عنه) ورته وويل: اجازه راکړه چې سر يې په توره غوڅ کړم، والله چې هغه منافق شويدی. وروسته ابو حذيفه (ض) وويل: زه له هغې خبرې نه آرام او مطمئن نه يم کومه مې چې هغه ورځ (د بدر په ورځ) کړې وه، او لا تر اوسه ورنه په ويره او خوف کې يم، خو يوازې دومره ويلی شم چې کيدای شي شهادت زما د هغې خبرې کفاره شي. وروسته نوموړی د يمامه په جګړه کې په شهادت ورسيد.

۲- د ابو البختري له وژلو نه پدې خاطر منع شوې وه، چې نوموړی له هغو کسانو څخه ؤ چې په مکه کې يې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته زيان او ضرر نه رساوه، نه يې په لاس ضرر ورساوه، او نه يې په ژبه. او دا هماغه کس دی چې د بنو هاشم او بنو مطلب په خلاف ليکل شوې ظالمانه معاهدې په ماتولو کې يې مهم رول لوبولی دی. خو ابو البختري په همدې جګړه کې ووژل شو، او دا داسې چې په جګړه کې مجذر بن زياد البلوي ورباندې برابر شو له ابو بختري سره دده يو ملګري هم و، دواړو يو ځای جګړه کوله، مجذر ورته وويل: ابو البختري! رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مونږ ستا له وژلو نه منع کړي يوو، ده وويل: او زما د

ملګري له وژلو هم؟ مجذر ورته وويل: نه د ملګري خلاصون دې نشته. ده وويل: نو چې داسې ده اوس به مونږ داوړه يو ځای مرو، بيايې جګړه پيل کړه، نو مجذر مجبور شو چې ويې وژني.

۳- <u>عبدالرحمن بن عوف</u> او اميه بن خلف په مکه کې د جاهليت د دوران کلک ملګري وو. د بدر په ورځ عبدالرحمن د خپل ملګري اميه چې د خپل زوی علي لاس يې نيولی او ولاړ دی، خواته تير شو، له عبدالرحمن سره د غنيمت څو زغرې وې چې له ځان سره يې وړلې، اميه چې هغه وليد، نو ورته يې ويل: آيا ما ته د څه حاجت نشته؟ زه درته لدې زغرو نه غوره او بهتر يم، ما کله هم داسې بده ورځ نده ليدلې، آيا تاسې شيدو ته ضرورت نلرئ؟ يعنې که زه چا اسير ونيولم، نو په فديه کې به ښې شيدې ورکوونکې اوښانې ورکړم- عبدالرحمن زغرې ورغوځولې، اودوی دواړه يې اسيران او له ځان سره يې روان کړل. عبدالرحمن وايي: پداسې حال کې چې زه د اميه او د هغه د زوی تر منځ روان وم، را ته ويې ويل: عبدالرحمانه! دا چې په سينه کې يې د فيل مرغ ښکه ټومبلې ده څوک دی؟ ما ورته وويل: هغه حمزه بن عبدالمطلب دی. ده وويل: همدغه په مونږ باندې ناتار جوړ کړی ؤ، او همدغه مونږ تباه کړو. عبدالرحمن زياتوي: ما دوې دواړه بوول چې د بلال سترګې پرې ولګيدې، اميه خو همغه کس ؤ چې پر بلال يې په مکه کې ډير ظلمونه کړي ؤ، دلته بلال وويل: د کفر مشر اميه بن خلف! اوس به يا زه ژوندی وم يا هغه! ما ورته وويل: بلاله! دا زما اسير دی. ده وويل: نن به يا زه مرم او يا دی. ما وويل. د توري زويه زما خبره نه اورې. ده وويل: يا به زه ژوندی پاته کيږم او يا دی، بيايې په لوړ آواز چيغه کړه: يا انصار الله! دا د کفر سر لښکر اميه بن خلف، نن به يا زه مرم او يا دی. عبدالرحمن وايي: يو ځل خلک راباندې راټول شول مونږ يې محاصره کړو، زه له اميه نه دفاع کوم، خو يو چا توره را تيره کړه او د اميه زوی يې په ده پښه وواهه هغه په ځمکه پريوت پدې وخت کې اميه داسې يوه چيغه وکړه چې پخپل ژوند کې مې داسې هولناکه چيغه نه وه اوريدلې. عبدالرحمن وايي: ما اميه ته وويل: اوس د ځان چاره پخپله کوه، لکه چې د نجات لاره دې نه وي زه اوس هيڅ هم نه شم کولی، همدا وه چې خلکو توري ترې تيرې کړې او د دواړو کار يې تمام کړ. عبدالرحمن به وروسته ويل: الله دې په بلال رحم وکړي، زما زغرې هم لاړې، او په بندي يې هم وځورلم. په زاد المعاد کې راځي چې عبدالرحمن بن عوف، اميه ته وويل: څمله، هغه څملاست، او عبدالرحمن پاس ځانورباندې ورواچاوه، نورو خلکو هغه له لاندې نه تر هغې په تورو وواهه تر څو مړ شو، پدې وخت کې د عبدالرحمن پښه هم څه

زخمي شوې وه.[۱]

**۴- په همدې ورځ عمر بن الخطاب** (رضي الله عنه) **خپل ماما عاص بن هشام بن مغيره** وواژه.

**۵- ابوبکر** (رضي الله عنه) **خپل زوی عبدالرحمن ته چې هغه وخت لا مشرک وُ غږ وکړ،** اې خبيثه زما مال او دارايي چيرې ده؟ عبدالرحمن ورته وويل:

**لم يبق غير شكة و يعبوب و صارم يقتل ضلال الشيب**

**[له وسلې، تيز رفتار آس او له هغې تورې پرته بل هيڅ هم ندي پاته، کومه چې زړه ګمراهي د مرګ کندې ته اچوي.]**

**۶- کله چې مسلمانانو** د مشرکينو نيول او بندول پيل کړل، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په څپره کې تشريف درلود او سعد بن معاذ (رضي الله عنه) توره په لاس پيره ورباندې کوله. رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د خلکو د کړو له امله د سعد په مخ کې د ناخوښۍ آثار وکتل، ورته ويې فرمايل: سعده! لکه چې د مسلمانانو دا کار دې خوښ نه شو؟ څه خفه غوندې ښکارې؟ ده عرض وکړ: هو، يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)، له مشرکينو سره دا لومړنۍ جګړه او لومړنۍ موقه وه چې الله تعالی مونږ ته په لاس راکړې، زه دې دوی له ژوندي پاته کيدو نه د دوی په وژل کيدو او تباهۍ ډير خوښ يم.

**۷- په همدې ورځ د عکاشه** بن محصن الاسدي توره ماته شوه، او کله چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راغی نو هغه ورته يو لرګی ورکړ او ورته ويې فرمايل: **(قاتل بهذا يا عكاشة)**. عکاشه! ځه پدې سره جنګيږه. عکاشه دا لرګی واخيست او ويې غورځاوه که ګوري په يوه اوږده، مضبوطه او تکه سپينه توره بدل شويدی. او په همدې تورې سره تر هغې پورې وجنګيد تر څو الله تعالی مسلمانانو ته بری ورپه برخه کړ. دغه توره په العون مشهوره وه، عکاشه به هرې جګړې ته له همدې تورې سره تله. تر څو د ردت په جګړه کې پداسې حال کې شهيد شو چې همدا توره يې په لاس کې وه.

**۸- د جګړې له ختميدو** وروسته مصعب بن عمير العبدري خپل ورور ابي عزيز بن عمير وليد، نوموړی د مسلمانانو په خلاف له جګړې نه وروسته اسير شوی وُ، يوه انصاري يې لاسونه وتړل، مصعب هغه انصاري ته وويل: ددې سړي په واسطه خپل لاسونه مضبوط کړه، دده مور مالداره ده، کيدای شي په بدل کې يې ښه فديه درکړي.

---

[1]. زاد المعاد ۸۹/۲

ابو عزیز خپل ورور مصعب ته وویل: زما په باب دې همدا وصیت او سفارش دی؟ مصعب په ځواب کې ورته وویل: ستا په ځای دا انصاري زما ورور دی.

۹- کله چې امر وشو د مشرکینو جسدونه دې په کنده کې واچول شي، او عتبه بن ربیعه د کندې په لور کشول کیده، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د عتبه د زوی ابو حذیفه مخ ته وکتل، ویې لیده چې غمګین او خفه ښکاري، ښه یې اوښتې ده، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: (**یا أبا حذیفة، لعلك قد دخلك من شأن أبیك شيء؟**) ابو حذیفه! لکه چې د پلار په هکله دې په زړه کې څه ګرزي؟ ده وویل: نه، یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! والله که مې په زړه کې د پلار او د هغه د مرګ په هکله څه غم او تشویش وي، خو خبره داده چې زما پلار یو پوه، دور اندیشه، حلیم او د فضل خاوند ؤ او زما هیله دا وه چې ددې پوهې او نورو ښو خصلتونو په برکت به په اسلام مشرف شي، خو اوس مې چې دده دا حال ولید، او زما د هیلې په خلاف کافر له دنیا تیر شو، نو ربنتیا هم چې غمجن شوم. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حذیفه ته د خیر دعا وفرمایله او نیکې او خوږې خبرې یې ورته وکړې.

## د دواړو ډلو مړي

جګړه د مشرکینو په پوره او کاملې ناکامۍ او د مسلمانانو په پریکنده بري سره پای ته ورسیده. پدې غزا کې له مسلمانانو نه (۱۴) کسه چې (۶) مهاجر او (۸) یې انصار وو په شهادت ورسیدل.خو مشرکینو ته ډیر زیان ور واښتی ؤ، اویا تنه ورڅخه وژل شوي، اویا نور یې ژوندي نیول شوي وو، د مړیو او اسیرانو زیاتره برخه یې مشران او مخور خلک وو.

کله چې د جګړې اور مړ شو، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تشریف راوړ، د مشرکینو مړیو ته ودرید او ویې فرمایل: (**بئس العشیرة کنتم لنبیکم؛ کذبتموني وصدقني الناس، وخذلتموني ونصرني الناس، وأخرجتموني وآواني الناس**). تاسې زما له ټولو نه بد او خراب خپلوان وئ، تاسو زه تکذیب کړم پداسې حال کې چې نورو خلکو زه رینښتینی وبللم، تاسو یوازې پریښودم او نورو خلکو زما مرسته وکړه، تاسو له خپل کور نه وایستلم، خو نورو خلکو ځای او پناه راکړه. بیا یې امر وکړ

چې د بدر په يوه کنده کې دې واچول شي.
له ابو طلحه نه روايت دی چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په امر د بدر په ورځ د قريشو (۲۴) مشران او سرداران د بدر په يوه مرداره او خبيثه کنده کې واچول شول. د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا عادت وُ چې کله به په کوم قوم بريالی او برلاسی شو يعني جګړه به يې ورنه وګټله، نو درې ورځې به هملته د جګړې په ميدان کې پاتې کيده.
د بدر د غزا چې دريمه ورځ شوه نو د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د امر سره سم سواري تياره شوه زين او کجاوه پرې کېښودله شوه، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) همداسې پياده روان شو، اصحاب (رضي الله عنهم) وروسته ورپسې روان وو مخکې لاړ او د هغې کندې په څنډه ودريد، چې د کفارو مړي پکې اچول شوي وو (مړيو) ته يې د هر يوه نوم او د پلار نوم اخيسته فرمايل يې:
**(يا فلان بن فلان، يا فلان بن فلان، أيسركم أنكم أطعتم الله ورسوله؟ فإنا قد وجدنا ما وعدنا ربنا حقًا، فهل وجدتم ما وعد ربكم حقًا؟) فقال عمر: يا رسول الله، ما تكلم من أجساد لا أرواح لها؟ قال النبي صلى الله عليه وسلم: (والذي نفس محمد بيده، ما أنتم بأسمع لما أقول منهم) وفي رواية: (ما أنتم بأسمع منهم، ولكن لا يجيبون).** [آيا پدې خوشاليدئ چې د الله او د هغه د رسول اطاعت مو کړی وئ؟ ځکه زمونږ رب له مونږ سره کړې وعده پوره کړه او د څه يې چې وعده راسره کړې وه هغه مو تر لاسه کړل، آيا تاسې هغه څه په حق سره وليدل کوم چې ستاسې رب يې وعده درسره کړې وه؟ دلته عمر (رضي الله عنه) ورته وويل: يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! آيا ته له بې روحه جسدونو سره خبرې کوې؟ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: قسم په هغه ذات چې د محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نفس يې په لاس کې دی، تاسې زما خبرې له دوی نه ښې نه اورئ. او په بل روايت کې راځي چې تاسې له هغوی نه ښه اوريدونکي نه يئ، خو دا خلک ځواب نه شي ورکولی].[1]

## د مشرکينو د ماتې خبر مکې ته رسيږي

[1]. متفق عليه، مشكاة المصابيح ۲/۳٤٥.

د بدر له میدان نه مشرکین هرې خوا ته وتښتیدل، هر څوک د ځان په غم کې وُ، په کومه یې چې مخه وه په همغه وتښتید، په خوړونو او درو کې تیت پرک شول، د ټولو وروستی منزل مکه وه، خو له شرم او خجالت نه لاره ورنه ورکه وه چې څه ډول مکې ته داخل شي.

ابن اسحاق وایي: لومړی کس چې مکې ته یې د قریشو د ماتې خبر راوړ حیسمان بن عبدالله خزاعي وُ. هغه چې ورغی خلکو ورته وویل: څه خبر دې راوړئ؟ ده وویل: د عتبه، شیبه، ابو الحکم، امیه بن خلف او نورو سردارانو د مرګ خبر مې راوړی. ده چې د قریشو د سردارانو نومونه اخیستل صفوان بن امیه چې په حجر (حطیم) کې ناست وُ، وویل: قسم په خدای که دا په هوش کې وي، تاسې زما په هکله پوښتنه ورنه وکړئ! دوې ورته وویل: په صفوان بن امیه څه وشول؟ ده وویل: هغه خو دا دی په حطیم کې ناست دی، قسم په خدای چې ما یې پلار او ورور ولیدل چې ووژل شول.

د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مولی (آزاد شوی غلام) ابو رافع وایي: زه د عباس (رضي الله عنه) غلام وم، اسلام زمونږ کورنۍ ته داخل شوی وُ، ما، عباس او میرمنې یې (ام الفضل) ټولو اسلام راوړی و، خو عباس (رضي الله عنه) خپل دین پټ ساته. ابو لهب بدر ته نه وُ تللی او کله یې چې د ماتې خبر واورید، نو الله تعالی ډیر خوار او ذلیل کړ، خو مونږ د قوت او عزت احساس وکړ. زه یو کمزوری سړی وم، د زمزم په حجره کې به مې غشي جوړول، قسم په خدای چې زه ناست وم او غشي مې جوړول، ام الفضل هم دلته ناسته وه، مونږ ددې خبر په اوریدو سره ډیر خوشاله وو، چې یو ځل ابو لهب راغی پښې یې وریسې ښنیدلې، د حجرې په یوه څنډه کې کیناست شا یې زما شا ته وه، هغه لا همدلته ناست وُ چې غږ وشو: ابو سفیان بن حارث بن عبدالمطلب راغی، ابو لهب ورته وویل: دلته راشه، تا به حتماً خبر راوړی وي. ابو رافع وایي، ابو سفیان راغی او له ابو لهب سره کیناست نور خلک ټول ورته ولاړ دي، ابو لهب ورته وویل: وراره! وایه د خلکو څه حال وُ؟ ده ورته وویل: څه حال وُ، خبره دا ده چې مونږ له داسې یوه قوم سره مخامخ شوي وو، چې په مقابل کې یې زمونږ زور وتلی وُ، مونږ خپل ځانونه دوی ته حواله کړي وو، خوښه د دوی وه چې څنګه مو وژني او څنګه مو بندیانوي، خو قسم په خدای زه لدې ټولو سره سره خپل خلک نه ملامتوم، ځکه مونږ له داسې سپینو خلکو سره مخامخ شوي وو، چې د ځمکې او آسمان تر منځ په تورو و سپینو آسونو سپاره وو، والله چې هغوی نه څه پرېښودل او نه یې څوک مخې ته ټینګیدی شوی

. ابو رافع وایي: ما د خیمې څنډه پورته کړه او ومې ویل: والله، چې دا ملائکې دي، زیاتوي: ابو لهب لاس پورته کړ او په ده مخ یې یوه کلکه څپېړه راکړه، زه هم ورپاڅېدم او ورسره په جګړه شوم، خو څرنګه چې زه کمزوری وم، نو پورته یې کړم او پر ځمکه یې راوویشتم او د پاسه راباندې کیناست او وهلم یې، پدې وخت کې ام الفضل پاڅېده او د خیمې یوه ستنې یې راواخیسته او ابولهب ته یې په ده سر داسې یوکلک ګوزار ورکړ چې سر یې ډېر زیات مات شو، بیایې ورته وویل: دا چې مالک یې نشته، نو کمزوری دې ولید! پدې ګوزار پسې ابو لهب ذلیل او سپک پاڅید ، قسم په خدای چې لدینه وروسته یوازې اوه ورځې نور ژوندی وُ، الله تعالی په عدسه مبتلا کړ، (عدسه یو قسم دانه یا یو قسم طاعون دی چې عرب یې په بدفال نیسي) او له همدې عدسې نه مړ شو. له مرګ نه وروسته دری ورځې همداسې پروت وُ، زامنو یې لاس نه وروړ، نه یې څوک خوا ته ورنژدې کیدل او نه یې چا د ښخولو فکر کاوه، خو کله یې چې زامن د خلکو له شرم او عار نه وویریدل او فکر یې وکړ که یې همداسې پریږدي، نو خلک به خبرې ورپسې وکړي، مجبور شول چې یوه کنده ورته وکیندي، بیایې له لیرې . نه په یوه لرګي سره پدې کنده کې ورواچاوه، او له لیرې . نه یې تیږې وراندې وروغورځولې او پټ یې کړ.

پدې ترتیب سره د بدر په میدان کې د مشرکینو د رسوا ماتې خبر مکې ته ورسید ، دې خبر د مکې په اوسیدونکو ډېر بد اثر وکړ، ان تر دې چې هغوی په مړیو باندې ژړا منع اعلان کړه، دا پدې خاطر چې د مدینې خلک د دوی په ژړا نور پسې خوشاله نه شي.

یوه په زړه پورې واقعه دا هم ده چې پدې غزا کې د اسود بن مطلب دری زامن وژل شوي وو. نومورې په سترګو ړوند وُ او زړه یې غوښتل چې د زامنو په مرګ ښه په چیغو چیغو وژاړي، یوه شپه یې د یوې ښځې د ژړا آواز واورید ، فورا یې خپل غلام واستاوه او ورته ویې ویل: وګوره چې په مړیو د ژړلو اجازه ورکړل شویده او که څنګه؟ آیا قریش پخپلو مړیو ژاړي؟ چې زه پخپل زوی ابو حکیمه وژاړم، زما سینه خو له ډېره غمه په چاودیدو ده.

غلام یې لاړ او کله چې بیرته راغی ورته ویې ویل: دا د هغې ښځې د ژړا آواز دی چې پخپل ورک شوي اوښ پسې ژاړي. دلته اسود له کنترول نه ووت او په خوله یې دا شعرونه جاري شول:

| | |
|---|---|
| اتبکي ان یضــــل لها بعیر | و یمنعها من النوم الســـهود |
| فلا تبـــکی علی بکر و لکن | علی بدر تقاصرت الجدود |

على بـــدر سراة بني هصيص و مخزوم و رهط ابي الوليد
وبكي ان بكيـــت على عقيل و بكي حارثا اسد الاسود
و بكيهم، ولا تســـمي جميعا ومـــا لابي حكيمة من نديد
الا قد ســـاد بعـــدهم رجال ولولا يوم بـــدر لم يسودوا

[آيا دا پدې ژاړي چې اوښ يې ورک شويدي؟ او پر هغه باندې بې خوابی يې خوب ورک کړيدی. په اوښ مه ژاړه، بلکه په بدر وژاړه چيرته چې قسمتونه ايرې شويدي،هو په بدر وژاړه چيرته چې بني هصيص، بني مخزوم او ابوالوليد د قبيلې سرداران دي، که ژاړې نو په عقيل وژاړه په هغه حارث وژاړه چې د زمريانو زمری وُ نو په هغو خلکو وژاړه او د ټولو نومونه مه اخله، او د ابو حکيمه خو هيڅ مثل او سيال نه وُ، وګوره، له هغوی نه وروسته داسې خلک سرداران شول، که د بدر ورځ نه وای، نو کله به هم نه وو سرداران شوي.]

## په مدينه کې د فـتحې زيری

کله چې د مسلمانانو فتحه او بری په برخه شو، نو رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د مدينې اوسيدونکو ته د عاجل زيري لپاره دوه کسان عبدالله بن رواحه د مدينې د پاسنۍ برخې اوسيدونکو ته او زيد بن حارثه د مدينې د لاندينۍ برخې اوسيدونکو ته د زيري لپاره واستول.

هلته مدينه کې يهودانو او منافقانو پخپلو دروغو خبرونو او پروپاګند سره بده ورځ جوړه کړې وه ان تر دې چې د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د مرګ خبر يې هم خپور کړی وُ. او کله چې يوه منافق زيد بن حارثه د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په اوښه (قصواء) باندې سپور وليد، نو ويې ويل: محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) وژل شوی دی، او دا يې اوښه ده، مونږ خو يې پيژنو، دا هم زيد بن حارثه دی چې راتښتيدلی دی او له ډيرې ويرې يې هيڅ هم تر خوله نه خيژي. په هر حال دواړه زيري وړونکي مدينې ورسيدل، مسلمانان ورنه تاو شول، او خبرو ته يې غوږ شول، بالاخره پدې باوري شول چې د مسلمانانو فتحه او بری په برخه شويدی.

په مدينه کې هرې خوا ته خوښې او خوشالي خوره شوه، د تکبير او لا اله الا الله نارې

اوچتې شوې، مدینه ټوله له خوښۍ نه په حرکت راغله. مسلمان مشران یې د بدر لارې ته ورغلل تر څو خپل عظیم رهبر رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ددې لویې فتحې مبارکي ووایي. اسامه بن زید وایي: مونږ ته د فتحې خبر هغه وخت راورسید چې مونږ په مدینه کې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په لور رقیه (رضي الله عنها) باندې چې د عثمان (رضي الله عنه) په نکاح کې وه خاورې اړولې وې. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) زه هم د رقیې (رضي الله عنها) د خدمت لپاره له عثمان (رضي الله عنه) سره په مدینه کې پرې ایښی وم.

## د غنیمت مسئله

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له جګړې نه وروسته درې ورځې نور هم د بدر په میدان کې پاتې شو، او لدې ځای نه لا نه ؤ خوځیدلی چې د غنیمت د مالونو په سر د مسلمانانو تر مینځ اختلاف پیدا شو. او کله چې دا مخالفت او اختلاف زیات شو، نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر وکړ چې ټول کسان دې د غنیمت مالونه ده ته وسپاري. سپاهیانو د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر عملي کړ او ټول شیان یې ورته تسلیم کړل، وروسته وحي راغله او دا مشکل یې حل کړ.

له عباده بن صامت (رضي الله عنه) نه روایت دې وایي: له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره له مدینې نه ووتلو، تر څو بدر ته ورسیدو له خلکو (مشرکانو) سره جګړه وشوه، الله تعالی دښمنانو ته ماتې ورکړه ، له مونږ یوه ډله خلک داسې وو چې کافران یې پسې اختستي وو او وژل به یې، خو بله ډله داسې وه چې په غنیمتونو پسې شوي وو راټولول او جمع کول به یې، یوه بله ډله خلک په رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) راټول شوي وو ویریدل چې هسې نه دښمن په فریب او چل سره څه ضرر ورورسوي، نو هغوی د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ساتنه کوله، خو کله چې شپه شوه خلک سره راغونډ شول، هغو کسانو چې د غنیمت مالونه یې راوړي وو وویل: مونږ دا مالونه راټول کړیدي، د هیڅ چا برخه نشته پکې، او هغو کسانو چې په دښمنانو پسې تللي وو ویل: پدې مالونو کې ستاسې برخه زمونږ له برخې نه ډیره نده، ځکه دا مونږ وو چې دښمنان مو مات کړل او لدې مالونو نه مو لیرې ، وساتل. او هغو کسانو چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ساتنه یې کړې وه ویل: مونږ خو لدې ویرې نه چې دښمنان په پټه او چل

سره رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته زیان و نه رسوي د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په ساتنه او دفاع مشغول وو. پدې ترتیب سره دا مشکل را پیدا شو تر څو وحي را نازله شوه او پدې هکله یې داسې فیصله وکړه:
((يَسْأَلُونَكَ عَنْ الأَنْفَالِ قُلْ الأَنْفَالُ لِلَّهِ وَالرَّسُولِ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَصْلِحُوا ذَاتَ بَيْنِكُمْ وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ إِنْ كُنتُمْ مُؤْمِنِينَ)) (الانفال:١)
[ترجمه: پوښتنه کوي دوی له تانه (اې محمده (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له (حکمه) د غنائمو څخه ووایه دوی ته چې دا اموال د غنیمتونو خاص الله لره دي او رسول (د الله) لره دي (چې تقسیم یې کړي سم له شرعي اصولو سره) پس وویرېږئ تاسې له الله نه او اصلاح وکړئ تاسې د هغه حال چې په مینځ ستاسې کې دی (یعنې په خپلو مینځونو کې سره دوستي وکړئ او نزاع پرېږدئ) او حکم ومنئ تاسې د الله او (حکم ومنئ تاسې) د رسول د الله که یئ تاسې مؤمنان (په حقه سره).] او لدینه وروسته رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د غنیمت مال د مسلمانانو تر مینځ وویشه.[1]

## اسلامي لښکر د مدینې په لار

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په بدر کې له درې ورځې اقامت نه وروسته د مدینې په لور وخوځید. مشرکان بندیان او د غنیمت مالونه هم ورسره وُو او ددې نګرانی یې عبدالله بن کعب (رضي الله عنه) ته سپارلې وه. کله چې د صفراء درې له تنګۍ نه ووت، ددې تنګۍ او نازیه سیمې تر مینځ پرتې یوې غونډۍ باندې یې واړول او د غنیمت له مال نه یې خمس (پنځمه برخه) جدا کړه او نور پاته یې په مساویانه ډول پر مسلمانانو باندې وویشه.
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د صفراء په دره کې د نضر بن حارث د وژلو حکم صادر کې. نوموړی د بدر په ورځ د مشرکینو علمبردار و د هغوی بیرغ یې اوچت کړی وُ او د قریشو له هغو لویو مجرمینو او اسلام دښمنه عناصرو څخه شمیرل کېده چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته یې زیان او تکلیف رساوه. همغه وه چې علي (رضي الله عنه) یې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و

---

[1]. احمد ٥/٣٢٣-٣٢۴. الحاکم ٢/ ٣٢۶

صحبه و سلم) په امر سر وواهه.
لدينه وروسته کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) عرق الظبيه ته ورسيد هلته يې د عقبه بن ابي معيط د وژلو فرمان صادر کړ. دا هغه کس ؤ چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته يې ډېر تکليفونه رسولي ؤ، او مونږ مخکې څه دا ډول پېښو ته اشاره هم کړېده. دا هماغه رذيل ؤ کوم چې د لمانځه په وخت کې يې پر رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) باندې د اوښ پريوان ور اچولی ؤ، او دا هماغه شيطان ؤ چې پخپل چادر سره يې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د زندۍ کولو کوښښ کړی ؤ او که ابوبکر (رضي الله عنه) نه وای راغلی، نو نژدې وه چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مړ کړي. کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د هغه (عقبه) د وژلو امر وکړ، نو ده ورته وويل: يا محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! زما د ماشومانو لپاره به څوک وي؟ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: اور.[1] ويل کيږي چې دده سر عاصم بن ثابت انصاري او په بل روايت علي بن ابي طالب (رضي الله عنه) وواهه.
د جنګی تاکتيک او استراتيژۍ له مخې ددې دوو رذيلانو وژل ځکه ضروري ؤ، چې دا دواړه نه يوازې جنګي اسيران بلکه په نننۍ ژبه جنګي مجرمان هم وو.

## د مبارکۍ وفدونه (پلاوي)

کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) روحاء ته ورسيد د مسلمانانو هغه مشران يې استقبال او مبارکۍ ته حاضر شول چې له مدينې نه د همدې غرض پخاطر راوتلي وو. پدې وخت کې سلمه بن سلامه مبارکي ويونکو مسلمانانو ته وويل: تاسې مونږ ته د څه مبارکي راکوئ؟ قسم په خدای مونږ د اوښانو په شان له زړو بوډاګانو ګنجيانو سره مخ شوي وو. پدې خبرې سره رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تبسم وکړ او ويې فرمايل: وراره! هغوی د قوم مشران وو.
اسيد بن حضير عرض وکړ: يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! حمد او ثنا دې وي هغه خدای لره چې ته يې برلاسی او بريالی کړی او ستا سترګې يې رڼې او يخې کړې، يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! قسم په خدای زه له بدر نه پدې ګومان نه يم پاتې شوې چې ته به له دښمن سره جګړه کوې، زما خيال خو دا وو

---
[1]. دا حديث په صحاح کتابونو کې روايت شويدی سنن ابو داود د هغه له شرحې عون المعبود سره وګوره ۱۲/۳

چې يوازې د کاروان خبره ده، که زه خبر وای چې له دښمن سره مقابله ده، نو کله به هم نه وای درنه پاتې شوی. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: ته رښتيا وايې. وروسته رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پداسې حال کې مدينې منورې ته سر لوړی، کامياب او منصور ننوت چې پر دښمنانو يې په مدينه کې د ننه وو که د باندې ويره او هيبت لويدلی و. ددې عظيمې فتحې په نتيجه کې د مدينې ډير خلک په اسلام مشرف شول، عبدالله بن ابي بن سلول او ملګري يې هم په همدې وخت په ظاهري توګه د مسلمانانو ليکو ته داخل شول.
مدينې ته د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له تشريف راوړلو نه يوه ورځ وروسته بنديان هم راورسيدل. هغوی يې پخپلو اصحابو (رضي الله عنهم) وويشل، امر يې ورته وکړ چې له بنديانو سره ښه او نيکه معامله وکړي. اصحابو (رضي الله عنهم) د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د امر د تعميل پخاطر له بنديانو سره دومره نيکي کوله چې پخپله به يې خرما خوړلي، خو بنديانو ته به يې ډوډی ورکوله (هغه وخت په مدينه کې خرماوې له ټولو نه ارزانه او بې ارزښته وې، خو ډوډی ډيره قيمته او مهمه بلل کيدله).

## د بنديانو مسئله

کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مدينې ته ورسيد، نو د بنديانو په هکله يې له اصحابو (رضي الله عنهم) سره مشوره وکړه چې څه ورسره وشي؟ ابو بکر (رضي الله عنه) وويل: يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! دوی (بنديان) زمونږ وروڼه، د تره زامن او خپلوان (تربرونه) دي، زما رايه خو دا ده چې فديه ورنه واخلې، ځکه دا به له يوې خوا د مشرکينو په مقابل کې زمونږ لپاره مالي او اقتصادي تقويه او کومک وي، او له بلې خوا کيدای شي الله تعالی دوی ته هم د نيکۍ هدايت وکړي او زمونږ مرستندويان شي.
رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: ته څه وايې يا ابن خطابه! عمر(رضي الله عنه) وايي ما وويل: زه د ابوبکر (رضي الله عنه) نظريه نه تاييدوم، بلکه زه دا وايم چې ما ته فلانی – نوموړی د عمر (رضي الله عنه) خپلوان ؤ، په لاس راکړئ چې سر يې ووهم، او علي (رضي الله عنه) ته عقيل بن ابي طالب وسپارئ چې سر يې غوڅ کړي، او فلانی چې د حمزه (رضي الله عنه) ورور ؤ حمزه (رضي الله عنه) ته

ورکړئ چې مری یې ورپرې کړي، تر څو الله تعالی ووینې چې زمونږ په زړونو کې د کفارو او مشرکینو لپاره رحم او مهرباني ځای نلري، دوی (اسیران) خو د مشرکانو، سرداران او مشران دي.

عمر (رضي الله عنه) وايي رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ابوبکر (رضي الله عنه) رایه غوره کړه او زما نظر یې و نه ما نه، فیصله یې وکړه چې له بندیانو نه فدیه واخلي. عمر (رضي الله عنه) وايي سبا سهار رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او ابوبکر ته ورغلم، که ګورم دواړه ژاړي، ما ورته وویل: یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ولې؟ ته او ملګری دې په څه ژاړي؟ پوه مې کړه که د ژړا وجه راته ښکاره شوه، زه به هم درسره وژاړم، او که د ژړا وجه نه وه، نو ستاسې حضراتو په ژړا به وژاړم. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**أبكي للذي عرض على أصحابك من أخذهم الفداء، فقد عرض عليّ عذابهم أدنى من هذه الشجرة**) په هغه څه ژاړم چې د فدیې قبلولو له امله ستا ملګرو ته پیښ شویدي، ما ته د دوی عذاب له دې ونې نه – یوې نژدې ونې ته یې اشاره وکړه[1] هم لنډ رابنوودل شویدی. الله تعالی دا آیتونه رانازل کړیدي: ((**مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَى حَتَّى يُثْخِنَ فِي الأَرْضِ تُرِيدُونَ عَرَضَ الدُّنْيَا وَاللَّهُ يُرِيدُ الآخِرَةَ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ (٦٧) لَوْلا كِتَابٌ مِنْ اللَّهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيمَا أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ** )) (الانفال: ٦٧– ٦٨)

[نه ښايي نبي لره دا چې وي ده لره بندیان (چې ترې فدیه واخلي) تر هغه وخته چې قوي شي په ځمکه کې (د مشرکینو د ډیر قتل او جرحې په سبب) آماده کوئ تاسې (اې مؤمنانو) اسباب د دنیا (په اخیستلو د فدیې سره) او الله اراده لري (تاسې لره ثواب) د آخرت (د مشرکینو د قتل په سبب) او الله ښه غالب قوي دی (په انفاذ د احکامو، ښه حکمت والا دی چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي. او که نه وی ازلي حکم له جانبه د الله چې وړومبی لیکل شویدی (په لوح محفوظ کې) نو خوامخاه رسیدلی به وځ تاسې ته په عوض د) هغې (فدیې) کې چې اخیستی ده تاسې عذاب ډیر لوی.]

او هغه کتاب (نوشته) چې د الله له لوري یې سبقت کړی وځ دا وځ چې ((**فَإِمَّا مَنّاً بَعْدُ وَإِمَّا فِدَاءً**)) (محمد:٤) [یعنې چې یا احسان ورباندې وکړئ او یا یې د فدیې په بدل کې خوشي کړئ.]

---

[1]. تاریخ عمر بن الخطاب لابن الجوزي ص ۲۶.

دا آیت د بندیانو په مقابل کې د فدیې اخیستلو اجازه ورکوي، او همدا وجه وه چې اصحاب (رضي الله عنهم) د فدیې قبلولو په وجه په عذاب نه شول، بلکه یوازې عتاب او سر زنش ورباندې رانازل شو هغه هم پدې خاطر چې دوی مشرکین له ښو ځپلو او ډیر وژلو نه مخکې اسیران کړل. او بله دا چې هغوی له داسې خلکو نه فدیه واخیستله چې نه یوازې جنګي بندیان وو بلکه جنګي لوی لوی مجرمان هم وو، داسې جنګي مجرمان چې د جنګ نننی قانون یې هم بې له محاکمې نه خوشي کوي او ځرګنده ده چې په دا ډول مجرمینو به یا د اعدام حکم کیږي او یا به په دایمي بند محکومیږي.

په هر حال د ابوبکر (رضي الله عنه) د مشورې سره سم له بندیانو نه فدیه واخیستله شوه، د فدیې اندازه څلور زره او درې زره درهمه او یو زر درهمه ټاکل شوې وه. او څرنګه چې د مکې خلک په لیک لوست پوهیدل او د مدینې خلک لدې نعمت نه محروم وو، نو دا فیصله هم وشوه هغه بندیان چې د فدیې ادا کولو وس نلري هغوی دې د مدینې لسو هلکانو ته لیک لوست ور زده کړي او هر کله چې دې هلکانو لیک لوست ښه زده کړ، نو همدا ددې بندي فدیه شوه.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په ځینو بندیانو ځانګړی احسان او منت هم کیښود، هغوی یې بیله فدیې آزاد کړل. له دې جملې نه مطلب بن حنطب، صیفي بن ابي رفاعه، او ابو عزه الجمحي وو دا وروستی بیا د احد په غزا کې اسیر او ووژل شو (د پیښې تفصیل وروسته راځي).

همدا راز رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپل زوم ابي العاص هم احسان وکړ، خوشی یې کړ، خو دا شرط یې ورباندې کیښود چې د زینب (رضي الله عنها) مخه به نه نیسي یعنی اجازه به ورکوي چې هجرت وکړي. ددې وجه دا وه چې زینب (رضي الله عنها) د خپل میړه ابي العاص د خوشي کیدو او فدیې ادا کولو پخاطر څه اندازه مال را استولی وُ، پدې شیانو کې یو امیل هم وُ، دغه امیل په اصل کې د خدیجی (رضي الله عنها) وُ، چې خپلې لور زینب (رضي الله عنها) ته یې د ابو العاص کور ته د رخصتیدو په وخت ورکړی وُ. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) چې دا آمیل ولید زړه یې ډیر نرم شو، اصحابو (رضي الله عنهم) نه یې د ابو العاص د خوشي کیدو خبره وکړه. اصحابو (رضي الله عنهم) قبوله کړه، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په ابو العاص دا شرط کیښود چې زینب (رضي الله عنها) ته به اجازه ورکوي چې مدینې ته راشي. ابو العاص په خپل شرط وفا وکړه او زینب (رضي الله عنها) مدینې ته مهاجره شوه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و

صحبه و سلم) زید بن حارثه او یو انصاري ته وظیفه ورکړه امر يې ورتـه وفـرمـایـه : (**کونا ببطن يَأجَج حتى تمر بکما زینب فتصحباها**). چې لاړ شي او د یاجج په دره کې تر هغې انتظار وباسي تر څو زینب درباندې راشي او بیایې له ځان سره راولئ. هغوی لاړل او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لور یې راوستله، ددې د هجرت کیسه ډیر اوږده او له حده نه زیاته دردونکې ده.

د بندیانو په ډله کې مشهور او تیز ژبانه خطیب سهیل بن عمرو هم وُ. عمر (رضي الله عنه) رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته عرض وکړ چې دده د مخې دواړه غاښونه ورمات کړه، بیا به یې ژبه بنده بنده غوندی کیږي، او هیچرته به هم ستا په خلاف مغرضانه خطبې نه شي ویلی، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د عمر (رضي الله عنه) دا وړاندیز رد کړ، ځکه دا د مثلې په حکم کې راځي او پدې ډول عمل سره د قیامت په ورځ د الله د ګرفت ویره هم ده.

سعد بن نعمان (رضي الله عنه) د عمرې ادا کولو لپاره مکې ته لاړ، هلته ابو سفیان بندي کړ د ابو سفیان زوی عمرو هم د بندیانو په ډله کې وُ، نو هغه یې خپل پلار ابو سفیان ته ورولیږه چې هغه یې په بدل کې سعد بن نعمان را خوشی کړ.

## ددې غزا په هکله د قرآنکریم تبصره

ددې غزا په هکله د انفال سورت نازل شو، او که چیرې دا تعبیر درست وبلل شي، نو ویلی شو چې دا سورت په حقیقت کې پدې غزا باندې یوه الهي تبصره وه، خو دا داسې تبصره ده چې له هغو تبصرو سره ډیر توپیر لري کومې چې پاچایان او د لښکر قوماندانان یې له فتحې وروسته خلکو ته اوروي.

الله تعالی په پیل کې د مسلمانانو نظر د هغو تقصیراتو او اخلاقي کمزورویو په لور راوګرزاوه، کومې چې لا تر اوسه له دوی سره موجودې وې، او ځینی خو یې په همدې وخت کې له دوی نه پیښې شوې وې دا هم پدې خاطر چې مسلمانان ځانونه لدې نقایصو نه پاک کړي، د کمال او عظمت لوړ مقام ته پورته شي.

پدې پسې یې له مسلمانانو سره د الله تعالی له نصرت او غیبي کومک نه یادونه وکړه، ددې هدف دا وُ چې مسلمانان په خپل قوت او شجاعت غره نه شي، کبر او غرور یې زړونو ته لار پیدا نکړي. هغوی باید تل په الله توکل ولري، د الله او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په وړاندې تسلیم او فرمانبردار و اوسي.وروسته یې هغو لوړو او غوره اهدافو ته اشاره وفرمایله د کومو لپاره چې رسول الله (صلی الله

علیه و اله و صحبه و سلم) دې خونړۍ جګړې ته ننوتی ؤ، او هغه صفات او اخلاق یې په ګوته کړل د کومو په وجه چې دوی ته فتحه او بری ور په برخه شوی ؤ او یا چې د هغې پذریعه جنګونه ګټل کیدای شي. بیا یې مشرکینو، منافقینو، یهودو او جنګي بندیانو ته خطاب فرمایلی، ډیر فصیح او بلیغ نصیحت یې ورته کړی تر څو هغوی د حق په وړاندې تسلیم شي او په حقیقت اعتراف وکړي. وروسته یې مسلمانان مخاطب ګرزولي او د غنیمت په هکله یې اساسي او ځرګند اصول او قوانین ورته بیان کړیدي.
پدې پسې یې د جنګ او سولې هغه قوانین او اصول توضیح او تشریع کړي کوم چې پدې وخت کې اسلامي دعوت ورته اړتیا درلوده. دا ددې لپاره چې د مسلمانانو جنګ باید د جاهلیت له جنګ نه بیل او اوچت وي، او مسلمانان باید په اخلاقي، عملي او ټولو نورو اړخونو کې له نورو نه مخکې او وړاندې وي. او دنیا باید پدې پوه شي چې اسلام خالي نظریه نده، بلکه اسلام خپل پیروان په ټولو هغه اصولو او مقرراتو به عملي توګه سینګاروي د کومو چې دغه دین غوښتونکی دی او نور خلک ورته رابولي.
بیا یې د اسلامي حکومت د قانون او دستور د ځینو موادو یادونه کړیده. او له هغه نه دا په ډاګه کیږي چې د اسلامي حکومت په حدودو کې د ننه او له پولو نه د باندې اوسیدونکو مسلمانانو تر مینځ څه توپیر وجود لري.

## ځنې نورې پیښې

د دوهم هجري کال د رمضان په میاشت کې د رمضان روژه، او د فطر صدقه فرض شوه. د زکات د مختلفو نصابونو تفصیل او بیان هم راغی، د فطر صدقې او زکات د نصاب په فرضیت او بیان سره د هغو فقیرانو او بې وسه مهاجرینو ډیر مشکلات او ستونزې حل شوې کومو چې د سفر او کار توان او قدرت نه درلود.
له ټولو نه د خوشحالۍ خبره او ډیر نیک تصادف دا ؤ چې مسلمانان لومړنی عید چې د دوهم هجري کال د شوال په لومړۍ ورځ ؤ هغه وخت ولمانځه چې د بدر په میدان کې یې لویه فتحه او کامیابی هم تر لاسه کړې وه. څومره بختور ؤ دغه عید چې الله مسلمانانو ته د بري او عزت له تاج ور په سر کولو نه وروسته راوستې ؤ، څومره زړه راښکونکی وه د هغه لمانځه صحنه چې مسلمانان له خپلو کورونو نه پداسې حال کې ورته راوتلي وو چې په ژبو یې د توحید، تکبیر او تحمید کلمې جاري وې. هو

مسلمانان پداسې حال کې د لومړني عيد لمونځ په هغه ميدان کې ادا کوي چې د تکبير نارې يې آسمان ته اوچتې شوې، زړونه يې د الله له مينې ډک وو، او په ژبو يې د الله د نعمتونو او مهربانيو له امله شکرانې او شکرونه ايستل، د عجز سرونه يې ورته ټيټول او سترګې يې د خپل رب د لا زيات رحمت او رضا په لور کړې وې. الله تعالى خپلو دې نعمتونو ته اشاره کوي فرمايي: ((**وَاذْكُرُوا إِذْ أَنْتُمْ قَلِيلٌ مُسْتَضْعَفُونَ فِي الأَرْضِ تَخَافُونَ أَنْ يَتَخَطَّفَكُمْ النَّاسُ فَآوَاكُمْ وَأَيَّدَكُمْ بِنَصْرِهِ وَرَزَقَكُمْ مِنْ الطَّيِّبَاتِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ** )).( الانفال: ٢٦) [او ياد کړئ تاسې هغه وخت چې تاسې لږ ضعيفان (مغلوبان کړی شوي وئ په ځمکه کې، ويريدئ تاسې له دې نه چې وبه تښتوي په تيزۍ سره تاسې خلق ((يعنی مغلوب به کړي تاسې قريش يا فارس ياروم)) نو ځای درکړ ((الله)) تاسې ته او قوت يې درکړ تاسې ته په کومک (مدد) سره او روزي يې درکړه تاسې ته له طبياتو (پاکو شيانو لکه غنائم)) لپاره ددې چې تاسې شکر وباسئ.]

# د بدر او احد تر مینځ پوځي عملیات

بدر د مسلمانانو او مشرکانو تر مینځ لومړنۍ پریکنده وسله واله نښته وه. پدې غزوه کې فتح او برى د مسلمانانو په برخه شو. ددې جګړې له نتائجو نه دوې ډلې خلک ډیر غمجن او نا آرامه وو، لومړنۍ ډله هغه مشرکین وو چې په جګړه کې مستقیماً زیانمن شوي وو د مال او سر ډیر تاوان وراوښتی و. او دوهمه ډله یهودان وو ځکه دوی د مسلمانانو عزت او کامیابي خپل دیني او اقتصادي موجودیت ته لوی خطر او ملاماتونکې ګوزار باله، نو د دوی ټولو په زړونو اور بل شوی ؤ او له ډیر غم او غوسې نه په ځان نه پوهیدل ((لَتَجِدَنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِلَّذِينَ آمَنُوا الْيَهُودَ وَالَّذِينَ أَشْرَكُوا)) (المائدة:۸۲) [له مسلمانانو سره تر ټولو زیاته دښمني د یهودانو او مشرکانو ده.]

په مدینه کې داسې کسان هم وو چې په ښکاره خو یې له مجبوریت نه او د خپل وقار ساتلو پخاطر اسلام راوړی ؤ، خو په پټه او واقعیت کې له مشرکینو او یهودانو سره ملګري وو. دا د عبدالله بن ابي بن سلول ډله وه، دې دریمې ډلې هم له مسلمانانو سره لکه د دوو نورو ډلو په شان زیاته کینه او عداوت درلود.

څلورمه ډله خلک هم وو، هغوی د مدینې شاو خوا میشته بدویان او کوچیان وو، دوی ته کفر او اسلام اهمیت نه درلود، ژوند یې په غلا او چور روان ؤ، د مسلمانانو لدې فتحې او برې نه ډیر په تشویش کې شول، ځکه فکر یې کاوه که چیرې په مدینه کې یو پیاوړی حکومت قایم شي، نو بیا خو به حتماً له چور او چپاول نه د دوی لاسونه ورلنډوي پداسې حال کې چې د دوی د روزۍ ګټلو طریقه او لاره همدا ده، نو د دوی زړونه هم د مسلمانانو له دښمنۍ او عداوت نه ډک شول.

پدې ترتیب سره مسلمانان له ټولو خواو نه له خطرونو او تهدیدونو سره مخ شول، خو مخکې یادوشویو ډلو له مسلمانانو سره د معاملې بیلې بیلې لارې ونیوې. هرې ډلې هغه طریقه غوره کړه چې د خپلو اهدافو د تحقق لپاره یې مناسبه بلله. د مدینې او شاو خوا برخو هغو خلکو چې په ښکاره یې ځانونه اسلام ته منسوبول د مسلمانانو په

خلاف د فتنو، دسيسو، توطئو او نورو مشکلاتو راولاړولو لاره خپله کړې وه.
د يهودانو يوه ډله داسې وه چې له مسلمانانو سره يې د ښکاره او علني دښمنۍ لاره نيولې وه. هلته د مکې مشرکينو د انتقام او غچ اخيستلو لپاره متې رانغښتلې او د حملې تياري يې نيوله، او لکه چې مکې مسلمانانو ته د حال په ژبه داسې پيغام ورليږلی وي:

**و لابد من يوم اغر محجل يطول استماعي بعده للنوادب**

[داسې يوه رڼا او ځلانده ورځ ډيره ضروري ده چې له هغې نه وروسته تره ډيره وخته په مړو د ژړيدونکو ژړا واورم.]
وروسته همداسې وشول، يو کال وروسته د مکې مشرکينو د مدينې په پولو کې د احد په نامه مشهوره جګړه توده کړه کوم چې د مسلمانانو په هيبت او منزلت يې ډير منفي اثر واچاوه. خو مسلمانان ددې ټولو خطرونو مقابلې ته ودريدل او ددې خطرونو په خنثی کولو کې يې داسې رول ولوباوه چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په قيادت، عظمت، ويښتابه، د خطرونو په پوره پيژندنه او ادراک د خطرونو د له مينځه وړلو پخاطر په حکيمانه تدبير او تخطيط دلا لت کوي، چې په راتلونکو پاڼو کې به ورته لنډه غوندې اشاره هم وکړو.

## د کدر په سيمه کې د بني سليم غزا

د بدر له غزا نه وروسته د مدينې استخباراتو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته لومړی دا خبر راوړ چې د غطفان قبيلې يوه څانګه (بني سليم) په مدينه باندې د حملې تياري نيسي، نو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له دوو سوو کسانو سره په ناڅاپه توګه د دوی مقابلې ته ور روان شو، او د کدر [1] تر سيمې مخکی ورغی. بنو سليم په ځان کې د مقابلې توان ونه ليد، وتښتيدل او پنځه سوه اوښان يې دلته په ځای پريښودل، چې مسلمانانو راونيو او وروسته رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له خمس اخيستلو نه وروسته پر لښکر باندې وويشل، هر چا ته دوه دوه اوښان ورسيدل، پدې وخت کې يې ده (يسار) په نامه يو غلام هم ونيو، چې بيا يې آزاد کړ.
رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دلته له دريو ورځو تم کيدو نه وروسته

---

[1]. کدر داسې يو مرغه دی چې په رنګ کې يې څه خړوالی دی، او کدر د مکې او شام په تجارتي لاره د نجد په سيمه کې د بنو سليم يو اوبه خور هم وۀ.

بيرته مدينې ته ستون شو. دا غزا له بدر نه له راستنيدو نه اوه ورځې وروسته يعنې د دوهم هجري کال د شوال په مياشت کې پيښه شوې وه. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پدې غزا کې سباع بن عرفطه او په بل روايت ابن ام مکتوم[1] په مدينه کې خپل خليفه ټاکلی ؤ.

## ۲- د رسول الله (ﷺ) د قتل توطئه

د بدر په غزا کې د ماتې له امله مشرکين ټول په لړزه راغلي وو، اور پرې بل ؤ او مکه له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره له دښمنۍ او کينې نه د جوش کټوې په شان خوټکيده. بالاخره دوه قهرمانان يا غښتلي ځوانان فيصله کوي او تصميم نيسي چې د دوی په ګومان د دوی د اختلاف او بدبختۍ، ذلت او سپکاوي اصلي عامل يعنی رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له مينځه يوسي. له بدر نه کمه موده وروسته عمير بن وهب جمحي له صفوان بن اميه سره په حطيم کې ناست ؤ، عمير خو د مکې هغه شيطان ؤ چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او اصحابو ته يې ډير تکليف رساوه، او زوی يې وهب په بدر کې اسير شوی ؤ. دلته يې په بدر کې د وژل شويو مشرکينو (اصحاب قليب) کيسه وکړه، نو صفوان ورته وويل: لدينه وروسته په ژوند کې خير او مزه نشته. عمير ورته وويل: رښتيا دې وويل، قسم په خدای که دا قرض راباندې نه وای چې وجه يې هم نه ورته لرم، او دا اولاد مې نه وای چې له مرګ نه وروسته رباندې ويريږم، نو همدا اوس به په اوښ ورسپريدم او محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به مې واژه، زما بهانه هم جوړه ده زوی مې ور سره بندي دی.
صفوان دا فرصت غنيمت وګڼه ورته ويې ويل: قرض دې په ما، زه يې ادا کوم، ستا اولاد به هم زما له اولاد سره يو ځای وي، يعنی لکه زما د خپل اولاد په شان به وي، او تر څو چې ژوندي دي کفالت او سرپرستي به يې کوم. او داسې به پيښه نه شي چې زه څه ولرم او دوی ته يې ورنه کړم. عمير ورته وويل: سيې ده خو دا راز پټ ساته. صفوان وويل: بې غمه اوسه. بيا عمير لاړ توره يې تيره او زهرجنه کړه او مدينې ته روان شو. کله چې هلته ورسيد او د مسجد له دروازې سره يې خپله اوښه چو کوله پدې وخت کې

[1]. زاد المعاد ۲/ ۹۰ ابن هشام ۲/ ۴۳- ۴۴ مختصر سيره الرسول ص ۲۳۶

عمر (رضي الله عنه) چې له مسلمانانو سره یې د بدر په غزا کې د الله تعالی له کرم او نصرت نه خبرې کولې، متوجه شو او سترګې یې په عمیر ولګیدې، ویې ویل: دا سپی، دا د الله دښمن، د څه شر او فتنې لپاره راغلی دی؟! فورا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ورغی او ورته ویې ویل: یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! د خدای دښمن عمیر توره په لاس راغلی دی. رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: **قال: (فأدخله علي)**. رایې ولئ. عمر (رضي الله عنه) راغی او عمیر یې له غاړې سره دده د تورې له پړي نه ونیو، څو کسه انصارو ته یې وویل: لاړ شئ له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره کینئ، ددې خبیث (عمیر) خواته متوجه اوسئ ځکه دا باوري او مطمئن سړی ندی. بیا یې عمیر د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته وړاندې کړ. کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ولید، نو ویې فرمایل: **ال: (أرسله یا عمر، ادن یا عمیر)**. عمره! دا پریږده او عمیره! ته را لنډ شه. هغه ورغی او ورته ویې ویل: سهار په خیر! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: **(قد أکرمنا الله بتحیة خیر من تحیتك یا عمیر، بالسلام تحیة أهل الجنة)**. عمیره! الله تعالی ستاسې له تحیې نه غوره تحیه چې د اهل جنت تحیه ده راکړې او هغه (سلام) دی. بیایې ورته وویل:**(ما جاء بك یا عمیر ؟)**. عمیره ولې راغلی یې؟ ده وویل: له تاسې سره دې بندي راوستې یم، نیکي ورسره وکړئ! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل:**(فما بال السیف في عنقك؟)**. نو دا توره دې ولی په غاړه کې اچولې ده؟ عمیر وویل: خدای دې دا تورې په بلا ووهي، ددې تورو مونږ ته څه ګټه راورسیده؟ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وویل: **(اصدقني، ما الذي جئت له ؟)**. رښتیا وایه د څه لپاره راغلی یې؟ ده وویل: زه صرف د همدې غرض لپاره راغلی یم. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: **قال: (بل قعدتَ أنت وصفوان بن أمیة في الحِجْر، فذکرتما أصحاب القلیب من قریش، ثم قلت: لولا دین علي وعیال عندي لخرجت حتی أقتل محمداً، فتحمل صفوان بدینك وعیالك علی أن تقتلني، والله حائل بینك وبین ذلك)**.نه داسې نده، ته او صفوان چې په حطیم کې سره ناست وئ، د قریشو د قلیب (کندې) خاوندان (هغه چې په بدر کې

ووژل شول) مو یاد کړل، بیا تا وویل: که زما د قرضدارۍ او اولاد غم نه وای، نو د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د مرګ لپاره به ورغلی وم، بیا صفوان ستا قرض او اولاد پخپله غاړه واخیستل، تر څو ته ما ووژنې، خو الله تعالی ستا دا شوم هدف نه ترسره کوي. ددې په اوریدو سره عمیر وویل: زه شاهدي وایم چې ته د الله رسول یې، یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! کله به چې تا د وحي او آسمان خبر راوړ، نو مونږ به نه مانه، خو دا خبره چې له ما او صفوان نه پرته بل هیچا هم نده اوریدلې، قسم په خدای چې ته الله تعالی ورباندې خبر کړی یې، ثنا او صفت دی هغه خدای لره چې د اسلام په لور یې زما لارښوونه وکړه، او دې ځای ته یې راوستم. وروسته یې د شهادت کلمه وویله، نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اصحابو ته وفرمایل: وسلم: (**فقهوا أخاكم في دينه، وأقرئوه القرآن، وأطلقوا له أسيره**). خپل ورور ته دین ورزده کړئ، قرآن ورته ولولئ او بندي یې ورته آزاد کړئ.
هلته په مکه کې به صفوان خلکو ته ویل: صبر وکړئ ډیر ژر به د داسې پېښې زیری واورئ چې د بدر غم به مو ورباندې هیر شي. او تل به یې له خلکو نه د عمیر په هکله پوښتنې کولې، بالاخره یوه سواره لدینه خبر کړ چې عمیر مسلمان شویدی، نو صفوان قسم یاد کړ چې نور به نه ورسره خبرې وکړي او نه به ورته څه ګټه ورسوي. عمیر بیا مکې ته راستون شو او هملته دیره شو، خلک یې اسلام ته رابلل او د همده په لاس ډیر کسان په اسلام مشرف شول.[1]

## ۳-د بني قينقاع غزا

په تیرو پاڼو کې مو له یهودانو سره د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د معاهدې یادونه وکړه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپل ټول وس سره ددې معاهدې د تطبیق کوښښ کاوه د عملي کولو هیله یې درلوده. او د تطبیق په میدان کې له یوه مسلمان نه هم داسې کوم کار ندی صادر شوی چې د نوموړې معاهدې له کوم بند او مادې سره دې تناقض ولري، خو یهودانو چې تاریخ یې ټول له غدر، خیانت، بی وفایی، جفا او عهد شکنۍ نه ډک دی، دا ځل هم وفا ونه شوی کړی، ډیر ژر خپل پخواني حالت ته واوښتل د مسلمانانو په مینځ کې یې د توطئو،

[1] ابن هشام ۱/ ۶۶۱- ۶۶۲- ۶۶۳

فتنو، پريشانيو او سازشونو راولاړولو لپاره هلې ځلې پيل کړې. راځئ د يهودانو ددې ډول مکاريو او توطئو يو مثال هم تر نظر تير کړو:

## د يهودانو د مکر او فريب يوه نمونه

ابن اسحاق وايي:يو ځل يهودي شاس بن قيس چې ډير بوډا، غټ کافر او د مسلمانانو له ټولو نه لوی دښمن وُ د اصحابو (رضي الله عنهم) په يوه مجلس تيريده، که ګوري چې هلته د اوس او خزرج خلک ګډ سره ناست دي يو له بل سره خبرې اترې کوي. يهودي چې دا حالت وليد چې اسلام هغه د جاهليت په دوران کې سره دښمنې قبيلې څه ډول سره يو کړيدي، د مينې او محبت په مزي يې سره تړلې دي، نو په زړه کې يې د عداوت او حسد د اور لمبې بلې شوې، ويې ويل: دلته د بنو قيله سرداران سره يو شوی دي، قسم په خدای د دوی له اتحاد او يووالي نه وروسته دلته زمونږ ټيکان او ګذران ډير ګران دی، دا فکر يې وکړ او هغه يهودي ځوان ته يې چې ور سره ملګری وُ وويل: د دوی مجلس ته ورشه ورسره کينه د بعاث د جګړې او له هغه نه مخکې حالاتو يادونه وکړه او هغه اشعار ورته ووايه کوم چې دواړو طرفونو (اوس – خزرج) پدې هکله ويلي وو. هغه ځوان لاړ او همداسې يې وکړل، نو اوس او خزرج خبرې او مناقشې پيل کړې، يو په بل يې د فخر او وياړ څرګندونه کوله، سره مخالف شول تر څو له دوی نه دوه کسان راپورته شول، يو د بل په خلاف يې خبرې وکړې، بالاخره يوه بل ته وويل: که غواړې، نو همدا اوس به بيا د همغې خپل منځي جګړې اور بيا راتازه کړو! دواړه قبيلې په غوسه شوې او سره ويې ويل: سيي ده نو راځئ د حره ميدان ته چې سره معلومه يې کړو! نارې يې وکړې وسله راوړئ ، ټول راووتل او نژدې وه چې د جګړې اور بل شي.

دا خبر رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ورسيد، هغه مبارک له يو شمير مهاجرينو سره يو ځای تشريف راوړ او ويې فرمايل: **(يا معشر المسلمين، الله الله، أبدعوي الجاهلية وأنا بين أظهركم بعد أن هداكم الله للإسلام، وأكرمكم به، وقطع به عنكم أمر الجاهلية، واستنقذكم به من الكفر وألف بين قلوبكم)**.اې مسلمانانو! الله در په ياد کړئ، خدای ته وګورئ، بيا د جاهليت ناره او دعوه، هغه هم پداسې حال کې چې زه ستاسې په مينځ کې يم او وروسته له هغې چې الله تعالی په اسلام مشرف کړئ، له جاهليت نه يې را بيل او له کفر نه يې نجات درکړ، او په زړونو کې يې درته يو د بل مينه او الفت واچاوه؟

همدا وه چې دوی (اوس او خزرج) پوه شول چې دا يو شيطاني حرکت، وسواس او د دښمنانو چل او فريب وُ، ژر په حقيقت پوه شول، له سترګو يې اوښکې رواني شوې، يو بل يې په غيږ کې ونيوه او بيا له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره په پوره اخلاص او اطاعت او داسې حال کې روان شول چې الله تعالی ورته د اسلام د دښمن شاس بن قيس له مکر او فريب نه نجات ورپه برخه کړی و.[١].

دا د مسلمانانو په مينځ کې د يهودانو د توطئو او فتنو يوه وړه نمونه وه او د هغې سلسلې يوه کړۍ وه کومه چې يهودانو د اسلامي دعوت د مخنيوي لپاره په کار اچولې وه. هغوی ددې شوم هدف او مقصد لپاره مختلفې لارې او ډيرې منصوبې جوړې کړې وې، بې اساسه او دروغجن تبليغات به يې کول، سهار به يې ايمان راوړ او ماښام به بيرته کفر ته اوړيدل دا ددې پخاطر چې له کمزورو مسلمانانو سره د اسلام په هکله شکوک او شبهې را پيدا شي.

او پر هغو مسلمانانو به يې اقتصادي فشار راوړ، ژوند به يې ورباندې تنګاوه له کومو سره به يې چې مالي معامله درلوده. که قرض به يې ورباندې وُ ، نو سهار، ماښام به يې دروازې ته ولاړ او د قرض د ادا غوښتنه به يې ورنه کوله او که د مسلمان قرض به پر دوی و، نو نه به يې ورکاوه، په ظلم او زياتي سره به يې ورنه خواړه او ورته ويل به يې: ستا قرض خو هغه وخت راباندی وُ چې ته پخپل پلرني دين وې، اوس چې تاسو خپل دين پرې ايښی، نو زمونږ او ستاسې څه معامله نشته.[٢]

دا بايد په ياد ولرو چې يهودانو دا ډول کارونه او فتنې له بدر نه مخکې شروع کړې وې، دا سره لدې چې له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره يې معاهده هم درلوده.

د يهودانو ددې ناوړه اعمالو په وړاندې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او اصحابو له صبر او زغم نه کار اخيست، او دا طمعه يې درلوده چې کيدای شي هغوی د هدايت او حقيقت لاره غوره کړي. او بله دا چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) غوښتل په سيمه کې امن او آرامي حاکمه وي.

[1]. ابن هشام ١/٥٥٥ - ٥٥٦

[٢]. مفسرينو د ال عمران او نورو سورتونو په تفسير کې د يهودو له دې ډول اعمالو نه يادونه کړيده.

## د بني قينقاع له خوا د تړون ماتول

کله چې يهودو وليدل الله تعالی د بدر په ميدان کې د مسلمانانو بې کچه مرسته وکړه، عزت او شوکت يې ور په برخه کړاو د هر چا ليرې . دی که نژدې پر زړه د اسلام او مسلمانانو د هيبت او عظمت اثر پريوت، نو د دوی په زړونو کې د دښمنۍ او حسد اور په لمبو شو، نور يې خپل عداوت پټ نه شوای کړی په ښکاره يې د بغاوت بيرغ اوچت کړ او د مخامخ مقـابـلې ميدان ته راووتل.

په يهودانو کې له ټولو نه لوی کينه ناک او ډير شرير انسان کعب بن اشرف ؤ چې وروسته به ورنه خبرې وکړو، او له ټولو نه زياته شريره ډله او طايفه د بني قينقاع قبيله وه. دا قبيله په مدينه کې د ننه اوسيدله، کلی يې په همدې نامه يادېده. زياتره خلک يې يا زرګران وو يا آهنګران او يا لوښي جوړونکي کلالان، او د همدې کسب و کار له برکته له هر يوه سره د جنګ ساز و سامان هم ؤ. دوی اوه سوه جنګيالان درلودل په غيرت کې هم له نورو يهودانو نه وړاندې وو، او همدوی له ټولو نه ړومبی عهد او تړون مات کړ.

وروسته له هغې چې الله تعالی مسلمانان په بدر کې بريالي او برلاسي کړل، نو ددې يهودانو طغيان او سرکشي زياته شوه د مسلمانانو په خلاف يې خپل شرارتونه او خباثتونه زيات کړل. له هيڅ ډول ګډوډۍ نه يې لاس نه نيوه، هر مسلمان به چې د دوی بازار ته ورتله ملنډې او مسخرې به يې ورپورې کولی او تکليف به يې ورساوه، ان تردې چې ددې خبيثانو له شر نه مـسلـمـانې ښځې هم په امن نه وې. او کله چې د دوی سرکشي او شرارتونه له حده نه زيات شول، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) راټول کړل، وعظ او نصيحت يې ورته وکړ، د حق او هدايت لور ته يې راوبلل، د ظلم او بغاوت له بد انجام نه يې وويرول، خو هغوی له خپل شر او تکبر نه لاس وانه خيست او خپله بد معاشي يې جاري وساتله. ابو داود او نور له ابن عباس (رضي الله عنهما) نه روايت کوي چې وايي: کله چې د بدر په ورځ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) قريشو ته ماتې ورکړه، او بيا مدينې ته راغی، يهودان يې د بني قينقاع په بازار کې راټول کړل او ورته ويې ويل: (**يا معشر يهود، أسلموا قبل أن يصيبكم مثل ما أصاب قريشاً**). يهودانو! مخکې لدينه چې د قريشو له سرنوشت سره مخامخ شئ اسلام راوړئ. دوی ورته وويل: اې محمده (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! ګوره دا دې په غوره کې نکړي او په دې غره نشي چې يو څو له جګړو سره نا اشنا قريشان دې ووژل، ته که له مونږ سره د جګړې ډګر ته ووزې، نو پوه به شې

چې مونږ څوک یوو، او باور به دې راشي چې مخکې زمونږ په شان خلکو سره نه یې مخ شوی. نو پدې هکله الله تعالی دا آیتونه رانازل کړل:

((قُلْ لِلَّذِينَ كَفَرُوا سَتُغْلَبُونَ وَتُحْشَرُونَ إِلَى جَهَنَّمَ وَبِئْسَ الْمِهَادُ (١٢) قَدْ كَانَ لَكُمْ آيَةٌ فِي فِئَتَيْنِ الْتَقَتَا فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَأُخْرَى كَافِرَةٌ يَرَوْنَهُمْ مِثْلَيْهِمْ رَأْيَ الْعَيْنِ وَاللَّهُ يُؤَيِّدُ بِنَصْرِهِ مَنْ يَشَاءُ إِنَّ فِي ذَلِكَ لَعِبْرَةً لِأُولِي الْأَبْصَارِ)) [1].

(آل عمران: ۱۲، ۱۳)

[ووایه (اې محمده!) هغو کسانو ته چې کافران شویدي ژر به مغلوب کړی شئ تاسې په وژلو یا شړلو سره په دنیا کې او جمع به کړی شئ ((شړلی به شئ په عقبی کې)) طرف د دوزخ ته، او بد ځای د هستوګنی دی ((دغه دوزخ)) په تحقیق سره دی تاسې ته لوی عبرت (نمونه اې ناظرینو!)) په هغو دوو فرقو کې چې سره مخامخ شولی (په (( بدر)) کې له پاره د جنګ) یوه فرقه چې جنګ یې کاوه په لاره د الله کې او بله فرقه وه چې کافره وه، لیدل به دوی هغوی لره دوه چنده د هغوی په لیدلو د سترګو سره او الله قوت ورکوي په نصرت مرسته خپله سره هرچا ته چې اراده وکړي (د نصرت) بیشکه په دې ((لا زیات او کم لیدلو)) کې خامخاه عبرت (پند) دی له پاره د خاوندانو د بصیرت.]

څرګنده ده چې د بنو قینقاع ددې ځواب معنی په حقیقت کې د جنګ اعلان ؤ، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او مسلمانانو له صبر او زغم نه کار واخیست، او د فرصت انتظار یې کاوه.

پدې سره د بني قینقاع یهودان نور هم سپین سترګي شول، او په ډیره لږ موده کې یې په مدینه کې داسې یوه فتنه راولاړه کړه چې لومړی یې همدوی وخوړل او پخپلو لاسونو یې ځانونه د مرګ او ورکې خولې ته ورټیل وهل.

ابن هشام له ابي عون نه روایت کوي وایي: یوې عربي ښځې څه سامان د خرڅلاو لپاره د بني قینقاع بازار ته راوړ او د یوه زرګر له دکان سره کیناستله. یهودانو د فتنې پخاطر غوښتل مخ یې لوڅ کړي، خو نوموړې خپل مخ نه لوڅاوه، نو همدا وه چې زرګر پاڅید او په پټه سره یې ددې ښځې د کالیو (کمیس) وروستۍ برخه په شا پورې وروتړله، دا نه وه پرې خبره، او کله چې پاڅیده نو بې پردې شوه. د یهودانو له

[1]. سنن ابي داود مع شرحه عون المعبود ۳/ ۱۱۵، ابن هشام ۵۵۲/۱.

خنداګانو نه خولې وازې شوې. ښځې چیغه وکړه، یوه مسلمان چې دا چیغه واوریدله فورا راغی او هغه یهودی زرګر یې وواژه. وروسته یهودان راټول شول او دا مسلمان یې وواژه، بیا د مسلمان خپلوانو نورو مسلمانانو ته د یهودانو په مقابل کې د فریاد چیغه وکړه، او نتیجه دا شوه چې د مسلمانانو او بني قینقاع یهودانو تر مینځ شر او جګړه جوړه شوه.[۱]

## محاصره بیا تسلیمیدل او له وطن نه شړل

نور نو د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د صبر او زغم کاسه په ډکیدو شوه. ابو لبابه بن عبدالمنذر یې د مدینې خلیفه وټاکه، د لښکر بیرغ یې حمزه بن عبدالمطلب ته ورکړ او د بني قینقاع په لور وخوځید.د دوهم هجري کال د شوال له نیمایي نه یې چې د هفتې ورځ وه د هغوی محاصره پیل کړه. دا محاصره ترذي القعدې پورې یعنی پوره پنځلس ورځې اوږده شوه. بالاخره الله تعالی د یهودانو په زړونو کې ویره او ترهه واچوله ټول تسلیم شول، ځانونه، مالونه او اولادونه یې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر او فیصلې ته وړاندې کړل. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) فوراً د یهودانو د تړلو امر صادر کړ او پدې ترتیب سره ټول وتړل شول.

پدې وخت کې د منافقانو مشر عبدالله بن ابي بن سلول را وړاندې شو او په ډیر اصرار سره یې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه د هغوی د عفوې او خوشي کولو غوښتنه وکړه او ورته ویې ویل: اې محمده(صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! زما له حلیفانو سره نیکي وکړه! ځکه بنو قینقاع له خزرج قبیلې سره د دوستۍ تړون درلود. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ځواب ورنکړ، هغه ( منافق عبدالله) خپله غوښتنه بیا تکرار کړه، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مخ ورنه واړاوه، منافق پدې هم نه شو بلکه را وړاندې شو او خپل لاسونه یې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په ګریوان کې ورواچول. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ډیر په غوسه شو او ویې فرمایل: پرې مې ږده، خوار شې، پرې مې ږده! خو منافق په پوره سپین سترګۍ خپله غوښتنه تکراروله او ویل یې: تر هغې دې نه پریږدم تر څو زما دوستان معاف نکړې، دا درې سوه زغره لرونکي او څلور سوه بې زغرو ځوانان چې زه یې له سرو او تودو نه ساتلی یم

---

[۱]، ابن هشام ۴۷/۲ - ۴۸

په يوه ورځ وژني؟ قسم په خدای چې زه د زمانې له ګردشونو نه ويره لرم.
په پای کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له نوموړي منافق سره چې د اسلام ښکارولو نه يې تقريباً يوه مياشت تيره شوې وه د نـرمۍ او بـخښنې معامله وکړه او دده په مخ يې ټول يهودانو وښنل، خو دايې ورته وويل: چې په مدينه او شاو خوا سيمو کې د اوسيدو اجازه نلري. پدې ډول سره هغوی له مدينې نه ووتل او د شام په اذرعات نومي ځای کې يې واړول، چې يو زيات شمير يې څه موده وروسته په هلاکت ورسيدل.
رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د هغوی مالونه او جايدادونه ضبط کړل، او له هغې جملې نه يې درې ليندی، درې زغرې، درې تورې او درې نيزې د ځان لپاره خوښې کړې، نور غنيمتونه يې چې د محمد بن مسلمه په واسطه راټول شوي وو د خمس (پـنځمې) له بيلولو نه وروسته په حساب برابر وويشل.

## ۴- د سويق غزا

پداسې حال کې چې صفوان بن اميه، يهودان او منافقان د اسلام په خلاف په توطئو او هلو ځلو بوخت وو، ابو سفيان د يوه داسې تحرک او عمل په لټه کې وُ چې خطر او تکليف يې کم، خو اثر او نوم يې ډير وي، تر څو له يوې خوا د خپل قوم حيثيت او منزلت بيا را ژوندی کړي او له بل پلوه د دوی د زور او توان ښکارندوی شي. قسم يې خوړلی وُ نذر يې ايښې وُ چې تر هغې به له جنابته ځان نه مينځې تر څو يې پر محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حمله نه وي کړې. همدا وه چې په خپل قسم د وفا په اساس له دوو سوو سپرو سره روان شو او د قناه نـومې سيمې په برنۍ خوا کې پراته نيب نومي غره په لمن کې يې چې له مدينې نه تقريباً دولس ميله ليرې پروت و واړول، خو څرنګه چې پر مدينه باندې د ښکاره او مخامخ حملې توان او جرات يې نه درلود، نو د يوه غلچکي او تروريستي پلان د عملي کولو په لټه کې شو. د شپې په تياره کې مدينې ته ننوت، د يهودانو د مشر حيي بن اخطب کور ته ورغی، خو هغه له ويرې نه دروازه ورته خلاصه نکړه، نو د بني نضير قبيلې د يوه بل مشر او خزانه دار سلام بن مشکم دروازه يې ورو ټکوله، هغه کور ته د ننه کړ، ښه مهماني يې ورکړه، شراب يې ورباندې وڅښل او د خلکو پټ ښکاره حالات يې ورته بيان کړل. بيا ابو سفيان د شپې په وروستۍ برخه کې خپلو ملګرو ته ورغی او له هغه ځای نه يې يوه ډله

راولیږله، هغوی د مدینې عریض نومې سیمې ته ننوتل او هلته یې د خرما ځنې ونې غوځې کړې ځنې نورو ته یې اور ورته کړ، او یو انصاري یې چې له خپل حلیف (ملګري) سره یې په فصل (پټیو) کې کار کاوه وواژه او وروسته بیرته د مکې په لور وتښتیدل.

کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له پیښې خبر شو، نو په چټکۍ سره ورپسې ووت، خو ابو سفیان او ملګري یې ډیر ګړندي تښتیدلي وو. او پدې خاطر چې ځانونه خلاص او بار سپک کړي د خپلې توښې او خوراک زیاته برخه د سویق (د غنمو یا اوربشو ډیر میده اوړو) توبرې یې په لاره غورځولې وې. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یې په لټه پسې ان تر قرقره الکدر پورې وړاندې لاړ، خو هغوی په تیښته بریالي شوي وو. مسلمانانو د هغوی د اوړو توبرې راټولې کړې او بیرته مدینې ته راستانه شول. او د سویق (میده اوړو) د همدې توبرو له امله دا غزا د سویق د غزا په نامه ونومول شوه، چې د بدر له غزا نه دوې میاشتې وروسته یعنې د دوهم هجري کال د ذي الحجې په میاشت کې پیښه شویده.

او دا ځل هم رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د مدینې لپاره ابو لبابه (رضي الله عنه) خپل خلیفه ټاکلی وُ.[١]

## ۵- د ذي امر غزا

دا غزا چې د دریم هجري کال د محرم په میاشت کې واقع شویده له احد نه مخکې او له بدر نه وروسته د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تر مشرۍ لاندې له ټولو نه لویه عسکري حمله وه.

ددې غزا سبب څه داسې وُ: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خبر تر لاسه کړ چې د بنو ثعلبه او محارب زیات شمیر کسان پر مدینه باندې د حملې لپاره تیاري نیسي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ددې خبر له اوریدو سره سم څلور نیم سوه سواره او پیاده له ځان سره کړل، عثمان بن عفان (رضي الله عنه) یې په مدینه کې د خلیفه په توګه پریښود او پخپله د دښمن په لور وخوځید.

د لارې په اوږدو کې اصحابو (رضي الله عنهم) د بني ثعلبه قبیلې جبار نومی شخص ونیو او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته یې راووست.

---

(1). زاد المعاد ۲/ ۹۰ – ۹۱. ابن هشام ۲/ ۴۴ - ۴۵

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د اسلام بلنه ورکړه او هغه په اسلام مشرف شو. بیا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هغه د بلال (رضي الله عنه) په لاس ورکړ تر څو د دښمن تر سیمې پورې مسلمانانو ته لار وښيي.
هلته دښمنانو د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د راتګ د خبر له اوریدو سره سم خپل ځایونه پرېښودل او شاو خوا غرونو ته وتښتېدل. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مخکې لاړ او تر ذي امر نومې چينې (اوبه خوړ) پورې چې دښمنانو د غونډېدو لپاره ټاکلی ؤ ورسید او هلته یې واړول. او ددې پخاطر چې د غلیم په زړه کې نوره ویره هم واچوي، د خپل زور او توان اندازه وروښيي، پوره یوه میاشت یعنې د دریم هجري کال صفر ټوله میاشت یې هملته تیره کړه او وروسته بیا مدینې ته ستون شو.[1]

# ۶- د کعب بن اشرف ترور

کعب بن اشرف هغه یهودي ؤ چې له هر چا نه یې له اسلام او مسلمانانو سره زیاته دښمني او کینه درلوده او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته په زیان او آزار رسولو کې تر ټولو وړاندې و. د نوموړي مور له بني نضیر او پخپله د طيي قبیلې له بني نبهان کورنۍ څخه ؤ، ډېر مالدار او د آرام ژوند خاوند ؤ، د عربو په مینځ کې یې په شاعرۍ سربیره په حسن او ښکلا کې هم شهرت درلود، کلا یې د بنو نضیر د آبادۍ تر شا د مدینې د جنوبي برخې په ختیځ کې پرته وه.
کله یې چې د بدر په غزا کې د مسلمانانو د بري او قریشي سردارانو د ماتې او سردارانو دمړینې خبر واورید، نو ویې ویل: آیا دا خبره ریښتیا ده، هغه د عربانو مشران او د خلکو پاچایان ووژل شول؟! که دا رښتیا وي چې محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هغوی مات کړي او وژلي دي نو بیا خو مرګ له ژوند نه غوره دی.
او کله چې له پیښې نه ښه باوري شو، نو ژبه یې راویستله، په رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او مسلمانانو پسې یې بد رد ویل او د مشرکینو ستاینه یې کوله او هغوی یې غځ او انتقام اخیستلو ته هڅول. پدې یې هم زړه یخ نه شو، سپور شو مکې ته لاړ او هلته د ابي وداعه السهمي د زوی مطلب میلمه شو. د قریشو په

[1]. ابن هشام ۴۶/۲ .زاد المعاد ۹۱/۲ .ویل کیږي چې دعثور یا غورث محاربي په همدې غزا کې د رسول الله (ص) ترور هڅه کړې وه، خو صحیح قول دا دی چې هغه توطئه پدې غزا کې نه وه .صحیح البخاري : ۹۳/۲ .

مړيو يې ډير وژړل او په غم کې يې اوږده شعرونه وويل. زيار يې ايست چې د مشرکينو په زړونو کې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د دښمنۍ اور نور هم تازه کړي. په همدې وخت کې ابو سفيان او نورو مشرکانو ورنه وپوښتل چې زمونږ دين دې خوښ دې او که د محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دين؟ او له زمونږ نه کوم يو طرف په حق بولې؟ ده په ځواب کې ورته وويل: تاسې له محمده (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه غوره او حق په جانب یاست! همدا وه چې الله تعالی دا آيتونه را نازل کړل: ((أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيباً مِنْ الْكِتَابِ يُؤْمِنُونَ بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوتِ وَيَقُولُونَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا هَؤُلاءِ أَهْدَى مِنْ الَّذِينَ آمَنُوا سَبِيلاً)) (النساء: ٥١)

[ترجمه: ایا ندي کتلي تا هغو کسانو ته چې ورکړی شويده دوی ته برخه له کتاب څخه ايمان راوړی دوی په بت او په شيطان او وايي دوی په حق د هغو کسانو کې چې کافران شويدي، دا (مشرکين) ښه لاره موندونکي دي له هغو کسانو څخه چې مؤمنان دي له جهته د لورې.]

کعب بن اشرف دا ټول په مکه کې ترسره کړل بيا مديني ته ستون شو، او هلته يې خپله اوږده ژبه په مسلمانانو پسې راوايسته ان تردې چې د اصحابو (رضي الله عنهم) په پاک لمنو پسې يې قصيدې او غزلې ووېلې او هغوی يې له حده زيات په تنګ کړل.

په همدې حالاتو کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: **(من لکعب بن الأشرف ؟ فإنه آذى الله ورسوله)**. د کعب بن اشرف له شر نه به مو څوک خلاص کړي؟ او لدې غم نه به مو څوک آرام کړي؟ ځکه نوموړي الله تعالی او د الله رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته آزار او اذيت رسولی دی! په ځواب کې محمد بن مسلمه، عباد بن بشر، د کعب رضاعي ورور ابو نائله چې نوم يې سلکان بن سلامه وُ، حارث بن اوس، او ابو عبس بن حبر دې کار ته خپله آمادګي څرګنده کړه، او همدې ټولګي د محمد بن مسلمه تر مشرۍ لاندې د کعب د ترور لپاره کار پيل کړ.

نور روايات وايي: کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وويل: **(من لکعب بن الأشرف ؟ فإنه قد آذى الله ورسوله) قام محمد بن مسلمة فقال: أنا يا رسول الله، أتحب أن أقتله ؟ قال: (نعم). قال: فائذن لي أن أقول شيئاً. قال: (قل)**. څوک به مو د کعب له شر نه وژغوري؟ ځکه ده الله او د هغه رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته اذيت رسولی دی؟ نو محمد بن مسلمه پاڅيد او ويې

ويل: دا کار به زه کوم يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! او زياته يې کړه: غواړې چې ويې وژنم؟ ده (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: هو.
محمد بن مسلمه ورته وويل: د پلان د تطبيق پخاطر د څو خبرو اجازه راکړه! رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: څه هر څه چې وايې ورسره ويې وايه.

بيا محمد بن مسلمه د کعب بن اشرف کور ته ورغی او ورته ويې ويل: دا سړی (اشاره يې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خوا ته وه، له مونږ نه صدقه غواړي او که رښتيا درته ووايم مونږ يې ډير ستومانه او په جنجال اخته کړي يوو.
کعب ورته وايي: دا به مو نور هم تر ستونيه کړي. محمد بن مسلمه په ځواب کې ورته وايي: اوس څه وکړو، اوس خو دا شويدي او د هغه پيروي مو منلې ده مناسبه به نه وي چې لاره ورنه بيله کړو، اوس به ورسره يوو او ګورو به چې د کار نتيجه يې څه خيژي، اوس راغلی يو تر څو يو او يا دوه وسقه غله پور راکړې، (يو وسق ۶۰ صاعه يا تقريباً ۱۵۰ کيلو ګرامه کېږي).

کعب ورته وويل: سيي ده خو څه شی راته ګرو کړئ! ابن مسلمه ورته وويل: څه غواړې؟ هغه ورته وويل: ښځې راته ګرو کړئ. محمد بن مسلمه په ځواب کې ورته وايي: پداسې حال کې چې ته په عربو کې له ټولو نه ښايسته ځواني لرې، ښځې به څنګه درسره ګرو کړای شو؟! کعب ورته وايي: نو بيا مو بچيان راسره ګرو کړئ! ابن مسلمه وايي: بچيان به څنګه درته ګرو کړو، سبا به خلک پيغور ورکوي چې دا په يوه، دوو وسقه غله ګرو شوي وو دا خو ستر عيب او ننګ دی، څه مونږ به خپله وسله درته ګرو کړو. کعب پدې سلا شو دواړو نيټه سره وټاکله چې محمد بن مسلمه به وسله ورته راوړي.

ابو نائله هم د محمد بن مسلمه په شان پلان جوړ کړی ؤ. کعب ته ورغی څه وخت يې له يو ځای بل ځای نه شعرونه سره واورول، بيايې ورته وويل: ياره! زه خو د يوې ډيرې مهمې خبرې او ضرورت په خاطر درته راغلی يم او پدې شرط يې درته وايم چې پټ يې وساتې! کعب ورسره ومنله او ډاډ يې ورکړ چې وايه راز دې نه افشا کوم.

ابو نائله ورته وويل: ددې سړي (اشاره يې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ده) راتګ خو زمونږ لپاره غم او مصيبت شو، ټول عربان مو دښمنان شول، ټولو په يوه خوله او يوه لاس زمونږ په خلاف کاره وايي وکړه، لارې راباندې وتړل شوې، دومره سختي راباندې راغله چې ځان او اولاد مو په خطر کې دی، بربادي ده او

تباهي. دا ډول خبرې وشوې او په پای کې یې دا هم ورته وویل: زما یو څو نور ملګري هم دي او بالکل زما په شان رایه او نظریه لري، غواړم هغوی هم درته راولم تر څو څه شی ورباندې خرڅ او په مونږ خپل احسان وکړې. پدې ترتیب محمد بن مسلمه او ابو نائله وکولای شوای کعب پخپل دام کې راګیر کړي، اوس که هغوی له وسلې او ملګرو سره ورځي، نو کعب به یې بد نه ګڼي.
بالاخره د دریم هجري کال د ربیع الاول په څوارلسمه شپه دا ټولګی د رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته حاضر شو، او د سپوږمۍ په سپینه رڼا کې رسول مبارک (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپله تر بقیع غرقد پورې ورسره لاړ او پدې مبارک قول سره یې رخصت کړل: (**انطلقوا علی اسم الله، اللهم أعنهم**).د الله په نامه حرکت وکړئ، اې خدایه ته د دوی مرستندوی شې. بیا خپل کورته راستون شو او هلته یې په لمانځه او دعا شروع وکړه تر څو الله هغوی پخپل هدف کې بریالي کړي.
نوموړي مجاهدین د کعب کلا ته ورغلل، ابو نائله غږ پرې وکړ چې راووزه! کعب راپورته شو چې د باندې راووزي، ښځې چې نوی یې واده ورسره کړی و ورته وویل: پدې وخت کې چیرته وزې، دا آواز ما ته خطرناک ښکاره شو؟! کعب ورته وایي: مه ویرېږه دا زما ورور محمد بن مسلمه او بل مې رضاعي ورور ابو نائله دی، بله دا چې مرد که د تورې ګوزار ته هم وغوښتل شي ورځي او پښه په شا نه ږدي، دا خبره یې وکړه او د باندې پداسې حال کې راووت چې فضا یې په خوشبویۍ اخیستې وه.
هلته ابو نائله خپلو ملګرو ته ویلي وُ، کله چې کعب راشي، نو زه به یې د سر بویولو په بهانه ویښتان رانیسم او کله مې چې پدې بهانه ټینګ راونیو، نو تاسې به ورباندې ګوزارونه وکړئ. کعب راغی څه وخت یې خبرې اترې سره وکړې، ابو نائله ورته وویل: خوښه مو نده عجوز نومی دری (خوړ) ته لاړ شو، د شپې دا پاته برخه به هلته تیره کړو. ده وویل: سمه ده، نو روان شول. د لارې په اوږدو کې ابو نائله وایي: په ژوند کې مې دا ډول اعلی او بهترینه خوشبویي نده لیدلې! کعب ته دې خبرې ډیر خوند ورکړ او ویې ویل: زه د عربو له ټولو نه زیاته خوشبویه ښځه لرم. ابو نائله ورته وویل: اجازه دې ده سر دې یو ځل بوی کړم. کعب اجازه ورکړه، نو ده یې لاس په ویښتانو کې ننه ایست پخپله یې بوی کړ او ملګرو ته یې هم وربوی کړ.
لږ ساعت وروسته یې بیا دده په اجازه همدا کار تکرار کړ، تر څو کعب ښه ډاډه شو او دوی لږ نور هم مخکې لاړل، نو بیا یې اجازه ورنه غوښتله، کعب اجازه ورکړه، نو لاس یې په ویښتانو کې وربند کړ، ټینګ یې راونیو او خپلو ملګرو ته یې وویل: وهئ دا د خدای دښمن! هغوی د تورو څو ګوزارونه پرې وکړل، خو تورې سره تیرې بیرې شوې او

يو يې هم کاري واقع نه شو. پدې وخت کې محمد بن مسلمه خپل کلنګ ته لاس کړ او له نامه نه لاندې يې داسې کلک ګوزار ورباندې وکړ چې شا ته ورنه وخوت او د خدای دښمن داسې يوه چيغه وکړه چې هر چا واوريدله او همدلته ځای په ځای شو.
د مسلمانانو لدې ټولي نه يو تن حارث بن اوس د خپلو ملګرو د تورو په څوکو زخمي شوی ؤ او وينې ترې روانې وې. نور ملګري يې روان شول او کله چې د عريض ډاګ ته ورسيدل پام يې شو چې حارث خو ورسره نشته، څه وخت ورته ودريدل چې هغه هم ورپسې راورسيد، نو دوی هغه اوچت کړ او روان شول او کله چې بقيع غرقد ته ورسيدل په لوړ آواز يې د تکبير ناره اوچته کړه.
رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د دوی دا ناره واوريدله او پوه شو چې هغه د خدای دښمن يې وژلی دی، نو پخپله يې هم تکبير ووايه، او کله چې دوی ورته راورسيدل ورته ويې فرمايل: (**أفلحت الوجوه**). بريالی اوسئ.
دوی په ځواب کې ورته وويل: او ته هم بريالی اوسې يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! او د کعب سر يې مبارک حضور ته وړاندې کړ، ده د خدای شکر ادای په ځای کړې، د حارث په زخم (ټپ) يې خپلې مبارکې لاړې پورې کړې هغه فوراً جوړ او روغ شو بيا يې هيڅ درد و نه ليد.[1]
د کعب ترور او وژلو د يهودانو په زړونو کې ويره او ډار واچولو. ټول پدې پوه شول چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د امن دښمنان، عهد ماتونکي او فتنه اچونکي نه پريږدي چې په مدينه کې فساد خور کړي، لومړې ورته نصيحت کوي او که نصيحت اغيزه ونکړي، نو بيا يې په اوسپنيز سوک برابروي.
يهودان دومره ووېريدل چې د خپل دې سرکش مشر په وژلو نه يوازې چپ او آرام کيناستل بلکه زيار يې ويوست ځانونه په عهد او تړون پابند وښيي. پدې ډول سره رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تر يوه وخته پورې د مدينې له داخلي مشکلاتو او ستونزو نه بې غمه شو او د ډيرو هغو خطراتو مخه ونيول شوه چې په مدينه کې يې د پيښېدو امکانات ډير زيات وو.
اوس رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) فرصت درلود چې له بهرنيو مشکلاتو او خطرونو سره مقابله وکړي.

[1].. ابن هشام ۵۱/۱ – ۵۷ بخاري ۱/ ۳۴۱ – ۴۲۵. سنن ابي داود ۴۲/۲ – ۴۳. زاد المعاد ۲/ ۹۱

## ۷- د بحران غزا

دا یو لوی عسکري تحرک یا ګزمه وه هغه داسې چې د دریم هجري کال د ربیع الاخر په میاشت کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د دری سوو کسانو په مشرۍ بحران نومې سیمې ته وتلی وُ. دا سیمه د حجاز په فرع نومي ځای کې یو معدنیاتي مقام دی. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د همدې کال ربیع الاخر او جمادي الاولی میاشتې همدلته تیرې کړې او بیا مخکې لدینه چې جګړه وشي مدینې ته ستون شو.[1]

## ۸- د زید بن حارثه (رضي الله عنه) سریه

دا له احد نه مخکې د مسلمانانو وروستی نظامي تحرک وُ چې د دریم هجري کال په جمادي الاخره کې واقع شویدی او تفصیل یې داسې دی:

قریش د بدر له غزا وروسته ډیر پریشانه او بد حاله وو، د اوړي په رارسیدو چې شام ته د دوی د کډې او کوچ وخت وُ نور هم پریشانه شول.ددې کال د تجارتي قافلې مشر صفوان بن امیه قریشو ته وویل: محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او اصحابو یې زمونږ تجارتي لاره بنده کړیده، نه پوهیږو څه ورسره وکړو، ساحل خو د همدوی تر کنترول لاندې دی، دوی همله وجود لري، او ددې منطقې (سرې بحیرې د ساحل) اوسیدونکو هم سوله او تړون ورسره کړیدی، نه پوهیږو په کومه لار لاړ شو؟ که دلته په مکه کې پاتې کیږو نو څه چې لرو هغه به وخورو، بیا به څه کړو؟ زمونږ ژوند خو په اوړي کې شام او ژمي کې حبشې ته تجارت باندې ولاړ دی.قریشو په دې هکله مشورې کولی اسود بن عبدالمطلب وویل: صفوانه! د ساحل لاره پریږده، بلکه له نجد نه تیریدونکې د عراق اوږده او سخته لاره ونیسه. دغه لار چې د مدینې په ختیځ کې تیره شوې وه قریشو ته نه وه معلومه، نو اسود پیشنهاد وکړ چې د بني بکر بن وائل قبیلې فرات بن حیان د لاروي په حیث ورسره بوزي.

د قریشو دا تجارتي کاروان د صفوان په مشرۍ په همدې نوې لاره روان شو، خو راز یې پټ پاته نه شو او خبره مدینې ته داسې ورسیده، چې مسلمان شوی سلیط بن

[1]. ابن هشام ۲/ ۵۰ زاد المعاد ۹۱/۲ .ددې غزا د سبب په هکله ځنې وایي چې رسول الله (ص) ته خبر راغی چې بني سلیم پر مدینه باندې د حملې لپاره ډیر قوتونه راټول کړیدي، او نور مصادر لکه ابن هشام وایي چې رسول الله (ص) د قریشو په لټه پسې ووت، ابن القیم همدا قول غوره کړیدی او دا سیي هم ښکاري ځکه د بني سلیم مېنه په نجد کې له فرع نومي ځای نه ډیره لیرې پرته وه.

نعمان د شرابو څښلو په یوه مجلس کې (دغه وخت شراب لانه ؤ حرام شوي) له نعیم بن مسعود اشجعي سره یو ځای شو، کله چې نعیم مست او خمار شو نو د تجارتي کاروان او نوې لارې ټوله کیسه یې وکړه. سلیط په ډیره چټکۍ سره د مدینې لاره ونیوه تر څو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له قضیې خبر کړي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د خبر له اوریدو سره سم د زید بن حارثه الکلبي په مشرۍ یوه سل (۱۰۰) کسیزه ډله تیاره کړه او د کاروان مخې ته یې ورولیږله. زید وخوځید او د نجد په سیمه کې له قرده نومې چینې (اوبه خور) سره یې په کاروان ناڅاپي حمله وکړه، ټول مالونه یې ونیول، صفوان او ملګرو یې پښې سپکې کړې او د تیښتې لاره یې ونیوه. مسلمانانو د قافلې لاروی او په بل روایت دوه نور کسان هم ژوندي ونیول، او تقریباً د سلو زرو په قیمت غنیمتونه یې چې لوښي او سپین زر پکې وو له ځان سره راوړل. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خمس ورنه بیل کړ او نور یې د سریه (ګروپ) په غړو وویشل، او هغه لاروی فرات بن حیان په اسلام مشرف شو.[1]

له بدر وروسته د قریشو لپاره دا یو بل لوی غم او مصیبت ؤ حالت یې ډیر خراب شو له هرې خوا وربانديې غم او خفګان راغی. اوس یې په وړاندې یوازې دوې لارې پاته وې لومړۍ دا چې نور د کبر او غرور له نیلي نه را کوز شي او له مسلمانانو سره د سولې او مصالحت لاره غوره کړي، بله دا وه چې د داسې یوې جګړې اور بل کړي چې د مسلمانانو قوت او زور ویلې کړي، د هستۍ له صحنې یې وباسي، ترڅو د دوی (قریشو) له لاسه تللی مجد او دبدبه بیرته راژوندی کړي. د قریشو سرکشانو همدا دوهمه لاره غوره وبلله، د انتقام او غچ ناره یې پورته کړه او له مسلمانانو سره د پریکنده جګړې تیاري یې پیل کړه. دا او لدینه مخکې پیښې د احد غزا لپاره تمهید او سبب شوې.

---

[1]. ابن هشام ۵۰/۲ فقه السیره ص ۱۹۰ رحمه للعلمین ۲۱۹/۲

# د احد غزا

## د انتقامي جګړې لپاره د قريشو تياري

د بدر په ډګر کې د قريشو ماتې او هملته د دوی د مخورو مشرانو مړينې د مکې د مشرکينو په زړونو کې اور بل کړی ؤ، د هر يوه په سر د انتقام او غچ اخيستلو لېبې سرې وې، خو ددې پخاطر چې غم له مسلمانانو نه پټ وساتي، نو په ښکاره يې پخپلو مړو ژړا ګانې بندې کړې وې او د خپلو بنديانو فديه يې هم ځنډوله.
ټول پدې سره سلا شوي وو چې په مسلمانانو به خپل زړونه يخوي او د يوې خونړۍ جګړې اور به وربلندې بلوي.د همداسې يوې عامې جګړې لپاره يې تيارياني پيل کړې وې، داسې يوی جګړې ته خو د دوی هر يو تږی ؤ، خو عکرمه بن ابو جهل، صفوان بن اميه، ابو سفيان بن حرب او عبدالله بن ابي ربيعه غوندې سرداران پدې کار کې له ټولو نه مخکې وو.
جګړې ته د تيارۍ په سلسله کې د قريشو د مشرانو لومړنی دا کار ؤ چې هغه تجارتي کاروان يې پخپل لاس کې ونيو کوم چې د بدر د غزا سبب شوی ؤ هغه چې د ابو سفيان په مشرۍ له شام نه سلامت راستون شوی ؤ. په دغه کاروان کې زر اوښان او د پنځوس زره دينارونو په بيه نور مالونه وؤ د مالونو خاوندانو ته يې وويل: تاسو ته معلومه ده چې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) څومره زيان درواړاوه، سرداران يې در ووژل، نوددې مالونو په ذريعه دده په خلاف جګړه کې زمونږ مرسته وکړئ، کيدای شي انتقام ورنه واخلو! هغوی هم ورسره ومنله او دا ټول مالونه د جنګ لپاره تخصيص شول. الله تعالی پدې اړه دا آيت را نازل کړ: ((**إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ لِيَصُدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ فَسَيُنفِقُونَهَا ثُمَّ تَكُونُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً ثُمَّ يُغْلَبُونَ** )). (الانفال: ٣٦)
[بيشکه هغه کسان چې کافران شويدي نفقه کوي (لګوي) دوی مالونه خپل، د پاره ددې چې منع کړي دوی (خلک) له لارې د الله څخه نو ژر به نور هم ولګوي دغه مالونه بيا به شي (دغه انفاق) پر دوی حسرت (پښيماني چې مال يې ځي او مطلب يې نه پرې

حاصليږي) بيا به په آخر کې مغلوب شي.]
په دوهم قدم کې يې احابيش، کنانه او د تهامه خلک خپلې خوشګې ته پرېښودل چې د مسلمانانو په خلاف جګړه کې په څومره اندازه برخه اخلي، خو هغوی ټول يې په مختلفو طريقو سره دې لور ته هڅول، ان تردې پورې چې صفوان بن اميه د عربو هغه شاعر باټ (غره) کړ کوم چې د بدر په غزا کې اسير شوی ؤ او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) بې فديې پدې شرط آزاد کړی ؤ چې بيا به د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په خلاف کوم اقدام نه کوي. صفوان هغه ته هوا ورکړه تر څو عربي قبيلې د مسلمانانو په خلاف را پورته کړي، او ددې کار په بدل کې يې وعده ورکړه که له جګړې نه ژوندی راغلې نو دومره څه به درکړم چې ما لا مال به شي او که مړ شوې نو د لوڼو کفالت او سرپرستي دې زما په غاړه. نو دې شاعر (ابو عزه) له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره خپل شرط مات کړ او شروع يې وکړه عربان يې په شعرونو سره د اسلام مقابلې ته رابلل او په زړونو کې يې د انتقام او دښمنۍ اورونه را تازه کول. مشرکانو د همدې کار لپاره يو بل شاعر چې نوم يې مسافع بن عبد مناف جمحي ؤ هم ګمارلی ؤ.
ابو سفيان هغه وخت د مسلمانانو په خلاف نور هم زيات سوريدلی او پاريدلی ؤ کله چې د سويق له جګړې نه نامراده راوګرزيد او نه يوازې دا چې خپل هدف يې تر لاسه نکړ بلکه خپل ډير امکانات يې هم له لاسه ورکړل. ددې تر څنګ د زيد بن حارثه ناڅاپي حملې او په همدې سريه کې قريشو ته زيات ځاني او مالي ور اوښتي تاوان خبره نوره سخته کړه، له ډيره غمه د مشرکينو زړونه په چاوديدو شول. همدا وه چې په ډيره بيړه او بې صبرۍ يې د فيصله کن (پريکنده) جنګ تياري ونيوله.

## د قريشو د لښکر شميره او مشرتابه

د يوه کال په تيريدو سره د قريشو او د دوی د ملګرو او احابيشو پوره دری زره کسان جګړې ته تيار شوي وو.مشرانو يې دا مناسبه وبلله چې د جنګياليو د تشويق او د جنګ په ډګر کې له ناموس نه د ساتنې د حماسو راپارولو پخاطر يو شمير ښځې هم له ځان سره بوزي، نو پدې حساب سره پنځلس ښځې ورسره روانې شوې.
لدې لښکر سره دری زره اوښان، دوه سوه جنګي آسونه[1] چې ټوله لار څوک ورباندې

[1]. زاد المعاد ۹۲/۲. په فتح الباري کې د آسونو شميره سل ښودل شويده ۷/ ۳۴۶

سپاره نه شول او اوه سوه زغرې وې. د جګړې عمومي قومانده د ابو سفیان په لاس کې وه، د سپرو مشر خالد بن ولید معاون یې عکرمه بن ابو جهل او بیرغ له بنو عبدالدار سره ؤ.

## د مکې لښکر وخوځید

د مکې لښکر پداسې حال کې د مدینې په لور وخوځید چې په زړونو کې یې د انتقام او دښمنۍ اور لمبې وهلې، او د یوې شدیدې خونړۍ جګړې نه یې خبرې کولې.

## د رسول (ﷺ) استخبارات د دښمن د تحرکاتو خبر راوړي

د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تره عباس (رضي الله عنه) د قریشو ټول نظامي تحرکات او تـیـا ریـا نې په ډېر غور سره تر نظر تیرولې او کله چې د دوی لښکر د مدینې په لور وخوځید، نو په ډېر بیړه سره یې پدې هکله رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته خبر واستاوه. د عباس (رضي الله عنه) ډاکي (لیک وړونکي) له مکې نه تر مدینې پورې تقریباً پنځه سوه کیلو متره اوږده فاصله په دریو ورځو کې ووهله او ځان یې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته چې هغه وخت د قبا په جومات کې ؤ ورساوه، د عباس (رضي الله عنه) لیک یې ورکړ، چې ابي بن کعب ورته ولوست. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر وکړ چې دا خبره پټه وساتي او پخپله په بیړه مدینې ته ستون شو تر څو پدې هکله د انصارو او مهاجرینو له مشرانو سره مشوره وکړي.

## د فوق العاده او اضطراري حالاتو لپاره د مسلمانانو تیاري

مدینه د فوق العاده او اضطراري حالت په اساس د پوره تیارسۍ په حال کې شوه، ته به وایې نمبر اول احضارات نیول شوي، مسلمانانو ان د لمانځه په وخت کې هم وسله له ځانه نه لیرې کوله.

د انصارو یوې ډلې او له هغې جملې نه سعد بن معاذ، اسید بن حضیر او سعد بن عباده به ټـولــه شپه وسله په لاس د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په دروازه په پیره ولاړ وو. نور ګروپونه مدینې ته د راتلونکو لارو او بندرونو ساتلو لپاره په پیره ګمارل شوي وو تر څو دښمن په ناڅاپي توګه حمله ونکړي. همدا راز د

هغو لارو د څارلو لپاره هم ګزمې ټاکل شوې وې کومې چې د دښمن د راتګ او حملې احتمال ورنه موجود وُ.

## د مکې لښکر د مدينې په پولو کې

د مکې لښکر په لويديځه عمومي لار د مدينې خواته روان وُ، او کله چې د ابواء سيمې ته ورسيد، نو د ابو سفيان ښځې هند بنت عتبه پيشنهاد وکړ چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د قدرمنې مور قبر را لوڅ کړي، خو د لښکر مشرانو ددې کار له بدو عواقبو نه د ځان ساتلو پخاطر دا خبره و نه منله. لښکرې وړاندې د مدينې پولو ته ډيرې را نژدې شوې کله چې له عقيق نومې درې نه تيرې شوې نو لږ ښی خوا ته کږې شوې او همداسې مخکې لاړې تر څو د احد غره ته نژدې د مدينې د شمالي درې په څنډه کې پـرتېقناه نومې سيمې د ښوره زارې په مينځ کې پراته عينين نومې ځای کې يې واړول، دغه وخت د جمعې ورځ د دريم هجري کال د شوال شپږمه نيټه وه.

## په مدينه کې دفاعي مشورتي غونډه

د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) استخباراتو د مکې لښکرو د تحرکاتو خبرونه وخت په وخت مدينې ته راوړل اخرينې خبر يې دا وُ چې مشرکينو د احد تر خوا واړول. پدې وخت کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نظامې مشورتې شورى دايره کړه تر څو لازمې دفاعي فيصلې وکړي. په غونډه کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپل خوب هم بيان کړ او داسې يې وفرمايل: (**إني قد رأيت والله خيراً، رأيت بقراً يذبح، ورأيت في ذُبَاب سيفي ثُلْماً، ورأيت أني أدخلت يدي في درع حصينة**).قسم په خدای چې ما ډير ښه خوب ليدلی دی، خوب مې ليده چې يو غويی حلال شي، د تورې د تيغ په څوکه کې مې درز وي او لاس په يوه کلکه زغره کې ورکړم. بيا يې غويی د څو کسه اصحابو (رضي الله عنهم) او د تورې درز يې د خپلې کورنۍ د کوم غړي په شهادت، او زغره يې په مدينه تعبير کړه، او حاضرينو ته يې وويل: زما رايه خو داده چې همدلته مدينه کې پاتې شو او سنګرونه ونيسو، که مشرکان پخپل ځای کې پاتې شي نو هيڅ ګټه به ونکړي او دا به

ورته له ټولو خراب ځای ثابت شي، او که فرضاً مديني ته را ننوزي نو مسلمانان به ورسره په ټولو لارو، کوڅو کې مقابله وکړي او ښځې به يې د بامونو له سرونو نه ولي.
او همدا په حقيقت کې تر ټولو معقوله او ګټوره رايه وه.
د منافقانو رئيس عبدالله بن ابي بن سلول چې د خزرج قبيلې د مشرانو په ډله کې غونډې ته راغلی وُ د رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له رايې سره موافقه وکړه او همدا رايه يې غوره وبلله. کيدای شي د نومورې موافقه پدې خاطر وي چې پداسې يوه طريقه ځان له جنګ نه وساتي چې څوک ورباندې پوه نه شي، او داسې به نه وه چې ګويا ده د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نظريه د جنګي تاکتيک او ستراتيژۍ له پلوه غوره بللی وي. په هر حال الله تعالی غوښتل د منافقينو له مخې نه چادر پورته کړي تر څو کفر او نفاق يې ټولو ته څرګند او بربنډ شي.
ځينو قدرمنو خصوصاً هغو اصحابو (رضي الله عنهم) چې د بدر له فيض او شرفه بې برخې پاتې شوي وو دا غوښتل چې مسلمانان بايد له مديني نه د باندې د دښمن مقابله وکړي. له هغوی نه ځينو په ډير اصرار سره رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته داسې عرض کاوه: مونږ خو داسې ورځ له خدايه په سوال غوښتله دادی اوس يې دلته لنډه راوستې ده، ورځو به او د مديني نه د باندې به له دښمن سره جنګيږو تر څو ونه وايي چې مونږ مخه ورنه واړوله. ددې په ځوښ راغليو اصحابو (رضي الله عنهم) په سر کې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تره حمزه (رضي الله عنه) وُ. ده ته د خپل ايمان قوت او د بدر په غزا کې د خپلې تورې د خرپ او شرنګ اندازه لګيدلې وه، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته يې وويل: قسم په هغه ذات چې کتاب يې درباندې نازل کړيدی، چې زه به تر هغې پورې څه ونه خورم تر څو مې له مديني ته د باندې له دښمنانو سره وسله واله مقابله نه وي کړې.[1] نو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د اکثريت په وړاندې له خپلې رايې نه تير شو، او فيصله پدې شوه چې له مديني نه د باندې به د دښمن مقابله کوي.

## د اسلامي لښکر ګروپ بندي او د جګړې ډګر ته روانيدل

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د جمعې لمونځ ادا کړ، خلکو ته يې د وعظ او نصيحت په ضمن کې د زيات زيار او کوښښ امر وکړ او ورته ويې فرمايل چې

---

[1]. السيرة الحلبية ٢/ ١٤

برى يوازې په صبر او حوصله تر لاسه كيداى شي. بياېې له دښمن سره د مقابلې لپاره د تيارۍ حكم صادر كړ. خلك د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ارشاداتو په اوريدو سره خوشاله او مطمئن شول. په همدې ورځ يې د لمازديگر لمونځ هم په مدينه كې وكړ. خلك راټول شوي وو، او د عوالي نومې سيمې اوسيدونكي هم راغلي وو، په لمانځه پسې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) له خپلو يارانو ابوبكر او عمر (رضي الله عنهما) سره يو ځاى كور ته ننوت هغوى پگړۍ ور په سر كړه جامې يې وراغوستې، ځان يې ښه مسلح كړ، دوې زغرې يې واچولې او توره په لاس راووت.
كله چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) كور ته ننوت، نو سعد بن معاذ او اسيد بن حضير خلكو ته وويل: تاسې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) له مدينې نه وتلو باندې مجبور كړ، خبره بيرته ده ته وسپارئ! دوى هم پخپل اصرار پښېمانه شول، او كله چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) راووت دوى ورته وويل: يا رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم)! مونږ ته لازمه نه وه چې ستاسې د رايې مخالفت وكړو، اوس خوښه ستا، كه غواړې په مدينه كې د ننه سنگرونه ونيسو نو زمونږ خوښه او رضا ده. په ځواب كې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**ما ينبغي لنبي إذا لبس لأْمَتَه ــ وهي الدرع ــ أن يضعها حتى يحكم الله بينه وبين عدوه**). دا د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) له شان سره نه ښايي چې يو ځل وسله را واخلي يا زغره واغوندي او بيا مخكې لدينه چې الله تعالى دده او دښمن تر مينځ فيصله وكړي بيرته كښيني.[1]
بيا رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) لښكر په دريو ټوليو وويشه:
١ـ د مهاجرينو ټولى او بيرغ يې مصعب بن عمير عبدري ته وركړ.
٢ـ د انصارو د اوس قبيلې ټولى او بيرغ يې اسيد بن حضير ته وركړ.
٣ـ د انصارو د خزرج قبيلې ټولى او بيرغ يې حباب بن المنذر ته وركړ.
د ټول لښكر شميره زر كسان و چې سل يې زغره لرونكي او پنځوس يې سواره وو، كه

[1]. رواه احمد، نسائي، حاكم، ابن اسحق.

څه هم ځنې روايات وايي چې پدې غزا کې له مسلمانانو سره آسونه نه وو[۲]. په مدینه کې پاتې کیدونکو لپاره يې عبدالله بن ام مکتوم د لمانځه امام وټاکه، او د جګړې د ډګر په لور د خوځیدو اجازه یې وکړه. پدې ترتیب سره اسلامي لښکر پداسې حال کې د شمال په لور وخوځید چې دواړه سعدان (سعد بن معاذ او سعد بن عباده) وسله په لاس او زغره په ځان د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تر مخ مخ روان وو.

کله چې اسلامي لښکر له ثنیه الوداع نه تیر شو د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سترګې په یوه وسله بند ټولي ولګیدې چې له نور لښکر نه جدا روان دی، پوښتنه يې وکړه چې دا څوک دي؟ په ځواب کې ورته وویل شول دا د خزرج دوستان یهودان دي[۱]، غواړي د مشرکینو خلاف جګړه کې برخه واخلي. رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وپوښتل آیا دوی مسلمان شویدي؟ په ځواب کې ورته وویل شول: نه اسلام خو يې ندی راوړی، نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د هغوی د بیرته ستنیدو امر وکړ او خوښه يې نه شوه چې د مشرکینو په خلاف جګړه کې له کفارو نه مرسته وغواړي.

## د لښکر معاینه

شیخان نومي ځای ته په رسیدو سره رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د خپل لښکر معاینه پیل کړه، او هغه کسان يې له لښکر نه بیل کړل کوم چې عمر یې کم او د جګړې توان يې نه درلود.

پدې ډله کې عبدالله بن عمر، اسامه بن زید، اسید بن ظهیر، زید بن ثابت، زید بن ارقم، عرابه بن اوس، عمرو بن حزم، ابو سعید الخدري، زید بن حارثه الانصاري، او سعد بن حبه (رضي الله عنهم) شامل وو. که څه هم د براء بن عازب نوم هم پدې ډله کې اخستل کیږي، خو د بخاري هغه روایت چې له براء نه يې نقل کړی پدې دلالت کوي چې نوموړي په دې غزا کې برخه اخیستې وه.

د کشرانو او کم عمره ځوانانو له جملې نه يې یوازې رافع بن خدیج او سمره بن جندب

---

(2). د پنځوسو آسونوخبره ابن القیم په الهدی ۹۲/۲ کې نقل کړیده، خو ابن حجر وايي چې دا خبره بالکل غلطه ده. او موسی بن عقبه په تائید سره وايي چې په احد کې له مسلمانانو سره یو آس هم نه ؤ، واقدي وايي چې په احد کې یو آس د رسول الله (ص) او بل د ابو برده ؤ (فتح الباری ۷/ ۳۵۰)

[۱]. دا د ابن سعد روایت دی، او وايي چې دا یهودان د بني قینقاع له قبیلې څخه وو (طبقات ۳۴/۲) پداسې حال کې چې دا قبیله مخکې له مدینې نه شړل شوې وه.

ته اجازه ورکړه چې په جګړه کې برخه واخلي، او دا هم ځکه چې رافع يو ډېر ماهر غشي ويشتونکی وُ، نو په همدې سبب په جګړه کې د اشتراک اجازه ورکړه شوه، پدې وخت کې سمره وويل: ماته هم اجازه را کړه ځکه زه خو له رافع نه زيات قوي او پياوړی يم او هغه راڅملولی شم! رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: راځئ په غيږو ورشئ چې کوم يو ډير پياوړی دی. په مقابله کې سمره بريالی شو او رافع يې راچپه کړ، په دې ترتيب ده ته هم په جنګ کې د اشتراک اجازه ورکړل شوه.

## د مدينې او احد تر مينځ يوه شپه

په همدې ځای کې ورباندې شپه شوه د ماښام وروسې د ماسختن لمونځونه يې ادا کړل او بيا همدلته ويده شو. پنځوس کسان يې د محمد بن مسلمه تر مشرۍ لاندې د پيرې لپاره وټاکل، ددې ګروپ اتل کعب بن اشرف و او ذکوان بن عبد قيس په خاصه توګه په رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) باندې پيره کوله.

## د عبدالله بن ابي بغاوت

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له سپيده داغ نه لږ څه د مخه حرکت وکړ، د سهار لمونځ يې په شوط نومي ځای کې ادا کړ او دغه وخت دښمن ته دومره ور لنډ شوی وُ چې يو بل يې ښه ليدل. په همدې حساسو شيبو کې د منافقانو مشر له خپلو دری سوه ملګريو سره بغاوت وکړ، دا خبره يې بهانه ونيوله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) زما رايه ونه منله، نو اوس ولې او د څه لپاره ځانونه ووژنو؟

دوی ټول بيرته له لارې وګرزيدل. څرګنده ده چې د دوی د بغاوت او بيرته ګرزيدو سبب همغه نه وُ کوم چې دوی عنواناوه، که رښتيا دوی په همدې خفه شوي وای، نو بيا تر دې ځايه ولې راتلل؟! اصلاً د دوی هدف دا وُ چې دلته د دښمن سره نژدې مسلمانانو کې هله ګوله راولاړه کړي، په لښکر کې ماتې ګډه کړي تر څو دښمنان نور ورباندې را تيز او زړور شي او په دې ترتيب سره به د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او مخلصو اصحابو (رضي الله عنهم) د له مينځ وړلو امکانات ډېر زيات

شي او که دا وشول نو میدان به بیادې منافق ته خالي وي چې بیا به يې راج چلیږي.
نژدې وه چې منافقان پخپل دې شوم هدف کې بریالي شي. له اوس نه بني حارثه او له خزرج نه د بنو سلمه پښې سستی شوې، د په شاتګ په هڅه کې شول، خو د میدان پرېښودو په وخت کې الله تعالی د هغوی زړونه را تکیه کړل او په الهي مدد سره ددې جوګه شول چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خوا ته په میړانه ودریږي. الله تعالی دې حالت ته اشاره کوي او فرمايي:

((إِذْ هَمَّتْ طَائِفَتَانِ مِنْكُمْ أَنْ تَفْشَلَا وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلْ الْمُؤْمِنُونَ)) (آل عمران: ۱۲۲)

[ترجمه: کله چې قصد وکړ دوو طائفو له تاسې نه ددې خبرې چې بې زړه شي دوی (له جنګه) حال دا چې الله ولي (مددګار) د دوی ۇ او خاص پر الله دې نو توکل وکړي مؤمنان.]

د جابر پلار عبدالله بن حرام (رضي الله عنهما) ډېره هڅه وکړه منافقان خپلې دندې ته متوجه کړي. ورپسې ورغی، بیرته راتګ ته يې هڅول او ورته ویل يې: راشئ، بیرته راوګرزئ د خدای په لاره کې وجنګیږئ او يا دفاع وکړئ!

منافقانو په ځواب کې ورته ویل: که مونږ پدې باوري وای چې تاسې جنګیږئ، نو مونږ به بیرته نه ګرزیدو.

پدې سره عبدالله بن حرام (رضي الله عنه) ورنه راستون شو او داسې يې ویل: خدای مو له مونږ نه ورک کړه اې د خدای دښمنانو! خدای به خپل رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تاسې ته نه اړ باسي.

قرآنکریم دې منافقینو ته په اشاره کولو سره فرمايي:

((وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ نَافَقُوا وَقِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا قَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ ادْفَعُوا قَالُوا لَوْ نَعْلَمُ قِتَالاً لاتَّبَعْنَاكُمْ هُمْ لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ مِنْهُمْ لِلإِيمَانِ يَقُولُونَ بِأَفْوَاهِهِمْ مَا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يَكْتُمُونَ)) (آل عمران– ۱۶۷)

[ترجمه: او (بل) له پاره ددې ۇ چې معلوم (ښکاره) کړي (الله) هغه کسان چې نفاق يې کړی ۇ او وویلی شو دغو (بیرته تلونکو منافقانو) ته چې راځئ (احد ته) غزا وکړئ (له مشرکینو سره) په لاره د الله کې يا مدافعه وکړئ ! (د دښمن له نفسونو او مالونو او کورونو خپلو!) نو وویل دې (منافقانو) که مونږ پوهیدئ په جنګ، نو هرومرو (خامخا) به مونږ متابعت کړی ۇ ستاسې. دوی کفر ته په دغې ورځې کې (چې دغه خبره يې کوله) ډېر نژدې وو، له دوی نه په نسبت د ایمان، وايي دوی (منافقان) په خولو خپلو

سره هغه (خبره) چې نشته (پرې تصديق) په زړونو د دوی کې، او الله ښه پوه دی په هغه څه (هم) چې پټوي يې دوی (په زړونو خپلو کې له حسد او کفره).]

## اسلامي لښکر د احد په لور

د عبدالله بن ابي له ماتې او په شاتګ وروسته رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پاتې لښکر چې اوه سوه تنه ؤ د احد په لور روان کړ، خو څرنګه چې د دښمن سپايان په څو ځايونو کې احد ته غزيدلې لاره کې پراته وو، نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: داسې څوک به وي چې مونږ په يوه لنډه خو داسې لاره بوزي چې پر دوی (مشرکانو) ورنه شو؟ په ځواب کې ابو خيثمه وويل: زه تيار يم يا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! بيا يې د مشرکينو د لښکرو لويديځې خوا ته د بني حارثه په بيديا او کښتونو کې غزيدلې لنډه لار ونيوله. او کله چې اسلامي لښکر د يوه منافق (مربع بن قيظي) چې په سترګو هم ړوند ؤ په باغ تيريده، هغه منافق راپاڅيد، مسلمانانوته يې خاورې ورشيندلې او ويل يې : که ته د خدای رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وې، نو باغ ته د ننوتلو اجازه نه درکوم! ځينې کسان ورتاو شول چې ويې وژني، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل:

(**لا تقتلوه، فهذا الأعْمَى أعمى القلب أعمى البصر**). مه يې وژنئ، دا په سترګو او زړه دواړو ړوند دی.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) همداسې مخکې لاړ تر څو د دری خوا ته د احد غره په يوه خوړ کې داسې ځای په ځای شو چې مخ يې د مدينې او شا يې د احد د پوښتو خوا ته وه. او پدې ترتيب سره د دښمنانو لښکر د مدينې او اسلامي لښکر تر مينځ واقع شوی ؤ.

## دفاعي پلان

په همدې ځای کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپل لښکر د جګړې لپاره تيار او په منظمو ليکو برابر کړ. د عبدالله بن جبير بن نعمان انصاري اوسي بدري په مشرۍ يې پنځوسو ماهرو غشو ويشتونکو ته وظيفه ورکړه چې د قناه د درې په جنوبي څنډه کې د پراته غره په غاښې کې سنګر ونيسي. دغه غر چې وروسته د

جبل الرماه په نوم ياد شو د اسلامي لښکر جنوب لويديځ لور ته د قوماندانۍ له مرکز نه (۱۵۰) متره ليرې پروت ؤ.
ددې پنځوس کسيز ګروپ قوماندان ته د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) لارښوونې په هغه کنډو کې د دوی د توظيفولو هدف او غرض ښه په ګوته کوي، ورته فرمايي: (**انضح الخيل عنا بالنبل، لا يأتونا من خلفنا، إن كانت لنا أو علينا فاثبت مكانك، لا نؤتين من قبلك**). په خپلو غشو سره د دښمن آسونه له مونږ نه منع کړه، مه پريږده چې د شا له خوا راباندې راشي،که هر څه ؤ مونږ بريالي شوو او يا دوی، خپل ځای مه پريږده، ګوره چې ستاسې له پلوه دښمن راباندې رانشي.[1]
بيا يې غشي ويشتونکو ته د اسې امر وکړ: (**احموا ظهورنا، فإن رأيتمونا نقتل فلا تنصرونا، وإن رأيتمونا قد غنمنا فلا تشركونا**). تاسې به خپله خوا ټينګه ساتئ، خپل سنګر به نه پريږدئ، که مونږ ټول وژل کيدلو هم تاسې به مو مرستې ته نه راځئ، او که مو وليدل چې مونږ غنيمتونه راټولوو بيا به هم د غنيمت لپاره نه راځئ[2].
د بخاري په روايت کې راځي چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: (**إن رأيتمونا تخطفنا الطير فلا تبرحوا مكانكم هذا حتى أرسل إليكم، وإن رأيتمونا هزمنا القوم ووطأناهم فلا تبرحوا حتى أرسل إليكم**).که مو وليدل چې مرغان زمونږ غوښې ورې بيا به هم خپل ځای نه خوشی کوئ، او تر هغې به نه راځئ تر څو ما نه وئ راغوښتي، او که مو وليدل دښمن ته مو ماتې ورکړه، درې ورې مو کړ بيا به هم تاسې له خپل سنګر نه تر هغې نه پورته کيږئ تر څو پورې ما احوال نه وي درليږلی.[3]
هغه يوازينۍ لار چې دښمن کولی شوای د شا له خوا ورباندې را تاو شي او مسلمانان محاصره کړي د همدغه کنډو لاره وه چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پکې دا پنځوس کسيز ګروپ وټاکه او داسې کلکې، څرګندې عسکري لارښوونې يې ورته وکړې چې هغوی بايد هملته په سنګر کې وي تر څو دا لار د دښمن په مخ همداسې بنده پاته وي.
نور لښکر يې داسې برابر کړ: منذر بن عمرو يې په ميمنه، زبير بن عوام چې مقداد بن اسود يې معاونت کاوه په ميسره وټاکه. ددې تر څنګ زبير بن عوام دا دنده هم لرله

---

(1). ابن هشام ۲/۶۵-۶۶
(2). دا له ابن عباس نه د احمد، طبراني او حاکم روايت دی، فتح الباري ۷/ ۳۵۰ وګوره.
(3). صحيح البخاري کتاب الجهاد ۱/ ۴۲۶.

چې د مشرکانو د سپرو چې خالد بن ولید یې مشري کوله مخه هم ونیسي، او د لښکر په لومړۍ لیکه کې یې داسې کسان ځای په ځای کړل چې په غیرت او میړانه کې یو په زر شمیرل کیده.
د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) جنګي پلان او برنامه دومره دقیقه او بشپړه وه چې د بل هیڅ یوه مشر او عسکري قوماندان له وسه نه ده پوره داسې یو پلان او برنامه طرحه کړي. او دا پخپله د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د قیادت په عظمت او عسکري امورو په ښه پوهه دلالت کوي. سره لدې چې د جګړې میدان ته له دښمن نه وروسته راغی، خو د لښکر لپاره یې تر ټولو غوره او مهم ځای اشغال کړ او هغه داسې چې وروستنۍ او ښۍ خوا ته یې غر واقع وُ، چپه او وروستۍ خوا یې په غشو ویشتونکو حمایه او وساتله، او په عمومي توګه دا ځای لوړ او هسک وُ، چې د احتمالي ماتې په وخت کې ښه حمایه کیدی شوای او مسلمانانو د تیښتې په ځای دلته ځان ټینګولی او له اسارت نه ژغورلی شوای، او که دښمن د دوی د سنګرونو د نیولو کوښښ کړی وای، نو په ډیرو تلفاتو به یې هم دا کار نه وی ترسره کړی. ددې بر عکس دښمن یې داسې یوه ځای ته ایسار کړی وُ، چې که بریالی شوی هم وی، نو د فتحې ګټې لکه غنیمتونه، اسیران او نور یې نه شوی تر لاسه کولای، او که مسلمانان ورباندې برلاسي کیدی نو بیا یې د خلاصون او تیښتې لار نه وه. همدا راز رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د خپل لښکر د شمیر کمښت په لومړۍ لیکه کې د هغو مشهورو میړنو په ځای کولوسره جبیره کړ.
پدې ترتیب سره رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپل لښکر د دریم هجري کال د شوال په اوومه د هفتې په ورځ د دښمن مقابلې ته تیار او برابر کړ.

## رسول (ﷺ) د سپاهیانو په زړونو کې د غیرت روح پوکي

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر وکړ چې تر هغې به جګړه نه پیل کوي تر څو ده ورته امر نه وي کړی. او پداسې حال کې چې دوې زغرې یې اغوستې وې سپاهیانو ته یې د جګړې په ډګر کې د خیر او ثبات لارښوونه کوله او د دوی په زړونو کې یې د همت او میړانې روح پوکوله. یوه ډیره تیره توره یې راوایستله او اصحابو ته یې وفرمایل: (من یأخذ هذا السیف بحقه؟). دا توره څوک پدې شرط اخلي چې حق

يې ادا کړي؟ څو کسان لکه علي بن ابي طالب، زبير بن العوام او عمر بن الخطاب ورپاڅېدل چې توره ورنه واخلي، پدې ضمن کې أبو دُجَانة سِمَاك بن خَرَشَة ورپاڅېد او ويې ويل: يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ددې تورې حق څه دی؟ ده ورته وفرمايل: (أن تضرب به وجوه العدو حتى ينحني). ددې توری حق دادې چې پر دښمنانو تر هغې پورې ګزارونه پرې وکړې تر څو ښه کږه وږه شي. ابودجانه عرض وکړ قبوله مې ده، زه به يې همدا حق په ځای کړم. بيا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) توره همده ته ورکړه.

ابو دجانه ډېر زړور سړی وُ د جګړې په وخت کې به په ډېر غرور او خيال روان وُ، يوه سره پګړۍ يې درلوده کله به يې چې وتړله نو خلک به پوه شول چې اوس به تر مرګه جنګيږي او کله يې چې له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه توره واخيستله نو هغه پګړۍ يې وتړله او د لښکر په مينځ کې په خيال او غرور روان شو. پدې وخت کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (إنها لمشية يبغضها الله إلا في مثل هذا الموطن).دا هغه رفتار دی چې الله تعالی يې له دا ډول حالت نه (له دښمن سره د مقابلې له وخت نه) پرته بالکل نه خوښوي.

# د مکي لښکر تنظيم

مشرکانو خپل لښکر د ليکو په حساب برابر کړ، عمومي قومانده له ابو سفيان صخر بن حرب سره وه چې د لښکر په قلب (زړه) کې يې ځای نيولې وُ، په ميمنه يې خالد بن وليد او ميسره يې عکرمه بن ابي جهل ټاکلی وُ پداسې حال کې چې د پليو (پياده) قواوو مشر صفوان بن اميه او د غشو ويشتونکو مشر عبدالله بن ابي ربيعه وُ.

بيرغ د بني عبدالدار له يوې ډلې سره وُ، او دا منصب دوی ته ان د قصي بن کلاب له وخت نه په ميراث پاتې و، هيڅا دا حق نه درلود پدې هکله جنجال ورسره وکړي، خو د جګړې عمومي قوماندان (ابو سفيان) د بدر په غزا کې د قريشو بده ورځ او د بيرغ وړونکي (نضر بن حارث) اسارت ور په يادوي او ددې پخاطر چې بني عبدالدار په غيرت راولي ورته وايي: تاسې د بدر په ورځ هم د بيرغ وړونکی وئ او و مو وليدل چې په څه حال ګرفتار شولو! جنګيالي خلک هميشه د بيرغ له پلوه ضربه ويني، يعنې کله يې چې بيرغ پريوزي، دوی هم تباه کيږي، نو اوس به يا بيرغ ښه په ميړانه اوچت ساتئ، او که دا نه شئ کولئ نو مونږ ته يې راکړئ چې د ساتنې ضمانت يې درکړو.

ابو سفيان پدې خبره سره خپل هدف تر لاسه کړ، بنو عبدالدار دده په خبرو راوپاريدل

او په ډيره غوسه يې ورته وويل: بيرغ تا ته درکړو؟! سبا به ګورې چې مونږ څه کوو او رښتيا چې هغوی د جګړې په ډګر کې تر هغې وجنګيدل تر څو ټول ختم او تباه شول.

## د قريشو سياسي چلبازي

د جګړې له پيل نه مخکې قريشو هڅه وکړه پخپلې چلبازۍ سره د مسلمانانو تر مينځ درز او نفاق پيدا کړي. ابو سفيان انصارو ته داسې احوال ورولیږه چې: مونږ او زمونږ د تره زوی محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره پريږدئ، تاسې غرض مه لرئ مونږ له تاسې سره د جګړې ضرورت نه وينو. خو انصارو پخپل فولادين ايمان سره د دوی دا توطئه له خاورو سره خاورې کړه او ابو سفيان ته يې داسې څه ور واورول چې ښه پرې خفه شو.

د جګړې اور په بليدو وُ، دواړه لښکرې يو بل ته ورلنډې شوې، په دې وخت کې قريشو د مسلمانانو په منځ کې د نفاق اچولو يوه بله ناکامه هڅه وکړه.

او هغه داسې چې د جاهليت په زمانه کې د اوس قبيلې يو خائن او مزدور مشر چې نوم يې عبد عمرو بن صيفي وُ او په ابو عامر راهب سره يې شهرت درلود او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) فاسق نوم ورباندې ايښی وُ را ميدان ته شو. نوموړي له اسلام او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره ښکاره دښمني درلوده او کله چې اسلام راغی، نو هغه ونه شوای زغملی، له مدينې نه ووت، قريش يې د رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مقابلې ته راټولول او تشويقول او دا خبره يې ورته کوله چې که زما قوم ما ووينې، نو اطاعت به مې وکړي او زما خوا ته به ودريږي. نوموړی فاسق لومړنی کس وُ چې د احد په غزا کې يې له احابيشو او د مکې د خلکو له غلامانو سره د مسلمانانو مقابلې ته راودانګل. د احد په ميدان کې را وړاندې شو خپل قوم ته يې ځان داسې وروښود، اې د اوس خلکو! زه ابو عامر يم! دوی په ځواب کې ورته وويل: خدای دې مه ښادوه، نامراد اوسې اې فاسقه! ده چې دا واوريدل ويې ويل: له ما نه وروسته زما قوم په شر او بدۍ اخته شويدی. او کله چې جګړه ونښتله نو له خپل قوم سره سخت جنګيده او مسلمانان يې په تيږو ويشتل.

پدې ترتيب سره د قريشو دوهمه توطئه هم خنثی شوه. دا سياسي چل ول او ناکامې

توطئې پدې دلالت کوي چې د هغوی په زړونوکې د مسلمانانو ویره او هیبت پروت ؤ، او د سپاپانو د شمیر او وسلو ډیروالي یې هم زړونه نه وو ډاډه کړي.

## د قریشو ښځې د جنګیالانو حوصلې لوړوي

د قریشو ښځو هم په جګړه کې خپل رول ولوباوه، دغه ډله ښځې چې د ابو سفیان ښځې هند بنت عتبه یې مشري کوله د لښکر په مینځ کې ګرزیدې، ډولکې او دایرې یې وهلې، خلک یې په غیرت راوستل جنګ ته یې هیڅول، د قهرمانانو حماسې یې راپارولې، د نیزه بازانو، تورزنو، او غشو ویشونکو احساسات یې په جوش راوستل، کله به یې بیرغ وړونکو ته داسې ویل:

ویها بني عبدالدار ویها حماة الادبار

ضربا بکل بتار

اې د عبدالدار زامنو! اې د لښکر د وروستیو لیکو ساتونکو! پخپلو تیرو تورو ښه میړني ګوزارونه وکړئ. کله به یې د خپل قوم حماسې داسې راپارولې:

| | |
|---|---|
| ان تقبـــلوا نعانق | و نفرش النمارق |
| او تدبروا نفارق | فراق غیر وامـــق |

که دښمن ته ورمخکې شوی نو غیږ په غیږ به شو او قالینچې به درته وغوړوو، او که مو شا کړه ورته نو بیا مو درسره جدایې ده نه په خلا کیدونکې جدایي.

## د جګړې لومړنی لمبې

دواړه لښکري نورې هم یو بل ته ورلنډې شوې، د جګړې نغارې وډنګیدې.د مشرکانو بیرغ وړونکی طلحه بن ابي طلحه العبدري لومړنی کس ؤ چې د جنګ اور ته یې پلته ورته کړه. دا یو ډیر زړور او غیرتي انسان ؤ مسلمانانو ورته د لښکر ګډ (پسه) وایه پداسې حال کې چې په اوښ سپور ؤ را مخکې شو او د مقابلې ټټر یې وواهه، هیڅا یې هم مقابلې ته زړه نه شو ښه کولی، خو زبیر بن العوام (رضي الله عنه) د زمري په

شان ورپاڅيد ورټوپ يې کړ په اوښ ور سپور شو او سمدستي يې په ځمکه رانسکور کړ او سر يې په توره ورنه بيل کړ.
رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) چې دا ميړنۍ مقابله وليدله، د تکبير چيغه يې پورته کړه مسلمانانو هم ورسره تکبير ووايه او د زبير (رضي الله عنه) ستاينه يې وکړه ويې فرمايل: ((ان لكل نبي حواريا، وحواري الزبير)) هر نبي يو خاص دوست او ملګری لري، زما دوست او ملګری زبير دی . (السيرة الحلبية ١٨/٢)

## د بيرغ شاو خوا سختې جګړې او د علمبردارانو له مينځه وړل

پدې ترتيب سره د جګړې اور هرې خوا ته خور شو، خو ډير زور يې د مشرکينو د بيرغ شاو خوا وُ چې د دوی د علمبردار او د بني عبدالدار مشر طلحه بن ابي طلحه ووژل شو. ورور يې عثمان را وړاندی شو بيرغ يې اوچت کړ او دا شعر يې ووايه:

ان على اهل اللواء حقا ان تخضب الصعدة او تندقا

د علمبردارانو وظيفه داده چې نيزې يې ښې په وينو سرې شي او يا هم بوټې ماتې شي. په همدې وخت کې حمزه (رضي الله عنه) پرې ورټوپ کړ او په مټ يې داسې ګوزار ورباندې وکړ چې لاس يې ورنه بيل او ان تر نامه پورې څيرې شو، سږي يې راښکاره شول، ولويد. بيرغ ابو سعد بن ابي طلحه پورته کړ، چې سعد بن ابي وقاص په ستوني کې په غشي وويشت ژبه يې تر خوله راووتله او ځای په ځای سړی شو. او بل روايت داسې دی چې ابو سعد ميدان ته رامخکې شو، مسلمانانو ته يې د مقابلې بلنه ورکړه علي (رضي الله عنه) ورمخکې شو توري يې سره تيرې بيرې کړې ترڅو علي (رضي الله عنه) پخپل مرګوني ګوزار سره پر مځکه رانسکور کړ. نو وراره يې مسافع بن طلحه بن ابي طلحه توغ پورته کړ، خو هغه هم د عاصم بن ثابت بن ابي الاقلح په غشي ووژل شو. بيايې ورور کلاب بن طلحه بيرغ ته لاس کړ جګړه يې پيل کړه تر څو زبير بن عوام ورمخې ته شو او ويې واژه. بيا بيرغ د دوی دواړو ورور جلاس بن طلحه واخيست، خو طلحه بن عبيدالله ده ته هم ډير وخت ورنکړ او په يوه ګوزار يې نسکور کړ، او په بل روايت سره دا هم د عصام بن ثابت په غشي سره ووژل شو.
دا شپږ واړه د ابو طلحه عبدالله بن عثمان بن عبدالدار له کورنۍ څخه وو چې ټول د

مشرکینو د توغ او بیرغ نه د دفاع په میدان کې ووژل شول. بیا د همدې کورنۍ (بنو عبدالدار) ارطاه بن شرحبیل توغ پورته کړ تر څو هغه هم دعلي (رضي الله عنه) او یا حمزه (رضي الله عنه) په ګوزار سره ستړی شو. بیا شریح بن قارظ بیرغ اوچت کړ هغه هم د یوه منافق چې قزمان نومیده او د تعصب په اساس جنګ ته راغلی وُ په لاس ووژل شو. بیا ابو زید عمرو ابن عبد مناف العبدري د شرک بیرغ په لاس کې واخیست هغه هم د قزمان په لاس مړ شو.

په ده پسې د شرحبیل بن هاشم العبدري زوی بیرغ پورته کړ، خو هغه هم د همدې قزمان په ګوزار ووژل شو. پدې ترتیب سره د بنو عبدالدار پوره لس علمبرداران په همدې ډګر کې ستړي شول، نور له دوی نه څوک نه وُ پاتې چې بیرغ اوچت وساتي، همدا وه چې د دوی یو حبشي غلام (مریې) چې صواب نومیده بیرغ پورته کړ او له خپلو بادارانو نه په زیاته میړانه تر هغې وجنګید تر څو دواړه لاسونه یې غوڅ شول، خو بیا یې هم زیار ایست چې پخپله غاړه او سینه سره بیرغ اوچت وساتي او په همدې حالت کې یې دا خبره په خوله وه چې اې خدایه اوس خو به مې عذر درته مقبول وي او په هلاکت ورسید.

د صواب له وژل کیدو وروسته بیرغ په ځمکه راپریووت او بیا چا و نه شوای کولای د کفر دا نسکور بیرغ اوچت کړي.

## د جګړې نورې صحنې

پداسې حال کې چې د جګړې زیات زور د مشرکینو د بیرغ شاو خواته و، د احد ډګر په نورو برخو کې هم جګړې رواني وې. مسلمانان د ایمان په وسله سنبال او د اسلام په مینه مست د یوه داسې سیل په شان چې ډیر کلک بندونه هم نشي ورته ټینګیدی د کفر په لښکر ورګډ شول او هر یوه یې د احد غزا شعار اَمِت، اَمِت (یعنې مړ کړه، مړ کړه) زمزمه کاوه.

ابو دجانه چې تر سر یې سره پټۍ تاوکړې وه او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) توره یې پدې نیت په لاس کې نیولې وه چې حق یې ادا کړي را وړاندې شو وجنګید د مشرکینو په لیکو کې ورننوت هر مشرک یې چې مخې نه راغی ځای په ځای یې وواژه، د کفر لښکر یې تار په تار کړ. زبیر (رضي الله عنه) وایي هغه وخت چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) توره ابو دجانه ته ورکړه او ما ته یې رانکړه، ما پخپل زړه کې وویل: زه یې د عمه (صفیې) زوی او د قریشو مهم غړی وم ورغلم توره مې ترې وغوښتله، خو هغه ابو دجانه ته ورکړه، ګورم به چې ابو دجانه څه

کوي؟ څاره مې، که ګورم چې سر يې په سره پټۍ وتاړه، پدې وخت کې انصارو وويل ابو دجانه د مرګ پټۍ راوايستله، راوړاندې شو او دا شعر يې زمزمه کړ:

انا الــذي عاهــدني خليلي و نحن بالسفح لدى النخيل
ان لا اقوم الدهر في الكيول اضرب بسيف الله و الرسول

زه هغه چې خليل (دوست) مې د غره په لمن او د خرماوو له باغ سره عهد راسره کړی چې هميشه به د لښکر په مخ کې وم او هيڅکله به د لښکر شا ته نه جنګيږم، او د خدای او رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په توره به پر دښمنانو ګوزارونه کوم.
ابو دجانه همداسې مخکې روان ؤ هر مشرک به يې چې مخې ته راته نو سمدلاسه به يې رانسکوراوه. زبير (رضي الله عنه) وايي: د مشرکينو په ډله کې يو کس داسې ؤ چې زخميان به يې لټول او وژل به يې، ما پدې وخت کې خدای ته سوال وکړ چې ابو دجانه پدې کافر ور برابر کړي. همدا وه چې دوی دواړه سره مخامخ شول يو پر بل يې ګوزارونه وکړل خو سره تير او بير شول، دې مشرک بل ګوزار ورباندې وکړ خو ابو دجانه پخپل ډال سره ځان ورنه وساته توره يې په ډال کې بنده شو، په ځواب کې ابودجانه داسې ګوزار ورباندې وکړ چې کافر ځای په ځای شو.[١]
ابو دجانه مخ په وړاندې روان ؤ د کفر ليکې يې څيرولې ترڅو د مشرکينو د ښځو قومندانۍ ته ور ورسيد، لـومړی يې نه پيژندله چې دا ښځه ده، پدې هکله (ابو دجانه) وايي: يو څوک مې وليد چې په خلکو ډير کلک کلک ګوزارونه کوي، زه ور مخې ته شوم خو کله مې چې توره ورباندې پورته کړه چې ګوزار پرې وکړم چيغه يې وکړه پوه شوم چې ښځه ده، لاس مې ونيو او زړه مې ونه منله چې د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په توره ښځه ووژنم، دا ښځه هند بنت عتبه وه. زبير (رضي الله عنه) وايي ما ليدل چې ابو دجانه پر هندې توره پورته کړه، خو بيا يې لاس ورنه ونيو په دغه وخت کې ما وويل: بيشکه چې الله او رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) له بل هر چا نه ښه پوهيږي.[٢]

---

[1]. ابن هشام ٢/٦٨-٦٩ .
[2]. ابن هشام ٢/ ۶۹ .

حمزه (رضي الله عنه) هم د سوريدلي زمري په شان جنګيده، په ډيره ميړانه او بې باکۍ سره يې د شرک د لښکر زړه ته ځان ورساوه او د کافرانو هغه ډير زړور جنګيالان يې هم داسې په مخکې لويدل لکه د توپان په مخکې چې پاڼې توئيږي. حمزه (رضي الله عنه) نه يوازې د مشرکينو څو تنه علمبرداران له پښو وغورځول بلکه د دوی نور ډير ميړني يې هم رانسکور کړل، خو په پای کې پداسې حال کې چې په ډيره ميړانه يې د کافرانو مقابله کوله، په يوه غلچکي، او د يوه نامرد په مکارانه ګوزار سره په شهادت ورسيد.

## د اسدالله حمزه (رضي الله عنه) شهادت

د حمزه (رضي الله عنه) قاتل وحشي بن حرب پدې هکله وايي: زه د جبير بن مطعم غلام (مريې) وم. په بدر کې دده تره طعيمه بن عدي هم وژل شوی و، او کله چې قريش د احد په لور روان شول، نو بادار مې راته وويل: که زما د تره په بدل کې دې د محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تره حمزه (رضي الله عنه) وواژه نو ته آزاد يې. وحشي زياتوي:

زه په همدې طمعه له خلکو سره روان شوم، زه يو حبشي ماهر نيزه ويشتونکی وم، نښه به مې ډيره کمه خطا کيده. کله چې دواړه خواوې سره ونښتلې زه د حمزه په لټه کې شوم که ګورم چې د خاکستري (خړ) اوښ په شان د خلکو ليکې ماتوي هيڅوک يې مخې ته نه شي دريدی، په خدای قسم چې زما سترګې په همده کې خښې وې، ځان مې ورته برابراوه، او پدې خاطر چې را لنډ شي د ونې يا کومې تيږې شا ته به پټيدم. پدې وخت کې سباع بن عبدالعزی له ما نه مخکې ور وړاندې شو او کله چې د حمزه (رضي الله عنه) سترګې پرې ولګيدې نو ورته ويې ويل: را وړاندې شه د سنت کونکې مور زويه! پرې را تاو شو او په يو ګوزار يې سر ورنه بوټ قلم کړ. دلته ما خپله نيزه برابره کړه او ښه نښه مې ورباندې ونيوله او پرې ورخوشې مې کړه، په خيټه يې داسې وربرابره شوه چې له شا نه يې ووتله، هڅه يې وکړه چې زما خوا ته راشي خو و نه توانيد، په همدې حالت مې پريښود تر څو مړ شو. وروسته ورغلم او نيزه مې ورنه وايستله، بيرته لښکر ته راغلم او آرام کيناستم، ځکه له بل چا سره مې کار نه و، حمزه (رضي الله عنه) مې پدې خاطر وواژه چې آزاد شم، او کله چې مکې ته ورسيدو

نو آزاد شوم.[۱]

## په جګړه کې د مسلمانانو برلاسي

سره لدې چې د حمزه (رضي الله عنه) شهادت د مسلمانانو لپاره نه جبران کیدونکې خساره وه، خو بیا هم د جګړې په میدان کې بر لاسي د همدوی وه. ابوبکر، عمر، علي، زبیر، مصعب بن عمیر، طلحه بن عبیدالله، عبدالله بن جحش، سعد بن معاذ، سعد بن عباده، سعد بن الربیع، انس ابن النضر او نور (رضي الله عنهم اجمعین) داسې په میړانه جنګیدل چې مشرکان یې تار او مار کړل. د مشرکانو مورال دومره لویدلی ؤ چې نور د ټینګیدو نه وو.

## د ښځې له غیرې نه د تورو تر میدانه

ددې ورځې له قهرمانو سرتیرو نه یو هم حنظله غسیل ؤ. دا د هغه ابو عامر راهب زوی ؤ چې په فاسق مشهور شوی ؤ او څو صفحې مخکې یې یادونه شویده.

حنظله نوی واده کړی ؤ، او پداسې حال کې یې د جنګ آواز واورید چې له خپلې ښځې سره پروت ؤ سمدستي یې د ښځې غیږه پریښوده او د جګړې ډګر ته روان شو. هلته چې له مشرکینو سره مخامخ شو، ناتار یې ورباندې جوړ کړ په لښکر ورننوت او ابو سفیان ته یې ځان ورساوه، نژدې وه چې ابو سفیان را نسکور کړي، خو شداد بن اسود وار ورباندې ړومبی کړ او حنظله یې په شهادت ورساوه.

## په جګړه کې د غشو ویشتونکو رول او ونډه

د هغو غشو ویشتونکو ډلې چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د الرماه غره په کنډو کې ځای په ځای کړې وه، په جګړه کې ډیر مهم رول درلود او حالات یې د مسلمانانو په ګټه ساتلي وو. د مشرکینو سپرو د خالد بن الولید په

[۱]. ابن هشام ۲/ ۶۹ – ۷۲ صحیح بخاري ۲/ ۵۸۳. همدا وحشي بیا د طائف له غزا وروسته مسلمان شو او په همدې نیزه سره یې مسیلمه الکذاب وواژه، او د روم په خلاف مشهوره جګړه (برموک) کې یې هم برخه درلوده.

مشری چې ابو عامر الفاسق يې مرسته کوله درې ځله هڅې وکړې چې د اسلامي لښکر چپ وزر مات کړي تر څو د مسلمانانو شا لوري ته لار ومومي او ناتار وربانديې ګډ کړي، خو غشو ويشتونکو د غشو باران پرې جوړ کړ او درې واړه حملې يې ورناکامې کړې.[١]

## مشرکان ماتې خوري

خونړۍ جګړه روانه وه، کم شمير اسلامي لښکر حالات تر خپل کنترول لاندې راوستې وُو. په مشرکينو کې له هرې خوا ماتې ګډه شوه، داسې وارخطا وو لکه چې درې زره کسيزه لښکر يې له ديرش زره مسلمانانو سره مخ وي. مسلمانان د شمير او وسلې له کمښت سره سره په پوره ميړانه او پايمردۍ جنګيدل.

قريشو ډير زور وواهه چې د مسلمانانو مخه ونيسي حمله يې دفع کړي خو هيڅ يې هم ونه شوی کړای بې وسې شول، ارادې يې ماتې او پښې يې سستې شوې، زړونه يې ولويدل او په يوه کې يې هم دومره متره نه وه چې د صواب له لاس نه لويدلی بيرغ راپورته کړي. همدا وه چې د تيښتې لار يې ونيوله، ترپ يې له خرپ نه غوره وګاڼه. هغه د غچ انتقام، عزت او دبدبې، دا او هغه ټولې باتې، لاپې يې هيرې شوې له جګړې نه په منډه شول. ابن اسحاق وايي: الله تعالی مسلمانانو ته برى ور په برخه کړ، مشرکين يې د تورې په څوکه له ډګر نه وايستل، حتمي ماتې يې وربانديې ګډه کړه.

عبدالله د خپل پلار زبير (رضي الله عنهما) له خولې وايي: قسم په خدای چې ما هنده او نورې ښځې ليدلې چې جامې يې له پنډيو نه ورپورته کړې او د تيښتې په حالت کې وې، هيڅ څوک هم نه وو ورسره چې له اسارت او نيولو نه يې وژغورې.[١]

بخاري له براء بن عازب نه روايت کوي وايي: کله چې له مشرکينو سره مخامخ شوو، مات مو کړل او وتښتيدل، ليدل مې چې ښځې يې په ډيره بيړه تښتي او خپلې جامې يې دومره وربډ وهلې چې پايزيبونه يې ښه ښکاريدل.[٢] مسلمانان وريسې وو، مشرکين يې په تورو وهل او ورنه پاتې غنيمتونه يې راټولول.

---

[١]. فتح الباري ٧/ ٣٤۶
[١]. ابن هشام ٧٧/٢
[٢]. بخاري ٢/ ٥٧٩

## د غشو ويشتونکو ستره غلطي

پداسې حال کې چې اسلامي لښکر د بدر په شان د يوه بل عظيم او بی نظير بري او فتحې په درشل ولاړ وو، د هغه پنځوس کسيزې غشي ويشتونکې ډلې اکثريت يوه داسې غلطي کوي چې وضع او حالات پوره بدلوي مسلمانانو ته ډير تاوان اړوي، او د بدر په ډګر کې ګټل شوی هيبت او منزلت يې زيانمنوي. او تردې نه لويه دا چې نژدې وه همدا غلطي د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د شهادت سبب شي.
لکه مخکې مو چې يادونه کړيده رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دې غشو ويشتونکو ته په ډيرو کلکو الفاظو امر کړی ؤ چې خپل سنګر به نه پريږدي، د فتحې او ناکامۍ په دواړو حالاتو کې به پخپل ځای ټينګ پاته کيږي.
خو لدې جدي امر سره سره کله چې دوی وليدل مسلمانان د غنيمت مالونه راټولوي يو ځل يې په زړونو کې د دنيا مينه راښکاره شوه، يو بل ته يې وويل: غنيمت دی، غنيمت، راځئ مسلمانان بريالي شول نور د څه انتظار کوئ؟
خو قوماندان يې (عبدالله بن جبير) د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) اوامر ور په يادوي او ورته وايي: د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) اوامر مو هير کړل؟ خو زيات شمير يې دې يادونې ته غوږ نه ايښود او ويل يې نور مونږ ورځو تر څو خپله برخه غنيمت په لاس راوړو.[1] همدا وه چې څلويښت کسان غشي ويشتونکي له کنډو نه کوز شول او په نور لښکر ورګډ شول تر څو غنيمتونه را ټول کړي. اوس د مسلمانانو شا خالي وه يوازې عبدالله بن جبير له خپلو نهو ملګرو سره په ټينګ عزم پخپل ځای وو، او دا يې اراده وه چې تر هغې پورې به همدلته وي تر څو پورې ټول مړه شوي نه وي او يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) راغوښتي نه وي.

## خالد بن الوليد د اسلامي لښکر د محاصرې په تکل

خالد بن وليد لدې طلايي موقع نه پوره ګټه پورته کړه، په ډيره چټکۍ سره په مسلمانانو را تاو شو عبدالله بن جبير او ملګري يې له مينځه يووړل او په نورو

[1]. بخاري ۴۲۶/۱

مسلمانانو يې د شا له خوا بريد وکړ. آسونه يې داسې وشيشنيدل چې مشرکان پوه شول حالات بدل شويدي، نو هغوی هم په مسلمانانو مخ راوړاوه د علقمه الحارثيه لور عمره په ډېره چټکۍ د بيرغ خوا ته ورغله، له خاورو نه يې را پورته کړ. يو ځل مشرکين ورنه تاو شول، يو بل ته يې نارې کړې، راغونډ شول، او پدې ترتيب سره مسلمانان له شا او مخې نه د مشرکينو تر محاصرې لاندې راغلل.

## د محاصرې په وخت کې د رسول الله (ﷺ) ميړنی دريځ

پدې وخت کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له يوه نهه کسيز[1] ګروپ سره د لښکر په وروستۍ برخه کې و[2]، جګړه يې ځارله او کتل يې چې مسلمانانو مشرکين په مخه کړي دي، خو يو ناڅاپه د خالد سپرو بريد پرې وکړ، نو اوس يې يوازې دوې لارې په مخه کې وې لومړۍ دا چې په بېړه له خپل ګروپ سره کوم محفوظ ځای ته ځان وباسي او لښکر خپل قسمت او تقدير ته پريږدي، دويمه لار دا وه چې ژوند په خطر کې واچوي همدې ځای ته خپل اصحاب راوبولي يوه قوي جبهه ورنه جوړه کړي تر څو محاصره ماته او لښکر د احد غره ته وباسي.
همدلته يو ځل بيا د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) بې مثله ميړانه او عظمت ځرګنديږي، خپلو اصحابو، ته چيغه کوي: (**إلي عباد الله**). اې د خدای بندګانو! زما خوا ته راشئ! دا پداسې وخت کې چې ښه پوهيده چې دا نارې به له مسلمانانو مخکې مشرکين اوري، خو ددې پروا يې ونکړه ځان يې خطر ته ورکړ، خپل اصحاب يې راوبلل، او د همدی غږ په اوريدو سره مخکې لدينه چې مسلمانان راورسيږي مشرکين متوجه شول او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته يې ځانونه ورسول.

## د مسلمانانو ماتې

کله چې مسلمانان د دښمن تر محاصرې لاندې راغلل، نو يو شمير دومره وارخطا او بې واره شول چې له ځان نه پرته هر څه ورنه هير شول، د جګړې ميدان يې پريښود د تيښتې لاره يې ونيوه. ځنې مدينې ته ورسيدل نور يې د غره څوکې ته وختل، يو شمير نور بيرته شاته راوګرځيدل او له مشرکانو سره داسې ګډ شول چې کافر له مسلمان

[1]. صحيح مسلم ١٠٧/٢.: رسول الله (ص) د احد په ورځ له (٧) انصارو او (٢) قريشو سره ګوښې پاتې شوی و..
[2]. پدې د الله تعالی دا قول دلالت کوي (( الرسول بدعوکم في اخراکم)) ( ال عمران/ ١٥٣)

څخه نه پیژندل کیده تردې حده چې مسلمانانو یو بل سره ووژل. بخاري له عایشې (رضي الله عنها) نه روایت کوي وایي: د احد په ورځ لومړی مشرکانو ماتې وخوړه، په همدې وخت کې شیطان چیغه وکړه اې د خدای بندګانو شا ته متوجه اوسئ یعنې له دیخوا نه ځانونه وساتئ، همدا وه چې د ړومبنۍ لیکې کسان را وګرځیدل او له وروستۍ لیکې سره په جګړه شول. حذیفه کتل چې پلار یې د مسلمانانو تر حملو لاندې دی چیغه یې وکړه اې د الله بندګانو دا زما پلار دی! دا زما پلار دی! خو چا وا نه وریدل او هغه مسکین یې وواژه. حذیفه وویل: خدای دې تاسې و بښي.[1]
عروه وایي: په خدای قسم چې په حذیفه کې تر مرګ ورځې خیر موجود ؤ. ددې ډلې په مینځ کې یو ډول هرج و مرج را پیدا شو، خلک یې بې نظمه شول، له ډیرو نه لاره ورکه شوه نه پوهیدل په کومه خوا ولاړ شي. په همدې وخت کې یو چا په لوړ آواز غږ وکړ چې محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په قتل ورسید. همدا وه چې هغه پاتې نور هم له خوده ووتل، مورال یې مات شو، زړونه یې ولویدل، ډیرو له بې وسۍ او سستۍ نه وسله وغورځوله جنګ یې بند کړ د ځینو په زړونو کې دا وګرزیدل چې لاړ شي له عبدالله بن ابي سره یو ځای شي تر څو هغه ورته له ابو سفیان نه امان واخلي.
انس بن النضر راغی او دا کسان یې ولیدل ورته ویې ویل د څه انتظار کوئ؟ دوی ورته وویل: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په شهادت رسیدلی، (حیران یو څه وکړو)! ده ورته وویل: نو اوس ژوندون څه کوئ، پورته شئ او په هغه څه ځانونه ووژنئ په کوم چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ځان په شهادت ورساوه. او زیاته یې کړه: اې خدایه! زه ددې مسلمانانو له کړو نه عذر او بښنه غواړم، او د مشرکانو له کړو نه برائت اعلانوم. بیا مخکې لاړ تر څو د سعد بن معاذ سترګې پرې ولګیدی غږ یې پرې وکړ چیرته یا ابو عمره؟ انس ورته وویل: آه دا د جنت بوی چې د احد له خوا راځي، بیا همداسې وړاندې لاړ او تر هغې وجنګید تر څو په شهادت ورسید. او دومره ګوزارونه یې خوړلي وو چې د جګړې په پای کې نه پیژندل کیده، خو خور یې د ګوتو له بندونو نه وپیژانده، په بدن یې له اتیاوو نه زیات د

---

[1]. بخاري ۱/ ۵۳۹ – ۲/ ۵۸۱ او نور روایتونه وایي چې رسول الله (ص) وغوښتل حذیفه ته دده پلار دیت ورکړي خو حذیفه په ځواب کې ورته وویل: دا دیت دې زما له خوا د مسلمانانو لپاره صدقه شي، نو رسول الله (ص) نور هم ورنه راضي شو، سیره الرسول للشیخ النجدي ص ۲۴۶.

نيزې، تورې، او غشي تېپونه وو.[۲]

همدا راز ثابت بن دحداح هم خپل قوم ته غږ وکړ چې اې انصارو! که چيرې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وژل شوی وي، نو خدای خو حي (ژوندي) دی او نه مري، پورته شئ په دين وجنګيږئ، الله مو حامي او ناصر دی. همدا وه چې يوه ډله انصار ور پورته شول او په ګډه يې د خالد بن وليد په ګروپ حمله وروړه او تر هغې ورسره و جنګيدل تر څو خالد بن وليد هغه په نيزه سره په شهادت ورساوه او نور ملګري يې هم ټول ورسره شهيدان شول.[۱]

له مهاجرينو نه يو کس وليدل چې يو انصاري پخپلو وينو کې لت و پت پروت دی، مهاجر ورته وويل: فلانيه! خبر يې چې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په قتل رسيدلی دی؟ انصاري ځواب ورکړ او ويې ويل: که محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وژل شوی وي، نو خپل مسووليت يې ادا کړ، اوس تاسې پخپل دين ننګ وکړئ او وجنګيږئ.[۲]

همدا بې مثاله ميړانه او ډاډ ګيرنه ددې سبب شوه چې يو ځل بيا د مسلمانانو زړونه پورته شي په خود راشي، عقل يې بيرته سر ته ورشي. نور يې له منافقينو سره د يو ځای کيدو فکرونه پرېښوول خپلې وسلې يې بيرته راپورته کړې او په مشرکينو يې ورودانګل. پدې وخت کې پدې هم پوه شول چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د مرګ خبر دروغ دی، پدې نور هم تقويه او زړه ور شول، په مشرکينو ورولويدل، ډير سخت وجنګيدل او په پای کې پدې بريالي شول چې له محاصرې نه ووزي او د قيادت مرکز ته ځان ورسوي.

د مسلمانانو دريمه ډله داسې وه چې يوازې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په غم کې وه او په هيڅ شي کې يې فکر نه کاوه، ان د محاصرې له پيل نه يې ځانونه خپل لاربښود (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ورسول. ددې ډلې په سر کې ابوبکر، عمر، علي او نور (رضي الله عنهم) وو، دوی د جګړې په لومړۍ کرښه کې وو، خو کله چې پوه شول د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ژوند په خطر کې دی نو سمدستي ورته راتاو شول او له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه د دفاع په خط کې ودريدل.

---

(2). زاد المعاد ۲/ ۹۳ – ۹۶ . بخاري ۲/ ۵۷۹

[۱]. السيرة الحلبية ۲/ ۲۲

[۲]. زاد المعاد ۲/ ۹۶

## د رسول الله (ﷺ) په شاو خوا کې سخته جګړه

پداسې حال کې چې تر اسلامي لښکر د محاصرې کړۍ راتاویده او مسلمانان د مشرکینو د حملو تر مینځ داسې واقع شوي وو لکه د ژرندې د دوو پلو تر مینځ، د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) شا و خوا ته سخته جګړه روانه وه. او لکه مخکې مو چې وویل د محاصرې په پیل کې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره یوازې (۹) کسان موجود وو، خو کله یې چې مسلمانانو ته غږ وکړ او وې‌ی فرمایل: (**هلموا إلي، أنا رسول الله**). زما خوا ته راشئ، زه رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یم!

مشرکانو دا غږ واورید رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یې وپیژانده وربانديې را تاو شول (ځکه د دوی تر مینځ ډیره کمه فاصله وه) حمله یې وربانديې وکړه او مخکې لدینه چې نور مسلمانان راورسیږي مشرکینو خپل ټول زور په کار واچاوه تر څو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ځان ورسوي. همدلته له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره موجود نهه کسان په ډیره میړانه او غیرت دفاع کوي او د مشرکینو په وړاندې دومره کلک مقاومت کوي چې د مینې، سرښندنې او میړانې په میدان کې یې مثال نه لیدل کیږي.

مسلم له انس بن مالک (رضي الله عنه) نه روایت کوي چې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره د احد په ورځ یوازې اوه کسان انصار او دوه قریش پاتې وو. کله چې جګړې ډیره سخته شوه او مشرکین را لنډ شول، نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (**من یردهم عنا وله الجنة ؟ أو هو رفیقي في الجنة ؟**). څوک به د دوی (مشرکینو) مخه ونیسي که دا کار چا وکړ د هغه لپاره جنت دی؟ او یا هغه به په جنت کې زما ملګری وي؟ د همدې خبرې په اوریدو سره یو انصاري را مخکې شو او تر هغې وجنګید تر څو په شهادت ورسید. جګړه لا پسې تودیده او مشرکین د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خوا ته را لنډیدل، یو، یو انصاري (رضي الله عنهم) په شهادت رسیده تر څو اوه واړه شهیدان شول پدې وخت کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هغو دوو قریشیانو

ته وفرمایل: (**ما أنصفنا أصحابنا**). مونږ له خپلو یارانو سره انصاف و نه شوای کړی.[1] د هغو اوو انصارو (رضي الله عنهم) آخرینی کس عماره بن یزید بن السکن وُ چې دومره وجنګید تر څو ټول زخمي زخمي شو او په ځمکه راپریوت.[2]

## د رسول الله (ﷺ) په ژوند کې تر ټولو سخته ګړۍ

د ابن السکن له لویدو نه وروسته له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره یوازې دوه تنه قریشیان پاتې وو. په بخاري او مسلم کې له ابو عثمان نه روایت دی وایي: د جګړې پدې ورځو کې یوه ورځ له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره یوازې طلحه بن عبیدالله او سعد بن ابي وقاص (رضي الله عنه) پاتې وو [1]. دا د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ژوند تر ټولو سخته ګړۍ وه، او همدا د مشرکینو لپاره یو طلایي چانس هم وُ. هغوی ټول زور په کار واچاوه تر څو لدې فرصت نه ګټه اوچته کړي ټولو د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په لوري حمله راوړه او کوښښ یې کاوه هغه مبارک له مینځه یوسي. عتبه بن ابي وقاص تیږه پورته کړه او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یې د مبارک مخ په یوه طرف وویشت او لاندینی ښی رباعي غاښ یې مات شو او لاندینۍ مبارکه شونډه یې هم زخمی شوه. عبدالله بن شهاب زهري ورمخکې شو او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یې په مبارکه تندۀ زخمي کړ. په همدې وخت کې یو بل بدبخت عبدالله بن قمئه چې په آس سپور راغی د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په مبارکه اوږه یې د توري دومره سخت ګوزار وکړ چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پوره یوه میاشت شکایت ورنه درلود، خو بیا هم د توري په ګوزار دده مبارک غبرګې زغرې پرې نه شوې، هغه بدبخت دشمن ورپسې بل د توري همدومره کلک ګوزار وکړ او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په مبارک مخ سترګې ته نژدې برابر شو او د زغره والې خولۍ دوې کړۍ یې د غومبوري په هډوکي کې ننوتې، هغه بدبخت له ګوزار سره دا هم وویل: دا دراواخله زه د قمئه زوی یم. په ځواب کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پداسې

---

(1). صحیح مسلم، باب غزوه احد ۲/ ۱۰۷

(2). له لږ ځنډ وروسته د مسلمانانو یوه ډله د رسول الله (ص) خواته راورسیده، مشرکین یې له عماره (رضي الله عنه) نه په شاتې کړل او عماره یې د رسول الله (ص) خواته راووړ، رسول الله (ص) هغه ته خپلې مبارکی پښې تکیه کړې او پداسې حال کې په شهادت ورسید چې مخ یې د رسول الله (ص) په مبارکه پښه ایښی وُ (ابن هشام ۲/ ۸۱)

[1] .صحیح البخاري ۱/ ۵۲۷،۲/ ۵۸۱.

حال کې چې وينې يې له مبارک مخ نه پاکولې ورته وفرمايل: الله تعالی دې ټوټې ټوټې کړه.[۲]

په بخاري کې روايت دی چې پدې غزا کې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) رباعي غاښ په شهادت ورسيد، مبارک سر يې زخمي شو، وينې ورنه روانې وې او ده مبارک (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) فرمايل: (**كيف يفلح قوم شجوا وجه نبيهم، وكسروا رباعيته، وهو يدعوهم إلى الله**). هغه قوم به څنګه کامياب شي چې د خپل نبي (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مخ يې زخمي کړ او رباعي غاښ يې ورمات کړ، پداسې حال کې چې نبي (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) هغوی د الله لوري ته رابولي، نو الله تعالی دا آيت را نازل کړ: ((**لَيْسَ لَكَ مِنْ الأَمْرِ شَيْءٌ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ فَإِنَّهُمْ ظَالِمُونَ**)) (آل عمران: ۱۲۸) . [ترجمه: نشته تا لره له امره هيڅ شی (بلكه الله اختيار لري (د هر شي) يا به رجوع وكړي (الله په قبلولو د توبې سره) په دوی باندې يا به عذابوي (الله) دوی پس بيشكه دوی ظالمان دي.]

طبراني روايت كوي چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پدې ورځ وفرمايل: (**اشتد غضب الله على قوم دموا وجه رسوله**). په هغه قوم دې الله (جل جلاله) لوی عذاب نازل کړي کوم چې د خپل رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مخ يې زخمي کړ، بيا څه وخت چپ پاتې شو ورپسې يې وفرمايل: (**اللهم اغفر لقومي فانهم لا يعلمون**).[۱] اې خدايه زما قوم ته ببښنه وکړه ځكه دوی نه پوهيږي.

همدا راز په صحيح مسلم کې روايت دی چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) فرمايل: (**رب اغفر لقومي فانهم لا يعلمون**)[۲] اې خدايه زما قوم ته مغفرت وکړه ځكه دوی نه پوهيږي. د قاضي عياض په الشفاء نومي كتاب کې راځي چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**اللهم اهد قومي فانهم لا**

---

[۲]. الله تعالی د رسول الله (ص) دا دعا قبوله کړه ابن عائذ روايت كوي چې وروسته لدې چې ابن قمئه له جنګ نه كور ته راستون شو، د خپلې رمی ليدو ته ورغی او هغه يې د غره په څوكه کې پيدا کړه او پكې ګډ شو په همدې وخت کې يوه ښكرور وزګوړي حمله ورباندې وکړه او په ښكرو يې وواهه او د غره نه يې د لاندې ورغورځاوه او ټوټې ټوټې شو ( فتح الباری: ۷/ ۳۷۳). د طبراني روايت وايي چې الله تعالی يو غرڅه ورباندې مسلط کړ او تر هغې يې په ښكرو واهه تر څو ټوټې ټوټې شو ( فتح الباری: ۷ / ۳۶۶ .

[۱]. فتح الباري ۷/ ۳۷۳

[۲]. صحيح مسلم باب غزوة احد ۱/۸۱

**يعلمون)**[۳]. خدايه! زما قوم ته هدايت وکړې ځکه دوی نه پوهيږي.

پدې کې هيڅ شک نشته چې مشرکينو کلکه اراده کړې وه رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په شهادت ورسوي، خو هغه دوه قريشيان سعد بن ابي وقاص او طلحه بن عبيد الله په دومره ميړانه، همت او غيرت وجنګيدل چې د مشرکينو دا شوم هدف يې له خاورو سره خاورې کړ. هغوی دواړه د عربو مشهور غشي ويشتونکي وو او پداسې ميړانه يې مقابله کوله چې په غشو سره يې حمله کوونکي مشرکين له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه په شاتګ ته اړ ايستل. سعد بن ابي وقاص (رضي الله عنه) ته خو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپله د غشو توبره خلاصه کړه او ورته ويې فرمايل: (**ارم فداك أبي وأمي**). وله زما مور او پلار له تا قربان! له همدې قول نه د سعد (رضي الله عنه) د مقام، اهليت او صلاحيت اندازه ښه څرګنديږي ځکه رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) بل هيڅا ته هم داسې ندې ويلي چې زما مور او پلار دواړه له تا قربان.[۱]

د طلحه بن عبيدالله (رضي الله عنه) په هکله نسائي له جابر نه، پر رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د مشرکينو ددې حملې او ورسره د څو انصارو د موجوديت په يادونې سره روايت کوي وايي: مشرکين رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته را ورسيدل، نو ده وفرمايل:(**من للقوم ؟**) څوک به د دوی مقابله وکړي؟ طلحه وويل: زه. جابر زياتوي: انصار ور وړاندې شول او لکه مخکې مو چې د مسلم شريف په روايت کې وليدل يو په بل پسې په شهادت ورسيدل کله چې انصار ټول شهيدان شول، نو طلحه ور مخکې شو. جابر وايي: بيا طلحه د يوولسو کسانو په شان جنګيده په همدې وخت کې په لاس ولګيد ،ګوتې يې پرې شوی او له خولې نه يې د حس يا آه آواز ووت. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: (**لو قلت: بسم الله، لرفعتك الملائكة والناس ينظرون**).که د بسم الله ويلې وای نو خلکو به درته کتل او ته به ملائکو اوچتولې. راوي وايي: بيا الله تعالی مشرکين په شا کړل[۲] حاکم په اکليل کې روايت کوي وايي چې طلحه (رضي الله عنه) د احد په ورځ (**۳۹**) يا پنځه ديرش ټپه خوړلي وو او د شهادت او لمنځۍ ګوتې يې شلې شوې وې.[۳]

بخاري له قيس بن ابي حازم نه روايت کوي وايي: ما وليدل چې د طلحه (رضي الله

---

۳ . كتاب الشفاء بتعريف حقوق المصطفى ۸۱/۱.

(۱). صحيح البخاري ۱/ ۴۰۷ – ۲/ ۵۸۰ – ۵۸۱

(۲). فتح الباري ۷/ ۳۶۱. سنن النسائي ۲/ ۵۲ – ۵۳

(۳). نفس المصدر الاول ۷/ ۳۶۱

عنه) لاس شل شوی ؤ، او په همدې لاس سره یې د احد په ورځ له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه دفاع کړې وه.[۴]

ترمذي روایت کوي چې پدې ورځ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د طلحه په هکله فرمایلي: (**من أحب أن ینظر إلی شهید یمشي علی وجه الأرض فلینظر إلی طلحة بن عبید الله**). که څوک غواړي چې داسې شهید ته وګوري چې ژوندی د ځمکې پر مخ ګرزي نو طلحه بن عبیدالله ته دې وګوري.[۱]

ابو داود الطیالسي له عائشې (رضي الله عنها) نه روایت کوي چې وایي: ابوبکر (رضي الله عنه) به چې کله د احد ورځ یادوله نو فرمایل به یې چې دا ورځ ټوله د طلحه ورځ ده.[۲]

همدارنګه ابوبکر دده په هکله ویلي:

**یا طلحة بن عبیدالله قد وجبت لك الجنان و بوات المها العینا**[۳]

**[اې د عبیدالله زویه طلحه تا ته جنت واجب شو او له حورو سره دې کور جوړ کړ.]**

په همدې سخته ګړۍ کې الله تعالی له غیبه خپل نصر را نازل کړ. په بخاري او مسلم کې له سعد نه روایت دی وایي: د احد په ورځ مې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ولید چې دوه داسې کسان ورنه دفاع کوي چې سپین کالي یې اغوستي او ډیر په میړانه جنګیږي، ما هغه کسان نه مخکې لیدلي وو او نه مې وروسته ولیدل. او په بل روایت کې راځي چې هغه دوه کسان جبریل او میکائیل(علیهما السلام) وو.[۴]

## د رسول (ﷺ) شاو خوا ته د اصحابو (رضي الله عنهم) راټولیدل

دا ټولې پیښې په ډیره چټکۍ او ناڅاپي توګه د سترګو په رپ کې ترسره شوې او که نه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) غوره جنګیالي اصحاب (رضي الله عنهم) چې د جګړې په لومړۍ کربنه کې وو د جګړې د حالت له بدلیدلو او د رسول الله

---

[٤]. صحیح البخاري ١/٥٢٧، ٢/٥٨١.

[۱]. مشکاه المصابیح ۲/ ۵۶۶. ابن هشام ۲/۸۶

[۲]. فتح الباري ۷/ ۳۶۱

[۳]. مختصر تاریخ دمشق ۷/ ۸۲ (من هامش شرح شذور الذهب ص ۱۱۴)

[٤]. صحیح البخاریی ۲/ ۵۸۰

(صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د آواز له اوریدو سره سم د خپل رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په لور په ډیر بیړه راو ګرزیدل تر څو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له څه نا ګواره پیښې سره مخ نه شي. خو دوی پداسې حال کې راورسیدل چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) زخمي شوی ؤ شپږ تنه انصار په شهادت رسیدلي او اووم په ځمکه زخمي پروت ؤ، سعد او طلحه په ډیره میړانه دفاع ورنه کوله او په جګړه بوخت وو، نو ټول له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه تاو شول خپل ځانونه او وسلې یې دده مبارک نه د دفاع پخاطر لکه دیوال داسې ورنه تاو کړې، د دښمن ګوزارونو ته یې ځانونه ډال کړل، حملې یې په شا وتمبولې. ابوبکر د غار ملګری یې لومړي شخص ؤ چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته یې ځان راورساوه.

ابن حبان له عائشه (رضي الله عنها) نه روایت کوي چې وایي: ابو بکر (رضي الله عنه) وویل: د احد په ورځ خلک ټول له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه لیرې شوي وو، زه لومړنی کس وم چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته بیرته راوګرزیدم، هلته مې ولیدل چې یو شخص دفاع ورنه کوي په جګړه بوخت دی، په زړه کې مې وویل چې دا به طلحه وي، مور او پلار مې ورنه قربان، په همدې وخت کې ابو عبیده بن الجراح را پسې راورسید هغه لکه د مرغه په شان تیز را روان ؤ، دواړو ځانونه رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ورسول که ګورو چې طلحه یې په مخکې لویدلې، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) راته وفرمایل: (**دونكم أخاكم، فقد أوجب**). د خپل ورور غم وخورئ ده ځانته جنت واجب کړ. د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مبارک مخ هم زخمي شوی ؤ د اوسپنیزې خولۍ دوې کړۍ یې په غومبوري کې ننبې شوې وې. ابوبکر (رضي الله عنه) وایي ما وغوښتل چې دا کړۍ یې له مبارک غومبوري نه راوباسم، خو ابو عبیده (رضي الله عنه) راته وویل: د خدای په روی ما پریږده چې دا کړۍ زه ورنه راوباسم! او پدې ترتیب هغه یوه کړۍ په خوله ټینګه ونیوله او ورو ورو یې را ایستله تر څو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په تکلیف نه شي، بالاخره یې یوه راوایستله خو پدې کوشش کې د ابو عبیده له ثنایا غاښونو نه یو غاښ هم ووت. ابوبکر وایي: بیا زه ورغلم چې هغه بله زه راوباسم، ابو عبیده بیا راته وویل: د خدای په روی ما پریږده چې راویې باسم، نو دوهمه یې هم په خوله راونیوله او ورو ورو یې راوایستله خو دا ځل یې بل غاښ هم ووت. بیا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: د خپل ورور غم وخورئ ده ته جنت واجب شو یا یې جنت ځانته واجب کړ.

ابوبکر وايي: بيا مو طلحه ته مخه کړه او درملنه مو يې پيل کړ له ديارلسو نه يې زيات زخمونه خوړلي وُ[1].
دا پدې ورځ په جګړه کې د طلحه د غيرت او شجاعت، همت او استعداد يو بل دليل دی.
په همدې سخته شيبه کې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تر شاو خوا يو شمير قهرمان اصحاب راغونډ شول، په دې ډله کې ابودجانه، مصعب بن عمير، علي بن ابي طالب، سهل بن حنيف، مالک بن سنان (د ابو سعيد الخدري پلار)، ام عماره نسيبه بنت کعب المازنيه، قتاده بن النعمان، عمر بن الخطاب، حاطب بن ابي بلتعه او ابو طلحه (رضي الله عنهم) شامل وو.

## د مشرکينو حملې تندې شوې

دلته د مشرکينو شمير لحظه په لحظه زياتيده او حملې يې تندې دې. په مسلمانانو فشار دومره زيات شو چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له هغو کندو نه په يوه کنده کې ولويد کومې چې ابو عامر الفاسق د همدې شرارت لپاره کيندلې وې، په مبارکه ګونډه کې يې وبرېښدل علي (رضي الله عنه) لاس ورکړ او طلحه بن عبيدالله په غيږ کې راونيو تر څو راپورته شو او ودريد. نافع بن جبير وايي: له مهاجرينو نه يوه کس به ويل: د احد په ورځ مې ليدل چې غشي له هر لوري را وريدل، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په مينځ کې وُ خو ټول به ورنه چپيدل (يعنې اصحابو به ورنه دفع کول) او په همدې ورځ مې عبدالله بن شهاب الزهري وليد چې ويل يې: محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) راوښاياست، اوس به يا زه ژوندی پاتې کيږم او يا هغه (صلی الله عليه وسلم)! دا پداسې حال کې چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې بالکل خوا ته وُ او هيڅوک هم نه وُ ورسره، خو هغه ورنه تير شو، صفوان ورباندې په قهر شو (چې ولې ورنه تير شوې) هغه په ځواب کې ورته وويل: قسم په خدای که مې ليدلی وي، قسم په خدای لکه چې هغه (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له مونږ نه ساتل شويدی. په دې پسې مونږ څلور کسانو عهد وکړ او د عبدالله په مرګ پسې ورمخکې شوو خو ونه توانيدو چې ويې

[1]. زاد المعاد ۲/ ۹۵

وژنو.[۲]

## بې مثاله قرباني او اتلولي

په دې ورځ مسلمانانو د قرباني او فدا کارۍ، ميړانې، اتلولۍ او سربازۍ په ډګر کې داسې قهرماني او کارنامې وکړې چې په تاريخ کې يې مثال نه ليدل کيږي. ابو طلحه (رضي الله عنه) ځان د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مخې ته لکه سپر داسې نيولی ؤ په خپله سينه يې د دښمن غشي ور نه دفع کول. انس (رضي الله عنه) وايي: د احد په ورځ خلک د ماتې په حال کې له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه بيل شول، خو ابو طلحه په داسې حال کې چې يو ډال ورسره ؤ د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مخې ته ولاړ ؤ، هغه ډير ماهر غشي ويشتونکی ؤ په ډير زور سره يې غشي ويشتل، په دې ورځ يې دوې يا درې ليندۍ ماتې کړې. دلته له مسلمانانو نه يو سړی چې د غشو توبره ورسره وه تيريده رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: (**انثرها لأبي طلحة**).غشي دې ابو طلحه ته واچوه. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به چې کله سر پورته کړ چې خلک ويني ابو طلحه به ورته ويل: مور او پلار مې درنه قربان سر مه اوچتوه هسې نه د دښمن کوم غشی درباندې برابر نه شي، زما غاړه ستا له غاړې قربان.[۱]

همدا راز انس (رضي الله عنه) روايت کوي چې ابو طلحه او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دواړو په يوه ډال له ځان نه دفاع کوله. ابو طلحه ډير ښه غشي ويشتل او کله به يې چې غشی وويشته نو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به سر اوچت کړ او کتل به يې چې غشی يې چيرته ولګيده.[۲]

ابو دجانه د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مخې ته ودريد خپله شا يې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ډال کړه، غشي به راتلل او ورباندې لګيدل به، خو دی به له ځايه نه خوځيده.

حاطب بن ابي بلتعه په عتبه بن ابي وقاص هغه چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مبارک غاښ يې شهيد کړی ؤ پسې شو، تعقيب يې کړ او د تورې داسې

(2). زاد المعاد ۲/ ۹۷
(1). صحيح البخاری ۲/ ۵۸۱
(2). نفس المصدر ۱/ ۴۰۶

ګوزار يې وربانديې وکړ چې سر يې بوټ وربانديې قلم کړ، آس او توره يې ورنه را واخيستل. سعد بن ابي وقاص ډير کوښښ وکړ چې خپل ورور عتبه ووژني، خو حاطب ورنه مخکې شو او د هغه کار يې ورجوړ کړ.

سهل بن حنيف يو ميړنی غشي ويشتونکی ؤ، له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره يې د مرګ بيعت وکړ او په ډيره ميړانه يې د مشرکينو په وړانديې مقابله کوله.

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پخپله هم غشي ويشتل. قتاده بن النعمان روايت کوي چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له خپلې ليندی نه دومره غشي وويشتل چې دا يوه څنډه يې بالکل نرۍ او يا ماته شوې وه، بيا همدا ليندی قتاده ورنه واخيستله او له همده سره وه. په همدې ورځ د قتاده سترګه ولګيده پوچه راووتله په مخ يې څړيدله، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پخپل مبارک لاس بيرته ور په ځای کړه جوړه روغه شوه ان تر دې چې همدا سترګه يې له بلې سترګې نه هم ګلالۍ وه او هم د تيز نظر درلودونکی.

عبدالرحمن بن عوف ډير په ميړانه جنګيده په خوله ولګيد او د مخې غاښ يې مات شو، له شلو نه زيات ټپونه يې وخوړل په پښه هم کلک ولګيد او له همدې نه بيا ګوډ شو. د ابو سعيد الخدري پلار مالک بن سنان د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د مبارک مخ له زخم نه وينې په خوله زبيښلې او تر هغې يې څټلې تر څو پاکې شوې. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: (مُجَّه).تو يې کړه. ده وويل قسم په خدای که يې تو کړم. بيا يې جګړې ته مخه کړه رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (من أراد أن ينظر إلى رجل من أهل الجنة فلينظر إلى هذا).څوک غواړي جنتي ته وګوري، نو ده ته دې وګوري. او هغه تر هغې پورې وجنګيد تر څو په شهادت ورسيد.

ام عماره هم په ډير لوړ همت جنګيده، د مسلمانانو له يوه ګروپ سره ابن قمئه ته ور مخکې شوه، ابن قمئه وربانديې د تورې ګوزار وکړ او اوږه يې ډيره ژوره ور زخمي کړه، دې هم پر ابن قمئه باندې څو مسلسل ګوزارونه وکړل، خو هغه دوې زغرې اغوستې وې، ژوندی پاتې شو، ام عماره همداسې په ميړانه جنګيده تر څو دولس ټپونه يې وخوړل.

مصعب بن عمير په ډيره ميړانه سربازي کوله له رسول الله (صلی الله عليه و اله و

صحبه و سلم) نه يې د ابن قمئه او نورو مشرکينو حملې په شا کولې او ځان يې د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په مخکې ډال جوړ کړی وُ، له ده سره د اسلامي لښکر بيرغ هم وُ. مشرکينو حمله ورباندې وکړه او ښی لاس يې ور پرې کړ، ده فورا بيرغ په چپ لاس کې ونيو او د مشرکينو مقابلې ته لکه غر داسې ولاړ وُ، بالاخره يې چپ لاس هم پرې شو، خو بيا يې هم نه غوښتل بيرغ په ځمکه پريوزي ځان يې ورباندې ورواچاوه په سينې او غاړې سره يې اوچت ساته تر څو په شهادت ورسيد. دده قاتل هم ابن قمئه وُ او داسې ګمان کاوه چې دا رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) دی، ځکه مصعب (رضي الله عنه) رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ډير ورته وُ او کله يې چې مصعب (رضي الله عنه) په شهادت ورساوه، نو ابن قمئه مشرکينو ته مخ کړ او چيغه يې وکړه چې محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په قتل ورسيد.[1]

## د رسول الله (ﷺ)د شهادت خبر او پر جګړه يې اغيزې

د ابن قمئه لدې چيغې سره د مشرکينو او مسلمانانو په مينځ کې د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د شهادت خبر خور شو. دا ډيره حساسه شيبه وه له رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه بيل او د مشرکينو له خوا محاصره شوي اصحاب (رضي الله عنهم) ډير وارخطا شول، ارادې يې کمزورې شوې، ګډوډې او بی نظمي پکې ګډه شوه، غمجن او پريشانه شول، خو پدې چيغې سره دا هم وشول چې د مشرکينو حملې څه نا څه کمې شوې، فشار يې څه کم غوندې شو، ځکه دوی دا وپتييله چې نور خپل هدف ته ورسيدل، يو شمير مشرکينو خو جګړه پريښوده او د شهيدانو په مثله کولو لګيا شول.

## رسول الله (ﷺ) جګړې ته ادامه ورکوي او حالات کنترولوي

کله چې مصعب (رضي الله عنه) په شهادت ورسيد رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) بيرغ علي (رضي الله عنه) ته وسپاره. علي (رضي الله عنه) او نور موجود اصحاب (رضي الله عنهم) ډير په ميړانه جنګيدل، دفاع يې کوله او په دښمن يې

[1]. ابن هشام ۲/ ۷۳- ۸۴. زاد المعاد ۲/ ۱۹۷

مرګوني ګوزارونه کول.
په همدې وخت کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وتوانید محاصره ماته کړي او خپل محاصره شوي لښکر ته لار وباسي. کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د خپل لښکر خوا ته ورغی لومړی د کعب بن مالک سترګې پرې ولګیدې ویې پیژانده او په لوړ آواز یې چیغه کړه: اې مسلمانانو! زیری مې درباندې، دا دی رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم). رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اشاره ورته وکړه چې چوپ شه. او دا هم پدې خاطر تر څو مشرکانو ته دده مبارک د موجودیت او ځای معلومات ونه شي، خو د کعب دا چیغه د مسلمانانو غوږونو ته ورسیده ټول ورته راتاو شول او تقریباً دیرش کسان یې شاو خواته راټول شول.
کله چې یو شمیر اصحاب راټول شول، نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په ډیره منظمه توګه د غره د درې خوا ته په شاتګ پیل کړ. او څرنګه چې لدې شاتګ نه هدف د محاصرې ماتول وُ، نو مشرکینو په ټول زور سره خپلې حملې جاري ساتلې او زیار یې یوست چې د مسلمانانو د شاتګ مخه ونیسي خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د مشرکینو حمله کوونکو په مینځ کې خپله لاره وایستله او مشرکین د اسلام د زمریانو په وړاندې بې بسه شول.
پدې وخت کې د مشرکینو یو سپور عثمان بن عبدالله بن مغیره د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په خوا را مخکې شو او ویل یې: یا به زه ژوندی پاتې کیږم او یا هغه (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یې د مقابلې لپاره مخې ته ودرید، خو د مقابلې نوبت را نغی ځکه د هغه مشرک آس په یوه کنده کې ولوید او فوراً حارث بن الصمه ورته راورسید او په پښه یې د تورې ګوزار پرې کړ ځای په ځای یې کیناوه او بیا یې هملته ستی کړ وسله یې ورنه را واخیستله او ځان یې بیرته رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ورساوه. پدې وخت کې د مشرکینو له لښکر نه یو بل سپور عبدالله بن جابر په حارث بن الصمه حمله وروړه په مټ یې په توره وواهه او کلک زخمي شو چې بیا مسلمانانو پورته کړ او یو یې ووړ. پدې وخت کې ابو دجانه هغه چې سره پټی یې په سر تړلې او له مرګ سره لوبیده راغی او د تورې په یوه وار سره یې د مشرک عبدالله بن جابر سر قلم کړ.
د خونړۍ جګړې پدې سختو شیبو کې په مسلمانانو د خوب غوټې هم راتللې او

لکه څرنګه چې قرآنکریم فرمايي دا خوب د الله له طرفه مسلمانانو ته امن او اطمينان وُ. ابو طلحه وايي: زه د احد په ورځ له هغه کسانو نه يو وم چې خوب ورباندې راته او داسې به خوب راباندې غالب شو چې څو ځله مې توره له لاس نه پريوته، بيرته به مې واخيسته، بيا به ولويده او وابه مې خيسته.[1]

په همدې قربانۍ او سربازۍ سره د مسلمانانو دا ګروپ په منظمه توګه د غره درې ته ورسيد او د نور لښکر لپاره يې د امن ځای ته لاره پرانيستله. پاته لښکر هم ورسره يو ځای شو او د خالد عسکري تدبير د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د عسکري تدبير په وړاندې ماتې وخوړه.

## د ابي بن خلف وژل

ابن اسحاق وايي: کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د غره دې درې ته تشريف يووړ، ابي بن خلف راغی او ويل يې: محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) چيرته دی؟ اوس به يا زه ژوندی پاتې کيږم او يا هغه! اصحابو وويل: يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)، اجازه راکوې کوم يو حمله ورباندې وکړو؟

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: پرې ايږدئ، کله چې رانژدې شو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له حارث بن الصمه نه يوه وړه نيزه واخيسته. کله يې چې نيزه واخيستله، نو په ډير زور سره راپورته شو او خلک داسې يوې بلې خوا ته ولويدل لکه چې اوښ ځان وخوځوي او د شا ويښتان يې ورنه باد شي. بيا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د هغه مخې ته ورغی د زغرې او خوز (اوسپنيزې خولۍ) تر مينځ د ورمير يوه برخه يې په نظر ورغله او په همدې ځای يې د نيزې داسې وار ورباندې وکړ چې څو ځله له آس نه را ونښوئيد. او کله چې نوموړی بيرته د قريشومشرکينو ته ورغی په غاړه يې لږ غوندې زخم و، وينه يې بنده شوې وه خو ويل يې: په خدای قسم چې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ووژلم! مشرکينو ورته وويل: زړه دې اچولی، ته خو څه زيات نه يې ټپي شوې! ده ورته وويل:محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ماته په مکه کې ويلي وُ چې زه دې

---

[1]. صحيح البخاري ۲/ ۵۸۲

وژنم،[۲] قسم په خدای که هغه را تو کړي نو هم وژني مې.
او همداسې وشوه نوموړی د خدای دښمن مکې ته د بیرته تلو په وخت په سرف نومي ځای کې مړ شو.[۱]
او له عروة نه د ابو الاسود په روایت کې راځي: نوموړی (ابي) به لکه غوېي داسې بغیده او ویل به یې: قسم په هغه ذات چې زما نفس یې په لاس کې دی که دا تکلیف (رنځ) چې په ما دی د ذي المجاز په ټولو اوسیدونکو لګیدلی وای، نو ټول به مړه شوي وو[۲].

## طلحه (رضي الله عنه) رسول الله (ﷺ) راپورته کوي

غره ته د شاتګ په دوران کې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مخې ته یوه لویه پرښه راغله، اراده یې وکړه چې وربانديې وخیژي، خو و نه توانید ځکه دغه وخت یې وزن هم څه زیات ؤ، زغرې یې هم دوې اغوستې وې او سخت زخمي شوی هم ؤ، نو طلحه بن عبید الله (رضي الله عنه) ورته ټیټ کې شو لاندې ورته کیناست او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په پرښه ورهسک شو او ویې فرمایل: (أوْجَبَ طلحةُ) [۳] طلحه جنت واجب کړ.

## د مشرکانو وروستۍ حمله

کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د غره په دره کې د قیادت او مشرتابه په مرکز کې ځای په ځای شو مشرکانو پخپلې وروستۍ حملې لاس پورې کړ تر څو مسلمانانو ته نور زیان هم وروآړوي. ابن اسحاق وایي: هغه وخت چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په دره کې ؤ د قریشو یو ګروپ د ابو سفیان او خالد بن ولید په مشرۍ غره ته راوخوت، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و

(2). دا کیسه داسې ده همدغه ابي به چې په مکه کی له رسول الله (ص) مخامخ شو نو ورته ویل به یې: اې محمده (ص) ما عود نومی یو آس ساتلې او هره ورځ (۷،۵۰) کیلو ګرامه دانه (جوار) ورکوم او په همدې آس به سپور وم او تا به وژنم، رسول الله (ص) به ورته فرمایل: بلکه زه به تا وژنم (ان شاء الله).
[۱]. ابن هشام ۲/ ۸۳ . زاد المعاد ۹۷/۲.
۲ . مختصر سیرة الرسول (ص) للشیخ عبدالله النجدي ص ۲۵۰.
[۳]. ابن هشام ۲/ ۸۶.

سلم) دعا وکړه او ويې فرمايل: يا خدايه! دوی له مونږ نه مه هسکوې، نه ښايي دوی له مونږ نه اوچت وي. په همدې سره عمر (رضي الله عنه) او يو ټولی مهاجرين مقابلې ته ورغلل او هغوی يې له غره نه کوز کړل.[۴]

په مغازي اموي کې روايت دی چې: مشرکان غره ته وختل، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سعد ته وويل: ارادې يې ور خاورې کړه. يعنې کوز يې کړه مخه يې ونيسه! سعد وويل: په يوه ځان يې څنګه مخه ونيسم او څنګه يې حوصلې ورټيټی کړم؟ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپله خبره درې ځله تکرار کړه، نو سعد له خپلې توبرې نه يو غشی راواخيست يو سړی يې پرې وويشت او ويې واژه. سعد وايي: بيا مې همغه غشي راواخيست ښه مې پيژانده بل کس مې ورباندې وويشت هغه مې هم ستې کړ، دريم ځل مې بيا همغه غشی راواخيست ښه مې پيژانده او دريم کس مې ورباندې وواژه، نور مشرکان ټول له غره نه کوز شول، نو ما له ځان سره وويل: چې دا مبارک غشی دی، همغه مې پخپله توبره کې واچاوه.

سعد (رضي الله عنه) همدا غشی د مرګ تر ورځې له ځان سره ساته او له ده وروسته يې له زامنو سره وُ. [۱]

## د شهيدانو مثله کول

د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په خلاف دا د مشرکينو وروستۍ حمله وه. د هغوی ګمان دا وُ چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په شهادت رسيدلی، نو خپل مرکز ته ورغونډ شول او مکې ته د تګ تياري يې پيل کړه. ځنې مشرکين او ورسره مشرکې ښځې د شهيدانو په مثله کولو بوخت شول، د هغوی غوږونه، پزې، او تناسلي غړي يې ورنه پرې کول، خېټې يې څيرلې. هند بنت عتبه د حمزه (رضي الله عنه) سينه څيره کړه ينه يې را پرې کړه او په خوله يې کړه، خو تيره يې نه شوی کړی بيرته يې تو کړه، او مشرکينو ښځو لدې پرې شويو غوږونو او پزو نه آميلونه او پازيبونه جوړ کړل.[۲]

## قهرمان مسلمانان تر پايه د جګړې تياري لري

---

[۴]. نفس المصدر.

[۱]. زاد المعاد ۲/ ۹۵

[۲]. ابن هشام ۲/ ۹۰

د جګړې په وروستیو شیبو کې دوې داسې پېښې وشوې چې د مسلمانانو همت او قهرماني په ګوته کوي او دا ښيي چې هغوی د خدای په لار کې هر ډول قربانۍ ته آماده وو:

۱- کعب بن مالک (رضي الله عنه) وايي: زه له هغو مسلمانانو نه یو وم کوم چې د غره له درې نه راووتلو، کله مې چې ولیدل مشرکین لګیا دي مسلمان شهیدان مثله کوي، نو ودریدم او بیا روان شوم که ګورم چې یو مشرک چې زغره یې اغوستې په مسلمانانو شهیدانو تیریږي او وايي: دوی خو لکه د ذبح شویو پسونو په شان ټوټې ټوټې ډیرې پراته دي!! او یو مسلمان چې زغره یې په ځان کې ده دده لاره څاري انتظار یې کوي، زه وریسې ورغلم او بیا مې دواړو مسلمان او کافر ته په ځیر وکتل چې کوم یې قوي او کوم یې کمزوری دی او دا مې وپتییله چې دا کافر د وسلې او ساز و سامان له پلوه ورنه مخکې دی، خو همداسې ورته ګورم تر څو دواړه سره ونښتل، مسلمان داسې یو ګوزار ورباندې وکړ چې دوه شقه یې کړ له سر نه تر پښو پورې دوې ټوټې شو او بیا همدې قهرمان مسلمان خپل مخ لوڅ کړ او راته ویې ویل: څنګه ګوزار و اې کعبه؟ زه ابو دجانه (رضي الله عنه) یم.[1]

۲- د جګړې په پای کې یو شمیر مسلمانې ښځې د جنګ میدان ته راغلې. انس (رضي الله عنه) وايي ما عائشه بنت ابی بکر او ام سلیم (رضي الله عنهم) ولیدلې چې بډې یې وهلې او د پښو پازیبونه یې ښکاري، پخپلو اوږو د اوبو مشکونه راوړې او د خلکو په خولو کې یې ورخالي کوي، بیا ځي او بیرته یې را ډکوي، راوړي یې او د خلکو په خولو کې یې ورخالي کوي[2]. عمر (رضي الله عنه) وايي: ام سلیط (رضي الله عنها) به د احد په ورځ زمونږ لپاره ډک ډک مشکونه راوړل[3].

او لدې مسلمانو ښځو نه یوه هم ام ایمن وه کله یې چې ځنې ماتې خوړلي مسلمانان ولیدل چې د مدینې په لور روان دي، مخونو ته يې خاورې وروشیندلې او ځینو ته به یې ویل: واخله دا د سنیو څرخ واخله او توره دې ماته راکړه! بیا ام ایمن په ډیره بیړه د جګړې میدان ته لاړه او زخمیانو ته یې اوبه ورکولې چې حبان بن ابي العرقه په غشي وویشتله ولویده او بې پردې شوه، د خدای دښمن ورته په خندا شو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته دا ډیره سخته ښکاره شوه سعد بن ابي وقاص ته یې

---

(۱). البدایة والنهایة ۱۷/٤.
۲ . صحیح البخاري ٤۰۳/۱، ۵۸۱/۲.
۳ . نفس المصدر ٤۰۱/۱.

یو داسې غشی ورکړ چې نوک یې هم نه وُ او ورته ویې فرمایل: (**ارم به**). وله! سعد غشی ورخوشی کړ او د حبان په غاړه ولګید، د شا په تخته ولوید او بې ستره شو، نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) داسې وخندل چې ان نواجذ (ز ا م ې) غاښ یې ښکاره شول او ویې فرمایل: (**استقاد لها سعد، أجاب الله دعوته**). سعد د ام ایمن انتقام او پور واخیست، الله تعالی ي ې دې سوال قبول کړي.[(۱)]

## په دره کې له ځای په ځای کیدو وروسته

کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په دره کې د ننه پخپل مرکز کې ځای په ځای شو، نو علي بن ابي طالب (رضي الله عنه) لاړ او خپل ډال یې له مهراس نه ډک کړ (ځنې وایي مهراس په احد کې د یوې چینې نوم دی او ځنې نور وایي مهراس داسې یوې پرښې ته وایي چې مینځ یې ژور وي او ډیرې اوبه پکې غونډیږي) په هر حال هغه خپل ډال له اوبو نه را ډک کړ او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته یې راوړ تر څو اوبه ورنه وڅښي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) چې اوبه ولیدې یو ډول بوی یې درلود، نو ویې نه څښلې خو خپل مبارک مخ یې ورباندې ومینځلو، پاکې وینې یې ورنه پاکې کړې او یوه اندازه یې په مبارک سر واچولې او فرمایل یې: (**اشتد غضب الله على من دَمَّى وجه نبيه**).

د الله تعالی لوی عذاب دې پر هغه چا وي چې د الله د رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مخ یې وینې کړ.[(۲)]

سهل (رضي الله عنه) وایي: قسم په خدای چې زه هغه کسان ښه پیژنم چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) زخمونه یې ومینځل په سر یې اوبه ور واچولې او دا ښه راته معلومه ده چې په څه شي دده مبارک تداوي وشوه؟ د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لور فــا طم ې (رضي الله عنها) یې سر مینځه او علي (رضي الله عنه) له ډال نه اوبه ورباندې اچول ې، کله چې فاطمې (رضي الله عنها) ولیدل چې په اوبو سره وینه نه دریږي همداسې روانه ده، نو د پوزي (بوریا) یوه ټوټه یې وسیځله او په زخم یې ور واچوله او په همدې سره ي ې وینه ودریده.[(۳)]

محمد بن مسلمه (رضي الله عنه) ډیری پاکې او خوږې اوبه راوړې، رسول الله (صلی

(۱). السیرة الحلبیة ۲/ ۲۲
(۲). ابن هشام ۲/ ۸۵
(۳). صحیح البخاري ۲/ ۵۸٤

الله عليه و اله و صحبه و سلم) وخښل ي او د خير دعا يې ورته وکړه[۴].
رسول الله (صلی الله عليه وسلم) د زخمونو له امله د ماسپښين لمونځ په ناستي وکړ او مسلمانانو هم په ناسته لمونځ ورپسې ادا کړ.[۱]

## د ابو سفيان پسخند او له عمر (رضي الله عنه) سره خبرې

وروسته لدې چې مشرکينو د بيرته تګ تياري مکمله کړه ابو سفيان غره ته پورته شو او چيغه يې کړه: آيا محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ستاسې په مينځ کې شته؟ مسلمانانو ځواب ورنکړ. بيا يې چيغه کړه: ابن ابي قحافه شته؟ مسلمانانو ځواب ورنکړ. بيايې چيغه کړه: عمر بن الخطاب شته؟ مسلمانانو بيا هم ځواب ورنکړ، ځکه رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) هغوی له ځواب ورکولو نه منع کړي وو. ابو سفيان له دوی درېو پرته د بل چا پوښتنه ونکړه، ځکه هغه پوهيده چې د اسلام قيام په همدې درېو پورې تړلی دی. پدې پسې ابو سفيان وويل: ځه له دې درېو نه خو خلاص شوو. دلته عمر (رضي الله عنه) صبر ونه شوای کړی او په ځواب کې يې ورته وويل: اې د الله دښمنه دا درې واړه چې تا ياد کړل ژوندي دي، او الله هغه څه پرې ايښي دي چې ستا د خفګان او رسوايۍ سبب به کيږي! ابو سفيان وويل: ستاسې مړي مثله شوي، خو ما ددې نه امر کړی او نه مې دا کار غندلی او بد ګڼلی دی. او زياته يې کړه: (اعلی هبل) يعنی هبل لوړ دی. پدې وخت کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل:(ألا تجيبونه؟). ځواب يې نه ورکوئ؟ اصحابو (رضي الله عنهم) وويل: څه ورته ووايو؟ ده وفرمايل: (قولوا: الله أعلی وأجل). ووايئ: الله تعالی له ټولو نه لوړ او لوی دی.ابو سفيان بيا وويل: مونږ عزی لرو او تاسې يې نلرئ.رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (ألا تجيبونه؟). آيا ځواب يې نه ورکوئ؟ اصحابو (رضي الله عنهم) عرض وکړ څه ورته ووايو؟ ده وفرمايل: (قولوا:الله مولانا، ولا مولی لکم). ووايئ: الله زمونږ مولی دی او تاسې مولی نلرئ.

ابو سفيان وويل: څومره ښه کار وشو، نن ورځ د بدر د ورځې بدله ده، په جنګ کې خو

(٤). السيره الحلبيه ٢/ ٣٠
(١). ابن هشام ٢/ ٨٧

کله مـا تې او کله برى حتمى دى. عمر (رضي الله عنه) په ځواب کې ورته وايي: نه، برابر ندي، زمونږ مړي په جنت کې دي او ستاسې مړي په دوزخ کې.
پدې پسې ابو سفيان زياته کړه: اې عمره (رضي الله عنه)! راشه ما ته لږ راشه. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: (**ائته فانظر ما شأنه؟**). ورشه وګوره چې څه وايي؟ عمر (رضي الله عنه) ورغی. ابوسفيان ورته وويل: د خدای په روی راته ووايه چې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مو وژلی دی که نه؟ عمر (رضي الله عنه) ورته وويل: نه، والله نه، هغه همدا اوس ستا خبرې اوري. ابو سفيان ورته وويل: ته زما په نزد له ابن قَمِئَة نه ډير رښتينی او غوره يې.[1]

## د بدر په ميدان کې د يوې بلې مقابلې وعده

ابن اسحاق وايي: کله چې ابو سفيان او لښکر بيرته تلل نو داسې يې وويل: په راتلونکي کال کې مو د بدر په ميدان کې د يوې بلې مقابلې وعده ده درسره. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يوه صحابي ته وويل: (**قل: نعم، هو بيننا وبينك موعد**).ورته ووايه سيي ده، دا به زمونږ او ستاسې تر مينځ وعده وي.[2]

## د مشرکانو د دريځ او پلان په هکله تحقيق

بيا رسول الله (صلی الله عليه و اله و سلم) علي (رضي الله عنه) ته امر ورکړ چې: (**اخرج في آثار القوم فانظر ماذا يصنعون؟ وما يريدون؟ فإن كانوا قد جَنَبُوا الخيل، وامْتَطُوا الإبل، فإنهم يريدون مكة، وإن كانوا قد ركبوا الخيل وساقوا الإبل فإنهم يريدون المدينة. والذي نفسي بيده، لئن أرادوها لأسيرن إليهم فيها، ثم لأناجزنهم**).
لاړ شه وګوره مشرکين څه کوي؟ څه اراده لري؟ [وګوره که دې وليدل په اوښانو سپاره دي او آسان يې همداسې ورسره روان کړيدي، نو پوه شه چې د مکې لورته روان دي او که په آسانو سپاره وو او اوښان يې همداسې ورسره روان کړي وو، نو بيا پوه شه چې دوی د مدينې په لور روان دي، قسم په هغه ذات چې زما مرګ او ژوند دده په واک کې دی که د مدينې اراده يې وکړه ورپسې ورځم به او دړې وړې کوم به يې.] علي

(1). ابن هشام ۲/ ۹۳ – ۹۴ ، زاد المعاد ۲/ ۹۴ صحيح البخاري ۲/ ۵۷۹
(2). ابن هشام ۲/ ۹۴

(رضي الله عنه) وایي: زه وریسې ورغلم تر څو په حالاتو ځان خبر کړم هلته مې ولیدل چې په اوښانو سپاره او آسان یې همداسې ورسره د مکې په لور روان کړي وو.[۳]

## د شهیدانو او زخمیانو کتل

د مشرکینو له ستنیدو وروسته مسلمانانو ته ددې فرصت په لاس ورغی چې د خپلو شهیدانو او زخمیانو خبر واخلي. زید بن ثابت (رضي الله عنه) وایي: د احد په ورځ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ولیږلم تر څو سعد بن الربیع (رضي الله عنه) ولټوم او امر یې راته وکړ: (**إن رأيته فأقرئه مني السلام، وقل له: يقول لك رسول الله صلى الله عليه وسلم: كيف تجدك؟**).که د سعد ولید، نو سلام مې ورته وایه او پس له سلام دا ورتهووایه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) درته وایي چې ځنګه یې؟ زید (رضي الله عنه) زیاتوي زه لاړم او د شهیدانو په مینځ کې ګرزیدم تر څو سعد ته ورسیدم که ګورم چې هغه خپل آخریني نفسونه باسي، د ځنکدن په حال کې دی، د تورو، غشو او نیزو اویا ګوزارونه یې خوړلي. ورته مې ویل: سعده! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سلام درباندې وایي او پوښتنه دې کوي چې ځنګه یې؟ ده راته وویل: په رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دې سلامونه وي او زما له خوا نه ورته عرض کړه چې یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! د جنت خوشبویي مو تر سږمو کیږي، او زما قوم انصارو ته ووایه: که د تاسې یو کس هم ژوندی وي او دښمن پدې وتوانیږي چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ځان ورسوي، نو د خدای په وړاندې به عذر ونلرئ! په همدې وخت کې یې روح له مبارک بدن نه ووته او له فاني دنیا نه یې سترګی پټې کړې.[۱]

خلکو د زخمیانو په مینځ کې اصیرم (عمرو بن ثابت) هم وموند لدینه مخکې به یې چې هغه ته د اسلام بلنه ورکوله ده به نه منله او اسلام به یې نه قبلاوه. له همدې امله خلک حیران شول چې اصیرم دلته څه کوي او ځنګه راغلی؟ هغه خو په اسلام نه ؤ مشرف شوی، پوښتنه یې ورنه وکړه: ځنګه او ولې دلته راغلی یې؟ له خپل قوم نه د دفاع پخاطر راغلی یې او که له اسلام سره د مینې په اساس؟ ده په ځواب کې ورته

(3). ابن هشام ۲/ ۹۴ په فتح الباري کې روایت دی چې سعد بن ابي وقاص (رضي الله عنه) د قریشو د احوال معلومولو په خاطر وریسې ورغلی ؤ ۷/ ۳۴۷.

(1). زاد المعاد ۲/ ۹۶

وویل: زه له اسلام سره د میني پخاطر دلته راغلی یم، ما په الله او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ایمان راوړی او له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه د دفاع پخاطر دومره وجنګیدم چې حالت مې تاسې ګورئ، په همدې خبره یې سترګې پټې شوې. هغوی دا خبره بیا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ورسوله، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (**هو من أهل الجنة**). هغه جنتي دی. ابو هریره (رضي الله عنه) وایي: دا پداسې حال کې چې یو لمونځ یې هم نه ؤ کړی.[1]

د زخمیانو په ډله کې قُزْمَان هم ؤ چې د زمري په شان جنګیدلی ؤ اوه یا اته تنه مشرکان یې وژلي وو، خو اوس د زخمونو له وجې پروت ؤ مسلمانانو را اوچت کړ او د بني ظفر محلې ته یې یووړ او زیري یې ورکول خو ده ورته وویل: قسم په خدای چې زه صرف د خپل قوم د ناموس پخاطر جنګیدلی یم او که دا نه وای نو هیڅ جګړه به مې نه وی کړې! او کله یې چې د زخمونو دردونه زیات شول نو ځان یې پخپله حلال کړ او خودکشي یې وکړه.

کله به یې چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په حضور کې یادونه وشوه، نو فرمایل به یې: (**إنه من أهل النار**)؛ هغه دوزخي دی.[2]

او دا د هر هغه چا جزا او سزا ده چې د قوم او یا بل کوم دنیوي غرض په خاطر جنګیږي او وژل کیږي. هر څوک چې د الله له رضا نه پرته بل هدف ولري که څه هم د مسلمانانو په لښکر کې ومري او ان که د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په لښکر او د اصحابو په مینځ کې هم وي جزا یې همغه ده چې د قزمان وه.

ددې په خلاف د شهیدانو په مینځ کې د بني ثعلبه د یهودانو یو کس هم ؤ، کله چې د جګړې خبرې کیدلې هغه خپل قوم ته ویلي ؤ: اې یهودانو! قسم په خدای چې تاسې ښه پوهیږئ چې د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مرسته او مدد په تاسې فرض دی. دوی ورته وویل: نن خو د هفتې ورځ ده. ده ورته وویل: د تاسې لپاره کومه هفته نشته، بیا یې خپله توره او وسله واخیسته او ویې ویل: که زه مړ شوم، نو مال مې ټول د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دی، هر څنګه یې چې زړه وي هغسې دې وکړي. بیا د جګړې ډګر ته ننوت او تر هغې پورې وجنګید تر څو ووژل شو،

---

[1]. نفس المصدر ۲/ ۹۴. ابن هشام ۲/۹۰

[2]. نفس المصدر الاول ۲/ ۹۷ – ۹۸ ابن هشام ۲/ ۸۸

نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**مُخَيرِيق خير يهود**).مخيريق غوره يهودی و.[۳]

## د شهيدانو را غونډول او د فن کول

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپله د شهيدانو ليدلو ته ورغی او ويې فرمايل: (**أنا شهيد على هؤلاء، إنه ما من جريح يُجْرَح في الله إلا والله يبعثه يوم القيامة، يَدْمَي جُرْحُه، اللون لون الدم، والريح ريح المِسْك**).زه د دوی شاهد يم. حقيقت دا دی هر څوک چې د خدای په لار کې زخمي کيږي، الله تعالی يې د قيامت په ورځ پداسې حال کې بيرته را ژوندی کوي چې له زخم نه به يې وينې روانې وي رنګ به يې د وينو وي، خو بوی به يې د مشکو بوی وی.][۱]

ځينو اصحابو (رضي الله عنهم) خپل شهيدان مدينې ته وړي وو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر وکړ چې هغوی بيرته راوړي او د شهادت په ځای کې دې دفن شي، غسل دې نه ورکوي او له خپلو جامو سره دې خاورو ته وسپارل شي، خو ا وسپنې او پوستې شيان دې ورنه ليرې کړی شي. دا شهيدان به دوه دوه او يا دری دری په يوه قبر کې دفن کيدل او دوه دوه شهيدان به يې په يوه جامه کې سره پټول او فرمايل به يې: (**أيهم أكثر أَخْذًا للقرآن؟**).کوم يو يې ډير په قرآن پوه وٴ؟ خلکو به چې هر يوه ته اشاره وکړه همغه به يې په لحد کې له هغه بل نه مخکې کړ او فرمايل به يې: (**أنا شهيد على هؤلاء يوم القيامة**).د قيامت په ورځ به زه د دوی شاهد وم. عبدالله بن عمرو بن حرام او عمرو بن الجموح (رضي الله عنهما) چې دواړه سره دوستان وو په يوه قبر کې دفن شول.[۲]

پدې وخت کې د حنظله (رضي الله عنه) مبارک جسد نه و مسلمانان وريسې وګرزيدل که ګوري چې يو ځای په ځمکه ايښودل شوی او اوبه ورنه څاڅي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپلو اصحابو (رضي الله عنهم) ته وفرمايل چې دا دي ملائکې ده (حنظله) ته غسل ورکوي. او بيا يې وفرمايل: (**سلوا أهله ما شأنه؟**). دده

---

[۳]. ابن هشام ۲/ ۸۸ - ۸۹

(1). نفس المصدر ۲/ ۹۸

(2). . زاد المعاد ۲/ ۹۸ صحيح البخاري ۲/ ۵۸۴

له کورنۍ نه پوښتنه وکړئ چې څه خبره ده؟هغوی یې له ښځې نه پوښتنه وکړه. هغې کیسه ورته وکړه، او له همدې ځایه حنظله په غسیل الملائکه مشهور شو.[3]

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) چې کله د خپل تره او رضاعي وروره حمزه (رضي الله عنه) حال ولید بې حده زیات خفه شو، تروری یې صفیه (رضي الله عنها) هم راغله چې خپل شهید ورور حمزه (رضي الله عنه) وګوري، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم یې زوی زبیر (رضي الله عنه) ته وویل چې مور دې بیرته بوزه تر څو خپل ورور حمزه (رضي الله عنه) پدې حالت و نه ګوري! خو صفیه (رضي الله عنها) ویل آخر ولې څه وجه ده چې ما د خپل ورور لیدو ته نه پریږدئ؟ زه خبره شوې یم چې ورور مې مثله شویدی، خو څرنګه چې دا د الله تعالی په لار کې دی، نو مونږ وربانديې راضي یوو، زه دا ثواب شمیرم او ان شاء الله صبر به کوم. بیا راغله او حمزه (رضي الله عنه) یې ولید، دعا یې ورته وکړه، انا لله وانا الیه راجعون یې وویل او له الله تعالی نه یې د مغفرت سوال وکړ. بیا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر وکړ چې حمزه (رضي الله عنه) له خپل خوریي او رضاعي ورور عبدالله بن جحش (رضي الله عنه) سره په یوه قبر کې دفن کړي.

ابن مسعود (رضي الله عنه) وایي: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) چې په حمزه (رضي الله عنه) څومره وژړل مونږ کله هم دده مبارک دومره ژړا نده لیدلې، د حمزه جنازه یې د قبلې لور ته کینبوده بیا ورته ودرید په ژړا شو او دومره یې وژړل چې د ژړا آواز یې لوړ او په سلګو شو.[1]

د شهیدانو منظر ډېر دردونکی او غمونکی وُ، زړونه یې چاودول. خباب (رضي الله عنه) وایي د حمزه (رضي الله عنه) کفن نه وُ، یو تور لیکدار چادر وُ چې سر به یې پرې پټ شو نو پښې به یې لوڅې شوې او چې پښې به یې وربانديې پټې شوې نو سر به یې لوڅ شو، بالاخره یې سر پرې پټ شو او په پښو یې د اذخر واښه ورواچول شول.[2]

عبدالرحمن بن عوف (رضي الله عنه) وایي: مصعب بن عمیر (رضي الله عنه) شهید شو، هغه له ما نه غوره وُ او پداسې یوه چادر کې په کفن شو چې سر به یې پرې پټ شو پښې به یې لوڅې وې او چې پښې به یې پټې شوې نو سر به یې لوڅېده. همدې ته ورته یو روایت له خباب بن ارت (رضي الله عنه) نه هم روایت شویدی چې پکې راځي: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) راته وفرمایل: سر یې پدې چادر پټ

---

3). زاد المعاد ۲/ ۹۴

[1]. رواه ابن شاذان، مختصر سیره الرسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) للشیخ عبدالله النجدي ص ۲۵۵

[2]. رواه احمد، مشکاه المصابیح ۱/ ۱۴۰

کړئ او په پښو کې اذخر واچوئ.[۳]

## رسول الله (ﷺ) د خپل رب ثنا وايي او سوالونه ورنه کوي

امام احمد روایت کوي چې د احد په ورځ وروسته له دې چې مشرکان بیرته ستانه شول، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل:(استووا حتى أثني على ربي عز وجل)، فصاروا خلفه صفوفاً، فقال: (اللهم لك الحمد كله، اللهم لا قابض لما بسطت، ولا باسط لما قبضت، ولا هادي لمن أضللت، ولا مضل لمن هديت، ولا معطي لما منعت، ولا مانع لما أعطيت، ولا مقرب لما باعدت، ولا مبعد لما قربت. اللهم ابسط علينا من بركاتك ورحمتك وفضلك ورزقك).

(اللهم إني أسألك النعيم المقيم، الذي لا يَحُول ولا يزول. اللهم إني أسألك العون يوم العيلة، والأمن يوم الخوف. اللهم إني عائذ بك من شر ما أعطيتنا وشر ما منعتنا. اللهم حبب إلينا الإيمان وزينه في قلوبنا، وكره إلينا الكفر والفسوق والعصيان، واجعلنا من الراشدين. اللهم توفنا مسلمين، وأحينا مسلمين، وألحقنا بالصالحين، غير خزايا ولا مفتونين. اللهم قاتل الكفرة الذين يكذبون رسلك، ويصدون عن سبيلك، واجعل عليهم رجزك وعذابك. اللهم قاتل الكفرة الذين أوتوا الكتاب، إله الحق).

تیار شئ چې زه مې د خپل رب حمد او ثنا ووایم. اصحاب (رضي الله عنهم) ټول ورپسې صفونه صفونه ودریدل، نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل:

اې خدایه! ټول حمد او ثنا ستا لپاره ده، اې خدایه! څه شی چې تا پراخه کړي هغه هیڅوک نه شي تنګولی او څه چې تا تنګ کړي هغه هیڅوک نه شي پراخولی، او څوک چې تا ګمراه او بې لارې کړي وي هغه ته هیڅوک هدایت نه شي کولی، او چا ته چې تا هدایت کړیدی هغه څوک نه شي ګمراه کولی، او څه چې تا بند کړي هغه هیڅوک نه شي ورکولی، او څه چې تا ورکړي هغه هیڅوک نه شي بندولی، او څه چې تا لیرې

---

[۳]. صحیح البخاري ۲/ ۵۷۹ - ۵۸۴

کړي هغه څوک لنډولی نه شي او څه دي چې لنډ کړي هغه څوک ليرې کولی نه شي، اې خدايه! پر مونږ خپل رحمتونه برکتونه، فضل او رزق را نازل کړه.
اې خدايه! زه درنه د دايمي نعمت سوال کوم، هغه نعمت چې نه وروسته کيږي او نه له مينځه ځي، اې خدايه! زه د بې وسۍ په ورځ د کومک او د ويرې په ورځ د امن او امان سوال کوم، اې خدايه! زه د هغه څه د شر نه چې را کړي دې دي او د هغه چې نه دې دي را کړي له شر نه په تا باندې پناه غواړم. اې خدايه! له ايمان سره مو مينه پيدا کړه او زمونږ په زړونو کې يې ښايسته کړې، له کفر، فسق او نافرمانۍ نه مو وساته، او مونږ د راشدينو (هدايت کړی شويو) له ډلې نه وګرزوه، اې خدايه! مسلمان مو له دنيا تير کړه او له ايمان سره مو راژوندي کړه، او له رسوايۍ او فتنو څخه مو په امن کړه د صالحينو (نيکانو) په ډله ورګډ کړه، اې خدايه! هغه کافران ووژنې چې ستا د رسولانو تکذيب کوي او ستا له لارې نه خلک منع کوي، خدايه! دوی پخپل عذاب اخته کړې، اې خدايه! هغه کافران هم ووژنې چې کتاب ورکړ شويدی. يا اله الحق.[1]

## مدينې ته ستنيدل، د مينې او فداکارۍ څو نمونې

وروسته له دې چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د شهيدانو له تدفين، د الله تعالی له حمد او ثنا، دعا او زاريو نه فارغ شو نو د مدينې په لور يې مخه کړه. د لارې په اوږدو کې مؤمنو صحابياتو (رضي الله عنهن) د مينې سر ښندنې او فدا کارۍ داسې مثالونه وړاندې کړل لکه څرنګه چې مؤمنو اصحابو (رضي الله عنهم) د جګړې په ميدان کې وړاندې کړي وُ.
په لار کې حمنه بنت جحش (رضي الله عنها) د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مخې ته ورغله، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې د ورور عبدالله بن جحش په شهادت خبره کړه او غمرازي يې ورسره وکړه، دې **انا لله و انا اليه راجعون** وويل، خپل ورور ته يې له الله تعالی نه د مغفرت سوال وکړ. بيا يې د ماما حمزه بن عبدالمطلب (رضي الله عنه) د شهادت خبر ورکړ او غمشريکی يې ورسره وکړه. دې **انا لله و انا اليه راجعون** وويل او د مغفرت دعا يې ورته وکړه. بيا يې دخاوند مصعب بن عمير (رضي الله عنه) د شهادت خبر ورکړ پدې سره حمنه يو ځل په چيغو شوه په ترمو ترمو يې وژړل. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)

(1). رواه البخاري في الادب المفرد، امام احمد في مسنده ۳/ ۴۲۴.

وفرمايل: (إن زوج المرأة منها لبِمَكان).ميړه د ښځې په وړاندې خاص مقام لري.[۲]
همدا راز له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره د بني دينار د يوی داسې ښځې ملاقات وشو چې ميړه، ورور او پلار يې په احد کې شهيدان شوي وو. اصحابو (رضي الله عنهم) د هغوی د شهادت خبر ورکړ او د غمشريکۍ ځرګندونه يې ورسره وکړه. نومورې مؤمنې وويل: د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) څه حال دی؟ دوی ورته وويل: هغه په خير او سلامت دی يا ام فلان، الحمدلله همغسې په خير دی لکه ته يې چې غواړې! دې وويل: ما ته يې راوښيئ چې ورته وګورم! هغوی په اشارې سره رسول (صلی الله عليه وسلم) وروښود ،دې وليد او ويې ويل: (كل مصيبة بعدك جلل – له تا نه پرته بل هر غم او مصيبت کم دی) [۱] (ستا له غمه پرته بل غم، غم ندی).
همدا راز د سعد بن معاذ (رضي الله عنه) مور په منډو منډو د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مخې ته راغله، سعد بن معاذ (رضي الله عنه) چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د آس قيزه يې نيولې وه عرض وکړ يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) هغه زما مور ده! رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: په خير راغله او ورته ودريد، چې را نژدې شوه د زوی عمرو بن معاذ (رضي الله عنه) په شهادت يې غمشريکي ورسره وکړه. دې وويل: دا چې ته مې روغ وليدې، نور غم راباندې سپک شو. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د احد د شهيدانو خپلوانو ته دعا وکړه او ويې فرمايل: (يا أم سعد، أبشري وبشري أهلهم أن قتلاهم ترافقوا في الجنة جميعاً، وقد شفعوا في أهلهم جميعاً).

[اې د سعد مورې! خوشاله اوسه او د نورو شهيدانو خپلوانو ته هم د خوشالۍ زيری ورکړه او ورته ووايه چې ټول شهيدان يو ځای په جنت کې دي او د ټولو خپلوانو په هکله يې شفاعت کړيدی.] دې عرض وکړ يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مونږ راضي يو، څوک به لدې وروستهورباندې ژاړي؟ بيا يې عرض وکړ يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د شهيدانو پسمانده ګانو ته دعا وکړه! رسول

(2). ابن هشام ۲/ ۹۸
(1). نفس المصدر ۲/ ۹۹

الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (**اللهم أذهب حزن قلوبهم، واجبر مصيبتهم، وأحسن الخَلفَ على من خُلِّفُوا**).اې خدایه د دوی له زړونو نه غم وباسه، د مصیبتونو بدله یې ورکړه، او د دوی سبب ساز شې.[۲]

## رسول الله (ﷺ) په مدینه کې

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د دریم هجري کال د شوال په اوومه د شنبې په ماښام مدینې ته ورسید، کله یې چې کورته تشریف یووړ خپله توره یې فاطمې (رضي الله عنها) ته ورکړه او ورته ویې فرمایل: (**اغسلي عن هذا دمه يا بنية، فوالله لقد صدقني اليوم**). [لورې دا وینې ورنه ومینځه، قسم په خدای چې دا توره ډیره راسره ریښتونې او سیې وه.]

علي (رضي الله عنه) هم خپله توره ورکړه او ورته ویې ویل دا هم ومینځه په خدای قسم چې ډیره ریښتونې وه راسره. نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (**لئن كنت صدقت القتال، لقد صدق معك سهل بن حُنَيف وأبو دُجَانة**). که ته په سیې او ریښتونې توګه جنګیدلی یې، نو سهل بن حنیف او ابو دجانه هم ریښتني جنګیدلي دي.[۱]

## د دواړو ډلو مړي

زیاتره روایات پدې اتفاق لري چې د مسلمانانو د شهیدانو شمیر اویا تنه ؤ چې زیاتره یې له انصارو څخه وو. د انصارو پنځه شپیته (۶۵) تنه په شهادت رسیدلي وو، یو څلویښت یې د خزرج قبیلې او څلور ویشت نور له اوس قبیلې څخه وو. یو یهودی هم مړ شوی ؤ او له مهاجرینو نه یوازې څلور کسان په شهادت رسیدلي وو.

د مشرکانو د مړیو په هکله ابن اسحاق وایي چې: له دوی نه دوه ویشت کسان وژل شوي وو، خو که ددې غزا په هکله د مغازي د لیکونکو او اهل السیر هغو روایتونو ته چې د جګړې په مختلفو مراحلو کې د مشرکینو د مړیو په هکله روایت شوي دقیق نظر وکړو نو دا به راته په ډاګه شي چې له مشرکینو نه دوه ویشت

(2). السيرة الحلبية ٢/ ٤٧

(1). ابن هشام ٢/ ١٠٠

نه ، بلکه اوه ديرش کسه وژل شوي وو[۲]. (والله اعلم)

## په مدينه کې فوق العاده حالت

مسلمانانو د يکشنبې شپه د دريم هجري کال (د شوال مياشتې اتمه) په مدينه کې پداسې حال کې تيره کړه چې حالات فوق العاده (اِضطراري) وو، ټول تيارسی وو. که څه هم ډير ستومانه وو، خو د مدينې ټولې لارې او دروازې يې څارلې، پخپل رهبر حضرت محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې خاصه پيره کوله څکه له هرې خوا يې ويره درلوده او په زړونو کې يې شکونه او شبهې راولاړيدې.

## د حمراء الاسد غزا

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دغه شپه ټوله د جګړې او له جګړې نه د راپيدا شويو حالاتو په هکله په فکر او سوچ کې سبا کړه لدې نه يې تشويش درلود هسې نه مشرکين دا فکر وکړي چې د جګړې په ميدان کې له برلاسی سره سره مو څه خاصه ګټه ونکړه، پښېمانه نه شي او له لارې نه بيرته د مدينې په لور حمله رانه وړي، نو ددې تشويش د دفع کولو پخاطر يې تصميم ونيو چې د مکې لښکر تعقيب کړي وريسې ووځي.

اهل مغازي (سيرت ليکونکي) وايي: رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د احد د غزا په سبا يعنې د دريم هجري کال د شوال په اتمه د يکشنبی په ورځ اعلان وکړ چې:(**لا يخرج معنا إلا من شهد القتال**). د دښمن مقابلې ته ورځو، تيار اوسئ، او يوازې هغه کسان به راسره ځي چې د احد په غزا کې يې برخه اخيستې ده. عبدالله بن ابي ورته وويل: زه هم درسره ځم. ده ورته وفرمايل: نه، ته مه ځه. مسلمانان که څه هم ټپيان وو او زړونه يې له غمونو او ويرې ډک وو، خو د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د امر تطبيق ته تيار شول، ويې ويل: د سر په سترګو آماده يوو. جابر بن عبدالله (رضي الله عنه) عرض وکړ يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و

[۲]. ابن هشام ۲/ ۱۲۲ تر ۱۲۹. فتح الباري ۷/ ۳۵۱. غزوة احد لمحمد احمد باشميل ص ۲۷۸ تر ۲۸۰

سلم) زما دا هیله ده چې په هره جګړه کې درسره وم خو څرنګه چې پدې غزا کې پلار پدې مکلف کړی وم چې د خپلو خویندو سر پرستي او کفالت وکړم، نو کور کې پاته شوی وم، خو اوس د تلو اجازه غواړم! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اجازه ورکړه، نو ورسره روان شو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له خپل لښکر سره روان شو او له مدینې نه اته میله لیرې په حمراء الاسد نومي ځای کې مستقر شو، په همدې ځای کې معبد بن ابي معبد الخزاعي د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ملاقات ته راغی اسلام یې راوړ. او ځنې وایي چې په اسلام نه ؤ مشرف شوی، خو له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره یې خوا خوږي درلوده ځکه د بني خزاعه او بني هاشم تر مینځ د تعاون تړون شوی ؤ راغی او عرض یې وکړ: یا محمده (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! تا ته او ستا اصحابو (رضي الله عنهم) ته چې کوم تکلیف رسیدلی مونږ ډیر پرې خفه یو، ډیره سخته راباندې تمامه شوې، زمونږ دا هیله ده چې الله تعالی دې عافیت په برخه لره. بیا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر ورته وکړ چې لاړ شه او د ابو سفیان حوصله شکنې وکړه، روحیات یې ور کمزوري کړه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) چې د مشرکینو د بیرته را تاویدو او پر مدینې د حملې کوم تشویش درلود هغه ربښتیا ؤ. کله چې مشرکین له مدینې نه ۳۶ میله لیرې روحاء نومي ځای کې دمه شول یو په بل یې پړه اچوله یو بل ته یې ویل: هیڅ مو ونکړل، د مسلمانانو شان او شوکت مو ورمات کړ نور مو همداسې پریښودل د هغوی مشران مو پریښودل چې بیا به خلک درته راغونډوي او مشکلات به درته راولاړوي، راځئ بیرته ورتاو شو او له ریښو نه یې راوباسو.

داسې ښکاري چې دا یوه عادي او سطحي رایه وه او هغو کسانو وړاندې کړې وه چې د دواړو ډلو د قوت او روحیاتو سیې اندازه یې نه وه لګولې. او همدا وجه وه چې یو مسوول مشر صفوان بن امیه مخالفت کوي او وایي: اې خلکو! دا کار مه کوئ، زه ویریږم که دا ځل ورتاو شئ نو هغه مسلمانان به هم ستاسې خلاف را ټول شي کوم چې د احد غزا ته نه وو راغلي، ځئ مکې ته ځئ، بری ستاسی دی، او که بیرته وروګرځیدئ نو هسې نه چې حالات ستاسې په خلاف بدل شي او د ماتې سیلۍ درباندې راتاو شي! خو د صفوان رایه ونه منل شوه ځکه زیاترو بیرته مدینې ته ستنیدل غوښتل او فیصله وشوه چې د مدینې په لور به حمله وروړي خو مخکې لدینه چې ابو سفیان خپل لښکر د مدینې په لور مرش کړي، معبد بن ابي معبد را ورسید ابو سفیان لدې نه خبر ندی چې هغه په اسلام مشرف شوی، پوښتنه یې ورنه وکړه

معبده وایه څه خبر دې راوړی؟ معبد د ابو سفیان په خلاف د عصبي او تبلیغاتي جنګ له اسلوب نه کار واخیست او ورته ویې ویل: خبر خو دا دی چې محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له یو زیات شمیر لښکر سره په تاسې پسې راوتلی دی، دومره کسان ورسره دي چې ما کله هم دومره زیات لښکر ندی لیدلې، ټول له ډیرې غصې درته شنه دي، هغه کسان هم ورسره راوتلي کوم چې د احد په ورځ نه وو موجود، او څه یې چې له لاسه ورکړي سخت وربانديې پښېمانه دي، تاسې ته یې زړونه دومره ډک دي چې ما یې مثال ندی لیدلی! ابو سفیان ورته وویل: خوار شې، دا څه وایې؟ معبد وویل: والله چې زما ګمان خو دا دی چې مخکې لدینه چې ته حرکت وکړې د آسانو ټنډې به ووینې او د دوی د لښکر لومړنی ګروپ به لدې غونډۍ نه رابښکاره شي. ابو سفیان وویل: قسم په خدای مونږ خو وربانديې د بیا حملې فیصله کړې تر څو ریښې یې له بیخه وباسو! معبد ورته وایې: دا کار مه کوه، زه نصیحت درته کوم، زه دې خیر غواړم.

په همدې سره د مکې لښکر روحیات کمزورې شول، حوصلې یې ماتې شوې، ویرې او ډار واخیستل خیر یې پدې کې ولید چې د مکې په لور شاتګ ته ادامه و رکړي، خو ابو سفیان ددې پخاطر چې له اسلامي لښکر سره د بل ټکر مخه ونیسي او پرې نه ږدي چې نور هم د دوی لښکر تعقیب کړی د مسلمانانو په خلاف یې یوه تبلیغاتي حمله وکړه او هغه داسې چې د عبدالقیس یو کاروان مدینې ته روان و او لدې ځایه تیریده ابو سفیان ورته وویل اې خلکو زما یو پیغام محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته رسوئ؟ او زه وعده در کوم کله چې مکې ته راغلئ نو ددې کار په بدل کې به د عکاظ په بازار کې دومره ممیز درکړم چې ستاسې اوښان یې وړی شي. دوی ورته وویل: هو، رسوو یې. ابو سفیان وویل: محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ووایئ چې مونږ دده او د اصحابو (رضي الله عنهم) په خلاف د بیا حملې فیصله کړی او اراده لرو چې دا ځل یې ریښې له بیخه راوباسو.

دا کاروان حمراء الاسد ته ورسید چیرته چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له خپل لښکر سره اړولي وو، د ابو سفیان خبره یې ورته وکړه او زیاته یې کړه: مشرکین درته راټول شوي، ورنه وویریږئ، خو د دوی دې خبرې د مسلمانانو په زړونو کې د غیرت څپې راوپارولې، ایما یې نور هم پیاوړی شو ((**الَّذِينَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ إِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ إِيمَاناً وَقَالُوا حَسْبُنَا اللَّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ**

**الْوَكِيلُ (١٧٣) فَانْقَلَبُوا بِنِعْمَةٍ مِنَ اللَّهِ وَفَضْلٍ لَمْ يَمْسَسْهُمْ سُوءٌ وَاتَّبَعُوا رِضْوَانَ اللَّهِ وَاللَّهُ ذُو فَضْلٍ عَظِيمٍ (١٧٤)** (آل عمران: **١٧٣-١٧٤**).

[هغه (مومنان) چې خلکو ورته وويل خلك درته راټول شويدي ورنه ووېرېږئ، (پدې سره د دوی ايمان لاپسې پيا وړی شواو وويل دوی بس دی مونږ ته الله او ښومره ښه وکيل (کار جوړونکی) دی الله. نو بيرته راوګرځيدل (دا مؤمنان) په نعمت سره له (جانبه د) الله او (په) فضل (احسان او رحمت سره له الله نه) چې ونه رسيده دوی ته هيڅ بدي (نه زخم نه قتل نه هزيمت) او تابعان شول دوی د رضامندی د الله او الله ښښتن (مالک) د فضل (احسان رحمت) ډير لوی دی.]

رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) دلته حمراء الاسد ته د يکشنبې په ورځ راغلی ؤ دوشنبه، سه شنبه او چار شنبه د شوال ٩ – ١٠- ١١ يې همدلته تيره کړه او بيا د مدينې په لور ستون شو. مدينې ته له ستنيدو نه مخکې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ابو عزه الجمحي په ګوتو ورغی او دا هغه کافر ؤ چې د بدر په غزا کې اسير شوی ؤ، خو رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ډير فقر او زياتو لوڼو درلودلو (د هغوی د کفالت) پخاطر پدې شرط خوشی کړی ؤ چې بيا به د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په خلاف څه نه وايي او پخپل شعر سره به خلک د رسول (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په خلاف نه تشويقوي. خو هغه خپل عهد مات کړ، غدر او خيانت يې وکړ خلک يې پخپل شعر سره د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) مقابلې ته هڅول او د مقابلې لپاره يې د احد ميدان ته راغی. کله چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ونيو، نو عرض يې وکړ: اې محمده (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم)! ما وبښه پر ما احسان وکړه، او د لوڼو پخاطر مې پريږده، هغوی بل څوک نلري، وعده درکوم چې بيا به داسې ونکړم! رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: (**لا تمسح عارضيك بمكة بعدها وتقول: خدعت محمداً مرتين، لا يلدغ المؤمن من جحر مرتين**).اوس به داسې و نه شي چې بيرته مکې ته لاړ شې پخپل مخ به لاس راکاږې او وايې به: دوه ځله مې محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته بازي ورکړه، مؤمن له يوه غار نه دو ځله نه چيچل کيږي. بيا يې زبير (رضي الله عنه) او يا عاصم بن ثابت (رضي الله عنه) ته امر وکړ چې ويې وژني، نو هغه يې سر ورنه قلم کړ.

همدا راز د مکې له جاسوسانو په يوه جاسوس هم د اعدام حکم تطبيق شو. دا جاسوس

معاويه بن المغيره بن ابي العاص ؤ چې د عبدالملک بن مروان د مور له پلوه بابا کيده. کله چې مشرکين له احد نه ستانه شول نوموړی (معاويه) د خپل تره زوی عثمان بن عفان (رضي الله عنه) ته راغی، عثمان (رضي الله عنه) دده لپاره له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه امن وغوښت، او هغه (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پدې شرط امن ورکړ چې له دريو ورځو نه به زيات نه پاتې کيږي او که پاتې شو، نو وژل کيږی به. او کله چې اسلامي لښکر له مدينې نه ووت نو ده د قريشو لپاره جاسوسي پيل کړه او له دريو ورځو نه زيات پاتې شو، خو کله چې اسلام لښکر بيرته راستون شو، معاويه هڅه وکړه وتښتي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) زيد بن حارثه او عمار بن ياسر (رضي الله عنهما) ورپسې واستول هغوی تعقيب کړ او ويې واژه.[1]

حقيقت دا دی چې حمراء الاسد بيله او مستقله غزا نده بلکه دا د احد غزا تکمله او يوه صحنه ده.

## د احد په غزا کې بری او ماتې

دا وه د احد غزا سره له ټولو تفصيلاتو او مختلفو مراحلو. محققينو ددې غزا د پای په هکله زيات بحثونه کړيدي چې آيا دا د مسلمانانو ماتې وه او که نه؟ خو پدې کې شک نشته چې د جګړې په دوهم پړاو کې مشرکان له عسکري پلوه برلاسي وو او د جنګ په ډګر دوی مسلط وو، مسلمانانو ته د سر زيات تاوان ورواښتی ؤ، بيشکه يوه ډله مسلمانان له ماتې سره مخ شوي وو، جګړه د مشرکينو په ګټه روانه وه، خوځنې داسې دلايل شته چې د هغې په اساس د مشرکينو دې برلاسی ته فتح او کاميابي نه شو ويلی.

يو دا چې د مکې لښکر ونه شوای کړی د مسلمانانو مرکز ونيسي، او د مدينې د لښکر زيات شمير کسانو خپل مقاومت ته دوام ورکړ، د تيښتې لاره يې ونه نيوه که څه هم ګډوډې او ويره پرې ګډه شوې وه، خو په پوره ميړانه يې د جګړې په ډګر کې مقابله کوله او بالاخره له خپل قيادت نه شاوخوا راټول شول، او دومره هم نه وو کمزوري شوي چې مشرکين يې تعقيب کړي او ويې څغلوي. د مسلمانانو له لښکر نه

---

[1]. د احد غزا او حمراء الاسد تفصيلات مو له ابن هشام ۲/ ۶۰ – ۱۲۹ – زاد المعاد ۲/ ۹۱ – ۱۰۸ فتح الباري ۷/ ۳۴۵ – ۳۷۷. صحيح البخاري مختصر سيره الرسول (ص) ۲۴۲ – ۲۵۷. او نورو ياد شويو مصادرو نه اخيستي دي.

یو کس هم د مشرکینو په لاس اسیر نه شو، همدا راز مشرکینو ته د مسلمانانو له مالونو نه هم هیڅ شی په لاس ورنه غلل. او بل دا چې که څه هم مسلمانان هملته خپل مرکز کې موجود وو، خو مشرکینو د جګړې دریم پړاو ته زړه ښه نه کړ، او نه داسې وشول چې مشرکین لکه د هغه وخت د فاتحانو په شان د جګړې په میدان کې یوه، دوې یا درې ورځې پاتې شي او خپله فتحه ونمانځي، بلکه هغوی په ډیره بیړه په شا شول او له مسلمانانو نه مخکې یې د جګړې میدان پریښود. او دا جرات یې هم ونه شوای کړی چې مدینې ته وورننوزي او د اوسیدونکو اولادونه یې اسیران او مالونه یې لوټ کړي دا سره لدې چې مدینه ډیره ورته لنډه هم وه او هم له سر تیرو نه خالي وه.
نو پدې اساس ویلی شو چې قریشو د جګړې په میدان کې یوازې دا وکړای شوی چې مسلمانانو ته د سر زیات تاوان ور واړوي، خو پدې کې پاتې راغلل چې له محاصرې نه وروسته مسلمانان بالکل وځپي ټول له مینځه یوسي. ډیر څله فاتحان همداسې تاوانونه ګالي لکه دلته چې مسلمانانو وګالل، خو په هیڅصورت سیي نده چې د قریشو دا عمل فتحه، بری او نصر وبولو. بلکه د ابو سفیان په بیړه په شاتګ دا په ګوته کوي چې هغه لدینه ویره درلوده که چیرې د جګړې دریم پړاو شروع شي نو لښکر به یې له ماتې او تباهۍ سره مخ کیږي. نو ځکه یې بیړه وکړه او بیرته ستون شو او دا خبره هغه وخت لا زیاته پخیږي کله چې د حمراء الاسد د غزا په هکله د ابو سفیان رایه تر نظر تیره کړو.
نو اوس ویلی شو چې دا جګړه یوه داسې جګړه وه چې فاتح یې نه درلود، دواړو طرفونو هر یو پخپله اندازه په یوه برخه کې بری تر لاسه کړ او په بل طرف کې له ماتې سره مخ شو. او هر یوه یې پداسې حال کې له جګړې نه لاس واخیست چې نه له میدانه وتښتید او نه یې خپل مرکز دښمن ته پریښود چې قبضه وربانديې وکړي، همدې مطلب ته قرآنکریم داسې اشاره فرمایي:
((وَلا تَهِنُوا فِي ابْتِغَاءِ الْقَوْمِ إِنْ تَكُونُوا تَأْلَمُونَ فَإِنَّهُمْ يَأْلَمُونَ كَمَا تَأْلَمُونَ وَتَرْجُونَ مِنْ اللَّهِ مَا لا يَرْجُونَ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيماً حَكِيماً)) (النساء: ١٠٤)
[او سستي (بې همتي اې! مؤمنانو) مه کوئ په طلب (تعقیب او جنګ) د قوم د کفارو کې، که یئ تاسې چې دردمن کیږئ، نو بیشکه دوی (هم) دردمن کیږي همغسې چې تاسې دردمن کیږي! او هیله (امید) لرئ تاسې له (جانبه د) الله د هغه (ثواب) چې نه لري دوی (کفار) امید (یې) او الله علیم او حکیم دی.]
دلته قرآنکریم دواړه ډلې په درد کې سره تشبیه کړیدي، ورته يې بللې او ددې

مطلب دا دی چې د دواړو حالت او موقف يو و او دواړه پداسې حال کې له جګړې نه په شا شول چې يو يې هم فاتح او غالب نه ؤ.

قرآنکريم د دې غزا په هکله فرمايي:

بيا د قرانکريم آيتونه رانازل شول او ددې غزا په مهمو مراحلو يې رڼا واچوله، يوه يوه يې وڅيړله، تبصرې يې ورباندې وکړې. او هغه اسباب يې په ګوته کړل کوم چې ددې زيات تاوان سبب شوي وو، او پداسې حساسو او خطرناکو حالاتو کې يې د مسلمانانوځنې کمزورۍ په ګوته کړې، د خپل مسووليت د ادا په هکله يې د دوی غفلت او کوتاهي څرګنده کړه او د هغو لوړو اهدافو د تحقق په لار کې يې د دوی سستي په ګوته کړه د کوم لپاره چې دا وسط امت جوړ شويدی.

همدا راز قرآنکريم د منافقينو د دريځ او موقف په هکله هم خبرې وکړې، له هغوی نه يې پردې اوچتې کړې تولو ته يې وروپيژندل، له الله او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره يې د دوی دښمني څرګنده کړه، او ددې تر څنګ يې د ځينو کمزوريو مسلمانانو په زړونو کې موجود هغه شکوک او شبهات هم ليرې . کړل چې منافقانو او يهودانو ورته پيدا کړي وو.

او هغه اهداف او حکمتونه يې په ګوته کړل کوم چې لدې غزا نه په لاس راځي. د احد د غزا په هکله د آل عمران سورت شپېته (۶۰) آيتونه نازل شول چې پيل يې د جګړې د لومړني پړاو په هکله دی او فرمايي: ((**وَإِذْ غَدَوْتَ مِنْ أَهْلِكَ تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِينَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ**)) (آل عمران: ۱۲۱)

[او (ياد کړه اې محمده (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! چې راووتې ته په اول د ورځې کې له کوره خپله چې تيارول دې مؤمنانو ته (په احد کې) ځايونه له پاره د جنګ او الله اوريدونکی **عليم دی.**]

او په پای کې د جګړې نتايجو اوحکمتونو ته اشاره کوي فرمايي: ((**مَا كَانَ اللَّهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى مَا أَنْتُمْ عَلَيْهِ حَتَّى يَمِيزَ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ وَلَكِنَّ اللَّهَ يَجْتَبِي مِنْ رُسُلِهِ مَنْ يَشَاءُ فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ وَإِنْ تُؤْمِنُوا وَتَتَّقُوا فَلَكُمْ أَجْرٌ عَظِيمٌ**)) (آل عمران: ۱۷۹)

[نه دی الله چې پریږدي مؤمنان په هغه حال (د اختلاط) چې یئ تاسې (اې خلکو!) پر هغه تر څو چې جلا کړي (الله) ناپاکه له پاکه څینی او نه دی الله چې خبر کاندي تاسې په غیب باندې (چې د منافقانو تمیز دی له مخلصانو څخه)، لکن الله غوره کوي له رسولانو خپلو څخه چې اراده وفرمایي (د غوره کولو يې)، نو ایمان ولرئ تاسې اې مؤمنانو! پر الله او پر رسولانو د الله، او په ایمان قایم پاتې اوسئ! او پرهیز ګاري وکړئ (له بدو کارونو) پس دی تاسې ته اجر ډیر لوی.]

## د دې غزا ګټې او حکمتونه

ابن قیم پدې هکله مفصل بحث کړیدی.[1] ابن حجر وایي: علماء وایي: د احد په غزا او مسلمانانو ته ا وښتـې تاوان کې ډیرې ګټې او الهي لوی حکمتونه وو چې څنې يې عبارت دي له: مسلمانانو ته د معصیت او نافرمانۍ د جزا او نتیجې ښوول، هغوی د منهیاتو د ارتکاب په ضرر پوهول. او هغه هم هلته چې غشو ویشتونکو خپل هغه سنګر پریښود چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) يې د نه پریښودلو امر ورته کړی و، خو کله چې دوی د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له امر نه سر غړونه کوي او هغه څه کوي چې ورنه منع شویدي، نو جزا يې هم دا ده چې ټولو ولیده.

ددې غزا بل حکمت دا دی چې د رسولانو د اسې وي چې وخت نا وخت له مختلفو ابتلا آتو او ازمیښتونو سره مخامخ کیږي، خو پای بیا د همدوی وي. او که دا ازمیښتونه نه وای او دوی تل فاتح او غالب وای، نو د مسلمانانو په مینځ کې به داسې کسانو هم ځای نیولی وای چې اصلاً به يې ایمان نه درلود. او که دا امتحان نه وای نو ریښتوني به له دروغجنو نه څنګه بیلیدل او څرنګه به پیژندل کیدل؟ او که همیشه ناکام او مات وای، نو بیا خو د نبوت اهداف او مقاصد نه ترسره کیدل. نو د الهي حکمت تقاضا هم همدا وه چې کله ماتې او کله بری وي تر څو دروغجن له ریښتوني نه بیل شي، ځکه تر دې وخته منافقان پټ وو چا نه پیژندل خو کله چې دا پیښه وشوه نو منافقانو له خپلو مخونو نه پردې پورته کړې، په ژبه او عمل سره يې د خپل نفاق اعلان وکړ. او مسلمانان پوه شول چې په کور کې د ننه هم دښمنان لري نو د لستوڼي دې مارانو ته متوجه شول او لازم اقدامات يې وکړل.

بل حکمت يې دا دی چې په څنې ځایونو کې د بري او فتحې ځنډیدل د انساني نفس

---

[1]. زاد المعاد ۲/ ۹۹ – ۱۰۸

غرور وژني د کبر ملا ماتوي او په انسان کې خاکساري او تواضع پيدا کوي. او کله چې مسلمانان له دې امتحان سره مخامخ شول نو د صبر لمن يې ونيوه خو منافقانو چيغې ګډې کړې او په واويلا شول.

بل حکمت يې دا دی چې الله تعالی خپلو مؤمنو بندګانو ته د خپل کرامت په کور (جنت) کې داسې درجې او مقامات تيار کړيدي چې په عمل سره هلته رسيدل ممکن ندي، نو پدې خاطر هغوی له داسې ازميښتونو او مصيبتونو سره مخ کوي تر څو همغه اوچتې درجې يې په برخه شي. او بل دا چې شهادت د اولياؤ له ټولو نه لوړه درجه ده، نو الله تعالی دا مرتبه د دوی په برخه کړه. او همدا راز الله تعالی غوښتل خپل دښمنان په هلاکت ورسوي، نو د دوی د هلاکت اسباب لکه کفر، سرکشي، طغيان او مسلمانانو ته ضرر رسول يې هم ورته برابر کړل او په همدې سره يې د مسلمانانو ګناوې وبښلی اوکافران يې هلاک او برباد کړل.[1]

---

[1]. فتح الباري ۷/ ۳۴۷

# لــه احــد نــه وروســتــه نــظــامــي عــمــلــیــات

د احد غمیزې د مسلمانانو لپاره منفي اغیزې درلودې. د هغوی شهرت ته یې زیان ورساوه، زور یې مات شو، د خلکو په زړونو کې یې هیبت او شوکت کم شو، له ډېرو داخلي او بهرنیو مشکلاتو سره لاس او ګریوان شول. مدینه منوره له هر لوري تر تهدید او خطر لاندې راغله، یهودانو، منافقانو او اعرابو (بدویانو – صحرایانو) خپله دښمني په ډاګه کړه. هرې یوې ډلې زیار یوست مسلمانانو ته زیان ورسوي او ختم یې کړي، بالکل یې له مینځه یوسي او له جرړو یې وباسي.
ددې غزا لا دوی میاشتې نه وې پوره شوې چې بنو اسد پر مدینه باندې د حملې تیاري ونیوله. او د څلورم هجري کال د صفر په میاشت کې عضل او قاره قبیلو د مسلمانانو په خلاف توطئه جوړه کړه، لس کسه اصحاب (رضي الله عنهم) یې په شهادت ورسول.
او په همدې میاشت کې د بنو عامر قبیلې پداسې یوې توطئې لاس پورې کړ چې پوره اویا کسه اصحاب (رضي الله عنهم) پکې شهیدان شول او دا پیښه د بئر معونه په نامه شهرت لري. د یهودانو بنو نضیر قبیلې هم خپله دښمني په ډاګه کړه او دڅلورم هجري کال د ربیع الاول په میاشت کې یې یوه لویه توطئه جوړه کړه، د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د په شهادت رسولو کوښښ یې وکړ. بنو غطفان هم جرات وکړ او د څلورم هجري کال په جمادي الاولی کې یې پر مدینه منوره د حملې پلان جوړکړ.
څرنګه چې د احد په غزا کې مسلمانانو ته تاوان اوښتی او زور یې ختلی وٴ نو له همدې امله تر یوه وخته له خطراتو او تهدیدونو سره مخ وو، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپل حکمت او تدبر سره د پیښو مخه بدله کړه د مسلمانانو شان شوکت، هیبت او عظمت یې بیرته را ژوندی کړ.او پدې لار کې یې لومړنی ګام د حمراء الاسد په لور حرکت او د مشرکینو ځغلول وٶ پدې مدبرانه عمل سره یې د خپل لښکر شهرت او عظمت ژوندی وساته، شان او هیبت یې اعاده او خوندي کړ، یهودان او منافقان یې وویرول. وروسته یې پداسې عملیاتو لاس پورې کړ چې نه یوازې د مسلمانانو تیر عظمت یې را ژوندی کړ بلکه د هغوی شان و شوکت یې نور هم پسې اوچت کړ، په راتلونکو صفحاتوکې به ددې عملیاتو تفصیلات سره ولولو.

١- د ابي سلمه سريه

د احد له غزا نه وروسته تر ټولو لومړی بنو اسد بن خزيمه د مسلمانانو په خلاف راپورته شول. د مديني منورې استخباراتو خبر تر لاسه کړ چې د خويلد زامن طلحه او سلمه له خپل قوم او نورو پيروانو سره راپورته شوي او بني اسد بن خزيمه د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په خلاف جګړې ته رابولي.

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) فوراً يو ګروپ چې شميره يې يو سل او پنځوس انصار او مهاجرين جنګيالان وو د مقابلې لپاره ورواستاوه. ابو سلمه يې ددې ګروپ امير وټاکه .بيرغ يې ورته وتاړه. او مخکې لدينه چې بنو اسد بن خزيمه په اقدام لاس پورې کړي ابو سلمه (رضي الله عنه) ورباندې حمله وکړه، کفار دومره وارخطا شول چې تيت او پرک شول، يوې خوا بلې خوا ته وتښتيدل. مسلمانانو ته ډير اوښان او پسونه په لاس ورغلل او سالمين غانمين، جوړ، روغ او له غنيمتونو سره يو ځای مديني ته ستانه شول او خبره جګړې ته ونه رسيده.

دا سريه د څلورم هجري کال د محرم په لومړۍ نيټه واقع شوې، او له بيرته راستنيدو وروسته د ابو سلمه (رضي الله عنه) هغه زخم چې په احد کې خوړلی ؤ وبليد په بد واوښت او لږه موده وروسته وفات شو.[1]

## ٢- د عبدالله بن انيس (رضي الله عنه) سريه

د څلورم هجري کال د محرم په پنځمه د مديني استخباراتو خبر تر لاسه کړ چې خالد بن سفيان الهذلي له مسلمانانو سره د جګړې پخاطر تياري نيسي خلک راټولوي.

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) عبدالله بن انيس (رضي الله عنه) ته امر وکړ چې لاړ شي او هغه له مينځه يوسي.

عبدالله بن انيس (رضي الله عنه) اتلس ورځې له مديني نه غائب ؤ او د هفتې په ورځ چې د محرم مياشتې اوه ورځې پاتې وې بيرته مديني ته پداسې حال کې راستون شو چې د خالد سر يې له ځان سره راوړی ؤ او د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په مخکې يې کيښود.

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په دی وخت کې ده ته يوه لکړه ورکړه او ورته ويې فرمايل: (**هذه آية بيني وبينك يوم القيامة**).دا به د قيامت په ورځ زما او

---

[1]. زاد المعاد ١٠٨/٢

ستا تر مينځ نښه وي. او کله چې د عبدالله بن انيس (رضي الله عنه) ځنکدن شو وصيت يې وکړ چې هغه لکړه يې په کفن کې ورسره کېښودله شي.[1]

## ۳- د رجيع حادثه

د همدې څلورم هجري کال د صفر په مياشت کې د عضل او قاره قبيلو څو کسان رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته راغلل او عرض يې وکړ چې د دوی ځنې کسان په اسلام مشرف شوي کـه څوک ورسره واستوې تر څو د دين ښوونه ورته وکړي او قرآنکريم ورزده کړي! نو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ابن اسحاق په روايت شپږ کسان او د بخاري په روايت لس کسان ورسره واستول او د ابن اسحاق د يوه روايت په اساس يې مرثد بن ابي مرثد الغنوي مشر ورته وټاکه. او د بخاري او ابن اسحاق د بل روايت له مخې ددې ډلې مشر عاصم بن ثابت د عاصم بن عمر بن الخطاب (رضي الله عنه) نيکه ؤ. اصحاب (رضي الله عنهم) ورسره روان شول او کله چې د رابغ او جدې تر مينځ د هذيل قبيلې رجيع نومې چينې ته ورسيدل، د عضل او قاره قبيلو نوموړو کسانو د هذيل قبيلې بنو لحيان ښاخ ورباندې را وپاروله، تقريباً سل کسه غشي ويشتونکي ورپسې راووتل د هغوی پل يې پسې واخيست او بالاخره ور ورسيدل محاصره يې کړل. نوموړی اصحاب (رضي الله عنهم) يوې غونډۍ ته ختلي وو، مشرکينو ورته وويل: زمونږ له پلوه د تاسې لپاره عهد او پيمان دی که راکوز شوئ، نو نه مو وژنو! عاصم (رضي الله عنه) له راکوزيدو نه انکار وکړ او له خپلو ملګريو سره يې د مشرکينو په خلاف جګړه پيل کړه اوه کسان يې د مشرکينو په غشو په شهادت ورسيدل او يوازې درې تنه حضرت خبيب، زيد بن دثنه او يو بل صحابي (رضي الله عنهم) ژوندي پاتې شول. مشرکينو يو ځل بيا د تړون او عهد يادونه ورته وکړه، نو دوی دری واړه ورته راکوز شول، خو کفارو خپل عهدمات کړ غدر يې وکړ او درې واړه يې د خپلو ليندو په تارونو وتړل.

پدې وخت کې هغه دريم صحابي (رضي الله عنه) وويل: دا د دوی لومړنی غدر دی، نو له دوی سره له تګ نه يې انکار وکړ، هغوی کش کړ او کوښښ يې وکړ له ځان سره يې بوزي، خو ورسره لاړ نه شو نو بيا يې په شهادت ورساوه. خبيب او زيد (رضي الله عنهما) يې له ځان سره بوتلل او په مکه کې يې خرڅ کړل. دوی دواړو د بدر په غزا کې د مشرکينو مشران وژلي وو. خبيب (رضي الله عنه) څه وخت په مکه کې بندي پاتې شو

---

[1]. نفس المصدر ۲/ ۱۰۹ ابن هشام ۲/ ۶۱۹- ۶۲۰

بالاخره يې مشركينو د وژلو فيصله وكړه او له حرم نه يې تنعيم ته بوته. او كله يې چې په دار خېژاوه نو خبيب (رضي الله عنه) ورته وويل: لږ مې پرېږدئ چې دوه ركعته لمونځ وكړم. مشركينو پرېښوده، دوه ركعته لمونځ يې وكړ او كله يې چې سلام وګرزاوه ويې ويل: كه تاسو دا نه ويلئ چې له مرګ نه ډارېږي، نو لمونځ به مې اوږداوه، بيا يې دعا وكړه او ويې ويل اې خدايه! ته دوی يو يو له منځه يوسې، يو، يو يې كړې بيا ټول هلاک كړې، يوه ته هم نجات ورنكړې. او ورپسې يې دا شعرونه وويل:

لقد اجمع الاحزاب حولي و البوا قبائلهم واستجمعوا كل مجمع

خلک ډلې ډلې رانه تاو دي او خپلې قبيلې يې راباندې را ټولې كړيدي او ټولې ډلې يې راجمع كړيدي.

و قد قربوا ابناء هم و نساء هم و قربت من جذع طويل ممنع

خپل اولادونه او ښځې يې هم راوستلې دي او زه د خرما يوې اوږدې او مضبوطې تنې ته نژدی كړی شوی يم.

الى الله اشكو غربتي بعد كربتي و ما جمع الاحزاب لي عند مضجعي

د خپلې بې كسۍ بې وطنۍ او غم، او د خپلې قتل ګاه شا و خوا ته ددې ډلو د راغونډېدو نه الله ته فرياد كوم.

فذا العرش صبرني على مايراد بي فقد بضعوا لحمي و قد بوْس مطعمي

اې د عرش مالكه! دښمن چې زما په خلاف كومه اراده لري په هغه باندې صبر راكړه، دوی خو زه بوټۍ بوټۍ كړی يم او خوراک مې يې خراب كړيدی.

و قد خيروني الكفر و الموت دونه فقد ذرفت عيناي من غير مدمع

هغوی د كفر او مرګ تر منځ اختيار را كړئ خو مرګ له كفر نه ډېر راته آسانه دی، سترګې مې له اوښكو پرته ډكې كيږي.

ولست ابالي حين اقتل مسلما على اي شق كان في الله مضجعي

دا چې مسلمان ومرم نو پروا مې نشته چې د الله په لار کې په کومه ډډه ووژل شوم.

**وذلك في ذات الاله و ان يشاء يبارك على اوصال شلو ممزع**

دا د الله لپاره دي او كه د هغه اراده وشوه نو په بوټي بوټي او ټوټه ټوټه اندامونو کې به هم برکت واچوي.

پدې مهال ابو سفيان ورته وويل: آيا پدې خوښيږي چې محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) دلته له مونږ سره وي مونږ يې غاړه ووهو او ته پخپل کور کې وې؟ خبيب (رضي الله عنه) وويل: نه قسم په خدای پدې هم نه يم خوښ چې زه دې پخپل کور کې وم او محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) دې هلته وي چيرته چې تشريف لري او يو اغيزی دې تکليف ور ورسوي. بيا مشرکانو په دار و خيژاوه او چاته يې وظيفه ورکړه چې په جسد يې همدلته پيره وکړي. خو عمرو بن اميه الضمري (رضي الله عنه) د شپې له خوا په يوه چل د هغه مبارک جسد لدې ځای نه اوچت کړ او خاورو ته يې وسپاره.

خبيب (رضي الله عنه) د عقبه بن الحارث په لاس شهيد کړی شو ځکه د بدر په غزا کې خبيب (رضي الله عنه) د نوموړي پلار حارث وژلی ؤ.

په صحيح بخاري کې روايت دی چې خبيب (رضي الله عنه) لومړنی شخص دی چې دمرګ په وخت کې يې د دوه رکعته لمانځه طريقه پريښې ده. او کله چې خبيب (رضي الله عنه) له مشرکينو سره اسير ؤ نو پداسې حال کې ليدل شوی چې د انګورو وږی يې په لاس او انګور ورنه خوري او دا پداسې وخت او موسم کې چې په مکه کې حتی خرما هم نه موندل کيده انګور خو لا پريږده.

او زيد بن الدثنه (رضي الله عنه) صفوان بن اميه واخيست او د خپل پلار په بدل کې يې په شهادت ورساوه.

همدا راز قريشو څه کسان واستول تر څو د عاصم (رضي الله عنه) د بدن کومه داسې ټوټه راوړي چې دوی يې ورباندې وپيژني چې همدا هغه عاصم دی کوم چې د بدر په ورځ يې د مشرکانو يو لوی او مهم مشر په هلاکت رسولی ؤ. خو الله تعالی د هغه په جسد يو سيل غومبسې مقرري کړې او مشرکين يې پرې نه ښودل جسد ته يې لاس وروړي. حضرت عاصم (رضي الله عنه) له الله تعالی سره دا عهد کړی ؤ چې نه به کوم مشرک هغه ته لاس وروړي او نه به دی پخپله مشرک ته لاس ورنژدې کوي. او کله چې دا خبر عمر (رضي الله عنه) ته ورسيده نو ويل به يې: الله تعالی خپل مؤمن بنده پس له

مرګه همداسې ساتي لکه څنګه يې چې په ژوندون ساتنه کوي.[1]

## ۴- د بئر معونة غميزه

په همدې مياشت کې د الرجيع له غميزې نه وروسته يوه بله لويه او ډيره دردناکه غميزه وشوه چې د بئرمعونه په غميزې سره شهرت لري.

ددې پيښې لنډه کيسه څه داسې ده: ابو براء عامر بن مالک چې په نيزه باز سره مشهور ؤ په مدينه منوره کې د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته راغی. رسول الله (ص اسلام ته راوباله، خو نوموړی نه په اسلام مشرف شو او نه يې بالکل رد کړ، عرض يې وکړ يا رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم)! که څو تنه اصحاب (رضي الله عنهم) د اهل نجد د دعوت لپاره واستوې کيدای شي هغوی دعوت ومني او ستا دين قبول کړي. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**إني أخاف عليهم أهل نجد**).زه پخپلو اصحابو (رضي الله عنهم) ويريږم هسې نه د نجد خلک څه زيان ور ورسوي. ابو براء وويل: زه يې ملاتړ کوم، زه پناه ورکوم، نو رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ابن اسحاق په روايت (۴۰) او د بخاري په روايت (۷۰) کسان د بني ساعده قبيلې د منذر بن عمرو په مشرۍ چې په المعتق ليموت (مرګ ته آزاد کړی شوي) باندې يې شهرت درلود واستول.

نوموړي اصحاب (رضي الله عنهم) له غوره، مخورو او له ټولو نه په قرآنکريم پوهو کسانو څخه وو. دوی (رضي الله عنهم) چې ورسره روان شول، نو د ورځې به يې خس او لرګي راټولول خرڅول به يې او اصحاب صفه ته به يې غله ورباندې اخيسته، قرآنکريم به يې تلاوت او تدريس کاوه او د شپې به يې د الله تعالی عبادت کاوه. پدې ترتيب سره د بئر معونه منطقې ته ورسيدل، معونه د يوه کوهي نوم ؤ چې د بني عامر او حره بني سليم (د بني سليم د ډاګ) تر مينځ پرتې ځمکه کې واقع ؤ. دوی همدلته واړول بيا يې دام سليم ورور حرام بن ملحان ته د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ليک ورکړ چې د خدای دښمن عامر بن الطفيل ته يې ورسوي. هغه چې کله خط وروړ،کافر عامر خط ته هيڅ ونه کتل ويې نه لوست او يوه کس ته يې اشاره

[1]. ابن هشام ۲/ ۱۶۹ – ۱۷۹ زاد المعاد ۲/ ۱۰۹ صحيح البخاري ۲/ ۵۶۸- ۵۷۰، ۵۸۵

وکړه هغه د شا له خوا د نیزې وار پرې وکړ نیزه ترې ووته، وینې ورنه روانې شوې حرام چیغه کړه الله اکبر، د کعبې په رب قسم چې بریالی شوم.
وریسې سمدلاسه د الله تعالی دښمن (عامر) په نورو اصحابو (رضي الله عنهم) باندې د حملې پخاطر خپله قبیله راوپاروله، خو هغوی د ابو براء د پناه ورکولو د احترام پخاطر د عامر خبره ونه منله. د خدای دښمن بني سلیم ته ورغی او د پاتې اصحابو (رضي الله عنهم) په خلاف یې د حملې غوښتنه ورنه وکړه. د بني سلیم دریو کورنیو عصیه، رعل او ذکوان دا غوښتنه ومنله راغلل او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اصحاب (رضي الله عنهم) یې محاصره کړل. جګړه ونښته اصحاب (رضي الله عنهم) تر هغې پورې وجنګیدل تر څو ټول په شهادت ورسیدل یوازې کعب بن زید بن النجار ژوندی پاتې ؤ چې زخمي د شهیدانو په مینځ کې پروت ؤ او بیا د خندق په غزا کې په شهادت ورسید.
هلته عمرو بن امیه الضمري او منذر بن عقبه بن عامر اوښان پوول ویې لیدل چې د پیښې په ځای مرغان ګرزي، راغلل او ویې لیدل چې جګړه روانه ده. منذر (رضي الله عنه) په جګړه ورګډ شو او له خپلو ملګرو (رضي الله عنهم) سره یو ځای په شهادت ورسید، خو عمرو بن امیه الضمری (رضي الله عنه) د مشرکینو په لاس اسیر شو خو کله یې چې ورته وویل زه له مضر قبیلې نه یم، نو عامر یې د تندې څه ویښتان پرې کړل او د خپلې مور له طرفه یې چې د یوه غلام آزادول ورباندې نذر ؤ، آزاد کړ. بیا عمرو بن امیه الضمري (رضي الله عنه) د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راغی او دا درد ونکی یعنې د اویا غوره کسانو د شهادت خبر یې ورته واوراوه. دغې غمیزې د احد غم را تازه کاوه، خو په دومره فرق سره چې په احد کې مخامخ جګړه وه مسلمانان د جګړې په ډګر کې شهیدان شوي وو او دلته په غدر او خیانت سره په شهادت رسیدلي وو.
کله چې عمرو بن امیه الضمري (رضي الله عنه) مدینې ته روان ؤ او د قناه وادي په سر کې قرقره نومي ځای ته ورسید تر یوې ونې لاندې یې دمه وکړه. دلته د بني کلاب قبیلې دوه کسان هم راغلل او تر همدې ونې لاندې ویده شول. عمرو (رضي الله عنه) په دې نیت چې د خپلو ملګرو انتقام واخلي دواړه په خوب ویده ووژل، خو حقیقت دا ؤ چې لدې دواړو سره د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پیمان او عهد موجود ؤ چې عمرو (رضي الله عنه) نه ؤ پرې خبر. کله چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته ورسید کیسه یې ورته وکړه، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (**لقد قتلت قتیلین لأدِیَنَّهما**).تا دوه داسې کسان وژلي

چې زه به يې حتماً ديت ورکوم، او شروع يې وکړه د دوی دواړو ديت يې له مسلمانانو او د دوی له حليفانو يهودانو نه راټولاوه. [(1)] او همدا پېښه بيا د بني نضير د غزا سبب شوه.

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پدې غمجنه پېښه او د رجيع په غمېزه ډېر زيات غمجن شو، دواړه په څو ورځو کې پېښې شوې[(۲)].

په رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د خپلو اصحابو (رضي الله عنهم) غم او درد دومره غالب شو چې په خائنو او غدارو خلکو پسې يې ښيرې شروع کړې[۳].

بخاري روايت کوي چې انس (رضي الله عنه) وايي: رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په هغو کسانو پسې چې دده اصحاب (رضي الله عنهم) يې په بئر معونه کې په شهادت رسولي وو، پوره ديرش ورځې ښيرې کولې، د سهار په لمانځه کې به يې ورته بد دعايي کوله. رعل، ذکوان ، عصيه او لحيان ته به يې ښيرې کولې فرمايل به يې:

**(عُصَيَة عَصَتْ الله ورسوله)، فأنزل الله تعالى على نبيه قرآناً قرأناه حتى نسخ بعد: (بلغوا عنا قومنا أنا لقينا ربنا فرضي عنا ورضينا عنه) فترك رسول الله صلى الله عليه وسلم قُنُوتَه .**

[ عصيه د الله او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له امر نه عصيان او سرکشي وکړه، تر څو الله تعالی پدې هکله په رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) داسې آيتونه رانازل کړل چې مونږ لوستل او وروسته منسوخ شول او دا آيتونه داسې وو: "زمونږ له خوا زمونږ قوم ته خبر ورکړئ چې مونږ له خپل رب سره ملاقي شوو هغه له مونږ نه او مونږ له ده نه راضي يوو". لدې نه وروسته رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا قنوت پرېښود]. [(۴)]

---

(1). ابن هشام ۲/ ۱۸۳- ۱۸۸ زاد المعاد ۲/ ۱۰۹- ۱۱۹، صحيح البخاري ۲/ ۵۶۴ - ۵۸۶

(2). واقدی وايي چې د دواړو پېښو خبر رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته په يوه شپه کې ورسيد.

۳ . ابن سعد له انس نه روايت کړی وايي: رسول (ص) مې نه دی ليدلی چې د بئر معونة اصحابو له غم نه په بل چا زيات غمجن شوی وي، مختصر سيرة الرسول للشيخ عبد الله النجدي ص ۲۶۰ وګوره.

(٤). بخاري ۲/ ۵۸۶ - ۵۸۸

# ۵- د بني نضير غزا

مخکې مو وويل چې د يهودانو په زړونو کې له اسلام او مسلمانانو سره د دښمنۍ اور لمبې وهلې، خو څرنګه چې هغوی د ميدان ميړونه نه وو، نو تل يې له غدر، چل، فريب او دسيسو نه کار اخيست. کينې او دښمنۍ يې زړونه سيځل، ډول ډول فتنې او توطيې يې په کار اچولې. او د مخامخ جګړې په ځای يې مسلمانانو ته د چل او فريب له لارې تکليفونه رسول. او سره لدې چې له مسلمانانو سره يې پيمان او عهد هم درلود خو بيا يې هم د دوی په لار کې راز راز مشکلات راولاړول. لکن د بني قينقاع له غزا او د کعب بن اشرف له ترور نه وروسته غلي شول، ووېريدل، او څه نا څه آرام شول.

د احد له غزا نه وروسته يو ځل بيا زړور شول، وخوځيدل، دښمنۍ او کينې يې راپورته شوې. د مسلمانانو په خلاف يې له منافقانو او د مکې له مشرکانو سره پټې اړيکې جوړې کړې او د اسلام په ضد يې خپله دښمني يو ځل بيا را څرګنده کړه.[1]

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د دوی دا کړه ليدل، خو بيايې هم له صبر او زغم نه کار اخيست. مګر د رجيع او بئر معونه له پېښو نه وروسته يهودان نور هم سپين سترګي شول او ان د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د قتل توطئه يې جوړه کړه. د دې تفصيل داسې دی: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له څو تنو اصحابو (رضي الله عنهم) سره د بني نضير مېنې ته ورغی تر څو هغوی د کلاب قبيلې د هغو دوو کسانو په ديت کې له معاهدې سره سم مرسته وکړي کوم چې عمرو بن اميه الضمري وژلي وو. يهودانو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته وويل: سيي ده يا ابا القاسم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! دلته تشريف کيږده تر څو ستا غوښتنه پوره کړو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د يوه ديوال خوا ته د دوی د وعدې په انتظار ناست ؤ، ابوبکر، عمر، علي او نور اصحاب (رضي الله عنهم) هم ورسره موجود وو.

يهودان سره ګوښه شول، شيطان تير ايستل او د هغې بدبختۍ خوا ته يې وبلل چې ورته ليکل شوې وه د رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د قتل توطئه يې جوړه کړه، يو بل ته يې وويل څوک به دا د ژرندې پل اوچت کړي چې د رسول الله

---

[1]. ابو داود باب خبر النضير ۳/ ۱۱۶ – ۱۱۷. عون المعبود شرح سنن ابي داود.

(صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په سر یې ور واچوي او له مینځه یې یوسي؟ خدای وهلي او بدبخت عمرو بن جحاش وویل دا کار زه کوم. پدې وخت کې سلام بن مشکم ورته وویل: ګورئ دا کار مه کوئ قسم په خدای چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ددې توطئې خبر ورکول کیږي، او دا خو د هغه تړون مخالفت هم دی کوم چې مونږ ورسره امضاء کړیدی. خو نورو یهودانو دې خبرې ته غوږ ونه نیو او د خپلې توطئې عملي کول یې پیل کړل.

په همدې شیبو کې رب العالمین جبریل امین (علیه السلام) ته امر وکړ چې ورشه او محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د یهودانو له توطئې نه خبر کړه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) فوراً له خپل ځایه پاڅید او د مدینې په لور روان شو. اصحاب (رضي الله عنهم) وروسته ورغلل او عرض یې وکړ، تا تشریف راوړ مونږ پوه نه شوو! ده (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د یهودانو له توطئې نه خبر کړل.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مدینې ته له رسیدو سره سم محمد بن مسلمه (رضي الله عنه) ته امر وکړ چې بني نضیر ته ورشه او ورته ووایه:(**اخرجوا من المدینة ولا تساکنوني بها، وقد أجلتکم عشراً، فمن وجدت بعد ذلك بها ضربت عنقه**). له مدینې نه ووزئ، نور دلته د اوسیدو حق نلرئ، لس ورځې مهلت درکوم، لدې نه اخوا که هر څوک په ګوتو راغلل سر یې قلموم. یهودان مجبور شول د وتو تیاري یې پیل کړه خو د منافقانو مشر عبدالله بن ابي خبر ورکړ چې مه وزئ، همدلته پاتې شئ مقاومت وکړئ، زه دوه زره کسان درلیږم چې له تاسې سره یو ځای ستاسی په کلا ګانو کې، تر مرګه درنه دفاع وکړي. قرآنکریم دې مطلب ته اشاره کوي فرمایي:

((**لَئِنْ أُخْرِجْتُمْ لَنَخْرُجَنَّ مَعَكُمْ وَلا نُطِيعُ فِيكُمْ أَحَداً أَبَداً وَإِنْ قُوتِلْتُمْ لَنَنْصُرَنَّكُمْ**)) (الحشر: ۱۱)

[**که خامخا وایستل شئ تاسې (له مدینې څخه) نو خامخا وبه وځو مونږ مونږ هرو مرو له تاسې سره او نه به منو مونږ (په ضرر د تاسې کې) د هیچا هیڅکله او که چیرې جنګ شروع کړ شي له تاسې سره نو خامخا مدد به وکړو مونږ هرو مرو له تاسې سره.**]

منافق دا هم ورته وویل: لدې نه علاوه ستاسې حلیفان غطفان اوقریظه به هم ستاسې مرسته کوي. په همدې سره یهودانو زړه پیدا کړ، د مقاومت او مقابلې نیت یې وکړ. مشر یې حیي بن اخطب د منافقانو د مشر خبره ومنله او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته یې داسې ځواب ولیږه: مونږ له خپل وطنه نه وځو څه چې کوې

لاس دي آزاد!
ښکاره خبره ده چې دا حالت د مسلمانانو لپاره زیات خطرناک وُ، پداسې حساسو شیبو کې له دښمن سره مقابله آسانه نه وه. هلته ټول مشرکین عرب د دوی په خلاف را پاڅیدلي وو د دوی له هیئتونو او پلاویو سره یې لوی ظلم او غدر کړی و، برسیره پر دې د بنو نضیر یهودان خپله هم د زور او ځواک خاوندان وو تسلیمیدل یې ممکن نه بریښیدل، نو له هغوی سره جګړه ډېر خطرناکه او له بدو عواقبو نه خالي نه وه. خو د رجیع او بئر معونه غمیزې مسلمانان ډېر حساس کړي وو د غدارانو په خلاف یې په زړونو کې د انتقام او غچ لمبې بلې وې، نو ځکه یې فیصله وکړه چې له دې غدارانو سره به چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د قتل توطئه یې جوړه کړې وه، مقابله او جګړه کوي نتیجې یې که هر څه وي.
کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته د یهودانو د مشر حیي بن اخطب ځواب ورسید، الله اکبر یې وویل اصحابو (رضي الله عنهم) هم د تکبیر ناره وکړه او د مقابلې لپاره راپورته شول. عبد الله بن ام مکتوم یې په مدینه کې خپل قائم مقام وټاکه او خپله د بنو نضیر په لور روان شو. علي (رضي الله عنه) بیرغ وړه او پدې ترتیب سره یې یهودان پخپلو کورونو کې محاصره کړل، هغوی خپلو کلا ګانو ته ننوتل او له هغه ځای نه یې مسلمانان په تیرو او غشو ویشتل. د خرما ونې او نور باغونه هم د دوی په ګټه وو او جنګي استفاده یې ورنه کوله، نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ونو او باغونو د پرې کولو او سیځلو امر صادر کړ، حسان (رضي الله عنه) دا مطلب داسې بیانوي:

**و هان علی سراة بني لوْئ حریق بالبویرة مستطیر**

د بني لویي د سردارانو لپاره دا آسانه خبره وه چې په بویره کې د اور لمبې ګډې شي.
بویره د بنو نضیر د خرما د باغونو نوم وُ، الله تعالی پدې هکله فرمایي:
((**مَا قَطَعْتُمْ مِنْ لِينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَائِمَةً عَلَى أُصُولِهَا فَبِإِذْنِ اللَّه**)) (الحشر: ۵)
[هغه چې پرې کوئ تاسې له تنو د ونو د (کم اصلو) خرماوو څخه یا یې پریږدئ هغه ولاړې په بیخونو خپلو باندې نو دغه (ټول) په اذن (حکم) د الله سره دی.]
په هر حال کله چې بنو نضیر محاصره شول نو بنو قریظه یې مرستې ته رانغلل، عبدالله بن ابي او بنو غطفان هم نامردي ورسره ورکړه د هیڅا خیر ور ونه رسید، هیڅوک یې دفاع ته راپورته نه شول. او همدا وجه ده چې الله تعالی د دوی دا کیسه لدې حالت سره تشبیه کړیده او فرمایي: ((**كَمَثَلِ الشَّيْطَانِ إِذْ قَالَ لِلإِنسَانِ اكْفُرْ فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ إِنِّي**

بَرِيءٌ مِنْكَ)). (الحشر: ١٦)
[(مثال د منافقانو په مخالفت د وعدې کې ) لکه مثل (کیسه) د شیطان داسې ده کله چې وایي انسان ته چې کافر شه نو کله چې (انسان) کافر شي وایي (شیطان) زه بیزار جلا (جدا) یم له تا څخه.]
محاصره یوازې شپږ شپې او په بل روایت (١٥) ورځې اوږده شوه، الله تعالی د یهودانو په زړونو کې ویره واچوله، حوصلې یې تنګې او ارادې یې ماتې شوې د سلامې کیدو او وسلې کیښودو فیصله یې وکړه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته یې احوال ولیږه: مونږ له مدینې څخه وځو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د دوی دا غوښتنه ومنله او موافقه یې وکړه چې دوی کولې شي له خپلو اولادونو سره له مدینې نه په امن ووزي او کولی شي له وسلې پرته نور دومره سامان او کالي چې په اوښانو یې وړئ شي له ځان سره یوسي.
یهودان تسلیم شول وسلې یې کیښودې او پدې شرایطو سره له مدینې نه وتل او خپل کورونه یې پخپله ړنګول. ورونه، کړکۍ حتی څنګ درۍ ، دستک او تیرونه یې هم له ځان سره وړل، ماشومان او ښځې ټول یې له ځان سره بوتلل د شپږ سوه اوښانو یوه قافله ورنه جوړه شوه او له مدینې نه په کډه شول.ځنې مشران یې لکه حیي بن اخطب او سلام بن ابي الحقیق خیبر ته لاړل، ځنې نور شام ته کډه شول یوازې دوو کسانو ورنه ایمان راوړ او هغه یامین بن عمرو او ابو سعد بن وهب وُ چې په اسلام سره یې خپل مالونه هم وساتل. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د بني نضیر وسله را ټوله کړه، مځکې، کورونه او جایدادونه یې قبضه کړل، په وسله کې پنځوس زغرې، پنځوس اوسپنیزې خولۍ او درې سوه څلویښت تورې شاملې وې.
د بنو نضیر ځمکې، مالونه او باغونه ټول خاص د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حق وُ او صلاحیت یې درلود چې هر ډول تصرف پکې وکړي ځانته یې پریږدي او یا یې په نورو ویشي.
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لدې مالونو نه خمس (پنځه حصه) بیله نکړه ځکه دا غنیمت نه وُ بلکه فيء وُ ځکه مسلمانانو د تورې په زور نه وُ نیولی بلکه بیله جګړې د دوی لاس ته ورغلی وُ، نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دا مالونه او ځمکې په لومړنیو مهاجرینو وویشلې او د انصارو له ډلې نه یې یوازې ابو دجانه او سهل بن حنیف ته چې فقیران وو برخه پکې ورکړه. او یوه ټوټه

ځمکه یې د ځان لپاره وساتله چې د خپل مبارک کور کلنی خرڅ به یې ترې پوره کاوه او که نور څه به ورنه پاتې شول هغه به یې د جهاد په لار کې مصرفول وسله او یا آسونه به یې ورباندې تیارول.
د بنو نضیر غزا د څلورم هجري کال د ربیع الاول په میاشت (۶۲۵ م اګست) کې واقع شویده. الله تعالی د حشر مبارک سورت ټول د همدې غزا په هکله را نازل کړیدی او په همدې سورت سره یې د یهودانو شړل، بیان کړې. له منافقانو نه یې پردې اوچتې کړی، هغوی یې افشا کړې، د فې احکام یې ښوولي، د انصارو او مهاجرینو ستاینه یې کړی. او د جنګي اهدافو پخاطر یې د ونو او باغونو پرې کول او سیځل جائز بللي او مسلمانانو ته یې د تقوی او آخرت ته د تیارۍ امر کړی، او په پای کې یې خپله ثنا بیان کړی، حمد او صفت یې ویلی او خپل مبارک نومونه او صفات یې یاد کړیدي.
ابن عباس (رضي الله عنهما) به د حشر سورت ته د بنو نضیر سورت هم وایه.[1]

# ۶- د نجد غزا

د بنو نضیر په غزا کې له قربانۍ او سخت کړاو نه پرته د مسلمانانو په دې لوی بری سره په مدینه کې د اسلام حکم نور هم مضبوط شو. واکمني یې نوره هم کلکه شوه. منافقان وویریدل، ذلیل شول د ښکاره دښمنۍ توان ورنه لاړ. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ددې فرصت په لاس ورغی چې د هغو اعرابو (بدویانو) د تصفیې لپاره اقدام وکړي کوم چې له احد نه وروسته یې مسلمانانو ته تکلیفونه رسول، د اسلام داعیان یې په ډیره نامردۍ او ظالمانه طریقې سره په شهادت رسولي وو او داسې زړه ور شوي وو چې ان پر مدینه باندې یې د حملې سوچونه کول[2].
مخکې لدینه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ددې غدارانو او عهد ماتونکو د تادیب او غوږ تاوولو لپاره کوم عملي اقدام وکړي د مدینې استخباراتو خبر ورکړ چې د بنو غطفان قبیلې دوې کورنۍ بني محارب او بنو ثعلبه د جګړې لپاره تیاري نیسي. نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) فیصله وکړه چې د نجد بدویانو او اعرابو ته د عبرت درس ورکړي، روان شو او د نجد په صحراګانو کې تر لیرې لیرې پورې لاړ تر څو ددې سخت زړو، عهد ماتوونکو بدویانو په مینځ کې ویره واچوي او داسې یې وډار کړي چې بیا د تیر په شان د عهد ماتولو، غدر او خیانت

[1]. ابن هشام ۲/ ۱۹۰-۱۹۲. زاد المعاد ۲/ ۷۱ – ۱۱۰. صحیح البخاري ۲. ۵۷۴. ۵۷۵.
[2]. دا د محمد الغزالي خبرې دي فقه السیرة ص ٢١٤.

کولو جرات شانته هم ونکړي.

د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ددې ناڅاپي حملې د خبر په اوريدو سره هغه اعراب چې د قتل او غارت، غلا او لوټمار لپاره يې تيارۍ نيولې ټول وتښتيدل او د غرو په څوکو کې پټ شول. پدې ترتيب سره رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا غداران او لوټماران وويرول او خپله بيرته په امن او سلامتۍ سره مدينې ته راستون شو.

اهل السير (سيرت ليکونکو) په دې سلسله کې د ذات الرقاع په نامه يوه غزا ياد کړيده چې د څلورم هجري کال د ربيع الثاني او يا جمادي الاولی په مياشت کې په نجد کې شويده. پدې کې هيڅ شک نشته چې په دې وخت کې دې دا غزا شوې وي، ځکه د مدينې د شرائطو تقاضا هم دا وه چې بايد په دی وخت کې اعرابو ته درس ورکړی شوی وای ځکه د ابو سفيان سره د وعدې په اساس د بدر د راتلونکې غزا وخت رارسيدونکی ؤ.

او مخکې لدينه چې د اعرابو (بدويانو) غوړونه تاو شي زور يې مات شي او وويرول شي د مشرکانو مقابلې ته وتل او مدينه همداسې خوشې پريښودل د کاميابۍ جنګي استراتيژۍ خلاف وه او لازمه وه چې لومړی بايد ددې لوټمارانو لاس ورلنډ شي او بيا د ابو سفيان د لښکر مقابلې ته ووزي. خو د دوی (سيرت ليکونکو) دا خبره سيي نده چې د څلورم هجري کال په ربيع الثاني او يا جمادي الاولی کې پيښه شوې غزا د ذات الرقاع غزا ده، ځکه د ذات الرقاع په غزا کې ابو هريره او ابو موسی اشعري (رضي الله عنهما) هم برخه درلودله او ابو هريره (رضي الله عنه) خو د خيبر غزا نه څو ورځې مخکې ايمان راوړی همدا راز ابو موسی اشعري (رضي الله عنه) په يمن کې په اسلام مشرف شو، بيا په کښتۍ کې سپور شو چې کښتۍ يې د حبشې په ساحل کې ودريده او بيا له حبشې نه هغه وخت راغی کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په خيبر کې تشريف درلود. نو پدې اساس د ذات الرقاع غزا له خيبر نه وروسته پيښه شويده.

او پدې هکله بل دليل دا دی چې د ذات الرقاع غزا په وخت رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د خوف (ويرې) لمونځ ادا کړيدی او د خوف لمونځ د لومړي ځل لپاره د عسفان د غزا په وخت روا شويدی او دا ثابته ده چې د عسفان غزا له خندق غزا نه وروسته وه او د خندق غزا خود پنځم هجري کال په وروستيو کې پيښه شويده، نو پدې اساس د ذات الرقاع غزا په څلورم هجري کال کې نه ده واقع شوي.

## ۷- د بدر دوهمه غزا

وروسته لدې چې مسلمانانو د بدویانو (کوچیانو) لوټمارانو غرور مات کړ، غوړونه يې ورتاو کړل او د دوی له شرنه يې ځانونه ډاډه کړل، نو له خپل لوی دښمن (قریشو) سره يې د مقابلې تیاري شروع کړه ځکه کال مخ په پوره کیدو ؤ او د احد په میدان کې له مشرکینو سره د شوې وعدې ورځې رارسیدونکې وې. او دا د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او اصحابو (رضي الله عنهم) حق ؤ چې د ابو سفیان د لښکر مخې ته ورووزي او د داسې یوې جګړې میدان ته ودانګي چې ګټه به يې د هغه چا وي چې د بقاء وړ او له مقابل لوري نه د اهلیت او هدایت له پلوه وړاندې وي.

په همدې اساس د څلورم هجري کال د شعبان چې د (۶۲۶م) کال له جنوري سره سمون خوري، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له (۱۵۰۰) کسانو سره چې لس آسان هم ورسره وو د جنګ په لور روان شو. (علم) بیرغ يې علي (رضي الله عنه) ته ورکړ، عبدالله بن رواحه يې په مدینه کې خپل قائم مقام وټاکه، او مخکې لاړ تر څو بدر ته ورسید هملته يې واړول او د مشرکانو د راتګ انتظار يې یوست. ابو سفیان زړه نا زړه له دوو زرو کسانو او پنځوسو آسونو سره له مکې نه را روان شو او له مکې نه یو براو لیرې، مرالظهران وادي ته ورسید او له مجنه چینې سره يې واړول.

ابو سفیان ان په مکه کې سوچونو اخیستی ؤ له مسلمانانو سره د مقابلې انجام ته اندیښمن ؤ، زړه يې درزیده، ویرې اخیستی ؤ، خو مر الظهران ته له رسیدو وروسته نور هم وډار شو، اراده يې کمزورې شوه، زړه يې ولوید، د په شا تګ بهانې يې جوړې کړې خپلو ملګرو ته يې وویل: اې قریشو! جنګ هغه وخت ښه دی چې آبادي او پریماني وي مالونه مو هم ماړه وي او تاسو ته هم شیدې در رسیږي، دا کال خو وچ کال دی هیڅ هم نشته، نو زه خو بیرته ګرځم راځئ تاسې هم په شا تاو شئ.

داسې ښکاري لکه چې د نور لښکر په زړونو کې هم ویره موجوده وه ځکه ددې رایې په اوریدو سره ټول وګرځیدل هیچا هم مخالفت ونکړ او چا هم له مسلمانانو سره د مقابلې په خبره تاکید ونکړ.

مسلمانان اته ورځې د بدر په میدان کې وو د دښمن د راتګ انتظار يې یوست، خپل تجارتي مالونه يې په ښه ګټه یو په دوه خرڅ کړل او بیا مدینې ته پداسې حال کې روان شول چې یو ځل يې بیا برلاسي په برخه شوې، حالات يې تر کنترول لاندې راوستي او هیبت يې د خلکو په زړونو کې بیا ځای نیولی او په اوضاع مسلط شوي دي. دا غزا د

بدر موعد، دوهم بدر، بدر الاخره، او بدر الصغری په نومونو شهرت لري.[1]

### ٨- د دومة الجندل غزا

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له بدر نه تشریف راوړ هرې خوا ته امن او آرامي وه، د اسلامي دولت په ټولو برخو کې پوره ډاډ او اطمینان حاکم ؤ. همدا وه چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) توجه د عربو د لیرې لیرې پولو خواته واوښته، اراده یې وکړه هلته هم باید د مسلمانانو غلبه وي، تر څو دوستان او دښمنان ټول د دوی په وجود اعتراف وکړي. له بدر صغری نه وروسته شپږ میاشتې په مدینه کې پاتې شو، پدې وخت کې خبر راغی چې د دومه الجندل شا و خوا ته پرتې قبیلې لارې شو کوي او خلک لوټي، زیات شمیر کسان یې راټول کړي او پر مدینه د حملې تیاري نیسي. نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په مدینه کې سباع بن عرفطه الغفاري خپل قائم مقام وټاکه او پخپله له زرو کسانو سره، د پنځم هجري کال د ربیع الاول په ۲۵ د دومه الجندل په لور وخوځید د بني عذره قبیلې مذکور نامی یو کس یې لاروي ونیو او روان شو.

پدې غزا کې به رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د شپې مزل کاوه او د ورځې به یې پدې خاطر دمه کوله چې دښمن اغفال او ناڅاپي حمله ورباندې وکړي. کله چې ورنژدې شو نو معلومه شوه چې د لارې شوکونکي لدې ځایه تللي، نو د هغوی په رمو او شپنو یې حمله وکړه، ځنې یې ورنه ونیول او نور وتښتیدل. د دومه الجندل اوسیدونکي ټول یوې خوا بلې خوا ته وتښتیدل او کله چې مسلمانان ورغلل نو هیڅوک هم په ګوته ورنه غلل. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) څو ورځې دلته پاتې شو جنګي ګروپونه یې یوې خوا بلې خوا ته واستول خو بیا هم څوک په لاس ورنه غلل، بالاخره بیرته مدینې ته ستون شو. په دې غزا کې یې له عیینه بن حصن سره سوله او مصالحه هم وکړه. دومه الجندل د – دال په پیښ – د شام په پولو کې یوه سیمه ده چې له دمشق نه د پنځو شپو مزل او له مدینې نه د ۱۵ شپو په اندازه لیرې پرته ده.

پدې چټکو او ناڅاپي حملو او دې حکیمانه او مدبرانه پلان او سیاست سره رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وتوانید هرې خوا ته امن او آرامي خوره کړي،

---

[1]. ابن هشام ۲/ ۲۰۹ – ۲۱۰ زاد المعاد ۱۱۲/۲

حالات په قابو کې وساتي. او د زمانې مخه د مسلمانانو په ګټه بدله کړي، داخلي او خارجي مشکلات چې له هرې خوا ورنه را تاو وو يو په بل پسې له مينځه يوسي، د منافقانو کړې خولې ورسمې کړي، غږ يې غلی کړي. همدا راز يې د يهودانو يوې کورنۍ (بنو نضير) نه د هغوی د کړو سزا ورکړه له مدينې نه يې وشړله او نورې يې داسې پاتې شوې چې د تړون او عهد پابندې وې د ګاونډيتوب حقوق يې مراعاتول. همدا راز بدويان، کوچيان او اعراب هم ډير وډار شول ارادې يې کمزورې شوې، غرور يې مات شو، قريشو په مسلمانانو د حملې فکرونه له زړه نه وايستل، او مسلمانانو ته دا فرصت په لاس ورغی چې خلک د الله تعالی دين ته راوبولي او د اسلام رڼا تورو زړونو ته ورسوي.

# د احزاب غزا

له يو کال نه اوږدو جگړو او نظامي عملياتو نه وروسته امن او آرامي شوه، په عربي جزيره کې امنيت قائم شو، خو يهودان چې د غدر، خيانت، توطئو او سازشونو په نتيجه کې ډير رسوا، سپک او ذليل شوي وو لا اوس هم له مستی‌نه نه وو لويدلي عقل يې سرته نه وُ راغلی له غدر او خيانت څخه نه وو ا وښتـي. خيبر ته له شړلو وروسته د مسلمانانو او مشرکانو تر مينځ د ر و ا ن ی جگړې نتيجې ته منتظر وو، خو کله چې حالات د مسلمانانو په گټه وڅرخيدل او د وخت په تيريدو سره د اسلامي حکومت دائره نوره هم پراخه شوه په منطقه کې د اسلام حاکميت لاپسې ټينگ شو، نو د يهودانو په زړونو اور بل شو او د مسلمانانو په خلاف يې نوې تـوطئ‌ې جوړې کړې او د داسې يوه سازش پلان يې جوړ کړ چې د مسلمانانو وجود بالکل له مينځه يوسي. او لدې امله چې له مسلمانانو سره يې د مخامخ مقـا بـلـې توان او جرات نه درلود، نو د نفاق او توطئې لار يې خپله کړه.

د بنو نضير قبيلې شل مشران يهودان د مکې قريشو ته ورغلل د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په خلاف يې يوې لويې حملې ته راوبلل له خپل طرف نه يې د پوره مـرستې وعده ورکړه. قريشو دا خبره ومنله جگړې ته تيار شول او څرنگه چې دوی د احد له غزا نه وروسته له مسلمانانو سره د بدر په ميدان کې د بلې مقابلې وعده کړې وه او بيا يې ددې وعدې مخالفت کړی وُ، د مسلمانانو مقابلې ته نه وو راوتلي نو دغه فرصت يې د ځان په گټه وباله او غوښتل يې پدې جگړې سره له لاسه تللې حيثيت بيرته را ژوندی کړي او خپله وعده پوره کړي.

د يهودانو همدغه هيئت بيا بنو غطفان ته ورغی هغوی يې هم د قريشو په شان د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په خلاف جگړې ته راوبلل دوی هم دا پيشنهاد ومانه، جنگ ته تيار شول. بيا همدغه يهودان نورو عربي قبيلو ته ورغلل او پدې جگړه کې د برخه اخيستو بلنه يې ورکړه چې ډيرو جنگ ته خپله آمادگي څرگنده کړه. پدې ترتيب سره يهودي مشران پدې وتوانيدل چې د کفر لښکرې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او مسلمانانو په خلاف راغونډې او د اسلام په

خلاف یې یوې لوې حملې ته تیارې کړې.
پدې پسې له جوړ شوي پلان سره سم د جنوب له خوا قریش، کنانه او په تهامه کې له اوسیدونکو قبیلو نه د دوی نور ملګري او حلیفان چې ټول څلور زره کسان وو د ابو سفیان په مشرۍ د مدینې په لور روان شول او مر الظهران ته له رسیدو وروسته بنو سلیم هم ورسره ملګري شول. او د شرق له لوري د غطفان قبیلې لکه بنو فزاره د عیینه بن حصن په مشرۍ او بنومره د حارث بن عوف په مشرۍ او بنو اشجع د مسعر بن رخیله په مشرۍ او ورسره د بنو اسد او نورې قبیلې هم د مدینې په لور وخوځیدې.
د کفر دا لښکرې له پلان سره سم په ټاکلي وخت د مدینې په لوري وخوځیدې او په څو ورځو کې د مدینې په شا و خوا کې له لس زره کسانو نه جوړ شوی لوی لښکر راغونډ شو چې دا شمیره په مدینه کې د ټولو اوسیدونکو ځوانانو، بوډاګانو، ماشومانو او ښځو له شمیرې نه زیاته وه. که چیرې دا لښکرې د ناخبرۍ په حالت او نابېره توګه د مدینې پولو ته رسیدلی وای نو بې شکه چې د مسلمانانو لپاره به یوه نه جبران کیدونکې خساره وه او دا هم ممکنه وه چې د مسلمانانو ریښې یې له بیخه ایستلې وی او د هستۍ له میدان نه یې نابود کړې وای، خو د مدینې قیادت ویښ او د پیښو مقابلې ته تیار او له پیښو نه با خبر قیادت ؤ حالا ت به یې کتل او د وضعې مطابق اقدام به یې کاوه.
د احزابو لښکرې لا خوځیدلی نه وې چې د مدینې استخباراتو خپل قیادت ته پدې اړه مکمل راپور ورکړ. د همدې خبر له رسیدو سره سم رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لوړه مشورتي غونډه راوغوښتله، او له مدینې نه د دفاع په مساله غور پیل شو. د قیادت او شورۍ د نورو غړو تر مینځ له خبرو او مناقشاتو وروسته د رایو په اتفاق سره د قدرمن صحابي حضرت سلمان الفارسي (رضي الله عنه) وړاندیز ومنل شو، او په همغه فیصله وشوه. سلمان (رضي الله عنه) عرض وکړ یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! مونږ به چې کله په فارس کې محاصره کیدلو، نو شا و خوا به مو خندقونه ایستل، راځۍ دلته هم له مدینې چارپیره خندق (کنده) وباسو. دا ډیر عاقلانه وړاندیز ؤ، عربان مخکې لدینه له دې ډول دفاعي سیستم نه خبر هم نه وو.
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د شورۍ فیصله فورا د عمل په ډګر کې پـلـې کړه، هرو لسو کسانو ته یې وظیفه ورکړه چې څلویښت ګزه کنده (خندق) وباسي. اصحابو (رضي الله عنهم) په ډیره مینه او رغبت سره د خندق په کیندلو پیل وکړ. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به نه یوازې تشویقول بلکه په

عملي توګه يې هم د دوی مرسته کوله، او پخپل مبارک لاس به يې خندق کيندلو.
بخاري (رح) له سهل بن سعد (رضي الله عنه) نه روايت کوي چې وايي: مونږ د خندق کيندلو په وخت کې له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره وو، مونږ کار کولو او خاورې به مو په خپلو اوږو سره وړلې، په همدې وخت کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) فرمايل:

**اللهم لا عيش الا عيش الاخرة فاغفر للمهاجرين و الانصار** [1]

**[**اې خدايه! ژوند خو يوازې د آخرت ژوند دی، نو مهاجرينو او انصارو ته مغفرت وفرمايې.**]**

انس (رضي الله عنه) روايت کوي: رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پداسې حال کې خندق ته تشريف راوړ چې مهاجرينو او انصارو په ساړه سهار کې خندق کيندلو، هغوی مزدوران نه درلودل چې دا کار يې ورته کړی وای. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) چې د دوی ستړيا او لوږه وليدله نو ويې فرمايل:

**اللهم ان العيش عيش الاخرة فاغفر للانصار و المهاجرة**

**[**لويه خدايه! ژوند خو يوازې د آخرت ژوند دی، نو ته انصارو او مهاجرينو ته بښنه وکړه.**]**

اصحابو (رضي الله عنهم) د خپل محبوب رهبر په ځواب کې عرض وکړ او ويې ويل:

**نحن الذين بايعوا محمدا على الجهاد ما بقينا ابدا**[2]

**[**مونږ هغه کسان يوو چې د ژوند تر پايه مو له محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره د جهاد ژمنه او بيعت کړيدی.**]**

همدا راز بخاري له براء بن عازب نه په روايت سره وايي: ما رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وليد چې د خندق خاورې يې وړلې او دومره په دوړو کې پټ ؤ چې د مبارک خېټې پوستکی يې نه ښکاريده، او په مبارک بدن يې ډېر ويښتان وو. ما ورنه اوريدل چې په همدې وخت کې چې خاورې يې وړلې د عبدالله بن رواحه

(1). صحيح بخاري د خندق غزا باب ۲/ ۵۸۸
(2). صحيح بخاري ۲/ ۵۸۸

(رضي الله عنه) دغه کلمات يې زمزمه کول:

| | |
|---|---|
| اللهم لو لا انت ما اهتدينا | ولا تصدقنا و لا صلينا |
| فانزلن ســـــكينة علينا | و ثبت الاقدام ان لاقينا |
| ان الاولى رغـــبوا علينا | و ان ارادوا فتنة ابينا |

[اې الله! که ته نه وای نو مونږ به د هدايت لاره نه وای موندلی، نه به مو خيرات ورکړی وی او نه به مو لمونځ ادا کړی وای، نو اوس پر مونږ سکينت (استقامت) رانازل کړه، او که مقابله پيښه شوه نو پښې مو ټينګې کړه (ثبات مو په برخه کړه) هغوی زمونږ په خلاف خلک راپارولي دي او که لويه فتنه يې وغوښتله نو مونږ به يې کله هم و نه منو.]

حضرت براء (رضي الله عنه) وايي چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به ددې شعر وروستي لفظونه اوږدول. او په بل روايت کې ددې شعر وروستی فرد داسې راغلی دی:

| | |
|---|---|
| ان الاولى قد بغوا علينا | و ان ارادوا فتنة ابينا[1] |

[هغوی زمونږ په خلاف ظالمانه بغاوت کړی او که هغوی وغواړي مونږ په فتنه کې واچوي نو کله به يې هم ورسره قبوله نکړو.]

مسلمانانو له يوې خوا په پوره مينه او ولوله خندق کيندلو، خو له بلې خوا داسې لوږه ورباندې راغلې وه چې زړونه يې چول. انس (رضي الله عنه) وايي چې خندق ايستونکو ته به دوه لپې اوربشې راوړل شوې او په بوينو زړو غوړيو کې به ورته پخې شوې، بيا به د خوړلو لپاره ور وړاندې شوې، هغوی به دومره لوږې اخيستي وو چې همدا بد بوی لرونکي خواړه به يې چې له ستوني تيريدل يې هم ګران وو، خوړل.[2]

ابو طلحه (رضي الله عنه) وايي: مونږ له خپلې لوږې نه رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته شکايت وکړ، او ور ومو ښودل چې مونږ هر يوه پخپله خيټه يوه يوه تيږه تړلې ده، نو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) راوښودله چې پخپله مبارکه خيټه پورې يې دوې تيږې تړلې دي.[3]

په همدې وخت يعنې د خندق کيندلو په جريان کې د نبوت ډيرې نښانې ليدل شوې. جابر بن عبدالله (رضي الله عنه) وليدل چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و

---

[1]. صحيح البخاري ۲/ ۵۸۹

[2]. بخاري ۲/ ۵۸۸

[3]. ترمذي – مشکاه المصابيح ۲/ ۴۴۸

سلم) ډير وږی شويدی، نو يوه بيزه (وزه) يې حلاله کړه او ميرمنې يې يوه صاع يا پيمانه (دوه نيم کيلو) اوربشې اوړه کړې، بيا يې په پټه سره رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته وويل چې له يو څو محدودو اصحابو (رضي الله عنهم) سره دده کورته تشريف وروړي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ددې خبرو په اوريدو سره پاڅيد او د خندق ټول کار کوونکي يې چې زر کسه وو له ځان سره ملګري کړل، ټول لاړل او د جابر (رضي الله عنه) ډوډۍ يې وخوړه، ټول ماړه شول، د غوښې ديګ همداسې ډک پاتې ؤ، اوړه همداسې پخپل حالت وو هيڅ شی هم نه وو کم شوي.[1]

د نعمان بن بشير (رضي الله عنه) خور خندق ته راغله او يوه لپه خرما ورسره وه، غوښتل يې خپل پلار، او ماما ته يې ورکړي. کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ورسيده، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل خرما دلته راوړه! خرما يې ورنه واخيستله او په چادر يې واچوله، بيا يې د خندق کار کوونکي راوبلل، ټول راغلل او دا خرماوې يې خوړلې، خرماوې همداسې زياتيدلې، ټول ماړه شول، خو خرماوې دومره زياتې پاتې وې چې د څادر له څنډو نه وتلې.[2]

په همدې ورځو کې له دې دوو پيښو نه يوه بله لويه پيښه هم واقع شويده. بخاري له جابر (رضي الله عنه) نه روايت کوي وايي: مونږ په خندق کيندلو بوخت وو چې يوه سخته کلکه پرښه مخې ته راغله، اصحاب (رضي الله عنهم) د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته ورغلل او ورته ويې ويل: په خندق کې سخته کلکه پرښه را پيدا شويده! رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: پريږدئ زه پخپله ورکوزيږم، بيا پداسې حال کې پاڅيد چې په خيټه يې تيږه تړلې وه، او دا داسې وخت ؤ چې مونږ درې ورځې په څه شي څک هم نه ؤ وهلی، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) کلنګ واخيست او په پرښه يې وار وکړ، په همدې ګوزار سره هغه سخته پرښه لکه ريګ داسې دانې دانې شوه.[3]

حضرت براء (رضي الله عنه) وايي: د خندق ايستلو په دوران کې يوه داسې پرښه مخې ته راغله چې کلنګونو هيڅ اثر نه پرې کاوه، ورغلو او رسول الله (صلی الله عليه و اله و

---

[1]. صحيح البخاري ٢/ ٥٨٨ - ٥٨٩
[2]. ابن هشام ٢/ ٢١٨
[3]. صحيح بخاري ٢/ ٥٨٨

صحبه و سلم) ته مو شکايت وکړ. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) راغی کلنګ يې واخيست او ويې فرمايل: بسم الله او ګوزار يې وکړ، بيايې وفرمايل: (**الله أكبر، أعطيت مفاتيح الشام، والله إني لأنظر قصورها الحمر الساعة**). الله اکبر د شام د فتحې کلیانی راکړې شوې، دا دی زه همدا اوس د هغه ځای سرې ماڼۍ وينم. بيا يې دوهم ګوزار وکړ، پرښه يې ماته کړه او ويې فرمايل: (**الله أكبر، أعطيت فارس، والله إني لأبصر قصر المدائن الأبيض الآن**). الله اکبر د فارس واک هم راکړل شو، قسم په خدای چې اوس د مدائن سپين قصر وينم. بيايې په بسم الله سره دريم ګوزار ورباندې وکړ او پرښه ټوله ميده شوه، ويې فرمايل: (**الله أكبر، أعطيت مفاتيح اليمن، والله إني لأبصر أبواب صنعاء من مكاني**).الله اکبر د يمن د فتحې کلیانې راکړل شوې، قسم په خدای چې له همدې ځای نه د صنعاء دروازې ګورم.[1]

ابن اسحاق همدې ته ورته روايت له سلمان الفارسي (رضي الله عنه) نه رانقل کړيدی.[2]

د مدينې موقعيت څه داسې و چې له شمالي لوري پرته نورو ټولو خواوو ته يې د خرماوو باغونه، غرونه او ريګستاني پوښتې وې. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د يوه عسکري متخصص په حيث پدې ښه پوهيده چې د مشرکينو دا لوی لښکر پر مدينه باندې يوازې له شمالي لوري نه حمله کولی شي، او له همدې خوا نه ورباندې راتلی شي، په همدې اساس يې خندق د مدينې په شمالي خوا کې وکينده.

مسلمانانو خندق کيندلو ته ادامه ورکړه، ټوله ورځ به يې کار کاوه ماښام به کورونو ته ستنيدل او مخکې لدينه چې د مشرکينو لوی او بې شميره لښکر مدينې ته را ننوځي دوی د خندق کار بشپړ کړی ؤ.[3]

د قريشو څلور زره کسيز لښکر د مدينې پولو ته راورسيد، د رومه سيمې زعابه او جرف په مينځ کې يې په مجتمع الاسيال (د سيلابي اوبو د يو ځای کيدو په محل)کې واړول. د غطفان، نجد او ملګرو يې شپږ زره پوځيان هم راغلل د احد په شرقي خوا کې يې په ذنب نقمي سيمه کې خيمې ودرولې. ((**وَلَمَّا رَأَى الْمُؤْمِنُونَ الأَحْزَابَ قَالُوا هَذَا مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَصَدَقَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَمَا زَادَهُمْ إِلاَّ إِيمَاناً وَتَسْلِيماً**)) (الاحزاب:۲۲) [او کله چې ولـيـدلې مؤمنانو لښکرې (د مشرکينو) نو وويل

---

[1]، سنن النسائی ۲/ ۵۶، احمد فی مسنده لفظ د نسائی ندی، په هغه کې راغلی: وعن رجل من الصحابه.

[2]. ابن هشام ۲/ ۲۱۹

[3] ابن هشام ۲/ ۳۳۰ - ۳۳۱

(مؤمنانو) دا هغه دی چې وعده کړې ده له مونږ سره الله او رسول د دغه (الله د نصرت) او ربنتيا ويلي و الله او رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ددغه (الله په وعده کې) او زيات نکړ دغو (لښکرو) د مشرکينو مؤمنانو ته مګر ايمان او تسليم (احکامو د الله ته).]

خو د منافقانو او کمزوري ايمان د خاوندانو حالت بيا بل څه ؤ، هغوی ددې لښکرو په ليدو سره ويرې واخيستل، الله تعالی د دوی حالت ته اشاره کوي فرمايي:

((وَإِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ إِلاَّ غُرُوراً)) (الاحزاب: ۲۲)

[او (ياد کړه هغه وخت) کله چې وويل: (ابن ابي، ابن قشر او نورو) منافقانو او (وويل) هغو کسانو چې په زړونو د دوی کې مرض (د نفاق) و چې نه ده وعده کړې له مونږ سره الله او رسول ددغه (الله په فتح د شام، يمن، پارس) مګر په غرور، تير ايستلو سره.]

له مشرکينو سره د مقابلې پخاطر رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له درې زره اصحابو (رضي الله عنهم) سره له مدينې نه راغی، شا يې د سلع غره ته وګرزوله او هملته يې سنګر ونيو خندق د دوی او مشرکينو تر منځ واقع ؤ شعار او شفر يې ((حم – لا ينصرون)) و.

ابن ام مکتوم يې په مدينه کې خليفه وټاکه، ښځې او ماشومان يې د مدينې په کلاګانو او برجونو کې سره ټول کړل. کله چې مشرکينو پر مسلمانانو او مدينې باندې د يرغل تکل وکړ، ويې ليدل چې ډير ژور او سورور خندق يې مخې ته دی، بله چاره يې ونه ليده د مسلمانانو د محاصرې په فکر کې شول. دا پداسې حال کې چې له مکې نه د روانيدو په وخت کې ورسره د محاصرې فکر او پلان نه ؤ. دوی دې ډول يوه اقدام ته تياري نه درلوده، بلکه د دوی پخپله خبره دا خندق داسې يو چل او تاکتيک ؤ چې عربانو نه پيژانده او نه پرې پوهيدل، اصلاً يې د خندق فکر ذهن ته راغلی هم نه ؤ.

مشرکان به په ډيره غوسه د خندق په غاړه تاويدل، او هلته به يې د کمزورۍ او ضعف د نقطو پلټنه کوله، تر څو له همغې نه په استفادې سره اخوا تير شي. مسلمانانو حالات څارل مشرکين يې تر کـلـکې څ ا رنې لاندې نيولي وو، هغوی به يې په غشو ويشتل تر څو له خندق نه د تيريدو جرات ونکړي، نه به يې پريښودل خندق ته ورلنډ شي، ځانونه پکې واچوي او يا يې په خاورو سره د ډکولو هڅه وکړي او ځانته لاره پکې جوړه کړي.

د قریشو ځینو جنګیالیو دا نه شوای زغملی چې د محاصرې نتیجې او پایلې ته انتظار وباسي، او بې فاید د خندق په څنډو ولاړ وي، دا د دوی لپاره د زغم نه وه. همدا وه چې یوه ډله چې عمرو بن عبد ود، عکرمه بن ابي جهل، ضرار بن الخطاب او نور پکې وو راووتل، د خندق یوه تنګه نقطه یې انتخاب کړه او ورداخل شول، آسونه یې له خندق نه تیر شول د خندق او سلع غره تر مینځ پدې ساحه کې یې وځغلول. حضرت علي (رضي الله عنه) له یو شمیر مسلمانانو سره د دوی مقابلې ته را ووت او همغه ځای یې ورته ونیو له کوم نه چې دوی راتیر شوي وو.

پدې وخت کې عمرو غږ وکړ چې څوک مقابلې ته تیار دي؟ حضرت علي (رضي الله عنه) ور وړاندې شو او داسې یوه خبره یې ورته وکړه چې عمرو له ډیرې غوسې نه له آس نه ورکوز شو، د آس پښې یې پرې کړې او پر مخ یې هم ګوزارونه ورباندې وکړل. عمرو د قریشو له ډیرو مشهورو غیرتي جنګیالیو څخه شمیرل کیده، دواړه سره مخامخ شول، یو پر بل یې د ګوزارونو هڅې کولې. بالاخره علي (رضي الله عنه) وتوانید چې خپل دښمن (عمرو) له پښو وغورځوي او په هلاکت یې ورسوي، نورو مشرکینو د تیښتې لاره ونیوله او داسې ویرې اخیستي وو چې له عکرمه نه خپله نیزه هم پاتې شوې وه او له میدان نه یې منډې وهلې.

څو ځله داسې هم شوي چې مشرکینو له خندق نه د تیریدلو سخت کوششونه کړیدي، ډیرې هڅې به یې کولی چې ځانته پکې لاره ومومي، لکن مسلمانانو په ډیره میړانه مقابله کوله په غشو به یې ویشتل او کلکه دفاع به یې کوله. د مسلمانانو د همت او شجاعت له برکته د مشرکینو ټولې هڅې ناکامې او شنډې شوې. مسلمانان په داسې کلکه او مسلسله مقابله بوخت وو چې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او اصحابو (رضي الله عنهم) نه څو لمونځونه هم قضا شول. په بخاري او مسلم کې له جابر (رضي الله عنه) نه روایت دی وایي: د خندق د غزا په ورځ عمر (رضي الله عنه) راغی او مشرکینو ته یې بد رد ویل، بیا یې وویل: یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! نن مې په ډیر مشکل سره د لمازدیګر لمونځ د لمر پریوتو په وخت کې ادا کړ. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: قسم په الله چې ما لا تر اوسه هم لمونځ ندی ادا کړی.

جابر (رضي الله عنه) زیاتوي: بیا مونږ له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره بطحان ته کوز شوو، هلته یې اودس وکړ مونږ هم اودسونه وکړل، بیا یې د لمازدیګر لمونځ پداسې وخت کې راکړ چې لمر لویدلی ؤ، ورپسې یې د ماښام لمونځ

ادا کړ[۱].

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د لمانځه د قضا کیدو له امله دومره خفه شو چې د مشرکینو لپاره یې ښیرې وکړې. بخاري له علي (رضي الله عنه) نه روایت کوي وایي: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د خندق په ورځ وفرمایل:(**ملأ الله علیهم بیوتهم وقبورهم ناراً، کما شغلونا عن الصلاة الوسطي حتی غابت الشمس**).الله تعالی دې د مشرکینو کورونه او قبرونه له اور نه ډک کړي، هغه چې مونږ یې داسې مصروف وساتلو چې د لمازدیګر لمونځ مو دومره ناوخته شو چې له لمر پریوتو نه وروسته مو ادا کړ.[۲]

په مسند امام احمد او امام شافعي کې روایت دی چې مشرکانو داسې سختې حملې کولې او مسلمانان یې دومره مصروف ساتلي وو چې د ماسپښین، لمازدیګر، ماښام او لماسختن ټول لمونځونه ورنه قضا شول، بیا وروسته یې ټول یو ځای ادا کړل. امام نووي وایي: ددې روایتونو تر مینځ جمع داسې کیدی شي چې خندق غزا څو ورځې وه، کیدای شي یوه ورځ یو لمونځ ورنه قضا شوی وي، او په بله ورځ ټول قضا شوي وي.[۳]

لدینه دا خبره ثابتیږي چې مشرکینو څو ورځې مسلسل هڅه کوله له خندق نه تیر شي، او مسلمانان هم په مسلسله توګه په کلکه دفاع او مقابله بوخت وو. او څرنګه چې خندق د دواړو لوریو تر مینځ حایل و، نو مخامخ جګړه او خونړۍ نښته نده شوې، بلکه دواړو لوریو یو پر بل غشي ویشتل او له لیرې نه مقابله روانه وه. د غشو ویشتلو په نتیجه کې له دواړو لښکرو نه څو کسه ووژل شول، پدې جمله کې شپږ مسلمانان شهیدان شول او لس مشرکین په هلاکت ورسیدل. پداسې حال کې چې یوازې یو او یا دوه کسان په توره وژل شوي دي.

همدا راز پدې دوران کې سعد بن معاذ (رضي الله عنه) هم په غشي ولګید او د مټ لوی رګ یې پرې شو. نوموړی د قریشو د یوه تن چې حبان بن العرقه نومیده په غشي ولګید. پدې وخت کې سعد (رضي الله عنه) دعا وکړه خدایه! ته ښه عالم یې، چې زه له ټولو نه زیات له هغو کسانو سره جګړه خوښوم کوم چې ستا د رسول (صلی الله علیه

---

(1). صحیح بخاري ۲/ ۵۹۰

(2). همدا مصدر

(3). مختصر سیره الرسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) للشیخ عبدالله النجدي ص ۲۸۷ شرح مسلم للنووي / ۲۲۷

و اله و صحبه و سلم) تکذيب يې کړی او هغه يې له خپل کور نه په هجرت کولو مجبور کړی، اې الله! داسې ښکاري لکه چې زمونږ او دوی تر مينځ جګړه وروستي پړاو ته رسيدلی وي، که چيرې له قريشو سره زمونږ د جګړې څه وخت پاته وي، نو خدايه، ما ورته ژوندی پريږده، تر څو زه ستا په لاره کې جهاد ورسره وکړم، او که له دوی سره جګړه دې پای ته رسولې وي، نو بيا دا زخم وشړوه او مرګ مې له همدې ټپ نه وګرزوه،[1]. د دعا په پای کې يې وويل:اې خدايه! تر هغې پورې مې مه وژنه تر څو مې په بنو قريظه زړه نه وي يخ شوی.[2]

پداسې حال کې چې مسلمانان د جګړې په ډګر کې له دا ډول ستونزو سره لاس او ګريوان وو، د فريب او غدر لښکر لکه د زهرجنو مارانو په شان اوړيدل را اوړيدل، او زيار يې يوست چې مسلمانانو ته زيان ورسوي.

د بنو نضير مشر او لوی مجرم روان شو، د بني قريظه م ی ن ې ته ورغی، هلته يې له کعب بن اسد قرظي سره چې د بني قريظه مشر ؤ وليدل. بني قريظه له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره دا عهد کړی ؤ چې که جنګ پيښيږي نو دوی به د مسلمانانو څنګ ته دريږي او مرسته به يې کوي. حيي ورغی د کعب دروازه يې وټکوله، کعب دروازه نه ورته پرانيستله، خو هغه اصرار کاوه تر څو چې دروازه يې ورته خلاصه کړله. حيي ورته وويل: ما تا ته هميشنی عزت او بې شميره لښکرې راوستې دي، قريش، د هغوی مشران او مخور ټول مې درته راوستلي دي، هغوی اوس د رومه په مجمع الاسيال کې دي، ما غطفان او د هغوی مشران او رهبران ټول درته راوستلي دي، هغوی د احد په خوا په ذنب نقمي کې اړولي دي، دوې ټولو له مونږ سره دا عهد کړيدی چې تر هغې به په شا نه ځي تر څو يې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او اصحاب (رضي الله عنهم) له مينځه نه وي وړي.

کعب ورته وويل: قسم په خدای چې تا عزت نه، بلکه ذلت راته راوړی، او داسې يو لښکر دې راوستلئ چې هغه وريځې ته ورته دی چې هيڅ اوبه نه وي پکې پاتې. هغه وريځ چې رعد او برق يې وي خو د باران درک يې نه وي، اې حيي! ستا په حال افسوس، ما پريږده، ما له محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه له رښتيا او وفاء نه پرته بل څه ندي ليدلي.

خو حيي همداسې لګيا وو په يوه او بله لار يې د کعب د قانع کولو کوښښ کاوه، تر څو دا عهد يې ورکړ ورته ويې ويل: د خدای په نامه دا عهد درسره کوم که چيرې

(1). صحيح بخاري ۳/ ۵۹۱
(2)ابن هشام ۲/ ۳۳۷

قريش او غطفان پدې ونه توانيدل چې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له مينځه يوسي، او بيرته مکې ته ستانه شول، نو پدې صورت کې به زه ستا سره يو ځای ستاسې په کلا کې پاتې کيږم، او څه چې پر تا راځي هغه دې په ما هم راشي، پدې سره کعب بن اسد له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره خپل تړون مات کړ، او له مسلمانانو نه يې د د وستۍ پيمان بيرته واخيست، او د هغوی په خلاف د مشرکينو په خوا کې ودريدل.[1]

همدا وه چې د بني قريظه يهودو عملاً د مسلمانانو په خلاف جنګي عمليات پيل کړل.

ابن اسحاق وايي: صفيه بنت عبدالمطلب (رضي الله عنها) د حسان بن ثابت (رضي الله عنه) په فارع نومي کلا کې وه، هلته له حسان سره د مدينې ماشومان او ښځې هم وې. صفيه (رضي الله عنها) وايي: يو يهودی زمونږ کوڅې ته راغی، تر کلا شاو خوا تاويده، دا هغه وخت ؤ چې بنو قريظه له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره خپل تړون مات کړی ؤ او د مسلمانانو په خلاف جګړې ته داخل شوي وو. له مونږ سره هيڅوک هم نه وو چې دفاع رانه وکړي، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او مسلمانان له دښمنانو سره په مقابله بوخت وو، که مونږ ته څه مشکل پيدا کيدلې، هغوی مو مرستې ته نه شوای راتللی. صفيه (رضي الله عنها) زياتوي: حسان ته مې وويل: حسانه! دا يهودی خو وينې چې له کلا نه د باندې ګرزي، قسم په خدای زه فکر کوم چې غواړي زمونږ خبر نورو يهودانو ته يوسي، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او اصحاب (رضي الله عنهم) خو هلته مشغول دي، ته ورشه او دا يهودی ووژنه. حسان وويل: ته خو ښه پوهيږې، چې زه ددې کار لپاره تيار او مناسب نه يم. صفيه (رضي الله عنها) وايي: همدا وه چې ما خپله ملا وتړله او يو کوتک مې راسره واخيست، ورکوزه شوم پر هغه کوتک يا ستنه چې راسره وه يو سخت ګوزار مې پرې وکړ او يهودی مې وواژه، بيرته کلاته راغلم. حسان ته مې وويل: اوس ورشه او له هغه نه يې وسله را واخله، ځکه ما لاس ورنه وور. حسان (رضي الله عنه) راته وويل: زه دده وسلې او سامان ته هيڅ اړتيا نلرم.[2]

---

(1). ابن هشام ۲/ ۲۲۰ - ۲۲۱

(2). ابن هشام ۲۲۸/۲ . لدې حديث نه داسې معلوميږي چې حسان (رضي الله عنه) بې زړه او ډ ا رن و، خو يو شمير علماوو ددې ځواب ويلی او دا حديث يې منکر بللی ځکه سند يې منقطع دی، او که حديث صحيح وي، نو د حسان هجوه ورنه څرګنديږي، پدې صورت کې ځواب دا دی چې کيدای شي هغه ورځ به حسان ناروغ و. زه دا تر ټولو غوره تاويل بولم.

پدې ډول سره د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) عمه حضرت صفيې (رضي الله عنها) داسې يوه عظيمه کارنامه تر سره کړه چې د مسلمانانو د ميرمنو او اولادونو د ساتنې سبب شوه، يهودانو داسې گمان وکړ چې گويا يو شمير مسلمانان لدې کلاگانو او برجونو نه ساتنه کوي. پداسې حال کې چې اصلاً دا ټول خالي وو، هيڅوک هم دلته موجود نه وو. همدا يو جراتمندانه اقدام ددې سبب شو چې يهودانو بيا دې ډول اقدام ته زړه ښه نه شواى کړى. خو په عملي توگه يې له مشرکانو سره مرسته کوله کومکي مواد يې ور استول، او له همدې کومکي موادو نه مسلمانانو يو ځل شل اوښان ونيول.

کله چې دا خبر رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او مسلمانانو ته ورسيد، نو د خبر د تحقيق او د بني قريظه د دريځ معلومولو پخاطر يې سعد بن معاذ، سعد بن عباده، عبدالله بن رواحه، او خوات بن جبير (رضي الله عنهم) هغوى ته واستول او ورته يې فرمايل: (**انطلقوا حتى تنظروا أحق ما بلغنا عن هؤلاء القوم أم لا ؟ فإن كان حقاً فالحنوا لي لحناً أعرفه، ولا تَفُتُّوا في أعضاد الناس، وإن كانوا على الوفاء فاجهروا به للناس**). لاړ شئ او وگورئ چې دا خبر رښتيا دى او که نه؟ که فرضاً خبره رښتيا وه يعنې هغوى له مونږ سره خپل تړون مات کړى او له قريشو سره يې تړون کړى وئ نو خبره په رموز کې وکړئ، داسې څه راته ووايئ چې يوازې زه پرې پوه شم، خبره ټولو خلکو ته مه اعلانوئ، او که فرضا هغوى تر اوسه پورې له مونږ سره وفادار پاتې شوي وو، عهد يې نه و مات کړئ، نو بيا يې ټولو خلکو ته اعلان کړئ. پلاوى چې ورلنډ شو نو له يهودو نه يې دومره بده معامله وليده چې گمان يې هم نه کيده. فوراً يې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په شان کې گستاخي وکړه د هغه پلاوي ته يې بد رد وويل. په ډيره بې شرمۍ سره يې ورته وويل: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) څوک دى؟ زمونږ او محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تر مينځ هيڅ تړون نشته. ځئ بيرته لاړ شئ. هيئت همداسې ورنه روان شو او کله چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته ورسيدل، نو په شفر کې يې ورته وويل: (**عضل و قاره**) يعنې بنو قريظه هم داسې غدر کړيدى لکه څرنگه چې د عضل او قاره خلکو له اصحاب الرجيع سره کړى وُ.

که څه هم کوشش وشو چې خبره پټه وساتل شي، خو اصحاب (رضي الله عنهم) په حقيقت پوه شول او د لوى خطر احساس يې وکړ. دا د مسلمانانو لپاره تر ټولو سخته

شيبه وه، د دوی او بنو قريظه تر مينځ هيڅ حايل نه ؤ، هغوی هر وخت کولی شوای پر مسلمانانو د شا له خوا نه بريد وکړي. دا هم په داسې وخت کې چې مخې ته يې د مشرکينو داسې يو لوی لښکر پروت ؤ چې يوه لحظه يې هم له سترګو نه شوای پناه کولی. د مسلمانانو پر ماشومانو او ميرمنو د يهودو د بريد د مخنيوي لپاره څوک نه وو، ټول مسلمانان ډېر غمجن وو، د دوی دغه حالت قرانکريم داسې تر سيموي او فرمايي: ((وَإِذْ زَاغَتْ الأَبْصَارُ وَبَلَغَتْ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ وَتَظُنُّونَ بِاللَّهِ الظُّنُونَا (١٠) هُنَالِكَ ابْتُلِيَ الْمُؤْمِنُونَ وَزُلْزِلُوا زِلْزَالاً شَدِيداً)) (الاحزاب: ١٠– ١١)

[او کله چې کږې خړې شوې سترګې (له ډيرې ويرې) او ورسيدل زړونه بيخونو د مريو ته (له ډيره خوفه) او ګمانونه وکړل تاسو پر الله راز راز ګمانونه، پدې وخت کې وازمويل شول مؤمنان (له منافقانو څخه) او وخوځول شول په خوځولو سختو سره (له ډيرې ويرې).]

دلته يو ځل بيا د ځينو منافقينو نفاق څرګند شو او ويې ويل: محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مونږ ته د کسرې او قيصر د خزانو وعده راکوي، خو نن مونږ حتی نه شو کولی د قضاء حاجت لپاره د باندې ووزو! ځينې منافقين خو راغلل او دروغ بهانې يې جوړې کړې چې زمونږ په کورونو کې څوک نشته، يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مونږ ته اجازه راکړه چې خپلو کورونو ته لاړ شو! زمونږ کورونه له مدينې نه د باندې واقع دي، تر زيات خطر لاندې دي! په بنو سلمه کې هم بالکل ماتې ګډه شوه، د همدوی په هکله الله تعالی دا آيتونه نازل کړل: ((وَإِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ إِلاَّ غُرُوراً (١٢) وَإِذْ قَالَتْ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ يَا أَهْلَ يَثْرِبَ لا مُقَامَ لَكُمْ فَارْجِعُوا وَيَسْتَأْذِنُ فَرِيقٌ مِنْهُمْ النَّبِيَّ يَقُولُونَ إِنَّ بُيُوتَنَا عَوْرَةٌ وَمَا هِيَ بِعَوْرَةٍ إِنْ يُرِيدُونَ إِلاَّ فِرَاراً)) (الاحزاب : ١٢– ١٣)

[او (ياد کړه هغه وخت) کله چې ويل (ابن ابي، ابن قيشر او نورو) منافقانو او (ويل) هغو کسانو چې په زړونو د دوی کې مرض (د نفاق) و چې نه ده وعده کړې له مونږ سره الله او رسول ددغه (الله په فتح د شام، يمن، پارس) مګر په غرور، تير ايستلو سره. او کله چې وويل يوې طايفې له دغو (منافقانو) چې اې اهل د يثربه (مدينې) نشته ځای (د هستوګنې) تاسې ته پس بيرته وګرځئ او اذن (د بيرته تللو) غواړي يو فريق ډله له دوی له نبي نه وايي (بنو حارثه او بنو سلمه) چې بيشکه کورونه زمونږ تش پراته دي

(له سرېو) حال دا چې ندي تش پراته کورونه د دوی نه لري اراده دوی (په دغه تنګ سره) مګر د تیښتې ( له جنګه).]
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته چې د بنو قریظه د غدر خبر راغی، نو خپل مبارک سر او مخ یې په چادر کې پټ کړ وغزید، څه ځنډ یې وکړ. اصحابو (رضي الله عنهم) چې دا حالت ولید نور هم پریشانه شول. په همدې وخت کې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په زړه کې د هیلې او امید نوې څپه راغله، را پاڅید د الله اکبر ناره یې وکړه، ویې وفرمایل: (**الله أکبر، أبشروا یا معشر المسلمین بفتح الله ونصره**).مسلمانانو! د الله تعالی له لوري د بري او فتحې مبارکي درکوم. بیا یې پیل وکړ له حالاتو سره د مقابلې په فکر کې شو، په عملي اقداماتو یې لاس پورې کړ، یوه جامعه طرحه یې جوړه کړه. د همدې طرحې په اساس به یې یوه ډله وسله وال کسان مدینې ته ولیږل تر څو په ماشومانو او کورونو برید ونه شي. د وخت غوښتنه دا وه چې باید یو داسې اقدام وشي چې د مشرکانو لیکې دړې وړې کړي. د همدې غرض پخاطر رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اراده وکړه د غطفان قبیلې له مشرانو عیینه بن حصن او حارث بن عوف سره مصالحه وکړي. هغوی ته یې وړاندیز وکړ چې که دوی بیرته ستانه شي او خپل قوم له ځان سره بوزي، نو په بدل کې به ورته د مدینې د میوې دریمه برخه ورکړل شي. دوی ته دا وړاندیز وشو چې تاسو لاړ شئ، قریش یوازې پریږدئ تر څو مونږ حساب ورسره وکړو. پدې وړاندیز څه خبرې وشوې، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له سعدینو (سعد بن معاذ او سعد بن عباده (رضي الله عنهما) ) سره مشوره وکړه. هغوی دواړو ورته وویل: یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! که چیرې الله تعالی دا امر درته کړی وي، نو په سترګو مو منلی، او که دا ستا له خوا زمونږ د نجات لپاره یوه هڅه وي، نو بیا عرض دا دی چې د جاهلیت او بت پرستۍ په زمانه کې هم هغوی په زور سره زمونږ میوې ندي خوړلې، هغه وخت یې د مدینې یوازې هغه میوې خوړلې دي چې یا یې اخیستې او یا چا په میلمستیا کې ورکړې دي، اوس چې الله په اسلام مشرف کړو، هدایت یې راته وکړ، او د ستاسو په وجود سره یې عزت راوبښلو، نو بیا ولې دا میوې ورکړو؟ قسم په الله چې له تورې پرته به هیڅ ورنکړو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هم د دوی رایه غوره وبلله او ورته ویې فرمایل: (**إنما هو شيء أصنعه لکم لما رأیت العرب قد رمتکم عن قوس واحدة**).دا زما طرحه وه ما ددې پخاطر وړاندې کړې وه چې له خطر نه مو وژغورم ځکه ما لیدل چې عرب ټول ستاسې په

خلاف دریدلي دي. بیا الله تعالی د خپل رحمت له مخې داسې کار برابر کړ چې د دښمنانو د ماتې، رسوایۍ او بیلتون سبب شو، غرور یې مات او مستي یې له مینځه لاړه. او دا کار داسې وشو چې د غطفان قبیلې یو شخص چې نعیم بن مسعود بن عامر الاشجعی (رضي الله عنه) نومیده رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته راغی عرض یې وکړ: یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! زه مسلمان شوی یم، خو قوم مې رابانديې خبر ندی، امر راته کوه څه وکړم؟ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل:((**انما انت رجل واحد،فخذل عنا ما استطعت فان الحرب خدعة**)). ته یو کس یې، دښمن چې په هرې طریقې سره له مونږ نه دفع کولی شې، هغه وکړه، ځکه جګړه چل دی. نعیم فوراً بني قریظه ته ورغی، له دوی سره یې له پخوا نه ښې اړیکې درلودې، ورغی او ورته ویې ویل: تاسو خو پدې پوهیږئ چې زه له تاسو سره څومره مینه لرم، زمونږ او ستاسې اړیکې ډیرې نژدې دي. دوی ورته وویل: پدې کې خو شک نشته. ده ورته وویل: ګورئ قریش خو ستاسې په شان ندي، دا وطن ستاسې دی، ستاسې مالونه ، ښځې، اولادونه او ټول شیان همدلته دي، دا خو امکان نلري چې دا ټول پریږدئ او بل ځای ته کوچ وکړئ ، قریش او غطفان چې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره د جګړې په نیت راغلي، دا دی تاسې له هغوی سره مرسته کوئ، د هغوی اولادونه، مالونه او ښځې ټول پخپل وطن کې دي که فرصت ورته برابر شو بریالي شول نو ښه، او که نه نو ولاړ به شي، تاسې به محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته یوازې پریږدي! دوی ورته وویل: نو څه کول په کار دي یا نعیم! ده ورته وویل: تر هغې پورې په جګړه کې مرسته مه ورسره کوئ تر څو مو ورنه څه کسان ګرو نه وي اخیستې. دوی دده رایه خو ښه کړه او ویې ویل: ښه مشوره دې راکړه.

بیا نعیم سیخ قریشو ته ورغی او ورته ویې ویل: پدې خو پوه یاستئ چې زه ستاسې سره ډیره مینه او همدردي لرم. دوی وویل: بیشکه ته زمونږ دوست یې، ده وویل: د بني قریظه یهود له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره پخپل عهد او تړون ماتولو پښیمانه شوي، هغوی له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره بیا رابطه ټینګه کړې، او دا وعده یې ورسره کړیده چې دوی به له تاسې نه ځینې کسان ګرو اخلي او بیا به یې محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته سپاري، او پدې سره به له هغه سره خپله دوستي ټینګوي، که فرضاً یهودو له تاسو نه د څه

کسانو د ګرو کولو غوښتنه وکړه، نو مه یې منئ او ګروګان مه ورکوئ. بیا له دوی نه لاړ او غطفان ته ورغی، هغوی ته یې هم همداسې خبره وکړه. کله چې د پنځم هجري کال د شوال میاشتې د هفتې ورځ را ورسیدله، قریشو بني قریظه ته احوال ولیږه، چې مونږ خو دلته مسافر یوو، پخپل وطن کې نه یوو، اوښان او آسونه مو مري، راځئ زمونږ مرسته وکړئ تر څو په محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) برید وکړو. یهودو ځواب ورواستاوه چې نن خو د هفتې ورځ ده، تاسې خو خبر یئ چې پدې ورځ زمونږ د شریعت له حکم نه سرغړوونکو ته کومه سزا ورکړل شوې ده، په هر حال مونږ تر هغې پورې ستاسې په ګټه په جګړه کې برخه نه اخلو تر څو پورې مو مونږ ته څو کسان د یرغمال په توګه نه وي را کړي. د قریشو قاصد چې دا خبر راوړ، قریشو او غطفان یو بل ته وویل چې قسم په الله نعیم رښتیا ویلي وو. فوراً یې یهودو ته خبر ولیږه چې قسم په خدای که یو کس هم یرغمال درکړو، راځئ چې په ګډه پر محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حمله وکړو. قریظه ددې خبر په اوریدو سره وویل: نعیم رښتیا راته ویلي او په همدې طریقې سره د یهودو او مشرکینو تر مینځ بې اتفاقي او نفاق را مینځته شو، ارادې یې سستې او حوصلې یې ټیټې شوې. مسلمانانو خپل رب ته زارۍ او سوالونه کول او ویل به یې: (**اللهم استر عوراتنا وآمن روعاتنا**).اې الله! ته زمونږ پرده وکړې، له خطراتو نه مو په امن وساتې. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د مشرکینو په حق کې ښیرې کولې، او له الله (جل جلاله) نه یې د هغوی د ماتې سوالونه کول فرمایل یې:(**اللهم منزل الکتاب، سریع الحساب، اهزم الأحزاب، اللهم اهزمهم وزلزلهم**).اې د قرآنکریم نازلونکیه ربه! اې په چټکۍ سره حساب کونکیه! ته د مشرکینو دا ټولی مات کړې، خدایه دوی ته شکست او ماتې ورکړې او ویې لړزوې.[1]

الله تعالی د خپل رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او مسلمانانو سوالونه قبول کړل، وروسته له هغې چې د مشرکینو، یهودو او مشرکینو تر مینځ نفاق او درز پیدا شو، الله تعالی داسې باد ورباندې مسلط کړ چې خیمې یې ورته پورته کړې، دیګونه یې ورته چپه کړل، د خیمو تناوونه یې له بیخه راوایستل، هیڅ شی یې په امن نه وو. همدا راز الله تعالی د ملایکو لښکر هم ورواستاوه، مشرکین یې ولړزول او په زړونو کې یې ویره او رعب ور واچاوه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)

---

[1]. صحیح البخاري، کتاب الجهاد ۱/ ۴۱۱. کتاب المغازي ۲/ ۵۹۰

په همدې سخته سړه شپه کې حذيفه بن اليمان د مشرکينو ميځ ته ورواستاوه تر څو د هغوی په هکله معلومات راوړي. حذيفه (رضي الله عنه) ورغی او ويې ليدل چې د مشرکينو هر څه په بل مخ چپه دي ټولو د بيرته تلو تياري پيل کړې. همدا احوال يې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته وړاندې کړ. او چې سهار شو، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وليدل چې الله (جل جلاله) يې دښمنانو ته ماتې ورکړې، او پداسې حال کې بيرته تللي چې د الله تعالی له قهر او غضب نه پرته يې هيڅ هم لاسته ندي راوړي. او په همدې سره الله تعالی خپله وعده رېښتونې کړه، خپل لښکر (مسلمانانو) ته يې عزت ورکړ، د خپل بنده (محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ) مرسته يې وکړه، او ټولو مشرکينو ته يې ماتې ورکړه، په پای کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) بريالی مدينې ته ستون شو.

د خندق غزا په صحيح روايت سره د هجرت په پنځم کال د شوال په مياشت کې وه. مشرکينو تقريباً يوه مياشت رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او اصحاب (رضي الله عنهم) محاصره کړي وو. له رواياتو داسې ښکاري چې د محاصرې پيل د شوال په مياشت او په ذي القعدې کې پای ته رسيدلی ؤ. ابن سعد وايي چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له خندق نه د چارشنبې په ورځ چې د ذي القعدې يوازې اوه ورځې پاتې وې مدينې ته ستون شو.

د خندق غزا د تلفاتو جګړه نه وه، بلکه دا د اعصابو جنګ ؤ، که څه هم پدې غزا کې سختې ښتې ندي شوي، خو بيا هم د اسلامي تاريخ له پريکنده جګړو څخه شميرل کيږي. پدې جګړه کې مشرکينو ماتې وخوړه، حوصلې يې پريوتې. ددې غزا په ترڅ کې دا په اثبات ورسيدله چې د عربو هيڅ ځواک هم ددې توان نلري چې په مدينه کې مخ په وده وړوکی قوت له مينځه يوسي. ځکه ټولو وليده چې عربان ټول په پوره شور او ځواک سره راغلي وو، خو هيڅ يې هم ونه شوای کړی، همدا وجه وه کله چې احزاب د الله تعالی په امر له مدينې نه ستانه شول، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: اوس به مونږ وربانديې حملې کوو، نور به دوی رابانديې حملې نه کوي، مونږ به ورپسې ورځو.[1]

---

[1]. صحيح بخاري ۲/ ۵۹۰

# د بني قريظه غزا

په هماغه ورځ چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) بيرته مدينې ته تشريف راوړ، ماسپښېن جبريل (عليه السلام) پداسې حال کې ورته راغی چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ام سلمه (رضي الله عنها) په کور کې غسل کاوه، ورته ويې ويل: ايا تا خپله وسله ایښې ده؟ ملايکو خو تر اوسه وسلې ندي اينبې او زه همدا اوس د دوی (مشرکانو) له تعقيب نه راوګرځيدم، لاړ شه له خپلو اصحابو (رضي الله عنهم) سره د بني قريظه په لور لاړشه، زه له تا نه مخکې ور روان يم، کلا ګانې يې ورباندې لړزوم، په زړونو کې يې ويره اچوم . ورپسې جبريل (عليه السلام) له ملايکو سره روان شو.
رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) امر وکړ چې ټولو ته دا اعلان وشي: څوک چې امر قبلونکی وي بايد د لمازديګر لمونځ بني قريظه ته ورسوي. عبدالله بن ام مکتوم يې د مدينې والي وټاکه، بيرغ يې علي (رضي الله عنه) ته ورکړ، او د بني قريظه په لور يې واستاوه. علي (رضي الله عنه) لاړ او کله چې د بني قريظه کلا ګانو ته ورلنډ شو د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په هکله يې له يهودو نه نا مناسبې خبرېګ و اوريدلې.
رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د انصارو او مهاجرينو (رضي الله عنهم) له يوه ټولي سره روان شو، مخکې لاړ او د بني قريظه له (انا) نومې څاه سره تم شو. مسلمانانو ټولو د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د امر تعميل وکړ، فوراً روان شول، دوی په لاره کې وو چې د لمازديګر د لمانځه وخت را ورسيد، ځينو وويل: امر راته شوی چې لمونځ بايد په بني قريظه کې وکړو، له همدې ډلې نه ځينو د لمازديګر لمونځ ان له ماسختن نه وروسته ادا کړ، نورو اصحابو (رضي الله عنهم) وويل چې د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) هدف دا وُ چې په بيړه لاړ شو نه دا چې لمونځ له هغه ځای پرته بل ځای ادا نکړو، نو هغوی همدلته د لارې په اوږدو کې لمونځ وکړ. وروسته رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) يوې ډلې ته هم عتاب ونکړ او ملامتي يې ورباندې ونه ويله (ځکه دواړو د خپل اجتهاد پيروي کړې وه). پدې ډول مسلمانان ألى ألى د بني قريظه په لور لاړل، ټول له رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره يو ځای شول. د ټولو شميره

دری زره وه، ورسره دیرش آسانونه هم وو. لاړل د بني قریظه له کلا ګانو نه راتاو شول او محاصره یې کړل، کله چې د محاصرې کړۍ تنګه شوه، کعب بن اسد چې د بني قریظه رئیس وُ، خپل قوم ته دری وړاندیزونه وړاندې کړل او ورته ویې ویل:
اې زما قومه! یا اسلام راوړئ او د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دین ومنئ تر څو مالونه، وینې، اولادونه او ښځې ټول مو په امن شي، او زیاته یې کړه: قسم په الله چې ښه درته څرګنده او ثابته شویده چې محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د الله تعالی رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دی، او تاسې پخپل کتاب کې دده ذکر لیدلی دی.
دوهم وړاندیز دا دی، که ایمان نه راوړئ نو لومړی خپل اولادونه او ښځې ټول ووژنئ، بیا د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مقابلې ته ووزئ او تر هغې ورسره وجنګیږئ تر څو یا ورباندې برلاسي شئ، او یا ټول له مینځه لاړ شئ.
او دریم دا چې د هفتې په ورځ ټول پر رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او اصحابو (رضي الله عنهم) یې حمله وکړی، دا ځکه چې د هفتې په ورځ به هغوی دا فکر کوي چې یهود خو نن برید نه کوي، پدې ورځ جګړه نه راسره کوي، اغفال به شي.
بنو قریظه د خپل مشر یوه خبره هم ونه منله، دری واړه یې رد کړې، نو کعب بن اسد په ډیر قهر او غوسه ورته وویل: په تاسې کې د فیصلې او پریکنده خبرې سړی نشته، کله مو هم د عقل مندۍ کار ندی کړئ.
وروسته له هغې چې بني قریظه د سعد دری واړه وړاندیزونه ونه منل، نو مجبور وو چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر ته یې غاړه ایښې وئ، خو دا یې غوره وګڼله چې لومړی باید له هغو مسلمانانو نه چې د دوی ملګري دي پدې هکله پوښتنه وکړي، تر څو پوه شي که د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر ته غاړې کیږدي نو څه به ورسره کیږي؟ هماغه وه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته یې خبر ولیږه چې ابو لبابه راته راولیږه تر څو مشوره ورسره وکړو! ابو لبابه له دوی سره تړون درلود، کورنۍ او مالونه یې د دوی په سیمه کې وو. کله چې ابو لبابه ورغی، ټول ورته راپاڅیدل، ښځو او ماشومانو ژړل، ددې حالت په لیدو سره د ابو لبابه زړه پرې وسوځید. ټولو یهودانو ورته وویل: ابو لبابه! آیا دا مشوره را کوې چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته تسلیم شو؟ ده ورته وویل: هو: خو لاس یې په غاړه راکش کړ، مطلب یې دا وُ که تسلیم شي نو مرۍ به مو پرې شي، حلال به کړی شئ. په همدې حالت کې متوجه او پوه شو چې پدې عمل

سره د الله (جل جلاله) او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په حق کې د خیانت مرتکب شویدی، فورا روان شو، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته هم ورنغی، سیخ نبوي جومات ته لاړ، ځان یې په یوې ستنې پورې وتاړه، او قسم یې یاد کړ تر څو چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپل لاس نه وي خلاص کړئ، ځان به خوشی نکړي، همداسې به تړلی وي. او بله دا ژمنه وکړه چې بیا به تر ابده د بني قریظه سیمې ته نه ورځي. کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خبر شو، نو ویې فرمایل: (أما إنه لو جاءني لاستغفرت له، أما إذ قد فعل ما فعل فما أنا بالذي أطلقه من مكانه حتى يتوب الله عليه).که ابو لبابه ماته راغلی وای، نو مغفرت به مې ورته غوښتی وای، خو اوس یې چې ځان تړلئ، نو تر هغې پورې یې نه خلاصوم تر څو یې چې الله تعالی توبه نه وي قبوله کړې.
د ابو لبابه له دغه مشورې سره سره بني قریظه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر ته تسلیم او سلامي شول. یهودو د اوږدې محاصرې تاب او توان هم درلود ځکه ښه ډیر خوراکي مواد، اوبه هر څه ورسره وو، کلا ګانې یې ښه مضبوطې وې، په مقابل کې مسلمانان په خالي میدان کې وو، له لوږې او یخنۍ سره مخ وو، ستړیا خو یې دومره وه چې اندازه یې ګرانه ده. خو دا جګړه هم د اعصابو جګړه وه، الله تعالی د یهودو په زړونو کې ویره واچوله، حوصلې یې ټیټې شوې. په همدې وخت کې علي (رضي الله عنه) او زبیر (رضي الله عنه) ورمخکې شول، علي (رضي الله عنه) چیغه وکړه: اې د ایمان لښکره! قسم په خدای چې یا به د حمزه (رضي الله عنه) په شان شهید شم او یا به دا کلا فتحه کړم. د همدې آواز له اوریدو سره یهود د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په وړاندې سلامي شول.
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر وکړ چې نارینه یهودان دې بندیان شي، د همدې امر په اساس د محمد بن مسلمه انصاري (رضي الله عنه) تر مراقبت لاندې د هغوی په لاسونو کې زولنې واچول شوې، ښځې او ماشومان بیل ځای ته یووړل شول. د اوس قبیلې خلک رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ورغلل عرض یې وکړ یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! تا زمونږ د وروڼو خزرج له حلیفانو (بني قینقاع) سره هسې ښه معامله وکړه، دا بني قریظه زمونږ حلیفان او دوستان دي له دوی سره هم ښه وکړه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وویل:(ألا ترضون أن يحكم فيهم رجل منكم؟) قالوا: بلي. قال: (فذاك إلى سعد بن معاذ). آیا تاسې پدې خوښ یاستئ چې ستاسې یو شخص د دوی

په هکله فيصله وکړي؟ دوي وويل: هو. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: دا فيصله دې سعد بن معاذ (رضي الله عنه) وکړي. دوی وويل: بالکل سيي ده. ټول پرې راضي يو.

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مدينې ته خبر وليږه چې سعد بن معاذ (رضي الله عنه) دې را حاضر شي. نوموړی د احزاب په غزاکې ټپي شوی او د مټ رګ يې پرې شوی وُ، او له همدې امله په مدينه کې پاتې وُ. کله چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خبر وروسيد، نو په خره باندې سپور شو او پداسې حال کې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په لور روان شو چې د قوم خلک يې يوې او بلې خوا ته روان وو ورته ويل يې: سعده! له خپلو حليفانو سره ښه وکړه، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ددې لپاره حکم ګرزولی يې چې د دوی په هکله نرمه او غوره فيصله وکړې! سعد (رضي الله عنه) د دوی خبرې اوريدلې، څه يې نه ويل، خو کله چې دوی ډير اصرار وکړ نو ده ورته وويل: اوس هغه وخت رارسيدلی دی چې سعد د الله (جل جلاله) پخاطر د هيچا پروا ونه ساتي. خلکو چې دا خبره واوريده يو شمير له همدې ځايه ورنه وګرځيدل، يو له بل سره يې غمشريکي وکړه او خفګان يې څرګند کړ.

کله چې سعد (رضي الله عنه) د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته ورلنډ شو، اصحابو ته يې امر وکړ چې: (**قوموا إلى سيدكم**). خپل مشر ته پاڅيږئ! خلک پاڅيدل او سعد (رضي الله عنه) يې له خره نه راکوز کړ او ورته ويې ويل: سعده! بني قريظه ستا حکم او فيصلې ته تسليم شوي. ده وويل: آيا زما فيصله پر دوی نافذه ده؟ دوی ورته وويل: هو. ده وويل: آيا مسلمانان به هم زما حکم مني؟ دوی ورته وويل: ولې نه. بيايې ويل: ايا زما فيصله هغه چاته هم د منلو وړ ده چې دلته تشريف لري؟ او د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خوا ته يې د تکريم او تعظيم په دود اشاره وکړه. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**نعم، وعلي**). هو. زه هم ستا فيصله منم. سعد وويل: نو زما فيصله دا ده چې نارينه يې بايد ووژل شي، اولادونه او ښځې زوزاده يې دې اسيران کړی شي او مالونه يې دې وويشل شي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ددې فيصلې په اوريدو سره وفرمايل: (**لقد حكمت فيهم بحكم الله من فوق سبع سموات**). تا د دوی په هکله هغه فيصله وکړه کومه چې الله تعالی له اوو آسمانو پاس کړې وه.

د بني قریظه په هکله د سعد (رضي الله عنه) حکم ډیر عادلانه او په انصاف ولاړ و، ځکه دوی نه یوازې له مسلمانانو سره غدر او خیانت کړی ؤ بلکه د مسلمانانو د له مینځه وړلو لپاره یې ۱۵۰۰ تورې، دوه زره نیزې، ۳۰۰ زغرې او ۵۰۰ ډالونه هم تیارکړي وو او دا ټول شیان له فتحې وروسته مسلمانانو غنیمت کړل.
د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په امر سره د بني قریظه ټول افراد د بني النجار قبیلې د بنت الحارث نـومې ښځې په کور کې بندیان شول هلته د مدینې په بازار کې ورته کندې وایستل شوې، وروسته دوی ډلې، ډلې ورته راوستل کیدل او هملته به یې سرونه پرې کیدل. په همدې حالت کې یوه یهودي خپل مشر کعب بن اسد ته وویل: څه فکر کوې له مونږ سره به څه معامله کیږي؟ ده ورته وویل: تاسې هیڅرته هم له عقل نه کار نه اخلئ،نه ګورئ چې بلونکي نه دریږي؟ او څوک چې ځي بیرته نه راستنیږي، قسم په خدای چې زمونږ سرنوشت (برخلیک) مرګ دی. پدې ترتیب سره د بني قریظه د شپږ یا اوه سوه کسانو سرونه قلم شول.
ددې فیصلې په تنفیذ سره د غدر او خیانت جرړې له بیخه ووتـلې، او هغه خاینان پخپله سزا ورسیدل کوم چې تړون یې مات کړی و، او په ډیر سخت وخت کې یې د مسلمانانو د تـبـاهـۍ په نیت له مشرکینو سره لاس یو کړی و، او پدې عمل او کړو سره د هغو جنګي مجرمینو په ډله ورګډ شوي وو کوم چې د محاکمې او اعدام وړ دي.
دلته له دوی سره د بني نضیر قبیلې لوی شیطان او د احزاب جګړې لوی مجرم حیي بن اخطب هم ووژل شو نـومـوړی د ام المؤمنین صفیه (رضي الله عنها) پلار ؤ. هغه وخت چې قریش او غطفان د جګړې له ډګر نه په شا شول، نو حیي راغی او له بني قریظه سره یو ځای پاتی شو، خپله هغه وعده یې پوره کړه چې د جګړې په دوران کې یې له کعب بن اسد سره کړې وه. ده هغه وخت کعب دیته اړ ایستلی ؤ چې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره خپل تړون مات کړي او له مشرکینو سره یو ځای د هغه په خلاف په جګړه کې برخه واخلي او پـه مـقـابـل کـې یې دا ورته ویلي و چې زه به تر آخره درسره وم. همداسې یې وکړل له بني قریظه سره یو ځای اسیر شو، او کله چې د وژلو لپاره راوستل شو، چپنه یې په غاړه وه خو سوری سوری کړې یې وه تر څو څوک ورنه ګټه وانخلي، راوستل شو لاسونه یې له غاړې سره تړل شوي وو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته یې وویل: ستا سره په دښمنۍ پښیمانه نه یم، خو بری او غلبه د خدای په لاس کې ده، بیا یې زیاته کړه: اې خلکو! همدا به د الله امر ؤ، همدا به لیکل شوي او همدا مو تقدیر و، الله تعالی بني اسرائیلو ته وژل مقرر کړي ؤ، ورپسې کیناست او همدلته یې سر پرې شو.

پدې پیښه کې له یهودو نه یوازې یوه ښځه ووژل شوه، هغه هم پدې دلیل چې نوموړې پر خلاد بن سوید (رضي الله عنه) باندې د میچنۍ تیږه ورغورځولې وه او هغه یې وژلی ؤ، نو ددې په بدل کې دغه ښځه هم ووژل شوه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر کړی ؤ چې یوازې هغه کسان دې ووژل شي چې ږیرې یې راغلې وي او د چا چې ږیره نه وي راغلې، نه دې وژل کیږي. پدې ډله کې عطیه القرظي هم ؤ چې هغه وخت یې ږیره نه وه راغلې، نو ژوندی پاتې شو اسلام یې ومانه او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د صحبت شرف یې وګاټه.

ثابت بن قیس (رضي الله عنه) له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه سوال وکړ چې زبیر بن باطا، مال او کورنۍ یې ده ته وروبښي! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هغه وروبښل. زبیر له ثابت (رضي الله عنه) سره نیکي کړې وه، او د همدې نیکۍ په بدل کې یې هغه ته وویل: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ما ته را وبښلې، ستا مال او اولاد یې راوباښه، اوس دا ټول بیرته ستا. زبیر چې د خپل قوم له مرګ نه خبر شو، نو ثابت (رضي الله عنه) ته یې وویل: زه د خپلې نیکۍ په نامه له تا نه ددې سوال کوم چې ما هم له خپلو دوستانو سره یو ځای کړه، یعنې ما هم ووژنه، نو بیایې دده سر هم پرې کړ او په نورو یهودانو پسې یې ورولیږه. ثابت د زبیر زوی عبدالرحمن ژوندی وساته، عبدالرحمن په اسلام مشرف شو او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) صحبت یې وګاټه.

همدا راز ام المنذر سلمی بنت قیس النجاریه له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه هیله وکړه چې رفاعه بن سموال القرظي ورته وروبښي! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) يې غوښتنه ومنله، او هغه یې وروباښه. رفاعه ژوندی پاتې شو ایمان یې راوړ او د اصحابو (رضي الله عنهم) په ډله کې شامل شو.

د تسلیمۍ په شپه هم یو شمیر یهودانو ایمان راوړ، او په همدې اساس د هغوی ژوند او مال په امن پاتې شول. په همدې شپه عمرو چې له خپل قوم بني قریظه سره په غدر او خیانت کې شریک نه و، له خپل کور نه د باندې راووت، د نبوي لښکر د پاسدارانو مشر محمد بن مسلمه (رضي الله عنه) ولید، خو څه یې ورته ونه ویل، لاره یې ورکړه، او معلومه نه شوه چې هغه به چیرته تللی وي.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د بني قریظه له مالونو نه خمس بیل کړ او نور مالونه یې په مسلمانانو باندې وویشل، سواره ته یې درې برخې، دوې برخې یې د آس او یوه د سواره، او د پیاده (پلي) لپاره یې یوه برخه وټاکله. وینځې

يې د سعد بن زيد الانصاري تر سرپرستۍ لاندې نجد ته و استولې، هلته يې وسله او آسونه وربانديې راونيول. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د وينځو له ډلې نه ريحانه بنت عمرو بن خناقه د خپل ځان لپاره خوښه کړه، او د ژوند تر پايه ورسره وه، دا د ابن اسحاق روايت دی.[1] خو کلبي وايي چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) هغه (ريحانه) آزاده کړه او په شپږم هجري کال يې په نکاح سره واخيستله، چې له حجه الوداع نه له راستنيدو وروسته وفات شوه او په بقيع کې خاورو ته ورسپارل شوه.[2]

وروسته له هغې چې د بني قريظه مساله ختمه شوه، الله تعالى د خپل صالح بنده سعد بن معاذ (رضي الله عنه) هغه سوال قبول کړ چې مخکې يې يادونه شويده. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د سعد (رضي الله عنه) لپاره په جومات کې خيمه درولې وه تر څو هملته يې عيادت وکولی شي. د بني قريظه له فتحې وروسته د سعد (رضي الله عنه) ټپ خلاص شو او په بد واوښت. عائشه (رضي الله عنها) وايي: د سعد (رضي الله عنه) له ټپ نه وينې روانې شوې، په جومات کې د بنو غفار څو خيمې هم وې ټولو د سعد (رضي الله عنه) وينې وليدلې ځکه ډيرې زياتې بهيدلې وې، د وينو په ليدو سره هغوی چيغه کړه اې د خيمو خلکو! دا څه دي چې ستاسې له لوري زمونږ خوا ته را روان دي؟ ټولو وکتل چې د سعد (رضي الله عنه) له زخم نه وينې را روانې دي او په پاې کې له همدې کبله وفات شو.[3]

په بخاري او مسلم کې له جابر (رضي الله عنه) نه روايت دی چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) فرمايلي: (**اهتز عرش الرحمن لموت سعد بن معاذ**). د سعد بن معاذ (رضي الله عنه) په مرګ د الله تعالى عرش ولړزيد[4].

همدا راز ترمذي له انس (رضي الله عنه) نه په روايت سره وايي: **قال: لما حملت جنازة سعد بن معاذ قال المنافقون: ما أخف جنازته، فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: (إن الملائكة كانت تحمله)**. کله چې د سعد بن معاذ (رضي الله عنه) جنازه پورته شوه، منافقانو وويل: دا څومره سپکه جنازه وه. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: دا ځکه چې ملائکو وړله يعنې د هغه (سعد بن معاذ (رضي الله

---

(1). ابن هشام ۲/ ۲۴۵
(2). تلقيح فهوم اهل الاثر ص ۱۲
(3).صحيح البخاري ۲/ ۵۹۱
(4). صحيح البخاري ۱/ ۵۳۶. صحيح مسلم ۲/ ۲۹۴ جامع الترمذي ۲/ ۲۲۵

عنه) جنازه ملائکو وړله.[1]

د بني قريظه د محاصرې په دوران کې له مسلمانانو نه يو تن (خلاد بن سويد) په شهادت ورسيد، يوې يهودۍ ښځې د ميچنې تيږه ورباندې ورو‌غورځوله او مړ شو. همدا راز پدې ترڅ کې د عکاشه ورور ابو سنان بن محصن هم مړ شو.

ابو لبابه هملته مسجد کې شپږ ورځې تړلی ؤ د لمانځه په وخت کې به يې ښځه ورته راتلله خلاصاوه به يې او له لمانځه نه وروسته به بيرته په ستنې پورې تړل کيده، تر څو يوه ورځ سهار وختي يې الله تعالی توبه قبوله کړه او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته يې چې د ام سلمه (رضي الله عنها) په کور کې ؤ خبر ورکړل شو. ابو لبابه (رضي الله عنه) وايي ام سلمه (رضي الله عنها) د خپلې حجرې په دروازه کې ودريده او راته ويې ويل: ابو لبابه! مبارک شه، الله تعالی دې توبه قبوله کړه! ددې خبرې په اوريدو سره په جومات کې ناست اصحاب (رضي الله عنهم) را پاڅيدل تر څو خلاص يې کړي، خو ابو لبابه وويل: نه، تر څو چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پخپله تشريف نه وي راوړئ او زه يې نه وم خلاص کړئ بل څوک به مې نه خلاصوي. او کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د سهار لمانځه ته تشريف راوړ په ابو لبابه تيريده ورغی او خوشی يې کړ.

دا غزا (بني قريظه) د هجرت د پنځم کال د ذي القعدې په مياشت کې شوې وه، او د بني قريظه کلا بندي ۲۵ ورځې دوام کړی ؤ.[2]

الله تعالی د احزاب او بني قريظه غزا ګانو په اړه د احزاب سورت څو آيتونه نازل کړيدي. او په هغې کې يې د مؤمنانو او منافقانو د حال او احوال په هکله څرګندونې کړي، د مشرکينو ماتې ته يې اشاره فرمايلې، او د اهل کتابو د غدر او خيانت نتايج او پايلې يې په ګوته کړيدي.

---

[1]. جامع الترمذي ۲/۲۲۵

[2]. ابن هشام ۲/ ۲۳۷. ۲۳۸. صحيح البخاري ۲/ ۵۹۰، ۵۹۱. زاد المعاد ۲/ ۷۲- ۷۴۰مختصر سيرۍ الرسول للشيخ النجدي ص ۲۸۷ تر ۲۹۰.

# له بني قريظه غزا نه وروسته پوځي عمليات

## ۱- د سلام بن ابي الحقيق وژل

سلام بن ابي الحقيق چې کنيه نوم يې ابو رافع ؤ، هغه لوی يهودي مجرم ؤ چې د مسلمانانو په خلاف يې د مشرکينو ډيرې لښکرې راوپارولې او زياته اندازه مال او پيسې يې ورکړې، بې حسابه مرستې يې ورسره وکړې.[1]

دې مجرم به رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته هم زيات اذيت او ضرر رساوه، کله چې مسلمانانو د بني قريظه مشکل حل کړ، خزرج قبيلې له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه د ابو رافع د وژلو اجازه وغوښتله، ځکه لدينه مخکې اوس قبيلې کعب بن اشرف وژلی ؤ. اوس خزرج غوښتل چې دوی هم هغوی ته ورته يو وياړ وګټي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د دوی غوښتنه ومنله او اجازه يې ورکړه چې ابو رافع ووژني، خو پدې امر يې تاکيد وکړ چې بايد ښځې او ماشومان ونه وژل شي او هغوی ته خطر متوجه نه شي. خزرج ددې وظيفې د انجام لپاره پنځه کسيز ګروپ جوړ کړ، د ګروپ ټول غړي له بنو سلمه کورنۍ څخه وو او مشر يې عبدالله بن عتيک نوميده. دغه ګروپ د خيبر په لور روان شو، چيرته چې د ابو رافع کلا وه، ماښام وررسيدل، خلک ټول خپلو کورونو ته راغلي وو. عبدالله بن عتيک خپلو ملګرو ته وويل تاسې ټول همدلته کينئ، زه ځم او له دروازه وان سره خبرې کوم، غواړم د هغه زړه په لاس راوړم، کيدای شي له همدې لارې نه کلا ته ورد ننه شم. لاړ او دروازې ته لنډ يو ځای داسې کيناست چې خپل چادر يې په سر واچاوه او داسې يې ښودله چې ګويا د قضاء حاجت لپاره ناست دی. خلک ننوتل، دروازه وان غږ پرې وکړ اې د خدای بنده! که غواړې چې ننوزې،نو زر داخل شه زه دروازه بندوم.

عبدالله بن عتيک کيسه کوي وايي: په همدې خبرې سره لاړم ، کلا ته د ننه شوم، او د ننه پټ شوم کله چې خلک ټول داخل شول، دروازه وتړل شوه، پيره دار کلياني ټولې له

---

[1]. فتح الباري ۷/ ۳۴۳.

دروازې سره خوا کې په ځنګ درې وځړولې. زیاتوي وروسته زه ورغلم او دا کلیانې مې راواخستلې، راتلونکي دروازه مې خلاصه کړه، ابو رافع په بالاخانه کې ؤ هملته یې مجلس ښه ګرم ؤ ما ځاره، کله چې د مجلس او کیسو خلک ورنه لاړل، زه وروختلم، هره دروازه به مې چې پرانیستله، نو بیرته به مې له ننه خوا نه تړله، او له ځان سره مې ویل که چیرې خلک درباندې خبر شي نو مخکې لدینه چې هغوی ما ته راورسیږي زه به ابو رافع ووژنم. ابو رافع ته وررسیدم، کوټه یې تیاره وه او له خپلې کورنۍ سره ؤ نه پوهیدم چې ځای یې چیرته دی؟ غږ مې وکړ ابو رافع! ده وویل: څوک یې؟ په غږ پسې لاړم او پداسې حال کې مې د توري ګوزار پرې وکړ چې ویرې اخیستی وم، پدې ګوزار هیڅ هم ونه شول هغه چیغې کړې. زه يې له کور نه راووتلم او لږ انتظار مې وکړ، بیا بیرته ورغلم، ورته ومې ویل: دا څه غږ دی اې ابو رافع! ده وویل: مور دې بوره شه، همدا اوس یوه سړي د توري ګوزار راباندې وکړ. ابو رافع زیاتوي: همدلته مې یو قوي ګوزار پرې وکړ، سخت ټپي شو، خو مړ نه شو، بیا مې د توري څوکه د هغه په خیټه کینښوده او زور مې ورکړ تر څو له شا یې ووتله او پوه شوم چې مړ شو، نور د باندې راووتلم دروازې مې یو په بل پسې خلاصولې، په یوه زینه کې راکوزیدم فکر مې کاوه چې پښه مې ځمکې ته رسیدلې خو داسې نه وه د لاندې ولویدم، سپوږمۍ ښه رڼا کوله، پښه مې ماته شوه خپل پټکی (پګړۍ) مې را خلاص کړ او پښه مې ورباندې وتړله، روان شوم او له دروازې سره کیناستم. له ځان سره مې فیصله وکړه چې تر هغې پورې به نه ځم تر څو یې له مرګ نه ښه مطمئن شوی نه وم، چرګ غږ چرګانو آذانونه وکړل، او د کلا په چار دیوالۍ هم غږ وشو د حجاز د تاجر د مرګ خبر اعلانوم. دا مې چې واوریدل راغلم او خپلو ملګرو ته مې وویل: چې ځئ، الله تعالی ابو رافع وواژه. راغلو او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضورته حاضر شوو، خبر مې ورته تیر کړ. ده راته وفرمایل: پښه دې وغزوه، پښه مې اوږده کړه هغه (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپل مبارک لاس ورباندې راتیر کړ او داسې جوړه شوه لکه چې بالکل ماته شوې نه وي.[1]

دا د بخاري شریف روایت دی. ابن اسحاق وایي چې د هغه ګروپ ټول غړي کلا ته ورد ننه شوي وو او ټولو په ګډه ابو رافع وژلی و، او هغه څوک چې توره یې د ابو رافع په خیټه کې د ننه کړې وه د توري وار یې پرې کړی و د هغه نوم عبدالله بن انیس

---

[1]. صحیح البخاري ۲/ ۵۷۷

(رضي الله عنه) وُ. په دې روايت کې دا هم راغلي کله چې دوی هغه وواژه، او د شپې د عبدالله بن عتيک پښه ماته شوه، ملګرو يې هغه پورته کړ او ټول له کلا سره خوا کې د يهودو په يوه چينه کې پټ شول، يهودانو اورونه بل کړل، يوې خوا بلې خوا يې پلټنې پيل کړې، بالاخره مايوس او نامراده د خپل مشر سر ته ورغلل، په همدې وخت کې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) اصحاب (رضي الله عنهم) روان شول او مدينې ته لاړل.[1]

دغه سريه د پنځم هجري کال د ذي القعدې او يا ذي الحجې په مياشت کې وه.[2]

پدې وخت کې چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د مشرکينو،کفارو او يهودو، او نورو جنګي مجرمينو له مشکل نه فارغ شو، د هغوی حساب يې تصفيه کړ، نو د نورو مشرکو قبايلو او اعرابو (کوچيانو) په خلاف يې د يو لړ تاديبي بريدونو امر ورکړ، ځکه دا هغه کفار وو چې بې له زوره يې له خپلو شرارتونو او اذيتونو لاس نه اخيست، امنيت يې خراباوه، نو د دوی د شر او بې امنۍ له مينځه وړل يو ضرورت وُ چې بايد تر سره شوی وای.

## ۲- د محمد بن مسلمه (رضي الله عنه) سريه

له احزاب او قريظه غزا نه وروسته لومړنۍ سريه د محمد بن مسلمه (رضي الله عنه) ده. پدې سريه کې (۳۰) سواره وو، دغه ډله اصحاب (رضي الله عنهم) د نجد د بکرات سيمې د ضريه څنډې قرطاء ته لاړل، د ضريه او مدينې تر مينځ د اوو ورځو لار وه. دوی د شپږم هجري کال د محرم مياشتې په شلمه د بني بکر بن کلاب مېنې ته ور روان شول، کله يې چې حمله ورباندې وکړه، خلک يې ټول وښتيتدل، مسلمانانو يې ټول څاروي (ميږې او پسونه) ونيول، او وريسې پداسې حال کې چې د محرم د مياشتې يوه ورځ پاتې وه بيرته مدينې ته ورسيدل.

له مشرکينو سره ثمامه بن اثال الحنفي د بني حنيفه قبيلې مشر هم وُ، نوموړی په پټه سره د مسيلمه الکذاب په امر د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ترور لپاره وتلی وُ،[3] چې مسلمانانو ونيو رايې ووست جومات ته يې بوته او هلته يې په يوه ستنې پورې وتاړه. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تشريف ورووړ او ويې فرمايل: ثمامه څه دي درسره؟ ده وويل: له ما سره خير دی يا محمد

---

[1]. ابن هشام ۲/ ۲۷۴ - ۲۷۵

[2]. رحمه للعالمين ۲۲۳/۲ – ابن هشام ۲۳۷/۲ – ۲۳۸ صحيح البخاري ۵۹۰/۲ – ۵۹۱ زاد المعاد ۹۱

[3]. السيره الحلبيه ۲/ ۲۹۷

(صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! که مې ووژنې نو یو وینه لرونکی به دې وژلی وي او که احسان راباندې وکړې، نو په یوه قدر دان او احسان منونکي به دې احسان کړی وي، او که چیرته مال او پیسې غواړې، نو څومره چې غواړې همدومره به درکړم! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هیڅ ورته ونه ویل همداسې ورنه لاړ، بیا ورته راغی او هماغه خبره یې ورته تکرار کړه. د ثمامه ځواب هم هماغه وُ. دریم ځل یې بیا تشریف راوړ او د همغې خبرې له تکرار نه وروسته یې وفرمایل: ثمامه خوشی کړئ، اصحابو (رضي الله عنهم) خوشی کړ. هغه لاړ او له جومات سره نژدې د خرما یوه باغ ته ورغی، غسل یې وکړ او بیرته راغی په اسلام مشرف شو او ویې ویل:

یا محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! قسم په الله د ځمکې پر مخ مې له تا نه زیاته دښمني له بل چا سره نه درلوده، خو اوس له ټولو نه زیاته مینه درسره لرم، قسم په خدای له ټولو نه مې ستا له دین نه ډیر نفرت درلود، خو اوس له ټولو ادیانو نه ستا دین راته ګران دی، ستا اصحابو هغه وخت ونیولم چې ما د عمرې نیت کړی وُ، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) زیری ورکړ او ورته ویې فرمایل: لاړ شه عمره وکړه.

ثمامه چې کله مکې ته ورسید نو قریشو ورته وویل: بې دینه او ګمراه شوې یا ثمامه! ده وویل: نه قسم په الله زه نه یم بې لارې شوی، بلکه زه د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په دین مشرف شوم، اې قریشو دا هم واورئ چې لدینه وروسته به تر هغې پورې له یمامه نه یوه دانه غنم هم درته رانشي تر څو یې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اجازه نه وي کړې. یمامه هغه وخت د مکې لپاره د ځمکې او پټې حیثیت درلود. ثمامه عمره ادا کړه او خپل کورته ستون شو.

مکې ته یې غله استول بند کړل، قریش ډیر په تکلیف شول، او مجبور شول رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته خط ولیکي او د خپلې خپلوۍ په روی یې ورنه وغوښتل چې ثمامه ته امر وکړي غله او غنم مکې ته خوشې کړي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د دوی غوښتنه ومنله او ثمامه ته یې ولیکل چې مکې ته خوراکي مواد لیږل بیرته پیل کړي.(۱)

## ۳- د بني لحیان غزا

(۱). زاد المعاد ۲/ ۱۱۹ز مختصر سیره الرسول للشیخ النجدي ص ۲۹۲- ۲۹۴

بنو لحيان هغه قبيله ده چې د رجيع په سيمه کې يې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له اصحابو (رضي الله عنهم) سره غدر او خيانت کړی وُ، لس تنه يې په شهادت رسولي وو، او دوه نور يې د مکې په مشرکينو پلورلي وو. د بنو لحيان مېنه د مکې له پولو سره او په حجاز کې د ننه وه. هغه وخت د مسلمانانو او قريشو او نورو اعرابو تر مينځ سخت کشمکش روان و، نو پداسې وخت کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مناسبه نه ګڼله چې د لوی دښمن سره خوا کې په کوم جنګي اقدام لاس پورې کړي، خو کله چې د احزاب په غزا کې مشرکينو ماتې وخوړه، ارادې يې کمزورې او حوصلې يې تر ډيره حده پريوتې، نو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) اراده وکړه چې له بني لحيان نه د رجيع په پيښه کې د شهيد شويو اصحابو (رضي الله عنهم) غچ واخلي.

همدا وه چې د شپږم هجري کال د ربيع الاول او يا جمادي الاولی په مياشت کې په بنو لحيان د حملې په نيت ووت، عبدالله بن ام مکتوم يې په مدينه کې خليفه وټاکه، خلکو ته يې داسې وښوله چې ګويا د شام په لور روان دی. مخکې لاړ د امج او عسفان تر مينځ د غران نومې وادۍ مينځ ته ورسيد. دا هغه ځای وُ چيرته چې درسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) اصحاب (رضي الله عنهم) په شهادت رسيدلي وو، د هغوی لپاره يې دعا وکړه. بنو لحيان چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د راتګ خبر واوريد، ټول وتښتيدل، د غرونو سرونو ته لاړل. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دوې ورځې همدلته پاتې شو، خو يو کس هم په لاس ورنغی، يوې خوا بلې خوا ته يې جنګي ګروپونه وليږل خو بنو لحيان ترې تښتيدلي وو. وروسته د عسفان په لور ورغی لس سواره يې کراع الغميم ته وليږل تر څو قريش هم دده په راتګ خبر شي، بالاخره له ۱۴ شپو وروسته بيرته مدينې ته ستون شو.

# د سراياوو او جنګي ګروپونو استول

لدينه وروسته رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مختلفې سريې او جنګي ګروپونه واستول، چې ددې پېښو لنډيز دا دی:

**۱- د عکاشه بن محصن** (رضي الله عنه) **سريه:** دا د ۶ هجري کال د ربيع الاول يا ربيع الاخر په مياشت کې وه. عکاشه د ۴۰ کسيز ګروپ په مشرۍ د غمر سيمې ته روان شو. الغمر د بني اسد قبيلې يوه چينه وه مخکې لدينه چې عکاشه ورورسيږي د هغه ځای مشرکين وتښتيدل، مسلمانان ورغلل، دوه سوه اوښان يې ونيول او مدينې ته يې راوستل.

**۲- د محمد بن مسلمه** (رضي الله عنه) **سريه:** دا هم د شپږم هجري کال د ربيع الاول يا ربيع الاخر په مياشت کې وه. محمد بن مسلمه (رضي الله عنه) له لسو کسانو سره د بني ثعلبه په سيمه کې د ذي القصه په لور روان شو، هلته د دښمن سلو کسانو کمين ورته نيولی ؤ، کله چې مسلمانان ويده شول هغوی حمله ورباندې وکړه او له محمد بن مسلمه (رضي الله عنه) نه پرته ټول يې شهيدان کړ، يوازې محمد په ټپي حالت کې ورنه خلاص شو.

**۳- د ابو عبيده بن الجراح** (رضي الله عنه) **سريه:** دا هم د ۶ هجري کال د ربيع الاخر په مياشت کې د ذي القصه په لور وه. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د محمد بن مسلمه (رضي الله عنه) د ملګرو له شهادت نه وروسته ابو عبيده (رضي الله عنه) ته وظيفه ورکړه چې د بني ثعلبه مقابلې ته لاړ شي. هغه له ۴۰ کسانو سره د اصحابو (رضي الله عنهم) د شهادت ځای ته ورغی، د شپې يې پياده سفر وکړ او سهار وختي يې پر بني ثعلبه بريد وکړ، خو هغوی بيا هم ورنه وتښتيدل، يوازې يو کس په لاس ورغی هغه هم اسلام راوړ. مسلمانانو يو شمير څاروي او پسونه په غنيمت ونيول.

**۴- د زيد بن حارثه** (رضي الله عنه) **سريه:** د ۶ هجري کال د ربيع الاخر په مياشت

کې وه. دا د مرالظهران په سيمه کې د بني سليم په يوه چينه کې چې جموم نوميده پيښه شويده. زيد (رضي الله عنه) لاړ او هلته يې د مزينه قبيلې يوه ښځه چې حليمه نوميده ونيوله، دې ښځې د بني سليم يوه محله وروښوده چيرته چې مسلمانانو ډير پسونه، څاروي او بنديان ونيول. کله چې زيد (رضي الله عنه) بيرته راستون شو او غنيمتونه يې له ځان سره راوړل، رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) نوموړې ښځې ته ددې خپل ځان او ميړه دواړه وروبښل يعنې دواړه يې آزاد کړل.

**۵- عيص ته د زيد بن حارثه** (رضي الله عنه) **سريه:** دا د ۶ هجري کال په جمادي الاولى کې وه. زيد له ۱۷۰ سوارو سره د عيص په لور وخوځيد، هلته يې د قريشو هغه قافله په لاس کې پريوته چې مشر يې د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) زوم ابو العاص وُ. ابو العاص پخپله نجات وموند، لاړ، سيده مدينې ته راغی او له زينب (رضي الله عنها) نه يې پناه وغوښتله، او ورته ويې ويل چې له خپل مهربان پلار (حضرت محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم)) نه سوال وکړي چې ددې قافلې مالونه بيرته ده ته ورکړي. زينب (رضي الله عنها) همداسې وکړل، له خپل پلار (صلى الله عليه وسلم) نه يې همدا سوال وکړ! رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) خلکو ته وويل، که مو خوښه وي نو دا مالونه بيرته ورکړئ! اصحابو (رضي الله عنهم) ټولو په خپله خوښه هر څه بيرته ورکړل. ابو العاص له خپلو مالونو سره مکې ته ستون شو، ټول شيان يې خپلو خاوندانو ته وسپارل بيا يې ايمان راوړ او مدينې ته يې هجرت وکړ، او رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپله لور زينب (رضي الله عنها) چې تقريباً درې نيم کال مخکې يې هجرت کړی وُ بيرته په هماغه لومړنی نکاح سره ابو العاص ته ورکړه او دا خبره په صحيح حديث سره ثابته ده[1]. او په اولنی نکاح يې ځکه بيرته ورکړه چې هغه وخت له مشرکينو سره د مسلمانو ښځو د نکاح د تحريم آيت شريف نه و نازل شوی. او هغه حديث او روايت صحيح ندی چې وايي رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) زينب په نوې نکاح سره ابو العاص ته ورکړه او يا يې شپږ کاله وروسته ورکړه. دا د معنى او سند دواړو له لارې سيې ندی.[2]

تعجب دی هغو کسانو ته چې پدې ضعيف حديث استناد کوي او وايي: ابو العاص د

---

[1] . سنن ابي داود مع شرحه عون المعبود باب الى متى ترد عليه المراة اذا اسلم بعدها.

[2]. تحفه الاحوذي ۱۹۵/۲ – ۱۹۶ ته مراجعه وکړئ.

مکې له فتحې نه مخکې د اتم هجري کال په وروستيو کې ايمان راوړی، بيا د همدې خبرې مخالفه خبره کوي او وايي: زينب (رضي الله عنها) د اتم هجري کال په لومړيو کې وفات شويده. پدې هکله مو پر بلوغ المرام باندې پخپل تعليق کې مفصلې خبرې کړې، موسی بن عقبه عقيده لري چې دغه پيښه د ابي بصير او ملګرو له خوا يې په اووم هجري کال کې پيښه شويده، خو دا خبره نه له صحيح او نه هم له ضعيف حديث سره تطابق لري.

**۶- د زيد** (رضي الله عنه) **سريه:** دا هم د ۶ هجري کال په جمادي الاخره مياشت کې وه. زيد (رضي الله عنه) له **۱۵** کسانو سره د بني ثعلبه په لور ووت، طرف يا طرق نومې سيمې ته ورغی، اعراب ورنه وتښتيدل او فکر يې کاوه چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پخپله پر دوی باندې د بريد په نيت راوتلی دی. زيد او ملګرو يې له مشرکينو نه شل اوښان په غنيمت ونيول، اوڅلور ورځې له مدينې نه غايب ؤ.

**۷- بيا هم وادي القری ته د زيد** (رضي الله عنه) **سريه:** زيد د ۶ هجري کال د رجب په مياشت کې له ۱۲ کسانو سره د قری په وادي کې د دښمن د تحرکاتو د معلومولو پخاطر ووت. هلته د قری اوسيدونکو حمله ورباندې وکړه، **۹** کسان يې ورنه شهيدان کړل او د زيد په شمول دری نور ژوندي پاتې شول.[1]

**۸- د خبط سريه:** دا د آتم هجري کال په رجب مياشت کې وه، خو د پيښې له بهير نه داسې ښکاري چې دا بايد له صلح حديبيه نه مخکې واقع شوې وي. جابر (رضي الله عنه) وايي: رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مونږ دری کسانو ته چې مشر مو ابو عبيده بن الجراح ؤ امر وکړ چې لاړ شو او د قريشو د کاروان څارنه وکړو، په لاره کې سخت وږي شوو له ډيرې لوږې مو خبط (يو ډول بوټی دی) وخوړل، او له همدې وجې دغه لښکر ته د خبط لښکر نوم ورکړل شو.
وروسته يوه سړي دری اوښان راته حلال کړل، بيايې دری نور راته حلال کړل، دريم ځل يې بيا درې اوښان راته حلال کړل، بيا ابو عبيده (رضي الله عنه) هغه لدې کار نه منع

(1). رحمه للعالمين ۲/ ۲۲۶.زاد المعاد ۲/۱۲۰ – ۱۲۲. حواشي تلقيح فهوم اهل الاثر ص ۲۸،۲۹.

کړ. پدې وخت کې له بحر نه يو ماهي چې عنبر ورته ويل کيده راته را واچول شو او هغه مو پوره نيمه مياشت خواړه، غوړي مو يې هم استعمالول، تر څو بيرته په پښو ودريدو او خپل اولني حالته ورسيدو. ابو عبيده ددې ماهي د پوښتيو يو هډوکی واخيست، بيا يې په لښکر کې تر ټولو دنګ سړي ته وويل چې په تر ټولو لوړ اوښ باندې سپور شي، بيا همدا دواړه تر دې هډوکي لاندې تير شول. مطلب دا چې د ماهي د پوښتۍ هډوکی ډير اوږد وُ. جابر (رضي الله عنه) زياتوي مونږ ددې ماهي له غوښې نه يوه اندازه د توښې په دود راسره واخيستله او کله چې مدينې ته ورسيدو، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته مو دا کيسه تيره کړه، هغه وفرمايل: (**هو رزق أخرجه الله لكم، فهل معكم من لحمة شيء تطعمونا؟**).دا د الله تعالی له لوري د ستاسې رزق او روزي وه، ايا له هغې غوښې نه څه اندازه درسره شته چې مونږ ته يې را کړئ؟ نو مونږ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته له هغې غوښې نه يوه اندازه ورولیږله.[1]

مونږ مخکې وويل چې د کيسې سياق پدې دلالت کوي چې دا سريه بايد له صلح حديبيه نه مخکې واقع شوې وي، ځکه چې له حديبيې نه وروسته خو مسلمانان د قريشو د کاروانو مخې ته نه ورتلل، او پر هغوی يې حمله نه کوله.

[1]. صحيح البخاري ۲/ ۶۲۵. صحيح مسلم ۲/ ۱۴۵ - ۱۴۶

# د بني المصطلق او یا مریسیع غزا

## ۶ هجري کال، د شعبان میاشت

دغه غزا که څه هم له عسکري پلوه دومره لویه او مهمه غزا نده، خو پدې دوران کې داسې پېښې شوې دي چې په اسلامي ټولنه کې یې داسې اړ دوړ او جنجالونه راولاړ کړل چې په ترڅ کې یې د منافقانو له مخ نه پردې پورته شوې، او داسې تعزیراتي قوانین رانازل شول چې اسلامي ټولنې ته یې د عظمت، سپېڅلتیا، کرامت او پاک نفسۍ نوی رنګ ورکړ. مونږ به لومړی د غزا په هکله خبرې وکړو، وروسې به له نورو پېښو نه وغږیږو.

د صحیح روایت په اساس سره ویلی شو چې دغه غزا د شپږم هجري کال د شعبان په میاشت کې وه.[1] ددې غزا سبب هم دا وؤ: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته خبر راغی چې د بني مصطلق رئیس حارث بن ابي ضرار له خپل قوم او نورو

---

[1]. دلیل یې دا دی چې د افک په حدیث شریف کې دا ثابته ده چې دغه پېښه د حجاب د حکم له نازلېدو نه وروسته وه د حجاب آیت خو د زینب (رضي الله عنها) په هکله نازل شوی وُ، او زینب (رضي الله عنها) خو دغه وخت یعنې د حجاب د حکم د نزول په وخت کې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په نکاح کې وه ځکه له زینب (رضي الله عنها) سره د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) واده د پنځم هجري کال په ذي القعده او یا ذي الحجه کې شوی و، او دغه غزا خو د شعبان په میاشت کې وه نو دا به د ۶ هجري کال شعبان وي نه د پنځم کال او د افک له پېښې وروسته رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د عایشې په هکله پوښتنه ترې وکړې وه چې دې ورته وویل: زه خپلې سترګې او غوږونه ساتم، حضرت عایشه (رضي الله عنها) فرمایي: چې زینب (رضي الله عنها) یوازینۍ بی بی وه چې له ما سره یې سیالي کوله.

بناء دا د شپږم کال د شعبان میاشت شوه. او دا روایت چې وایي سعد بن معاذ او سعد بن عباده (رضي الله عنهما) د افک د اصحابو په هکله یو له بل سره مناقشه او منازعه وکړه، یعنې دا چې دا غزا باید د سعد بن معاذ (رضي الله عنه) له وفات نه مخکې پېښه شوې وی، معلومه ده چې سعد بن معاذ (رضي الله عنه) د ۵ هجري کال په اخرو کې له بني قریظه غزا نه وروسته وفات شویدی، نو پدې اساس د بني مصطلق غزا هم باید په پنځم هجري کال کې شوی وي، ددې اشکال صحیح ځواب دا دی چې ددې روایت راوي سهوه شوی او سهوا یې له سعد بن عباده (رضي الله عنه) سره د سعد بن معاذ (رضي الله عنه) نوم راوړی دی، ابن اسحاق له زهري له عبیدالله بن عبدالله بن عتبه او هغه له عائشه (رضي الله عنها) نه روایت کړی او په هغه روایت کې د سعد بن معاذ (رضي الله عنه) نوم نشته بلکه هلته دا سید بن حضیر نوم راغلی دی ابو محمد بن حزم وایي چې همدا خبره صحیح ده. ( زاد المعاد ۱۱۵/۲) پدې هکله د محمد الغزالي خبره هم د حیرانتیا وړ ده هغه ابن قیم ته دا خبره منسوبوي چې ګویا هغه هم وایي دغه غزا په پنځم هجري کال کې شویده ( فقه السیره ص ۲۲۳). حال دا چې په الهدي (۱۱۵/۲) کې چې هغه څه ویلي هغه بالکل ددې خبرې مخالف دی.

عربانو سره له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره د جګړې لپاره راوتلی دی. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ددې خبر په اوریدو سره بریده بن حصیب اسلمي ته امر وکړ چې لاړ شي او د خبر تحقیق وکړي. هغه لاړ او له حارث بن ابي ضرار سره یې خبرې وکړې، او بیا یې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته خبر راوړ.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) چې د خبر له صحت نه ډاډه شو، نو اصحابو (رضي الله عنهم) ته یې د تلو قومانده ورکړه او په بیړه سره روان شو. دغه وخت د شعبان د میاشتې دوې ورځې پاتې وې، له رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره دا ځل یو شمیر هغه منافقین هم روان شول چې په مخکینو غزا ګانو کې یې برخه نه وه اخیستې.

دا ځل یې زید بن حارثه (رضي الله عنه) او په بل روایت ابوذر (رضي الله عنه) او په دریم روایت سره نمیله بن عبدالله لیثي (رضي الله عنه) په مدینه کې خلیفه وټاکه.

حارث بن ابي ضرار هم یوه جاسوس ته وظیفه ورکړې وه چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د لښکر څارنه وکړي، مسلمانانو هغه جاسوس ونیو او ویې واژه.

کله چې حارث ته د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د راتګ او د خپل جاسوس د ژولو خبر ورسید ډېر وویرید، ملګري یې هم وارخطا شول، یو شمیر عربان ورنه لاړل. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د بحر ساحل ته نژدې د قدید خوا ته د دوی یوې چینې ته چې مریسیع نومیده ورسید. هغوی هم د جنګ تیاري ونیوله. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپل اصحاب (رضي الله عنهم) په لیکو برابر کړل، بیرغ له ابوبکر (رضي الله عنه) سره وُ، د انصارو جنډه یې سعد بن عباده (رضي الله عنه) ته ورکړې وه. دواړه لښکرې سره مخامخ شولې، څه وخت یې یو بل په غشو سره وویشتل، بیا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د برید امر ورکړ، ټولو اصحابو (رضي الله عنهم) په یوه حرکت حمله وکړه، دښمن ته یې ماتې ورکړه او بریالي شول. یو شمیر مشرکین ووژل شول، ښځې او اولادونه یې د مسلمانانو په اسارت کې ولویدل، ډېر پسونه او څاروي یې هم په غنیمت ونیول له مسلمانانو نه یوازې یو کس شهید شو، هغه هم سهوا د یوه انصاري له لاسه مړ شو، هغه و نه پیژانده د دښمن ګمان یې ورباندې وکړ او ویې واژه.

دا د اهل مغازي او اهل السیر رایه ده. ابن قیم وایي چې دا ګمان او وهم دی، ځکه حقیقت دا دی چې پدې غزا کې جګړه نده پیښه شوې، مسلمانانو پر دوی حمله وکړه،

ښځې اولادونه او مالونه يې ورنه ونيول. په بخاري کې راځي چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) بني مصطلق غافلګير کړل يعنې ناڅاپي بريد يې ورباندې وکړ.[1]

په اسارت نيول شويو ښځو کې جويريه بنت حارث هم وه، لومړى هغه د ثابت بن قيس په برخه ورسيده، هغه ورسره مکاتبه وکړه يعنې د يوه اندازه مال په بدل کې يې د آزادئ وعده وکړه، دواړه پدې راضي شول چې جويريه په څه پيسې ورکوي او هغه به يې آزادوي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) همدغه ټاکلی مبلغ ابن قيس ته ورکړ او جويريه يې پخپله نکاح کړه. جويريه (رضي الله عنها) د قوم د رئيس حارث لور وه، او کله چې دې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د نکاح شرف تر لاسه کړ نو اصحابو (رضي الله عنهم) ټولو خپل غلامان او وينځې آزادې کړې، ځکه دوی ويل چې دا قوم خو اوس د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خسرګنۍ ده، نو بايد قدر يې وشي. همدا وه چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د خپلوۍ د احترام په دود کې يې هغوی ټول آزاد کړل، هغوی هم له آزادۍ نه وروسته ټولو چې سل کورنۍ وو ايمان راوړ او په اسلام مشرف شول.[2]

پدې غزا کې د ټولو پيښو اصلي او اساسي عامل د منافقينو رئيس عبدالله بن ابي وُ، نو مخکې لدينه چې ددې پيښو په اړه څه ووايو، غوره ګڼو لومړی د منافقينو د رول او په اسلامي ټولنه کې د دوی د منفي کړو وړو په هکله هم څه خبرې وکړو.

## له بني مصطلق غزا نه مخکې د منافقينو رول او دريځ

څو ځله مو دا خبره کړيده چې عبدالله بن ابي له اسلام او مسلمانانو په ځانګړې توګه له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره سخته کينه او دښمني لرله ځکه اوس او خزرج دده په مشرۍ سلا شوي وو، لګيا وو ده ته يې تاج جوړاوه، مرۍ او غمي يې ورته برابرول. په همدې حال کې هلته د اسلام لمر راوخوت، اوس او خزرج يې دده له پاچايۍ نه بلې خوا ته واړول، او له همدې ځايه عبدالله بن ابي دا فکر کاوه چې دده پاچايي رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورانه او خاورې کړه.

له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره د عبدالله بن ابي دښمني د

(1). صحيح بخاري ۱/ ۳۴۵. فتح الباري ۷/ ۴۳۱

(2). زاد المعاد ۱۱۲/۲، ۱۱۳، ابن هشام ۲/ ۲۸۹_۲۹۰.

هجریت له پیل نه څرګنده وه، یوه ورځ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په خره سپور د سعد بن عباده (رضي الله عنه) پوښتنې ته ور روان و او په هغه مجلس ورغی چې عبدالله بن ابي هم پکې ؤ کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ور ورسید د منافقینو رئیس خپله پزه پټه کړه او ویې ویل دلته دوړې مه راته کوئ! بیا چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د قرآنکریم آیتونه تلاوت کړل ده ورته وویل: په کور کې دې کینه، زمونږ مجلس مه را خرابوه.[1]

دا د هغه وخت خبره ده چې عبدالله بن ابي لا په اسلام سره تظاهر نه ؤ کړی، او کله یې چې له بدر نه وروسته په اسلام تظاهر هم وکړ خپله دښمني یې پرې نښودله، له الله (جل جلاله) او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره یې خپلې دښمنۍ ته ادامه ورکړه، تل یې هڅه کوله چې د مسلمانانو تر مینځ نفاق واچوي.

د اسلام د ذلت کوشش یې کاوه، له مشرکینو سره یې مرستې کولې، د بني قینقاع په پیښه کې یې چې کوم رول ادا کړی هغه خو مو مخکې ذکر کړی. همدا راز د احد په غزا کې یې مسلمانانو ته لوی غم، شر او مصیبت راولاړ کړ، د هغوی په مینځ کې یې ګډوډي، نفاق او خلاف واچاوه.

دغه منافق د مسلمانانو په حق کې له بې حده مکر و فریب نه کار اخیست، وروسته له هغه چې په اسلام سره یې تظاهر وکړ، هره جمعه به چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د خطبې ویلو لپاره کیناسته نو هغه به پاڅید او خلکو ته به یې ویل: اې خلکو! دا دی رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ستاسې په وړاندې تشریف لري، الله تعالی پده سره تاسو ته عزت او منزلت در په برخه کړ، نو تاسې دده (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مرسته وکړئ. خبرې یې واورئ او اطاعت یې وکړئ، بیا به کیناست، وریسې به رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پاڅید او خطبه به یې وویله.

د منافقینو دغه رئیس دومره سپین سترګی و چې سره لدې چې د احد په غزا کې یې هغه غدر او خیانت وکړ، خو له غزا وروسته د لومړۍ جمعې په ورځ پاڅید او غوښتل یې هماغه څه ووایي کوم چې هره جمعه به یې له خطبې نه مخکې ویل، خو دا ځل مسلمانانو له جامو راونیو او ورته ویې ویل: د خدای دښمنه! کینه، ته ددې وړ نه یې چې دا خبرې وکړې، تا چې څه وکړل هغه ټولو ولیدل. پدې خبرو سره هغه خفه شو او له جومات نه روان شو، د خلکو له غاړو نه یې قدمونه اوچتول او په وتو وتو کې یې ویل:

---

[1]. ابن هشام ۱/ ۵۸۴ - ۵۸۷ بخاري ۲/ ۹۲۴ ، مسلم ۲/۱۰۹

زه خو ددې جناب د ملاتړ لپاره پورته شوی وم، خو داسې ښکاري لکه چې ما کومه د جرم خبره کړې وي! له دروازې سره یو انصاري مخې ته ورته راغی او ورته ویې ویل: هلاک شې، بیرته وګرزه، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به درته د مغفرت دعا وکړي. ده وویل: زه نه غواړم چې هغه راته د مغفرت دعا وکړي.[1]

همدا راز عبدالله بن ابي له بنو نضیر سره مسلسله رابطه درلوده، له دوی سره په ګډه یې د مسلمانانو په خلاف توطیې جوړولې، ان تر دې چې ورته ویلي یې وو چې: که چیرې تاسې د مسلمانانو خلاف جګړې ته راووتئ نو مونږ به هم درسره وو، او که ستاسې په خلاف جګړه وشوه نو مونږ به ستاسې مرسته کوو.

همدا راز د احزاب په غزا کې ددې منافق او ملګرو کار یې دا ؤ چې د مسلمانانوپه مینځ کې ویره، پریشاني او ګډوډي را پیدا کړي، الله تعالی همدې مطلب ته د احزاب په سورت کې داسې اشاره فرمایي: ((وَإِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ إِلاَّ غُرُوراً)) (الاحزاب: ۱۲).تر دې ایته چې فرمایي: ((يَحْسَبُونَ الأَحْزَابَ لَمْ يَذْهَبُوا وَإِنْ يَأْتِ الأَحْزَابُ يَوَدُّوا لَوْ أَنَّهُمْ بَادُونَ فِي الأَعْرَابِ يَسْأَلُونَ عَنْ أَنْبَائِكُمْ وَلَوْ كَانُوا فِيكُمْ مَا قَاتَلُوا إِلاَّ قَلِيلاً)) (الاحزاب: ۲۰)

[او (یاد کړه هغه وخت) کله چې وویل (ابن ابي، ابن قیشر او نورو) منافقانو او (وویل) هغو کسانو چې په زړونو د دوی کې مرض (د نفاق) و چې نه ده وعده کړې له مونږ سره الله او رسول ددغه (الله په فتح د شام، یمن، فارس) مګر په غرور او تیرایستو سره.]

[ هغوی (له ویرې) داسې ګمان کوي چې د کفر لښکرې ندي تللې که چیرته بیا راشي لښکر د (مشرکینو جنګ ته) نو دوست ګڼي (منافقان) دا چې کاشکې دوی اوسیدونکي وی په (لیرو کلیو د) اعرابو کې (له ښاره) چې پوښتنې به یې کولې (له لیرې) له (احوالو) خبرو ستاسې او که چیرې وی (دغه منافقان) په تاسې کې نو جنګ به یې نه وو کړی دوی مګر لږ (د پاره د ریاء).]

پداسې حال کې چې د یهودو، منافقینو او مشرکینو په شمول ټول دښمنان پدې ښه پوهیدل چې د اسلام د بري او غلبې راز مادي تفوق، د وسلو، عسکرو او وسایلو ډیرښت ندی بلکه ددې بري راز هغه اخلاق او معنوي پیاوړتیا ده چې مسلمانان پرې سینګار شویدي. او دا هم ټولو ته په ډاګه وه چې ددې عظمت او کرامت منبع هغه

---

[1]. ابن هشام ۲/ ۱۰۵

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دي چې په نيکۍ، معنوي او اخلاقي لوړتيا او سپيڅلتيا کې تر ټولو لوړ مثال او قدوه دی. همدا راز ټول پدې ښه متيقن شوي وو او د پنځه کلنو جګړو په دوران کې ټولو ته ثابته شوې وه چې د وسلې په زور سره پر اسلام او مسلمانانو باندې غلبه ناممکنه ده. همدا وه چې دوی د اسلام او مسلمانانو په خلاف د ساړه يا تبليغاتي جنګ فيصله کړې وه، دوی هڅه کوله د عاداتو، اخلاقو او کړو وړو له مخې د مسلمانانو په خلاف تشويشونه راولاړ کړي، پدې تبليغاتي جګړه کې د مشرکينو لومړنی هدف پخپله رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وُ.

څرنګه چې منافقين په مدينه کې د ننه اسلامي ټولنه کې اوسيدل او دا ورته آسانه وه چې د مسلمانانو احساسات راوپاروي، او له هغوی سره له تماس نه په استفادې سره د دوی په زړونو کې کار وکړي، نو د اسلام په خلاف په تبليغاتي جنګ کې زيات مهم رول د همدې منافقانو او د دوی د رئيس عبدالله بن ابي و.

د دوی دغه توطئه او پلان له احزاب غزا نه وروسته په ډاګه شو، کله چې حضرت رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له زينب بنت جحش (رضي الله عنها) سره چې زيد طلاقه کړې وه نکاح وکړه. منافقينو همدا پيښه د حربې يا تبليغاتي وسيلې په شکل استعمال کړه. ځکه د عربانو عادت او رواج دا وُ چې هغوی به خپل فرزندي اولاد هم لکه خپل اصلي اولاد داسې باله، او د دا ډول زوی طلاقه شوې ښځه به يې د هغه چا لپاره ناروا بلله کوم چې دغه کس به يې خپل زوی نيولی و.

کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له زينب (رضي الله عنها) سره واده وکړ، نو منافقينو ګمان وکړ لکه چې اوس دوی ته د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په خلاف د پروپاګند او تهمت ښه دلايل په لاس ورغلي دي او پدې هکله يې دوه ټکي د ځان په ګټه بلل:

لومړې دا چې دا د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پنځم واده وُ، او قرآنکريم خو له څلورو نه د زياتو ودونو د جواز حکم نلري، نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په کوم دليل دا پنځم واده وکړ؟

دوهم دا چې زينب (رضي الله عنها) خو د زيد (رضي الله عنه) ښځه وه او زيد خو هغه څوک وُ چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپل زوی نيولی وُ، او د خپل زوی (فرزندي) له ښځې سره خو نکاح د عربو په نزد يوه لويه ګناه وه. منافقينو پدې هکله ډير تبليغات وکړل له ځانه يې ډيرې کيسې او دروغ جوړ کړل. ددې دروغو په ترڅ کې به يې ويل چې محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) يو ځل زينب

(رضي الله عنها) په ناځاپي توګه ولیده خوښه یې شوه، د هغې حسن يې زړه یووړ، ډیره مینه یې ورسره پیدا شوه او کله چې دده زوی زید (رضي الله عنه) پدې پوه شو، نو زینب یې دده لپاره خوشې کړه. دغه پروپاګند دومره عام او پداسې طریقې سره خور شو چې تر نن ورځې پورې یې د تفسیر او احادیثو په کتابو کې آثار تر سترګوکیږي. څرګنده ده چې دې تبلیغاتو به حتماً په کمزوریو زړونو اثر او اغیزه هم درلوده، همدا وه چې د الله تعالی له لورې د قرآنکریم شفا ورکوونکې آیتونه نازل شول، او په غوڅه توګه یې د منافقینو د دروغو او پوچو تبلیغاتو بطلان اعلان کړ. الله تعالی د احزاب سورت په لومړي آیت کې فرمایي:

((يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ اتَّقِ اللَّهَ وَلا تُطِعْ الْكَافِرِينَ وَالْمُنَافِقِينَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيماً حَكِيماً)). (الاحزاب: ۱)

[اې نبي (محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! وویریږه (تل) له الله څخه او مه منه (حکم) د کافرانو او (نه) د منافقانو، بیشکه چې الله دی ښه عالم پر هر شي ښه حکمت والا.]

دا له بني مصطلق غزا نه مخکې د منافقینو د توطئو او منفي دریزونو یو څو وړې نمونې وې. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په پوره صبر او حوصلې سره ددې حالاتو مقابله کوله. د منافقینو دا ټول حالات یې ښه لیدل خو بیایې هم له دوی سره له مهربانۍ او نرمۍ نه ډک معامله کوله. همدا راز نورو مسلمانانو هم دا کوشش کاوه چې د منافقینو له شر نه ځان وساتي، او د هغوی په وړاندې یې له ډیرې حوصلې نه کار اخیست ځکه لیدل یې چې د منافقینو فتنه یوه نده، هغوی هره ورځ نوې نوې فتنې راولاړوي نو باید له زغم او صبر نه کار واخستل شي.

الله تعالی دې مطلب ته اشاره کوي فرمایي:

((أَوَلا يَرَوْنَ أَنَّهُمْ يُفْتَنُونَ فِي كُلِّ عَامٍ مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ ثُمَّ لا يَتُوبُونَ وَلا هُمْ يَذَّكَّرُونَ)) ( التوبة: ۱۲٦)

[آیا (فکر نه کوي) او نه ګوري دوی چې بیشکه دوی مبتلا کولی شي (په ډول ډول) قسم قسم مصائبو په هر یوه کال کې یو کرت یا دوه کرته بیا له سره هغوی نه کوي توبه (له نفاقه) او نه دوی پند اخلي (په دې ابتلاء).]

## په بني مصطلق غزا کې د منافقينو رول

د بني مصطلق په غزا کې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره د منافقينو ګډون د الله تعالی ددې قول عملي مصداق دی چې فرمايي: ((**لَوْ خَرَجُوا فِيكُمْ مَا زَادُوكُمْ إِلاَّ خَبَالاً وَلأَوْضَعُوا خِلالَكُمْ يَبْغُونَكُمُ الْفِتْنَةَ**)) (التوبة: ٤٧)

[نو که وتلي وی دغه (منافقان) په (لښکر د) تاسې کې نو نه به و زيات کړی دوی تاسې ته (هيڅ شی) مګر شر، خرابي، فساد او چغلي اوخامخاه چابکي به کړې وه دوی په منځ ستاسې کې (په چغلۍ او نورو بديو کې) حال دا چې غوښتله به دوی تاسې ته فتنه (ستاسې په منځ کې د دښمنۍ په اچولو او له کافرانو څخه ستاسې په ويرولو کې).]

د نفاق لښکرو همدلته له خپل شر او شيطنت نه ښه ګټه پورته کړه. او دوه داسې فرصتونه په لاس ورغلل چې له امله يې پدې وتوانيدل د مسلمانانو په ليکو کې درز او تشويش پيدا کړي. او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په خلاف دومره لوی تهمت جوړ کړي چې ځواب يې پخپله الله تعالی ووايه. ددې دواړو پيښو تفصيل دا ډول دی:

### ١ – له مديني نه د ذليل سړي شړلو خبره :

د منافقينو دا قول چې ويل به يې: ((**لَئِنْ رَجَعْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ لَيُخْرِجَنَّ الأَعَزُّ مِنْهَا الأَذَلَّ**)) . (المنافقون: ٨)

[که چيرې بيرته وګرځو مونږ طرف د مدينې ته نو خامخا به وباسي ډير عزتمن (کافر خلک له دغه مدينې نه) ډير خوار کمزور خلک.]

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له غزا نه وروسته له مريسيع چينې سره تشريف درلود او هملته يې اړولي و، خلک لاړل تر څو له چينې نه او به راوړي، د عمر بن الخطاب (رضي الله عنه) يو غلام يا مزدور ؤ چې جهجاه الغفاري نوميده، دده او سنان بن وبر جهني تر مينځ د اوبو په سر جنجال او جنګ پيښ شو. جهني چيغه وکړه اې انصارو او جهجاه مهاجرينو ته غږ کړ. په همدې وخت کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**أبدعوي الجاهلية وأنا بين أظهركم؟ دعوها فإنها مُنْتِنَة**). پداسې حال کې چې زه ستاسې په مينځ کې وجود لرم تاسې د جاهليت نارې

وهئ؟ دا د جاهليت نارې پرېږدئ، دا ډېرې بدبويه نارې دي! عبدالله بن ابي بن سلول ته چې دا خبره ورسيده ډېر په غوسه شو، له ده سره يې د قوم يوه ډله خلک هم وو. زيد بن ارقم چې دغه وخت کشر ځوان ؤ هم پدې ځای کې موجود و، عبدالله بن ابي وويل: آيا دوی همداسې وکړل، دوی زمونږ سيمې ته راغلل اوس ځانونه له مونږ سره په تله کې اچوي او مقابله راسره کوي! قسم په خدای پر مونږ او دوی دا متل صدق کوي چې وايي: سپی دې چې چاغ کړې، نو خوري به دې! قسم په الله چې مدينې ته له رسيدو وروسته به د هغه ځای عزيز او سرلوړي خلک دغه ذليل او خوار خلک له مدينې نه باسي. بيا يې خپلو ملګرو ته مخ کړ او ورته ويې ويل: دا ټول ستاسې له خپله لاسه، تاسې پخپل وطن کې ځای ورکړ، خپل مالونه مو ورسره وويشل، که تاسې دوی ته څه نه وای ورکړي نو چيرته بلې سيمې ته به تللي وای.

زيد بن ارقم (رضي الله عنه) دا خبر خپل تره ته ورساوه، تره يې لاړ او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې چې عمر (رضي الله عنه) هم ورسره ؤ له واقعې خبر کړ. عمر (رضي الله عنه) وويل: عباد بن بشر (رضي الله عنه) ته امر وکړه چې دا منافق (عبدالله بن ابي) ووژني. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل:(**فكيف يا عمر إذا تحدث الناس أن محمداً يقتل أصحابه؟ لا ولكن أَذِّنْ بالرحيل**). اې عمره! که داسې وکړم نو بيا به خلک وايي چې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپل اصحاب وژني، نه داسې نه کوم، خلکو ته د تللو امر وکړه. دا داسې ساعت او وخت ؤ چې عادتاً به رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)، پکې کوچ نه کاوه. په هر حال حکم وشو، خلک روان شول، اسيد بن حضير (رضي الله عنه) له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره مخامخ شو له سلام نه وروسته يې عرض وکړ چې په نا مناسب وخت کې دې د تګ او کوچ امر وکړ. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په ځواب کې ورته وويل:(**أو ما بلغك ما قال صاحبكم؟**). ته نه يې خبر چې ستاسې آشنا (عبدالله بن ابي) څه ويلي دي؟ ده وويل: نه زه نه يم خبر، څه يې ويلي دي؟ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل:(**زعم أنه إن رجع إلى المدينة ليخرجن الأعز منها الأذل**). هغه دا ګمان او خيال کړی چې مدينې ته له رسيدو نه وروسته به د عزت خاوندان پاڅيږي او هغه ذليل او خوار کسان به له مدينې نه شړي! اسيد (رضي الله عنه) عرض وکړ، که وغواړې نو

ته به هغه له مديني نه شړي، قسم په الله چي ته عزيز او هغه ذليل دی. او زياته يې کړه: يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! له هغه (عبدالله بن ابي) سره ډيره نرمي وکړه، ته الله مونږ ته پداسي حال کې را وستی چي د هغه قوم دده لپاره مری او غمي برابرول تر څو تاج ورته جوړ کړي او پاچا يې وټاکي، هغه اوس دا ګمان کوي چي پاچايي يې تا ور نه اخيستي ده!

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دغه ورځ ان تر لماسختن پوري او وروسته ټوله شپه مسلسل سفر وکړ، سهار هم روان و تر څو لمر ښه ګرم شو خلک يې په تکليف کړل، نو يو ځای يې واړول. خلک ټول ډير ستړي شوي وو څنګه چي ځمکې ته ورسيدل فوراً ټول ويده شول. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا کار او دا دومره اوږد مزل ددې پخاطر وکړ تر څو د خلکو توجه بلې خواته واړوي، او له خبرو نه يې په بل څه مصروف کړي.

د منافقانو مشر (ابن ابي) چي کله خبر شو چي زيد بن ارقم دده خبره رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته رسولې ده، نو فوراً د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته حاضر شو، قسم يې ياد کړ چي ما دا ډول خبري ندي کړي، او نه مي ديخوا ته اشاره کړيده. موجودو انصارو هم وويل يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) کيدای شي هغه هلک زيد (رضي الله عنه) په خبره نه وي پوه شوی. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دده خبره ومنله. زيد (رضي الله عنه) وايي: قسم په خدای پدې سره زه دومره خفه شوم چي په ټول ژوند کې دومره نه وم خفه شوی، لاړم په کور کې کيناستم. تر څو الله تعالی دا ايتونه رانازل کړل.

((إِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُونَ)) تر دې پوري چې فرمايي: (هُمْ الَّذِينَ يَقُولُونَ لا تُنْفِقُوا عَلَى مَنْ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ حَتَّى يَنْفَضُّوا)) (المنافقون:۷) [دوی (منافقان) هغه کسان دي چي وايي د رسول الله په ملګرو مصرف مه کوئ (مرسته مه ورسره کوئ) تر څو تيت او ورنه جدا شي] ((لَيُخْرِجَنَّ الأَعَزُّ مِنْهَا الأَذَلَّ)) (المنافقون:۸) [د عزت خاوندان به ذليل او خوار کسان له مديني نه وباسي]

زيد وايي: رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) څوک راپسي راوليږل ورغلم او همدا آيتونه يې راته ولوستل او ويې فرمايل: زيده! (إن الله قد صدقك). الله تعالی

ريښتونی کړي.[١]
د منافق عبدالله بن ابي زوی چې هغه هم عبد الله نوميده، يو صالح او غوره صحابي ؤ له خپل پلار نه يې برائت اعلان کړ، لاړ او د مديني په دروازه کې د خپل پلار مخې ته ودريد، توره يې په لاس کې وه او کله يې چې پلار راغی غږ يې ورته وکړ ودريږه! قسم په الله تر هغې پوري به لدې ځاي نه مخکې لاړ نه شې تر څو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) اجازه نه وي درته کړي، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) عزيز او ته ذليل يې. کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تشريف راوړ د تلو اجازه يې ورکړه، نو هغه هم پريښود چې مديني ته داخل شي.
عبدالله بن عبدالله بن ابي (رضي الله عنه) دا هم ويلي و، يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! که غواړې پلارمې ووژني نو امر راته وکړه قسم په الله چې سر به يې درته حاضر کړم.[١]

## ٢- د افک پيښه

د افک (تور) پيښه په همدې غزا کې واقع شويده، ددې پيښې لنډيز داسې دی: پدې غزا کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له خپلو بيبيانو (رضي الله عنهن) نه د پچې په اساس حضرت عائشه (رضي الله عنها) له ځان سره بوولې وه. له غزا نه د بيرته ستنيدو په دوران کې يو ځای تم شول، حضرت عائشه (رضي الله عنها) د حاجت رفع کولو پخاطر ووتله، هلته هغه اميل ورنه ورک شو کوم چې له خپلې خور نه يې په عاريت اخيستې ؤ، بيرته ورپسې ورغله او په هغه ځای کې يې لټاوه چيرته چې ورنه ورک شوی ؤ. په همدې وخت کې د تللو امر وشو، هغه کسان چې ددې کجاوه يې باروله راغلل، فکر يې کاوه چې عائشه (رضي الله عنها) پکې شته، کجاوه يې پورته کړه، په اوښ يې بار کړه، پوه نه شول چې په کجاوه کې عائشه (رضي الله عنها) نشته.
عائشې (رضي الله عنها) خپل اميل وموند او بيرته خپل ځای ته راغله، خو هلته هيڅوک هم نه وو پاتې شوي ټول تللي وو، هملته ځای په ځای کيناستله. فکر يې وکړ چې دوی به بيرته ورپسې راوګرزي.

---

[١]. صحيح بخاري ١/ ٤٩٩. ٢/٧٢٧-٧٢٩ ابن هشام ٢/ ٢٩٠ - ٢٩٢
[١]. ابن هشام . مختصر سيره الرسول ص ٢٧٧ .

الله تعالی د واک خاوند دی، څه يې چې اراده وي همغه کيږي. عائشه (رضي الله عنها) همدلته خوب يووړه ويده شوه. يو وخت د صفوان بن معطل په دې آواز سره راويښه شوه چې ويې ويل: ((انا لله و انا اليه راجعون)) دا خو د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) بي بي ده؟ صفوان له لښکر نه وروسته پاتې شوی وُ، ځکه هغه ډير خوب درلود او کله يې چې عائشه (رضي الله عنها) وليده، ويې پيژندله ځکه د حجاب له حکم نه مخکې يې ليدلې وه، (انا لله . . . . . ) يې وويل اوښه يې چو کړه پدې وخت کې عائشه (رضي الله عنها) راويښه شوه، نو صفوان خپله اوښه ورلنډه کړه او عائشه (رضي الله عنها) ورباندې سپره شوه. صفوان يوه کلمه خبره هم ورسره ونکړه، او له (انا لله و انا اليه راجعون ) نه پرته يې بل حرف هم ورنه وانه وريده. صفوان د اوښې تر مخ روان شو مخکې لاړ او لښکر ته چې د غرمې په وخت کې يې لنګر اچولی و ورسيد. خلکو چې دا حالت وليد هر يوه له خپل شان او حال سره برابر يو څه وويل. خو د خدای دښمن د منافقانو رئيس عبدالله بن ابي د خپلې دښمنۍ، کينې او خبث د اظهارولو لپاره ښه فرصت وموند، د افک (تور يا تهمت) کيسه يې جوړه کړه. پيل يې وکړ همدا يې خورول په يوه او بله لاره يې زيار يوست دا تهمت د هر چا غوږونو ته ورسوي. ډله يې ټوله ورنه راټوله وه، همدا خبرې يې سره زمزمه کولې. او کله چې مدينې ته ولاړل افک (تهمت) جوړونکو کيسه اوږده کړه. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) چپ او ساکت و هيڅ يې نه ويل. خو کله چې پدې هکله وحي وځنډيده، نو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د عائشه (رضي الله عنها) د سرنوشت په هکله له خپلو اصحابو (رضي الله عنهم) سره مشوره وکړه، علي (رضي الله عنه) اشارتاً داسې مشوره ورکړه چې عائشه (رضي الله عنها) پريږدي يعنې طلاق ورکړي، د اسامه (رضي الله عنه) او نورو مشوره دا وه چې پدې هکله د دښمنانو خبرو ته اهميت ورنکړي او عائشه (رضي الله عنها) له ځان سره وساتي. بيا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) منبر ته پورته شو او له عبدالله بن ابي او دده له اذيتونو نه يې شکايت وکړ. په همدې وخت کې د اوس مشر اسيد بن حضير خپله تياري څرګنده کړه او ويې ويل که اجازه وي زه دا منافق وژنم. سعد بن عباده (رضي الله عنه) چې د خزرج قبيلې سردار وُ په احساساتو راغی د خپل قوم پلوي يې وکړه، په همدې سره دده او اسيد (رضي الله عنه) تر مينځ خبرې مسکې تيتې شوې، په نتيجه کې دواړه قبيلې پخپل منځ کې سره ببرې شوې، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په ډير مشکل سره هغوی آرام کړل او پخپله هم چپ شو.

عائشه (رضي الله عنها) مدينې ته له ستنيدو وروسته پوره يوه مياشت رنځوره وه، د

افک (تهمت) له کيسې نه خبره نه وه، خو د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) هغه مهرباني يې نه ليدله کومه چې پخوا به يې د بيمارۍ او مرض په وخت کې ورباندې درلوده. کله چې جوړه شوه يوه شپه له ام مسطح سره د قضاء حاجت لپاره بيرون ته ووتله. د ام مسطح پښه په ټکري کې بنده شوه ولويده او په همدې وخت کې يې خپل زوی ته ښيره وکړه. عائشې (رضي الله عنها) پدې ښيرو سره هغې ته وويل دا کار دې سيې ندی! ام مسطح په ځواب کې عائشې (رضي الله عنها) له پېښې نه خبره کړه ورته وويل: چې زما زوی هم پدې تهمت کې شريک دی چې په تا پسې ويل شويدی. کيسه يې ورته وکړه. عائشه (رضي الله عنها) کورته راغله او له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه يې اجازه وغوښتله چې د خپل پلار کورته لاړه شي تر څو له پيښې نه پوره ځان خبر کړي.

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) اجازه ورکړه او هغه د خپل مور و پلار کره لاړه هلته يې د کيسې په تفصيلاتو ځان خبر کړ او کله چې په خبر پوه شوه نو ډير زيات يې وژړل، دوې شپې او يوه ورځ يې مسلسل ژړل. خوب يې ورک شو، اوښکې يې همداسې روانې وې، نژدې وه چې له ډيرې ژړا نه يې زړه وچوي. په همدې وخت کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تشريف راوړ، د شهادت کلمه يې ولوستله او ويې فرمايل: (**أما بعد يا عائشة، فإنه قد بلغني عنك كذا وكذا، فإن كنت بريئة فسيبرئك الله، وإن كنت ألممت بذنب فاستغفري الله وتوبي إليه، فإن العبد إذا اعترف بذنبه، ثم تاب إلى الله تاب الله عليه**). اې عائشې (رضي الله عنها)! ستا په هکله دا او هغه خبرې راته شويدي، که چيرې ته بې ګناه او پاکه وې، نو الله (ج) به ستا برائت او پاکي اعلانوي، او که خدای نا خواسته ګناه درنه شوې وي نو توبه وباسه، ځکه بنده چې پخپله ګناه اعتراف وکړي او توبه وباسي، الله تعالی يې توبه قبلوي.

همدلته د عائشې (رضي الله عنها) اوښکې وچې شوې، خپل مور و پلار ته يې مخ واړاوه چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ځواب ووايي. خو هغوی حيران وو چې څه ووايي؟ نو عائشې (رضي الله عنها) پخپله وويل: قسم په الله دی چې تاسې زما په هکله دا خبرې اوريدلې دي او ستاسې زړه هم منلې ده، هغه مو رښتيا بللې که زه درته ووايم چې زه بري او پاکه يم، الله تعالی خبر دی چې زه بري يم. تاسې زما دا خبره نه منئ او که زه په هغه څه اقرار وکړم چې الله تعالی پرې عالم دی چې زه

ورنه بري يم، نو تاسې به يې ومنئ، زه دلته د ځان او تاسې لپاره د يوسف (عليه السلام) د پلار دا قول وايم چې فرمايي: ((**فَصَبْرٌ جَمِيلٌ وَاللَّهُ الْمُسْتَعَانُ عَلَى مَا تَصِفُونَ**)) (يوسف: ۱۸). [نو کار زما صبر جميل دی (چې پکې هيڅ شکايت ونکړم خلکو ته) او (له هم دغه) الله څخه مدد غوښتلی شي په (تحمل د) هغې (خبرې) کې چې تاسې يې بيانوئ (له هلاکه د يوسف).]

دا خبره يې وکړه بلې خوا ته لاړه او څملاسته، په همدغه وخت کې همدلته پر رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د الله تعالی له لوري وحې رانازله شوه. کله چې د وحي کيفيت ختم شو، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په خندا شو او لومړنۍ کلمه يې دا وه: (**يا عائشة، أما الله فقد برأك**). [يا عائشه (رضي الله عنها)! قسم په الله چې الله تعالی ستا برائت اعلان کړ.]

مور يې ورته وويل: پاڅه د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته ورشه، شکر يې په ځای کړه. عائشې (رضي الله عنها) پداسې حال کې چې له خپل برائت او د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له محبت او اعتماد نه به بې حده خوشاله شوې او مطمئنه وه په ناز سره وويل: زه رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته نه ورځم، زه يوازې د الله تعالی حمد او شکرانه وايم.

الله تعالی د افک د حادثې په هکله لس آيتونه نازل کړي چې په پيل کې يې فرمايي: ((**إِنَّ الَّذِينَ جَاءُوا بِالْإِفْكِ عُصْبَةٌ مِنْكُمْ**)) (النور: ۱۱تر ۲۰) [بيشکه هغه کسان چې راوړي يې دي غټ دروغ (په شان د عائشې (رضي الله عنها) کې) يو ټولی دی له تاسې ( مسلمانانو نه).]

پدې تهمت او جرم کې له شريکو کسانو نه مسطح بن اثاثه، حسان بن ثابت او حمنه بنت جحش (رضي الله عنهم) اتيا اتيا درې (متروکې) ووهل شول، خو ددې جرم لوی مجرم او د منافقينو رئيس عبدالله بن ابي ته جزا ورنکړل شوه، حد وربانديې جاري نه شو. دا هم ځکه چې حد خو د مجرمينو لپاره يو ډول تخفيف دی، دغه منافق خو د تخفيف مستحق ندی، الله تعالی هغه ته په آخرت کې د سخت عذاب وعيد کړيدی. او يا کيدای شي چې د هغه مصلحت پخاطر حد نه وي وربانديې جاري شوی د کوم پخاطر چې هغه وژل شوی نه وي.[1]

پدې ترتيب سره له يوې مياشتې پريشانۍ وروسته له مدينې نه د شک، پريشانۍ او

[1]. صحيح بخاري ۱/ ۲/۶۹۶-۶۹۸ .. زاد المعاد ۲/ ۱۱۳- ۱۱۵. ابن هشام ۲/ ۲۹۷- ۳۰۷

تشویشونو وریځې والوتلې. د منافقانو رئیس داسې وشرمید چې نور یې هسک نه شوی کتلی. ابن اسحاق وایي: لدې پیښې نه وروسته عبدالله بن ابي دومره سپک او رسوا شو چې که کومه خبره او پیښه به یې جوړه هم کړه، نو تر ټولو لومړی به یې خپل قوم خبره ردوله، وربانديې په غوسه کیدل به، او راټه به یې.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) عمر (رضي الله عنه) ته وفرمایل: (**کیف ترى یا عمر؟ أما والله لوقتلته یوم قلت لي: اقتله، لأرعدت له آنف، ولو أمرتها الیوم بقتله لقتلته**). {څه فکر کوې یا عمره! که هغه ورځ دې وژلی وی، په کومه ورځ دې چې ماته وویل چې اجازه را کړه ویې وژنم، نو که هغه وخت دې وژلی وی ډیر همدردان او ملاتړي به یې پیدا کړي وو، خو که نن یې همغوی ته د وژلو حکم وشي، نو و به یې وژني.}

عمر (رضي الله عنه) عرض وکړ: زه پوه شوم چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر او معامله زما له کار او معاملې نه ډیره برکتي او غوره ده.[1]

---

[1]. ابن هشام ۲/ ۲۹۳

# له مریسیع غزا وروسته پوځي عملیات

## ۱- د عبدالرحمن بن عوف سریه:

د شپږم هجري کال د شعبان په میاشت کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) عبدالرحمن بن عوف (رضي الله عنه) په دومه الجندل کې میشته بني کلب ته واستاوه، له خوځیدو نه مخکې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ور ته وویل: راځه دلته زما مخ ته کینه. هغه راغی د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مخې ته کیناست، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپل مبارک لاس لنګۍ ور وتړله، او د جګړې په هکله یې په زړه پورې لارښوونې وکړې، ورته ویې فرمایل: (**إن أطاعوك فتزوج ابنة ملكهم**).که هغوی ستا امر ومانه، نو د پاچا د لور سره یې واده وکړه. عبدالرحمن بن عوف (رضي الله عنه) لاړ او درې ورځې یې هغه قوم اسلام ته راباله، تر څو هغوی په اسلام مشرف شول، بیا عبدالرحمن بن عوف د قبیلې د سردار یا پاچا (اصبغ) له لور (تماضر) سره واده وکړ. او همدا تماضر په ام ابي سلمه سره شهرت لري.

**۲- د علي بن ابي طالب سریه:** په ۶ هجري کال د شعبان په میاشت کې وه، هدف یې په فدک کې میشته د بني سعد بن بکر قبیله وه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته خبر راغی چې دلته څه کسان له یهودانو سره د مرستې لپاره راټول شویدي، نو فوراً یې علي (رضي الله عنه) د دوه سوه کسیز لښکر په مشرۍ هغه سیمې ته واستاوه. علي (رضي الله عنه) به د شپې سفر کاوه او د ورځې له مخې به یې چیرته کمین نیوه، یوه ورځ یې د مشرکینو یو جاسوس ونیو هغه اقرار وکړ چې د بني سعد قبیلې له خوا یې د خیبر یهودانو ته دا خبر رسولی و که یهودان دوی ته د خیبر خرماوې ورکړي، نو دوی به ورسره مرسته وکړي. همدې جاسوس د بني سعد د غونډیدو ځای هم په ګوته کړ. علي (رضي الله عنه) پر هماغه ځای یرغل وکړ، پنځه سوه اوښان، او دوه زره پسونه یې په غنیمت ونیول. بنو سعد له خپلو ښځو، اولادونو او له خپل مشر وبر بن علیم سره یو ځای وتښتیدل.

**۳- د ابوبکر الصديق** (رضي الله عنه) په بل روايت د زيد بن حارثه (رضي الله عنه) سريه: د ۶ هجري کال د رمضان په مياشت کې د وادي القرى په سيمه کې پيښه شوې وه. فزاره قبيلې د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ترور نيت کړی ؤ، نو رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې د مقابلې لپاره ابوبکر الصديق (رضي الله عنه) ورولېږه. سلمه بن اکوع وايي: زه هم ورسره وم او کله مو چې د سهار لمونځ ادا کړ، امر راته وشو، بريد مو پرې وکړ، د هغوی د اوبو چينې ته ورسيدو يو شمير مو ورنه ووژل. ما له دوی نه يوه ډله وليده چې ښځې او ماشومان هم پکې وو، وويريدم هسې نه له مانه مخکې غره ته ورسيږي، ورپسې ورغلم د دوی او غره تر مينځ مې د غشي وار وکړ کله چې دوی غشی وليد، ودريدل، پدې ډله کې ام قرفه نومې يوه ښځه هم وه چې يو زوړ پوستين يې اغوستی ؤ له دې سره يې لور چې د زياتې ښکلا درلودونکې وه هم ملګرې وه، ما ټول ونيول او د ابوبکر (رضي الله عنه) حضور ته مې راوستل. هغه همد ا ښکلې نجلۍ ما ته حواله کړه، ما د هغې جامې هم نه وې پرانيستې چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) رانه وغوښتله، مکې ته يې وليږله او په بدل کې يې د مسلمانانو ډير اسيران ورباندې را خوشې کړل.[1]

ام قرفه يوه شيطان صفته ښځه وه، د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د په شهادت رسولو لپاره يې ډيرې توطئې جوړولې، او د همدې هدف لپاره يې د خپلې کورنۍ ديرش کسه تيار کړي هم وو، او بالاخره هغه پخپله سزا ورسيده اوپوره ديرش کسان يې ووژل شول.

**۴- د کرز بن جابر الفهري سريه:** دا هماغه صحابي دی چې له بدر نه وړاندې يې د سفوان په غزا کې د مدينې په پنډ غالي حمله کړې وه، وروسته په اسلام مشرف شو او د مکې د فتحې په غزا کې په شهادت ورسيد.

کيسه داسې وه چې د عکل او عرينه يوې ډلې (چې رنځوران وو) په ظاهره اسلام راوړ، په مدينه کې ميشته شول، خو ددې ځای هوا د دوی لپاره مناسبه نه وه. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) هغوی له يوه ځړ ځای او هلته له څارويو نه د دفاع پخاطر واستول، امر يې ورته وکړ چې ددې څارويو (اوښانو) ساتنه به کوئ او د هغې شيدې او متيازې به څښئ. کله چې دغه خلک له ناروغۍ نه جوړ شول، نو د

[1]. صحيح مسلم ۸۹/۲ ويل کيږي دغه سريه په اووم هجري کال وه.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) شپون یې وواژه، اوښان یې له ځان سره وتښتول او بیرته مرتد او کافر شول. بناء رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ۶ هجري کال په شوال میاشت کې کرز بن جابر (رضي الله عنه) له یوه ګروپ سره په هغوی پسې ورولیږه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پدې وخت کې دا دعا هم وکړه: (**اللّهم أعم عليهم الطريق، واجعلها عليهم أضيق من مَسَك**).اې خدایه! ته په عرنیینو لاره بنده کړې، لاره یې له وښې نه هم زیاته ورته تنګه کړې. الله تعالی همدا دعا قبوله کړه، له هغوی نه لاره ورکه شوه او ټول د مسلمانانو په اسارت کې ولویدل. بیا د خپل جرم (قتل او شوکو) په بدل کې حد ورباندې جاري شو، لاسونه او پښې یې پرې شوې، سترګې یې ورنه وایستلې شوې، او بیا هملته یو ځای وغورځول شول او ټول مړه شول[۱]. دا کیسه په صحیح بخاري کې له انس (رضي الله عنه) نه هم روایت شویده[۲].

سیرت لیکونکي پدې سریه پسې له سلمه بن ابي سلمه سره د عمرو بن امیه الضمري د سریې ذکر هم کوي. دا هم د ۶ هجري کال په شوال کې وه. کیسه یې داسې ده چې نوموړی د ابوسفیان د ترور لپاره مکې ته لاړ ځکه ابو سفیان لدې نه مخکې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ترور لپاره یو کوچی مدینې ته رالیږلې وُ، خو دا یو هم پخپل هدف کې بریالی نه شو. داسې روایت هم شته چې عمرو د لارې په اوږدو کې دری کسان وژلي وو، او بل روایت وایې چې عمرو په همدې سفر کې د شهید خبیب (رضي الله عنه) جسد هم له ځان سره اخیستې وُ. مشهوره خو دا ده چې خبیب له رجیع حادثې نه څو ورځې یا میاشتې وروسته شهید شوی دی. د رجیع پیښه په څلورم هجري کال د صفر په میاشت کې وه، نه پوهیږم تاریخ لیکونکي سهوه شویدي او که همدا دواړه پیښې په یوه سفر او څلورم هجري کال کې شویدې! علامه منصور پوري دا نه مني چې پدې سریه کې دې جګړه او مقابله شوې وي. والله اعلم.

دا له احزاب او بني قریظه غزا ګانو نه وروسته پیښې شوې سریې دي چې په یوه کې یې هم سخته جګړه نده شوې، نو پدې اساس ویلی شو چې دا ټول یو ډول اکتشافي ګزمې او عملیات وو چې هدف یې د هغو اعرابو ویرول او آرامول وو چې لا تر اوسه یې سد سرته نه وُ ورغلی. که پیښو ته ژوره کتنه وشي نو داسې ښکاري چې له احزاب غزا نه وروسته د پیښو مسیر بدل شوی او دښمنان د ماتې په لور روان وو، حوصلې یې ټیټې شوې، د اسلامي حکومت او ځواک له ماتولو نه بالکل مایوسه او نا امیده

---

(1). زاد المعاد ۱۲۲/۲

۲. صحیح البخاري ۶۰۲/۲.

شوي وو. دا حقیقت هغه وخت ښه څرګند شو کله چې د حدیبیې سوله وشوه، او پدې سولې سره مشرکینو د اسلام په ځواک او عظمت اعتراف وکړ، او اسلام یې د یوه ځواک په توګه په عربي جزیره کې ومانه.

# د حدیبیې صلح

## شپږم هجري کال د ذي القعدې میاشت

### د حدیبیې عمرې سبب:

وروسته له هغې چې په عربي جزیره کې حالات تر ډیره حده د مسلمانانو په ګټه شول، د اسلامي بلنې د بري رڼا ورو ورو را ښکاره کیدله، او په مسجد حرام چې پوره شپږ کاله د مشرکانو له خوا د مسلمانانو په مخ تړل شوی و، اوس د مسلمانان د عبادت په حق د اعتراف مقدمه پیل کیدونکې وه.

رسول رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په مدینه منوره کې خوب ولید چې دی او اصحاب (رضي الله عنهم) یې مسجد حرام ته داخل شوي د کعبې شریفې کلیانې یې اخیستې او ټولو طواف او عمره ادا کړې، وروسته ځینو د سر ویښتان کم او نورو بالکل پاک خریيلي دي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپل دا خوب اصحابو (رضي الله عنهم) ته ووایه، هغوی ډیر خوشاله شول، ګمان یې وکړ چې دوې به همدا کال مکې ته داخلیږي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دا هم ورته وویل چې زه به عمره ادا کوم، نو همدا وه چې اصحابو (رضي الله عنهم) د سفر تیاري ونیوله.

### مسلمانانو ته د سفر امر

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د مدینې او شا و خوا سیمو اوسیدونکو ته اعلان وکړ چې له ده مبارک سره د سفر لپاره تیار شي. ډیرو اعرابو (کوچیانو) سستي کوله، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپله خپلې مینځل شوې جامې واغوستلې، عبدالله بن ام مکتوم او په بل روایت نمیله لیثي یې د مدینې خلیفه وټاکه، او په خپله قصواء نومې اوښه سپور شو.

د ۶ هجري کال د ذي القعدې په لومړۍ نیټه د دوشنبې په ورځ یې له مدینې نه حرکت وکړ، ام المؤمنین ام سلمه (رضي الله عنها) هم ورسره ملګرې وه. د لښکر شمیره یې ۱۴۰۰ او په بل روایت ۱۵۰۰ کسانو ته رسیده. پدې سفر کې له رسول الله (صلی الله

عليه و اله و صحبه و سلم) او لښکر سره يې له تورو پرته چې هغه هم په تکيو کې وې نوره هيڅ ډول وسله نه وه.

## مسلمانان د مکې په لور خوځيږي

رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) او ورسره اصحاب (رضي الله عنهم) د مکې په لور روان شول.کله چې ذي الحليفه سيمې ته ورسيدل، رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپلې هدی (د قربانۍ څارويو،ميږو او پسونو) ته قلادې ور واچولې، ا وښې يې په بوکام کې څيرې او په نښه کړې. د عمرې لپاره يې احرام وتاړه تر څو خلک پدې پوه شي چې د جنګ اراده نلري. يو کس ته يې وظيفه ورکړه چې لاړ شي او د قريشو حال احوال ورته راوړي، او کله چې عسفان ته نژدې کيده همدا څاری ورته راغی، عرض يې وکړ چې کعب بن لوئ خپل حليف قبائل (احابيش) راغونډ کړي او ستا سره د مقابلې نيت لري، نور خلک يې هم د جګړې لپاره راټول کړيدي، تصميم يې نيولی تاسو ته اجازه درنکړي مکې ته داخل شئ! پدې وخت کې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) له خپلو اصحابو (رضي الله عنهم) سره مشوره وکړه او ويې فرمايل: **(أترون نميل إلى ذراري هؤلاء الذين أعانوهم فنصيبهم؟ فإن قعدوا قعدوا موتورين محزونين، وإن نجوا يكن عنق قطعها الله، أم تريدون أن نؤم هذا البيت فمن صدنا عنه قاتلناه؟)**. تاسې پدې کې څه نظر لرئ چې لاړ شو او د هغو خلکو په کورونو حمله وکړه کوم چې له قريشو سره د مرستې لپاره وتلي دي؟ او د هغوی پر هر څه قبضه وکړو، وروسته که هغوی غلي کيني، نو دا به داسې وخت وي چې د جنګ خوند به يې څکلی وي، لوی غم به ورباندې راغلی وي، او که راځي نو دا به هم پداسې حالت کې وي چې الله به يې ورميږونه ورمات کړي وي، او که نه دا غواړئ چې د بيت الله شريف په لور مخ په وړاندې لاړ شو، که څوک مو مخې ته ودريدل جګړه به ورسره کوو؟ په ځواب کې ابوبکر (رضي الله عنه) ورته وويل: الله او رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) له ټولو نه ښه پوهيږي، مونږ خو د عمرې په نيت راغلي يوو. له هيچا سره د جګړې نيت نلرو، خو که څوک زمونږ او بيت الله تر مينځ حايل واقع کيږي يعني مونږ ته د عمرې اجازه نه راکوي، نو له هغوی سره به حتماً جنګيږو. پدې پسې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) امر وکړ

چي: (فروحوا). ځئ، روان شئ، همدا وه چې ټول د مکې په لور وخوځېدل.

## قریش هڅه کوي مسلمانان له بیت الله شریف نه منع کړي

قریشو چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د راتګ خبر واورید، غونډه یې وکړه او ټول پدې سره متفق شول چې په هیڅصورت کې به رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته مکې ته د داخلیدو اجازه نه ورکوي. پداسې حال کې چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له احابیشو نه په څنګ کې تیر شوی وُ، د بني کعب یوه سړي خبر ورته راوړ چې قریش ذي طوی ته راغلي او د کراع الغمیم په سیمه کې د خالد بن ولید په مشرۍ دوه سوه سواره ځاې په ځای شویدي.
کراع الغمیم د مکې په عمومي لاره واقع یوه سیمه وه، خالد د مسلمانانو د منع کولو هڅه کوله او خپل لښکر یې پداسې ځای کې اچولی و چې دواړو لښکرو (مسلمانانو او مشرکینو) یو بل سره لیدل. مسلمانان چې د ماسپښین په لمانځه وو، چې خالد ولیدل ورته پام يې شو چې رکوع او سجده کوي، نو له ځان سره يې وويل دوی خو پدې وخت کې ښه مصروف وو، مونږ ته یې پام نه وو که حمله مو وربانديې کړې وای، نو ښه تاوان به مو ور اړولې وای، بیا یې فیصله وکړه چې د مازدیګر د لمانځه په وخت کې ناڅاپي حمله وربانديې وکړي. نو په همدې وخت کې الله تعالی د ویرې د لمانځه (صلاه خوف) حکم نازل کړ او د خالد پلان شنډ شو.

## د لارې بدلول او له خونړۍ جګړې نه ډډه کول

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د کراع الغمیم لاره پریښوده او د درو په مینځ کې یې یوه بله سخته لاره ونیوله، ښۍ خوا ته له حمش نه تیره شوې لاره کومه چې ثنیه المرار ته وتله، باندې روان وو. او له ثنیه المرار نه ښکته خوا د مکې لاندینۍ برخه کې یې د حدیبیې له سیمې نه تیره شوې لاره ونیوله، هغه عمومي لاره یې خوشې کړه کومه چې په تنعیم باندې حرم شریف ته وتله. هغه لار یې چپې خواته پریښوده. او کله چې خالد د اسلامي لښکر د پښو ګرد ولید او پوه شو چې پردوی باندې ورغلی لاره یې بدله کړیده، نو فوراً یې قریشو ته خبر ولیږه.
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) همداسې مخکې روان و تر څو ثنیه المرار ته ورسید هملته یې اوښه چو شوه. خلک په ه، ه سره کوشش کاوه اوښه پاڅیږي خو نه پاڅیدله، نو دوی سره وویل چې قصواء ودریده، نوره د تګ نده! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په ځواب کې وفرمایل: (**ما خلأت القصواء، وما**

**ذاك لها بخلق، ولكن حبسها حابس الفيل)**. قصواء نده دريدلې او نه يې دا عادت دی، خو دلته هغه چا ايساره کړه کوم چې د ابرهه فيل يې ايسار کړی ؤ. بيا يې زياته کړه: (**والذي نفسي بيده لا يسألوني خطة يعظمون فيها حرمـــات الله إلا أعطيتـــهم إياها**). قسم په هغه ذات چې زما نفس يې په واک کې دی چې د قريشو ټول هغه وړانديزونه به منم کوم چې د الله تعالی د حرماتو احترام او درناوی وي پکې. بيا يې اوښه په زور سره اوچته کړه، روانه شوه لاره يې بدله کړه او هلته د حديبيه په سر کې يې له هغې چينې سره واړول چې لږ کمې اوبه يې لرلې. خلکو لږ لږ اوبه ورنه اخيستلې او په لږ ساعت کې هغه اوبه هم وچې شوې، لاړل او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته يې له تندې نه شکايت وکړ. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له خپلې توبرې نه يو غشی راويوست، اصحابو (رضي الله عنهم) ته يې امر وکړ چې دا غشی په هغه چينه کې کيږدي. هغوی چې کله غشی په چينه کې واچاوه، فوراً اوبه ورنه را په خوټيدو شوې، ټولو وچښلې او ماړه شول.

## بديل د رسول الله (ﷺ) او قريشو تر مينځ مينځګړيتوب کوي

وروسته له هغه چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مطمئن او ډاډه شو د خزاعه قبيلې بديل بن ورقاء له څو کسانو سره ورته راغی. د تهامه په اوسيدونکو کې خزاعه قبيله يوازينۍ قبيله وه چې د مسلمانانو او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خير يې غوښت او له دوی سره يې همدردي درلوده. بديل عرض وکړ چې کعب بن لوئ د حديبيې له زياتو اوبو سره خوا کې اړولې دي، ښځې او اولادونه يې هم ورسره دي، له ستا سره د جګړې او له بيت الله شريف نه د منع کولو اراده يې کړيده. په ځواب کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**إنـــا لم نجئ لقتال أحد، ولكنا جئنا معتمرين، وإن قريشاً قد نهكتهم الحرب وأضرت بهـــم، فإن شاءوا ماددتهم، ويخلوا بيني وبين الناس، وإن شاءوا أن يدخلوا فيما دخل فيـــه الناس فعلوا، وإلا فقد جَمُّوا ، وإن هم أبوا إلا القتال فوالذي نفسي بيده لأقاتلنهم على أمري هذا حتى تنفرد سالفتي، أو لينفذن الله أمره**).مونږ د عمرې په نيت راغلي يوو، له هيچا سره د جګړې اراده نلرو، قريش خو جګړو تباه کړي له جګړو نه زيات

زیانمن شویدي، که غواړي نو تر یوه وخته دې زما او نورو خلکو تر مینځ غرض نلري، څه وخت به ورکړم، مونږ او نور دې سره پریږدي، وروسته که خلک زما امر ته تسلیم شول، نو دوی هم همدا کار کولی شي او زما اطاعت غوره کولی شي. او که بیا یې نه غوښتل ما ته تسلیم شي، نو تر هغې پورې به یې یو څه دمه کړې وي، لږ په حال به راغلي وي، خو که دوی یوازې په جګړه اصرار کوي، نو قسم په الله چې د خپل دین په لار کې به تر هغې پورې ورسره جنګیږم تر څو مې سر نه وي پرې شوی او یا د الله تعالی امر نه وي نافذ شوی.

بدیل وویل: زه به ستا خبره قریشو ته ورسوم. روان شو قریشو ته ورغی او ورته ویې ویل: اې قریشو زه د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له طرفه درته راغلی یم، هغه څه خبره راته کړیده که خوښه مو وي درته و به یې کړم؟ ځینو کم عقلانو وویل: نه، مونږ د هغه خبرو ته اړتیا نلرو، خو هوښیارانو یې وویل: وایه هغه څه یې درته ویلي دي؟ بدیل د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خبره ورته وکړه، نو قریشو مکرز بن حفص ور واستاوه.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) چې کله مکرز ولید نو ویې وفرمایل دغه یو غدار او خائن سړی دی. په هر حال مکرز راغی، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) همغه خبره ورته وکړه کومه یې چې بدیل ته کړې وه، او مکرز بیرته قریشو ته ورغی.

## د قریشو سفیران

هلته د کنانه قبیلې حلیس بن علقمه نومي سړي وویل: اجازه راکړئ چې زه هم محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ورشم. هغوی ورته وویل: ورشه، کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ورلنډ شو، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (**هذا فلان، وهو من قوم يعظمون البدن، فابعثوهـــا**).دا د فلانی قبیلې غړی دی، د دوی خلک له حج نه وروسته قربانۍ ته د ځانګړیو شویو څارویو (بدن) قدر او درناوی کوي. بیا یې اصحابو (رضي الله عنهم) ته امر وکړ چې د قربانۍ خپل څاروي ددې سړي مخې ته واستوي تر څو هغه یې وګوري. اصحابو (رضي الله عنهم) همداسې وکړل او له هغه نه یې پداسې حال کې استقبال وکړ چې ټولو تلبیه ویله.

حلیس چې دا حالت ولید نو ویې ویل: سبحان الله! دا خلک خو باید له بیت الله شریف

نه منع نه کړای شي. بیرته خپل قوم ته ورغی او ورته ویې ویل: چې ما د قربانۍ لپاره تیار شوي څاروي ولیدل، لازمه نده چې دا خلک (مسلمانان) له مکې نه منع کړای شي.
دلته دده او قریشو تر مینځ داسې خبرې وشوې چې حلیس یې وپاراوه، عروه بن مسعود ثقفي وویل: دې سړي د عقلمندۍ خبره وکړه، اجازه راکړئ زه هم یو ځل محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ورشم. قریشو اجازه ورکړه، هغه لاړ او له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره یې خبرې پیل کړې.
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) همغه خبرې ته نژدې یوه خبره ورته وکړه کومه یې چې بدیل ته کړې وه. پدې وخت کې عروه ورته وویل: یا محمده! (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) که چیرې ته خپل وځپې او ټول له مینځه یوسې نو څه به تر لاسه کړې؟ او راته ووایه چې آیا تا تر اوسه داسې اوریدلي دي چې په عربو کې دې له تا پرته بل چا خپل ټول قوم له مینځه وړی وي؟ او که حالت بدل وي جګړه ستا په ګټه نه وي، نو زه دلته داسې اوباش کسان او مخونه وینم چې بیا به تا پریږدي او درنه تښتي به. ددې خبرې په اوریدو سره ابوبکر (رضي الله عنه) ورته وویل: د لات عورت وخورې! فکر کوې مونږ به له خپل رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) څخه تښتو؟ عروه وویل: دا څوک دی؟ ځواب ورکړ شو چې دا ابوبکر (رضي الله عنه) دی.
عروه وویل: که چیرې دې هغه احسان نه وی راباندې کوم چې ما یې لا تر اوسه بدله نه درکړې، نو حتما به م ې ددې خبرې ځواب درکاوه. په هر حال عروه له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره خپلو خبرو ته ادامه ورکړه، هر ځل به یې چې خبره کوله، نو د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مبارکه ږیره به یې رانیوله.
مغیره بن شعبه مغیره چ ې د عروه وراره وُ.د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته حاضر و لاړ وُ په لاس کې یې توره او په سر یې خول وُ. کله به چې عروه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مبارکې ږیرې ته لاس اوږد کړ ، نو مغیره به د تورې په لاستي د هغه لاس وواهه او ورته ویل به یې: لاس دې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له ږیرې نه لیرې کړه. عروه سر پورته کړ او ویې ویل: دا څوک دی؟ دوی ورته وویل: دا مغیره دی. ده وویل: دا څه حالت دی؟ دا څه خیانت دی؟ اې غداره! آیا دا زه تر اوسه پورې ستا د غدر له لاسه منډې نه وهم؟ ستا پخاطر هلې ځلې نه کوم؟ آیا ستا د جرم له امله مې دیت نه و ورکړی؟ مغیره د

جاهليت په دوران کې له څو کسانو سره ملګری شوی ؤ، بيا يې هغوی وژلي او مالونه يې ورنه اخيستي وو، له هغې نه وروسته راغلی او په اسلام مشرف شوی ؤ. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته فرمايلي و: (**أما الإسلام فأقبلُ، وأما المـــال فلست منـــه فـــي شـــيء**). اسلام دې منم، خو له مال سره دې څه کار نلرم، دا مسئوليت نه منم.

عروه کتل او له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره يې د اصحابو (رضي الله عنهم) اړيکې او معامله څارله، بيا قريشو ته ستون شو او ورته ويې ويل: اې زما قومه! قسم په خدای چې زه د ډيرو پاچايانو دربار ته ورغلی يم، قيصر، کسری، نجاشي او نور مې ليدلي، قسم په خدای چې هيڅ يو هم د خپلو افرادو په وړاندې د دومره قدر درلودونکی ندی لکه محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې چې د خپل قوم په وړاندې لري، د هغه اصحاب (رضي الله عنهم) له ده سره دومره مينه لري چې يو رعيت يې هم له خپل پاچا سره نه لري. اصحاب (رضي الله عنهم) له محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره تر دې حده مينه لري چې هغه که پزه هم سغ کړي، نو د پزې اوبه يې هم ځمکې ته نه پريږدي يو کس يې اخلي پخپل مخ او بدن يې موښي، کله چې امر وکړي ټول يې تعميل ته ولاړيږي، کله چې اودس کوي نو د اوداسه په اوبو يې سره جنګ وي هر يو هڅه کوي هغه واخلي، او کله چې هغه خبرې کوي ټول چپ شي، د ډير احترام له وجې پورته هم نه ورته ګوري، هغه (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ډير معقول وړانديز کړيدی ويې منئ.

## هغه ذات چې د دوی لاسونه يې له تاسې نه لنډ کړل

کله چې د قريشو مستو، احساساتي او جنګ ته تږو ځوانانو وليدل چې مشران يې سوله غواړي، نو د داسې يوه پلان جوړولو په فکر کې شول چې د سولې هڅې ورباندې شنډې کړي. فيصله يې وکړه چې د شپې له خوا د مسلمانانو پر مرکز بريد وکړي، او داسې څه ترسره کړي چې د جګړې سبب شي. دا پلان يې جوړ او د عمل په ډګر کې يې پلی کړ ۷۰ يا ۸۰ ځوانان د تنعيم له غره نه د شپې روان شول غوښتل يې د مسلمانانو مرکز ته لار پيدا کړي، خو هلته د مسلمانانو د امنيتي چارو قوماندان محمد بن مسلمه (رضي الله عنه) ټول اسيران کړل. وروسته رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) عفوه ورته وکړه او د سولې پخاطر يې ټول پريښودل. پدې اړه دا آيت شريف نازل شو:

((وَهُوَ الَّذِي كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ عَنْهُمْ بِبَطْنِ مَكَّةَ مِنْ بَعْـــدِ أَنْ أَظْفَـــرَكُمْ عَلَيْهِمْ )).(الفتح– ٢٤)

[او دغه الله هغه (ذات دی) چې بند یې کړل لاسونه د هغو (مشرکینو) له تاسې څخه او لاسونه ستاسې له هغوی څخه په منځ د مکې کې پس له هغې څخه چې غالب یې کړئ تاسې په هغوی باندې.]

## عثمان بن عفان (رضي الله عنه) قریشو ته د مسلمانانو د سفیر په توګه

پدې وخت کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) فیصله وکړه چې د خپل دریځ او لـه سـفر نـه د هـدف د توضـیح او څرګنـدولو پخـاطر قریشـو تـه یـو اسـتازی واستوي. لومړی یې عمر (رضي الله عنه) ته وویل چې تـه لاړ شه او قریشو تـه زمونږ دریځ او هدف بیان کړه. عمر (رضي الله عنه) خپل عذر داسې وړاندې کړ: یا رسـول الله (صلی الله علیـه و الـه و صـحبه و سلم)! پـه مکـه کې د بني کعب لـه کورنـۍ نـه داسې څوک نشته چې که ما ته څه زیان او ضرر راورسیږي، هغـه مې ملاتړ وکړي، غـوره دا ده چې عثمان (رضي الله عنه) واستول شي، ځکه دده قوم هملته مکه کې دی، هغـه بـه ستا خبـره پـه سيي توګـه ورسوي. رسول الله (صلی الله علیـه و الـه و صـحبه و سـلم) پـه عثمان (رضي الله عنه) پسې احوال ولیږه، هغه راغـی او قریشـو تـه یې د خپـل اسـتازي په توګه واستاوه او ورته ویې فرمایل: قریشو ته ووایه چې مونږ د جګړې په نیت نه یـوو راغلي، مونږ عمره ادا کول غواړو. هغوی ته د اسلام بلنـه هم ورکـړه، او بیـا لاړ شـه پـه مکه کې میشتـه مسلمانانو (ښځو او نارینه) ټولـو تـه د فـتحې او بـري زیـری ورکـړه، او ورته ووایه چې الله تعالی به حتماً خپل دین ته غلبه ورکوي، او داسې وخت راتلـونکی دی چې اسلام به غالب وي او مسلمانان به هغه وخت خپل دین نه پټوي.

عثمان (رضي الله عنه) روان شو او په بلدح نومې سیمه کې له قریشو سره مخامخ شـو، قریشـو ورتـه وویـل: چیرتـه ځې؟ ده پـه ځـواب کې ورتـه وویـل: زه رسـول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دډې خبرې لپاره رالیږلی یم، او د هغه خبره یې ورتـه وکـړه. قریشو وویل: مونږ ستا خبرې واوریدلې، ځـه لاړ شـه خپلـه وظیفـه اجرا کړه. ابـان بـن سـعید بـن العـاص ورپاڅیـد، هر کلی یې ورتـه ووایـه. خپـل آس یې زیـن کـړ، عثمـان (رضي الله عنه) یې له ځان سره سپور کړ او پخپله پناه کې یې مکې ته یووړ. هلته یې د رسـول الله (صلی الله علیـه و الـه و صـحبه و سلم) پیغـام د قریشـو مشـرانو تـه ورسـاوه.

قريشـو ورتـه وويـل: لاړ شـه د بيت الله شريف طـواف وکـړه. عثمـان (رضـي الله عنـه) دا وړانديز ونه مانـه او ويـې ويـل: تـر څـو چـې رسـول الله (صـلی الله عليـه و الـه و صـحبه و سلم) طواف نه وي کړی زه طواف نه کوم.

## د عثمان (رضي الله عنه) د شهادت خبر او د رضوان بيعت

قريشو عثمان (رضي الله عنه) له ځان سره ايسار کړ، کيدای شي دوی به د حالاتو په اړه پخپلو کې سلا او مشوره کوله او د فيصلې کوشش به يې کاوه، بيا به يې همدا فيصله د عثمان (رضي الله عنه) په لاس رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ليږله. عثمان (رضي الله عنه) پدې ترتيب سره وځنډيد، د مسلمانانو په مينځ کې دا شايعه خوره شوه چې هغه شهيد کړی شويدی. کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته دا خبره ورسيده، نو ويې فرمايل: (**لا نبرح حتی نناجز القوم**).اوس به تر هغې پورې نه ځو تر څو مو له قريشو سره جګړه نه وي کړې. بيا يې اصحاب (رضي الله عنهم) د بيعت لپاره راټول کړل.

ټول راغلل او پدې خبره يې بيعت ورسره کاوه چې له جګړې نه به تيښته نـه کـوي. يـوې ډلې د مرګ بيعت هم ورسره وکړه. لومړنی صحابي (رضـي الله عنـه) چـې لـه رسـول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره يې بيعت وکـړ ابـو سـنان اسـدي ؤ. سـلمه بـن اکوع (رضي الله عنه) دری ځله په مرګ بيعت ورسره وکړ، يو ځل د بيعت په شروع کـې بيا په مينځ کې او دريم ځل په آخر کې. بيا رسول الله (صـلی الله عليـه و الـه و صـحبه و سلم) خپل لاس په بل لاس کې ونيو او ويـې فرمايـل: (**هذه عن عثمـــان**). دا د عثمـان (رضـي الله عنـه) لپـاره. او کله چې بيعـت پـای تـه ورسـيد، عثمـان (رضـي الله عنـه) هم راورسيد او له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره يې بيعت وکړ. ټولـو اصحابو (رضي الله عنهم) بيعت وکړ، يوازې يو منافق چې جد بـن قـيس نوميـده بيعـت ته حاضر نه شو.

رسـول الله (صـلی الله عليـه و الـه و صـحبه و سـلم) دغـه بيعـت تـر يـوې ونـې لانـدې واخيسـت. عمـر (رضـي الله عنـه) يـې مبـارک لاس نيـولی ؤ او معقـل بـن يسـار د ونـې شاخونه ورنه پورته نيولي وو. همدا د رضوان بيعت دی، او د همدې رضـوان بيعـت پـه هکله دا آيت شريف نازل شويدی:

((**لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنْ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ**)) (الفتح: ۱۸)

خامخا راضي او خوښ شوی دی الله تعالی له مؤمنانو نه هغه وخت چې بیعت یې کاوه له تا سره د لاندې د ونې.]

## د سولې تړون

قریشو د وضعې حساسیت درک کړ، فوراً یې سهیل بن عمرو د سولې لپاره د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته ولیږه، خو دا یې ورته په ډاګه کړه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او اصحاب (رضي الله عنهم) به سږ کال بیرته مدینې ته ستنیږي. ځکه مونږ نه غواړو چې نور عرب داسې څه خبرې وکړي چې ګویا محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په زور مکې ته داخل شو. سهیل د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضورته ورسید او کله یې چې سترګې مبارکې پرې ولګیدلې نو ویې فرمایل: (**قد سهل لكم أمركم**).کار مو آسانه شو، دوی (قریشو) چې دا شخص رالیږلئ، نو حتماً سوله غواړي. سهیل راغی، اوږدې خبرې یې وکړې، تر څو دواړه په سوله راضي شول، او پدې ټکو یې تړون سره لاسلیک کړ:

۱- رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به سږ کال بیرته ستنیږي او مکې ته به نه داخلیږي. په راتلونکي کال کې به مسلمانان راځي او درې ورځې به په مکه کې پاتې کیږي، له دوی سره به یوازې یوه یوه توره یعنې د هغه وخت د عادي سواره وسله وي، تورې به هم په تیکیو کې د ننه وي. او دوی ته به هیڅ ډول ضرر او اذیت نه رسول کیږي.

۲- د دواړو لوریو تر مینځ به لس کال اور بند وي، پدې موده کې به خلک په امن وي، او یو پر بل به د تعرض هڅه نه کیږي.

۳- هر څوک کولی شي پخپله خوښه له محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره او یا هم له قریشو سره د دوستۍ تړون وکړي. هر هغه قبیله چې له محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او یا قریشو سره یې عهد وکړ، نو دا د همغه طرف یوه برخه شمیرل کیږي، او پر هغې باندې برید او تعرض د عهد لرونکي په خلاف تعرض بلل کیږي. ددې مطلب دا چې قبایل آزاد دي چې له چا سره د دوستۍ تړون کوي، کولی یې شي. او که فرضا یوې قبیلې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره د دوستۍ تړون وکړ، بیا قریشو پر همدې قبیله باندې حمله وکړه نو دا حمله

په حقیقت پر مسلمانانو حمله بلل کیږي. او همداسې د قریشو په هکله هم همدا خبره نافذه ده.

۴- که څوک له قریشو نه د خپل ولي له اجازې پرته راوتښتیدل او محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته راغلل، نو هغه به یې بیرته قریشو ته سپاري او که له محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه څوک قریشو ته وروتښتیدل، نو قریش به یې بیرته محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته نه سپاري.

کله چې د تړون په موادو اتفاق وشو، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) علي (رضي الله عنه) راوغوښت، امر یې ورته وکړ چې د تړون متن ولیکي او ورته ویې فرمایل ولیکه: ((بسم الله الرحمن الرحیم)) پدې وخت کې سهیل وویل: الرحمن خو مونږ نه پیژنو؟ داسې ولیکه: باسمك اللهم. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) علي (رضي الله عنه) ته امر وکړ چې همداسې ولیکي. بیا یې ورته وویل: ولیکه چې: (هذا ما صالح علیه محمد رسول الله). دا هغه څه دي چې محمد رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سوله او مصالحه ورباندې کړې ده. سهیل بیا وویل: که مونږ پدې باور او ایمان درلودلی چې ته رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یې، نو بیا به مو نه له بیت الله شریف څخه منع کړی وای، او نه به مو جګړې درسره کولی، نو داسې ولیکه چې محمد بن عبدالله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم). رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (إني رســـول الله وإن كذبتموني). زه د الله (جل جلاله) رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یم که څه هم تاسې مې نه منئ، علي (رضي الله عنه) ته یې امر وکړ چې همداسې ولیکي (محمد بن عبدالله) او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لفظ حذف کړي. علي (رضي الله عنه) وویل زه خو دا نه شم حذفولی او زړه مې دا نه مني چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لفظ حذف کړم. بیا محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپل لاس سره هغه لفظ حذف کړ. او پدې ترتیب سره د تړون متن ولیکل شو.

د تړون له لاسلیک نه وروسته خزاعه قبیله د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خوا ته ودریده او تړون یې ورسره وکړ. خزاعه له مخکې نه ان د عبدالمطلب له زمانې نه د بني هاشم حلیفه وه او له هغوی سره یې تړون درلود. له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره دا تړون د هماغه پخواني تړون تجدید او تاکید وُ. او د بنوبکر قبیلې له قریشو سره تړون وکړ.

## د ابو جندل بيرته سپارل

پداسې حال کې چې د تړون ليکل لا پای ته نه وو رسيدلي، د سهيل زوی ابو جندل چې زولنې يې راکشولې راورسيد. له مکې نه راتښتيدلی ؤ، راغی او ځان يې مسلمانانو ته راورساوه. پدې وخت کې سهيل وويل: دا به لومړنی کس وي چې په اړه به يې معامله درسره کوم، ته به دغه شخص بيرته راته سپارې! رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**إنا لم نقض الكتاب بعد**). مونږ خو تر اوسه ليکل ندي تکميل کړي. سهيل وويل: قسم په خدای که دا نه منې، نو هيڅ د سولې معامله نه درسره کوم. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: (**فأجزه لي**). نو دا زما پخاطر پريږده. ده ورته وويل: نه تا ته يې هم نه درکوم. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**بلى فافعل**).پريږده، دا زما لپاره پريږده، ما ته يې راکړه. سهيل وايي، نه، تا ته يې هم نه درکوم. سهيل پاڅيد ابو جندل يې په مخ وواهه، له جاغې نه يې راونيو کش يې کړ تر څو مشرکينو ته يې وسپاري. ابو جندل په چيغو، چيغو سره ويل: اې مسلمانانو! آيا بيرته ددې پخاطر مشرکينو ته سپارل کيږم چې هغوی مې دين ته زيان ورسوي؟ له فتنې او امتحان سره مې مخ کړي؟ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: (**يا أبا جندل، اصبر واحتسب، فإن الله جاعل لك ولمن معك من المستضعفين فرجاً ومخرجا، إنا قد عقدنا بيننا وبين القوم صلحاً، وأعطيناهم على ذلك، وأعطونا عهد الله فلا نغدر بهم**). ابا جندله!، صبرکوه، له خدايه اجر غواړه، الله تعالی به تا او ستا په شان نورو بې وسه کسانو ته لاره برابروي، مخه به مو آزاده وي، مونږ له دوی (قريشو) سره تړون کړی، همدا مو ورسره منلي، هغوی د الله په نامه وعده او عهد راسره کړې، خيانت نه شو ورسره کولی .

عمر (رضي الله عنه) پاڅيد د ابو جندل خوا ته ورغی، خوا خوا کې ورسره روان ؤ او ورته ويل يې: صبر کوه اې ابو جندله! دوی خو مشرکين دي، د مشرک وينې خو لکه د سپي داسې دي، همدا ورته وايي او د خپلې تورې لاستی هم ورنژدې کوي. عمر (رضي الله عنه) وايي: هيله مې دا وه چې ابو جندل به زما توره واخلي او خپل پلار به ورباندې ووهي، خو هغه د خپل پلار په هکله له بخل نه کار واخيست يعنې وېې نه غوښتل وېې

وژني. همدا وه چې د سولې تړون نافذ شو.

## له عمرې نه د خلاصون لپاره قرباني او د ويښتانو خريل

وروسته له هغې چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د تړون له ليکلو فارغ شو ويې فرمايل: (قوموا فانحروا). پاڅئ، او قرباني وکړئ (د قربانۍ څاروي مو ذبح کړئ)! خو اصحاب (رضي الله عنهم) يو هم نه پاڅيد. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپله خبره درې ځله تکرار کړه، خو ټول پخپلو ځايونو ناست وو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) چې دا عکس العمل وليد، روان شو او ام سلمه (رضي الله عنها) ته ورغی، دا کيسه يې ورته وکړه. هغې ورته وويل: يا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! که ته همدا غواړې چې هغوی لاړ شي او قرباني وکړي، نو لاړشه، له هيچا سره خبرې مه کوه خپله قرباني پخپله وکړه او خپل نايي راوغواړه او مبارک سر دې کل کړه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ددې خبرې په اوريدو سره پاڅيد، هيچا ته يې هم څه نه ويل. خپل د قربانۍ څاروي يې حلال کړ، نايي يې راوغوښت او خپل مبارک سر يې کل کړ. اصحابو (رضي الله عنهم) چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وليد، ټول پاڅيدل خپل څاروي يې حلال کړل، ورپسې يې يو د بل سرونه سره کل کړل، او داسې ازدحام جوړ شو او په دومره بيړه يې خپل سرونه کلول چې نژدې وه يو بل سره ووژني (يعنې يو د بل سرونه او غاړې په چړو پرې کړي). اصحابو (رضي الله عنهم) په هرو اوو کسانو سره يوه اوښه حلاله کړه، همدا راز غوا هم په اوو کسانو يوه وه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپله هغه اوښه حلاله کړه چې يو وخت له ابوجهل سره وه، او په پزه کې يې د سپينو زرو يوه حلقه هم وه، لدې کار نه يې هدف دا ؤ چې مشرکين ورباندې وځوروي. بيا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د هغو کسانو لپاره چې سرونه يې پوره کل کړي وو درې ځله دعا وکړه او د هغه چا لپاره چې ويښتان يې لنډ کړي وو يوځل د عا وفرمايله. په همدې سفر کې الله تعالی د کعب بن عجره په هکله هغه آيت شريف را نازل کړ چې حکم يې دا دی: که چا عذر درلود او د احرام په دوران کې يې سر کل کړ، نو کولی شي فديه يې ورکړي، فديه يې يا صدقه ده او يا روژه او يا هم قرباني (د څاروي حلالول).

## مهاجرې ميرمنې بيرته نه سپارل کيږي

پدې پسې يو شمير مهاجرې ميرمنې راغلی، ورپسې يې خپلوان او مشران راغلل،

مسلمانانو ته يې وويل چې د شوي تړون په اساس دا مسلمانې مؤمنې مهاجرينې بيرته دوی ته وسپاري. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د مشرکينو دا غوښتنه رد کړه ځکه په تړون کې داسې ليکل شوي وو: ((هغه نارينه چې زمونږ له خوا تا ته درځي که څه هم هغه ستا په دين وي بيرته به يې راته سپاري[1])) دلته پدې ماده کې د ښځې ذکر نشته او پدې حکم کې ندي شاملې. په همدې رابطه الله تعالی دا آيت نازل کړ: ((يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا جَاءَكُمْ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ فَامْتَحِنُوهُنَّ)) تر دې قول پورې چې فرمايي: ((بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ)) (الممتحنة: ١٠)

[اې مؤمنانو کله چې راشي تاسې ته مؤمنانې (ښځې) هجرت کوونکې نو وازمويئ تاسې هغوی، الله ته ښه معلوم دی ايمان د دوی، نو که وپيژنئ تاسې دوې (په قسم سره) مؤمنانې نو بيرته مه ليږئ هغوی طرف د مشرکينو ته، نه دي دغه (مؤمنانې ښځې) حلالې هغو (کفارو سړيو) لره او نه دي هغه (کافران) حلال (دې ښځو مؤمنانو) لره. او ورکړئ تاسې (هغوی کافرانو) (ته چې خاوندان د هغو ښځو دي) هغه څه چې لګولي يې دي له (مهره) او نشته هيڅ ګناه پر تاسې باندې چې نکاح وتړئ تاسې له دې ښځو سره په شرط ددې کله چې ورکړئ تاسې هغه ښځو ته مهرونه د دوی، او منګولې مه نښلوئ په عصمتونو د ښځو کافرانو (په نکاح يې مه اخلئ).]

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به دا ډول مؤمنې ميرمنې د الله تعالی پدې ارشاد سره ازمويلې چې فرمايې: ((يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ عَلَى أَنْ لا يُشْرِكْنَ بِاللَّهِ شَيْئاً)) الاية:(الممتحنة:١٢) [اې نبي کله چې راشي تا ته مؤمنانې ښځې چې بيعت کوي له تا سره پردې شرط چې نه به شريکوي دوی له الله سره هيڅ شی . . . . . ]

چا به چې په همدې شرايطو اعتراف او اقرار وکړ، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به ورته وفرمايل: ځه همدا دې بيعت دی، په همدې ټکو مې بيعت درنه واخيست. او بيا به يې دا ډول ميرمنې مشرکينو ته نه سپارلې. او د همدې حکم په اساس مسلمانانو خپلې کافرې ښځې طلاقې کړې. په همدې ورځ عمر (رضي الله عنه) خپلې دوې ښځې چې د شرک له زمانې ورسره وې طلاقې کړې، بيا وروسته له يوې سره معاويه واده وکړه او بله يې صفوان بن اميه نکاح کړه.

[1]. صحيح بخاري ١/ ٣٨٠

**د دې تړون پایلې**

که د حدیبیې د سولې د تړون په هکله ژور فکر وشي، نتائجو او لاسته راوړنو ته یې په ځیر وکتل شي، نو دا به په ډاګه شي چې ربښتیا هم دغه تړون د مسلمانانو لپاره لویه فتحه وه. لدینه وړاندې قریشو د مسلمانانو په وجود اعتراف نه درلود، همیشه یې د دوی د کاملې تباهۍ او له مینځه وړلو هڅې کولې او د هغې ورځې راتلو ته منتظر وو چې مسلمانان پکې بالکل ختم شوي وي. له اسلامي دعوت سره یې د سختې مقابلې لاره نیولې وه، اجازه یې نه ورکوله د اسلامي بلنې غږ د عربانو غوږونو ته ورسیږي. او نه یې غوښتل اسلامي دعوت په عربي جزیره کې د دیني او دنیوي مشرتابه په حیث تبارز وکړي.

له مسلمانانو سره د سولې د تړون لاسلیکول په حقیقت کې د مسلمانانو په وجود او ځواک اعتراف دی. او دې تړون ته غاړه ایښودل یعنې دا چې قریش نور لدې اسلامي ځواک سره د مقابلې توان نلري. او د تړون دریمه ماده پدې دلالت کوي چې قریشو نور له خپل دنیوي او دیني مشرتابه نه لاس مینځلی دی. هغوی نور پدې فکر کې ندي، له دوی سره یوازې د خپل ژوند فکر دی، نور عربان او نورې قبیلې که ټولې هم اسلام راوړي، د دوی ورسره کار نشته، دوی لدینه وروسته پدې مسایلو کې مداخله نه کوي، دوی یوازې د ځان خیر غواړي او بس، نو آیا دا د قریشو لپاره څرګنده ماتې نده؟ او آیا همدا د مسلمانانو لپاره لویه فتحه نده؟ د مسلمانانو او مشرکینو تر مینځ چې څومره خونړۍ جګړې شوې وې له هغو نه د مسلمانانو هدف دا نه و چې د خلکو مالونه واخلي او سرونه یې قلم کړي، او یا په زور خلک په اسلام راوړلو مجبور کړي، بلکه لدې جګړو نه د مسلمانانو هدف دا و چې د خلکو لپاره ددین او عقیدې په هکله پوره آزادي وي. ددې جنګونو هدف د انسان مکمله آزادي وه، او هدف یې دا و چې هر څوک پخپله خوښه خپله لاره وټاکي او د ځان لپاره خپل دین پخپله غوره کړي.

الله تعالی فرمایي:

((فَمَنْ شَاءَ فَلْيُؤْمِنْ وَمَنْ شَاءَ فَلْيَكْفُرْ)). (الکهف:۲۹). ترجمه: [د چا چې زړه وي ایمان دې راوړي او د چا چې خوښه وي کافر دې شي.]

ددې سولې او تړون پواسطه همدغه هدف لاسته راغی، او همدا هیله پداسې شکل سره سرته ورسیده چې کیدای شوای د ډیرو جګړو له لارې هم نه وای ترسره شوې. خلکو ته پوره آزادي ورکړل شوه چې خپل دین پخپله غوره کړي، او د همدې آزادۍ له برکته مسلمانانو ته ډیرې ګټې ورسیدې. اسلامي دعوت ډیر بریالیتوبونه تر لاسه کړل، له

دې ترڅ نه مخکې د مسلمانانو شمیره درې زره تنو ته رسیده خو دوه کاله وروسته د مکې د فتحې په کال همدا شمیره لس زرو ته پورته شوه.
دوهمه ماده د لویې فتحې دوهمه برخه ده، د جګړې پیل د مسلمانانو له خوا و نه شو بلکه لومړی قریشو د جنګ اور بل کړ، الله تعالی فرمايي: ((وَهُـمْ بَـدَءُوكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ)).(التوبة:۱۳)[لومړی هغوی جګړه پيل کړه.]
د مسلمانانو له جنګي تحرکاتو او ګزمو نه هدف دا و چې قريش لږ له کبر او غرور نه راکوز کړي، او له هغوی سره د عدالت او تساوي په بناء معامله وکړي، دواړه خواوې پخپل حال آزادې پريښودل شي. د لسو کلو لپاره ډزبندي او اوربند يعنې د قريشو د کبر ماتول، د هغوی له غرور سره ټکر او مقابله کول. او د اور بند بله معنې دا وه هغه چا چې لومړی جنګ پيل کړی اوس دې مرحلې ته رارسيدلي چې نور د جګړې توان نلري، هغوی اوس کمزوري شوي مجبور دي اوربند ته غاړه کيږدي، او که بې وسي او کمزوري نه وای نو ولې پخپل لاس پيل شوی جنګ ودروي؟ د ترڅ لومړنی مادې پر مسجد حرام د قريشو واکمني پای ته ورسوله، دا د دوی يوه بله ناکامي وه، ځکه هغوی خو مسلمانان له مسجد حرام نه منع کول غوښتل، خو پدې مادې سره له يوه کال پرته نور هغوی ددې حق نلري چې مسلمانان د مسجد حرام له زيارت نه منع کړي، کيدای شي د هغوی زړونه په همدې يوه کال منع کولو سره تسکين شوي وي.
پدې ترڅ قريشو مسلمانانو ته دا درې پورته ياد شوي امتيازات ورکړل، په مقابل کې يې له مسلمانانو څخه يوازې يو امتياز لاسته راوړ، کوم چې په څلورمه ماده کې ذکر شويدی. (**وعلى أنه لا يأتيك منا رجل، وإن كان على دينـك إلا رددتـه علينا**). دا هم ډير مهم امتياز ځکه ندی چې د مسلمانانو لپاره يې هيڅ ډول زيان نه درلود، څرګنده ده چې مؤمن له الله او رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) څخه تيښته نه کوي، هغه د اسلام ښار او د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) مدينه نه پريږدي، او تر څو يې چې دين نه وي بدل کړی، مرتد شوی نه وي تر هغې پورې له رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه تيښتې ته زړه نه ښه کوي. او که چيرې کوم مسلمان له خپل دين نه اوړي، نو بيا خو مسلمانان ورته هيڅ ضرورت نلري، او له اسلامي ټولنې نه يې تيښته له بقا نه غوره ده. همدې مطلب ته رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) اشاره کړې او فرمايلي يې دي: (**إنه من**

**ذهب منا إليهم فأبعده الله**[1]). څوک چې له مونږ نه لاړل په حقیقت کې الله تعالی هغوی له مونږ نه لیرې کړل. خو هغه کسان چې په مکه کې اسلام راوړي، که څه هم ددې مادې په اساس مدینې ته د هجرت اجازه نلري، خو د الله تعالی ځمکه پراخه ده، کولی شي بل کوم ځای ته هجرت وکړي، لکه چې له مدینې نه مخکې مسلمانانو حبشې ته هجرت کړی و.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) همدې مسئلې ته په اشارې سره فرمایي: (**ومن جاءنا منهم سیجعل الله له فرجاً ومخرجاً**[2]). (څوک چې له دوی نه مونږ ته راتلل غواړي، الله تعالی ورته لاره برابروي او مخه یې خلاصوي.))

دا تحفظات او شرط که څه هم په ظاهر کې د قریشو په ویاړ او عزت دلالت کوي، خو په حقیقت کې داهم د دوی د معنوي ماتې، ویرې او پریشانۍ لوی دلیل دی. د دوی زړونه دې ویرې اخیستي وو چې هسې نه جاهلي او په شرک ولاړه ټولنه یې نوره ختمه نه شي. او لکه چې پوهیدلي به وو چې دوې او ټولنه یې د نیستۍ او فنا کید و په څنډه ولاړ دي، او له حتمي سقوط نه د ژغورنې پخاطر یې همدا ډول ضمانتونو ته پناه وړله. او دا چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دا اجازه ورکوي چې قریش به هغه کسان بیرته نه ورته سپاري کوم چې له مدینې نه مکې ته تښتي، دا پدې دلالت کوي چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د خپلې ټولنې په قوت او عظمت پوره باوري دی، د سقوط او له مینځه تللو ویره یې ورسره نشته.

## د مسلمانانو خفګان او له رسول (ﷺ) سره د عمر (رضي الله عنه) مناقشه

ددې سولې حقیقت دا ؤ چې مخکې بیان شو. خو هلته دوه داسې ټکي هم وو چې د مسلمانانو د غم او خفګان سبب شول. لومړی دا چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په مدینه کې ورته ویلي و چې ځو به او د بیت الله شریف طواف به کوو. پداسې حال کې چې دا خبر یې ورکړی ؤ نو اوس ولې له طواف نه مخکې او بیله دې چې عمره ادا کړي بیرته مدینې ته ستنیږي؟ دوهمه خبره دا وه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خو په حق دی، د الله رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دی. الله تعالی خو د خپل دین د غلبې وعده هم کړیده، نو رسول الله (صلی الله

(1). صحیح مسلم باب صلح الحدیبیة ۲/ ۱۰۵
(2). صحیح مسلم.

عليه و اله و صحبه و سلم) ولې د قريشو فشار قبلوي؟ او ولې په داسې څه راضي کيږي چې دده د عزت له مقام سره مناسب ندي؟
په همدې دوو خبرو مسلمانان خفه وو، تشويشونه او شبهات ورسره پيدا شوي وو. ډير ځوريدل تر دې حده چې د سولې د تړون د موادو او نتايجو په هکله ورسره زياتې پوښتنې پيدا شوې. کيداې شي چې عمر (رضي الله عنه) له ټولو نه زيات خفه شوی وي، صبر يې ونه شو راغی، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته يې عرض وکړ يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! آيا مونږ په حق او هغوی په باطل ندي؟ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**بلـــی**). هو، مونږ په حقه او هغوی په ناروا دي. عمر (رضي الله عنه) وويل: آيا زمونږ مړي به په جنت کې او د دوی مړي به په دوزخ کې نه وي؟ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (بلی). هو زمونږ د مړيو ځای جنت او د دوی د مړيو ځای دوزخ دی. عمر (رضي الله عنه) وويل: نو ولې دا ذلت ورسره منو، او ولې بيرته ګرځو؟ تر اوسه خو الله تعالی زمونږ ترمينځ د ماتې او برې فيصله نده کړې، نو ولې بيرته ستنيږو؟ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: (**يـــا ابـــن الخطاب، إني رسول الله ولست أعصيه، وهو ناصري ولن يضيعني أبداً**).اې د خطاب زويه! زه د الله تعالی رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يم، هيڅ نافرماني نه کوم، الله زما مددګار دی، هغه مې بې اسرې نه پريږدي. عمر (رضي الله عنه) ورته وايي: آيا تا نه و راته ويلي چې ځو او د بيت الله طواف کوو؟ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) فرمايي: هو ما دا خبره کړې وه. (**فأخبرتك أنا نأتيه العـــام؟**) خو آيا دا مې درته ويلي وو چې همدا سږ کال به طواف کوو؟ عمر (رضي الله عنه) وايي: نه، دا کال خو دې نه و ياد کړی. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) فرمايي: (**فإنك آتيه ومطوف به**).نو چې داسې ده زما خبره سيې ده، ته به حتماً بيت الله ته ځې او طواف به يې کوې. پدې خبره عمر (رضي الله عنه) پاڅيد، همداسې د غوسې په حالت کې ابوبکر (رضي الله عنه) ته ورغی، او هغه ته يې هغه خبرې وکړې کومې يې چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته کړې وې. او د ابوبکر (رضي الله عنه) ځوابونه هم لکه د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ځوابونو په شان وو. يوازې دا خبره يې ورته زياته کړې وه چې عمره! تر مرګه د رسول

الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خبره ټينګه نيسه، قسم په خدای چې هغه په حق دی. وروسته دا آيتونه را نازل شول: ((إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحاً مُبِيناً)) (الفتح: ۱) [مونږ تاته څرګند بری در په برخه کړ. ] رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) عمر (رضي الله عنه) را وغوښت او همدا مبارک آيتونه يې ورته تلاوت کړل، کله يې چې دا واوريدل نو ويې ويل: آيا همدا فتحه ده؟ يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: هو همدا فتحه ده. پدې خبرې سره يې زړه خوشاله شو، طبيعت يې وغوړيد او لاړ.

وروسته عمر (رضي الله عنه) له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره پدې مناقشه سخت پښيمانه و. عمر (رضي الله عنه) وايي: د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په مقابل کې د همدې تفريط او سختې مناقشې پخاطر مې ډير کارونه وکړل، ددې سهوې د جبيره کولو پخاطر تر اوسه پورې روژه نيسم، نفلونه کوم، صدقه ورکوم، او غلامان آزادوم، د همدې غلطۍ د کفارې پخاطر مې ډيرې نيکۍ کړې، هيله لرم چې اوس به خدای خير راکړي.[1]

## د بيوزلانو د کشالې پای

وروسته لدينه چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مدينې ته ورسيد، او هلته ځای په ځای شو، له مکې نه يو مسلمان له مشرکينو نه خوشی شو، د هغوی له بند او شکنجو نه يې نجات وموند او مدينې ته راغی. ددغه صحابي نوم ابو بصير وُ، نوموړی د قريشو له حليفې قبيلې ثقيف څخه وُ. هغوی دده په لټه پسې دوه کسان مدينې ته واستول، او هلته يې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته وويل چې تړون بايد مات نه شي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ابو بصير همدې دوو کسانو ته وسپاره.

هغوی روان شول او کله چې ذو الحليفه ته ورسيدل، دمه يې جوړوله، کيناستل خرماوې يې خوړلې، ابو بصير له دوی نه يوه ته وويل: اې فلانيه څه ښه توره لرې! هغه توره پورته کړه او ويې ويل، هو ډيره ښه توره مې ده، دا مې ډير ځايه په کار راغلې. ابو بصير ورته وويل ته يې راکړه چې ويې ګورم! هغه توره ورکړه، ابو بصير توره

---

[1]. ددې غزا او سولې د زيات تفصيل لپاره فتح الباري۷/۴۳۹تر۴۵۸، صحيح بخاري ۱/۳۷۸تر۲،۷۱۷/۳۸۱،۶۰۰،۵۹۸، صحيح مسلم۲/۱۰۴_۱۰۶، ابن هشام ۲/۳۰۸تر۳۲۲ زاد المعاد ۲/۱۲۲تر۱۲۷، مختصر سيرة الرسول ۲۰۷تر ۳۰۵،تاريخ عمر بن الخطاب ۳۹_۴۰وګوره.

واخسته او په یوه کلک ګوزار سره یې هغه مړ کړ، دوهم کس وتښتید مدینې ته یې ځان ورساوه، په منډه مسجد ته داخل شو. کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ولید ویې فرمایل: (**لقد رأى هذا ذعراً**). دا سړې ویریدلی دی. او چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته ورسید ویې ویل: زما ملګری یې وواژه، ما هم وژني. په همدې وخت کې ابو بصیر هم راغی عرض یې وکړ یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! الله تعالی خو ستا غاړه خلاصه کړه، تا خپله وعده پوره کړه، زه دې ورته وسپارلم، اوس الله تعالی زه ورنه وژغورلم. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (**ويل أمه، مِسْعَر حَرْبٍ لو كان له أحد**). مور یې بوره شه، که دې سړي څوک درلودی، نو د جنګ اورونه به یې بل کړی وای. ابو بصیر چې دا خبره واوریدله پوه شو چې بیرته مشرکینو ته سپارل کیږي، همدا وه چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له حضور نه لاړ او له مدینې نه هم ووت، ځان یې د بحر ساحلي برخې ته ورساوه.

هلته ابو جندل هم له قریشو نه په تیښته بریالی کیږي، او ابو بصیر ته ځان رارسوي. په همدې ترتیب سره د مکې مسلمانان یو په بل پسې له قریشو نه راتښتي او ابو بصیر ته راځي، چې پدې ترتیب له دوی نه یو ښه ګروپ جوړ شو او هر کله به چې خبر شول د قریشو کاروان شام ته روان دی، ورتلل به حمله به یې ورباندې کوله، خلک به یې وژل او مالونه به یې ورنه اخیستل.

بالاخره قریش مجبور شول چې له رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه د مرستې او مهربانۍ سوال وکړي، او پدې راضي شول چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ووایي د خدای لپاره هغه کسان چې تا ته راځي، مونږ ته یې مه سپاره له ځان سره یې وساته. هغوی ته پناه ورکړه. پدې ترتیب سره قریشو پخپله دا ومنله چې هغه مسلمانان چې مدینې ته لاړل هغوی نور په امن دي، له همدې موافقې نه وروسته رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ابو بصیر او ملګرو (رضي الله عنهم) ته یې احوال ولیږه چې مدینې ته راشي، هغوی هم راغلل او په مدینه کې میشته شول.[1]

---

[1] مخکیني مصدرونه.

## د قريشو د اتلانو اسلام

د اووم هجري کال په لومړيو کې په همدې ترڅ کې عمرو بن العاص، خالد بن وليد، عثمان بن طلحه (رضي الله عنهم) په اسلام مشرف شول. هغوی چې کله د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راغلل، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**إن مكـــة قد ألقت إلينا أفلاذ كبـــدها**).مکې مونږ ته د خپل زړه کترې راليږلې دي[1].

که څه هم ددې دريو قهرمانانو د اسلام راوړلو د تاريخ په هکله څه اختلاف شته، خو ثابته دا ده چې دوی په اووم هجري کال کې مسلمان شويدي.

[1]. د اسماء الرجال عام کتابونه وايي چې دې اتلانو په آتم هجري کال ايمان راوړی دی، خو د نجاشي په وړاندې د عمرو بن العاص د اسلام کيسه مشهوره ده. خالد او عثمان بن طلحه هغه وخت اسلام راوړې چې عمرو بن العاص له نجاشي نه بيرته راستون شو. او د مدينې په لور روان و چې دوی دواړه ورسره يو ځای شول، او پدې ترتيب سره درې واړه يو ځای د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته حاضر شول او اسلام يې راوړ او دا پدې دلالت کوي چې دوی د اووم هجري کال په لومړيو کې مسلمان شويدي.

دوهمه مرحله

# نوی بدلون

د حديبيې تړون په اسلامي تاريخ کې د نوي بدلون پيلامه وه. قريش د اسلام او مسلمانانو تر ټولو سخت دښمنان وو د جګړې له ډګر نه ددې لوی دښمن په شا تګ سره د مسلمانانو د مخالف مثلث (قريش، غطفان، يهود) يو مهم وزر مات شو. او څرنګه چې قريش د بت پرستانو او مشرکانو مشران او نمايندګان وو، د دوی پدې شا تګ سره د ټولو مشرکانو احساسات مړاوي او روحيات يې کمزوري شول، حوصلې يې پريوتی. ګورو چې لدينه وروسته د بنو غطفان قبيلې د اسلام په مقابل کې هيڅ د توجه وړ اقدام ندی کړی، او که څه يې کړي هم دي، هغه يې د يهودانو د تحريک او لمسونې په سبب کړيدي.

يهودانو له مدينې نه له شړلو وروسته خيبر خپل مرکز وټاکه، همدلته يې د اسلام په خلاف توطئې کولې. خيبر د يهودي مکر او فتنې په اډه بدل شوی ؤ، يهودانو نه يوازې پخپله د مسلمانانو په خلاف توطئې کولې بلکه نور عربان يې هم د هغوی په خلاف هڅول. زيار يې يوست مسلمانان له مينځه يوسي او زيان ور واړوي. همدا وجه وه چې له حديبيې نه وروسته د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) لومړنی کار د يهودي مرکز او د فساد دا اډه له مينځه وړل و. د حديبيې له تړون نه وروسته مسلمانانو دا فرصت وموند چې خلکو ته د اسلام دعوت ورسوي، دعوتي پروګرام يې لا پسې ګړندی او پياوړي شو، او پدې مرحله کې د دوی دعوتي پروګرام د پوځي پروګرام په نسبت مخکې و. په همدې اساس دغه مرحله په دوو برخو ويشلی شو:

۱- د دعوت او بلنې پروګرام يا مشرانو او پاچايانو ته ليکونه استول.

۲- پوځي تحرکات.

مخکې لدينه چې پدې مرحله کې له پوځي تحرکاتو او عملياتو نه خبرې وکړو، غواړو مشرانو او پاچايانو ته د ليکونو استولو په اړه معلومات وړاندې کړو، ځکه دعوت او بلنه د اوليت حق لري. او همدا دعوت او بلنه هغه هدف دی چې مسلمانانو يې په لار کې ډيرې ستونزې ليدلی او راز راز کړاوونه يې ګاللي دي.

# مشرانو او پاچایانو ته لیکونه

وروسته له هغې چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د هجرت په شپږم کال کې له حدیبیې نه راستون شو، مختلفو مشرانو او پاچایانو ته یې لیکونه واستول، او هغوی یې اسلام ته راوبلل.
کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اراده وکړه پاچایانو ته لیکونه واستوي ورته وویل شول چې د پاچایانو عادت دا دی چې بې مهره لیکونه نه مني.
همدا وه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ځان لپاره د سپینو زرو یو مهر جوړ کړ او پرې ولیکل شول ((محمد رسول الله)) دغه مبارکه کلمه په دریو کرښو کې لیکل شوې وه، له لاندې خوا نه لومړۍ کرښه ((محمد))، دوهمه ((رسول)) او دریمه ((الله)) وه.[1]
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له اصحابو (رضي الله عنهم) نه یو څو هوښیار او با تجربه اصحاب (رضي الله عنهم) انتخاب کړل، پاچایانو او مشرانو ته یې واستول. علامه منصور پورې وایي چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپل استازي خیبر ته له تللو نه څو ورځې مخکې د (۷) هجري کال د محرم په لومړۍ ورځ لیږلي دي.[2]
راځئ اوس ځینې دا لیکونه وګورو او د پایلو په هکله یې خبرې وکړو.

## ۱- د حبشې پاچا نجاشي ته لیک

ددغه نجاشي نوم اصحمه بن ابجر ؤ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د شپږم هجري کال په وروستیو او یا د اووم هجري کال په محرم میاشت کې د عمرو بن

---

(1). صحیح بخاري ۲/ ۸۷۲ - ۸۷۳
(2). رحمه للعالمین ۱۷۱/۱

اميه الضمري په لاس ليک ورواستاوه. طبري ددې ليک متن رانقل کړيدی، خو که دقت وشي نو دا په ډاګه کيږي چې دا هماغه ليک ندی کوم چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) له حديبيې نه وروسته ورته ليکلى دی. کيدای شي دا د هغه ليک متن وي کوم چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) به له مکې نه د جعفر (رضي الله عنه) په لاس حبشې ته د هجرت په وخت استولى وي، ددې ليک په وروستۍ برخه کې حبشې ته د مهاجرينو ذکر داسې راغلى دی: (**وقد بعثت إليكم ابن عمي جعفراً ومعه نفر من المسلمين، فإذا جاءك فأقرهم ودع التجبر**).

[تا ته مې خپل د تره زوی جعفر در واستاوه، له ده سره يو شمير نور مسلمانان هم ملګري دي، کله چې دوی در ورسيدل نو درناوی يې وکړه او زياتی مه ورسره کوه].
بيهقي له ابن اسحاق نه د هغه ليک متن رانقل کړيدی کوم چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) نجاشي ته استولى ؤ او د هغه متن دادی: (**بسم الله الرحمن الرحيم. هذا كتاب من محمد رسول الله إلى النجاشي، الأصحم عظيم الحبشة، سلام على من اتبع الهدي، وآمن بالله ورسوله، وشهد أن لا إله إلاالله وحده لا شريك له، لم يتخذ صاحبه ولا ولداً، وأن محمدًا عبده ورسوله، وأدعوك بدعاية الإسلام، فـإني أنا رسوله فأسلم تسلم، {يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْاْ إِلَى كَلَمَةٍ سَوَاء بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلاَّ نَعْبُدَ إِلاَّ اللّهَ وَلاَ نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلاَ يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضاً أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللّهِ فَـإِن تَوَلَّـوْاْ فَقُولُواْ اشْهَدُواْ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ} فإن أبيت فعليك إثم النصارى من قومك**).((بسم الله الرحمن الرحيم، دا ليک د محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) له خوا د حبشې مشر نجاشي اصحمه ته دی. په هغه چا دې سلام وي چې د هدايت لاره يې نيولې، په الله او رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې ايمان راوړی، شاهدي وايم چې له الله پرته بل د عبادت مستحق نشته، الله واحد دی، شريک نلري، ښځه او اولاد نلري، محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د الله بنده او رسول دی، زه تا ته بلنه در کوم چې اسلام ومنې، زه د الله رسول يم، ايمان راوړه او ځان خوندي وساته، [اې د کتاب خاوندانو! راځئ هغه خبره ومنئ چې زمونږ او تاسې ترمينځ شريکه ده، راځئ دا ومنو چې له يوه الله تعالى پرته د بل چا عبادت نه کوو، له هغه سره به شريک نه نيسو، يو بل په خدايي نه نيسو، که دا خبره يې ونه منله، نو ورته ووايئ چې مونږ مسلمانان يو] که تا دا بلنه قبوله نکړه نو د خپل قوم د ټولو

نصرانیانو ګناه ستا پر غاړه ده.))
لوی او مشهور څېړونکي دکتور حمید الله پدې وروستیو کې د همدې لیک اصلي متن لاسته راوړی دی، دغه متن هغه ته ورته دی کوم چې ابن قیم رانقل کړیدی.
دوکتور حمیدالله د لیک د متن په توضیح، تحقیق او برابرولو کې زیات کوشش کړیدی، له نویو وسایلو نه یې ګټه اخیستې ده، او د لیک متن دا دی:

**(بسم الله الرحمن الرحيم. من محمد رسول الله إلى النجاشي عظيم الحبشة، سلام على من اتبع الهدى، أما بعد: فإني أحمد إليك الله الذي لا إله إلا هو الملك القدوس السلام المؤمن المهيمن، وأشهد أن عيسى بن مريم روح الله وكلمته ألقاها إلى مريم البتول الطيبة الحصينة، فحملت بعيسى من روحه ونفخه، كما خلق آدم بيده، وإني أدعو إلى الله وحده لا شريك له، والموالاة على طاعته، وأن تتبعني، وتؤمن بالذي جاءني، فإني رسول الله صلى الله عليه وسلم، وإني أدعوك وجنودك إلى الله عز وجل، وقد بلغت ونصحت، فاقبل نصيحتي، والسلام على من اتبع الهدى).**

[د محمد رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له خوا د حبشې مشر نجاشي ته! په هغه چا دې سلام وي چې د هدایت لاره یې نیولې ده. زه د هغه الله ثنا وایم چې له هغه پرته بل الله نشته، هغه الملک، القدوس، السلام، المؤمن، المهمین دی او شاهدي وایم چې عیسی بن مریم د الله تعالی روح او هغه کلمه ده چې سپېڅلې، پاک لمنې او بتول (پیغلې) مریم ته یې القاء کړې یا اچولې ده. د همدې روح او القاء له امله (عیسې (علیه السلام) د مریم په نس شو او الله تعالی هغه داسې پیدا کړ لکه څرنګه یې چې آدم پخپل لاس سره پیدا کړیدی. زه د هغه یوه الله تعالی لوري ته بلنه کوم چې هیڅ شریک نلري. زه بلنه درکوم چې د الله تعالی په اطاعت سره دوستي وکړو. زه بلنه درکوم چې زما اطاعت او پیروي وکړئ، او په هغه الله ایمان راوړئ چې زه یې غوره کړی یم. زه د الله رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یم. زه تا او ستا لښکرې ټول د الله لور ته رابولم ما خپله خبره درته وکړه، نصیحت مې

در ورساوه، زما نصیحت قبول کړه. په هغه چا دې سلام وي چې په حق روان دی.][1]

دوکتور حمیدالله وایي چې دا د هغه لیک متن دی چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له حدیبیې نه وروسته نجاشي ته استولی دی. پدې کې هیڅ شک نشته چې دا متن بالکل سیي دی، خو دا ثابته نده چې دا دې حتماً د همغه لیک متن وي چې له حدیبیې نه وروسته لیکل شویدی. بیهقي چې له ابن اسحاق نه کوم متن رانقل کړیدی، له هغه لیکونو سره ورته والی لري کوم چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له حدیبیې نه وروسته پاچایانو او مشرانو ته استولي دي. پدې لیک کې دا آیت شریف لیکل شوی: ((يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ))الایة. د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) عادت همدا ؤ چې پدې لیکونو کې یې همدا آیت شریف لیکه. په همدې لیک کې د اصحمه نوم هم لیکل شویدی، خو هغه متن چې دوکتور حمیدالله راوړی دی فکر کوم چې دا د هغه لیک متن وي کوم چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د اصحمه له مرګ نه وروسته د هغه قایم مقام ته لیکلی ؤ همدا وجه ده چې پدې متن کې د اصحمه نوم هم ندی راغلی.

د لیکونو د ترتیب په هکله هم څه دلیل نلرم، یوازې د لیکونو له محتوی نه دا راته ښکاره شویده چې کیدای شي په همدې ترتیب سره استول شوي وي. د تعجب خبره خو دا ده چې دکتور حمیدالله د هغه لیک په هکله چې بیهقي رانقل کړیدی وایي چې دا د هغه لیک متن دی کوم چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د اصحمه له مرګ نه وروسته د هغه خلیفه ته استولی دی، پداسې حال کې چې پدې متن کې د اصحمه نوم لیکل شویدی.[1] و الله اعلم

کله چې عمرو بن امیه الضمري (رضي الله عنه) نجاشي ته د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لیک وسپاره، نجاشي لیک واخیست په سترګو یې ومونښه، له خپل تخت نه راکوز شو، د جعفر بن ابي طالب په لاس یې ایمان راوړ او په اسلام مشرف شو، او په ځواب کې یې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته دا لیک ولیکه: **بسم الله الرحمن الرحیم**، د نجاشي اصحمه له خوا د محمد رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته! **سلام علیك یا نبي الله من الله و رحمة**

---

(۱) . رسول اکرم (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) کې سیاسي زندګي ص ۱۰۸_۱۰۹_۱۲۲_۱۲۳_۱۲۴_۱۲۵.
په زاد المعاد کې د والسلام على من اتبع الهدى په ځای اسلم انت جمله راغلې ده ۳/ ۶۰.

[1]. رسول اکرم کې سیاسي زندګي ص ۱۰۸ تر ۱۱٤ او ۱۲۱ تر ۱۳۱.

**الله و برکاته، و الله الذي لا الله الا هو، اما بعد:**اې د الله رسوله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! ستا لیک راورسید، تاسو د عیسی (علیه السلام) یادونه کړې وه، د ځمکې او آسمان په رب مې دې قسم وي چې عیسی (علیه السلام) له هغه څه سره چې تا ورنه یادونه کړې د یوه ویښته په اندازه هم توپیر نلري. څه دې چې مونږ ته رالیږلي وو په هغه پوه شوو، ستا د تره د زوی او ستا د نورو اصحابو (رضي الله عنهم) قدر او عزت مو وکړ. زه شاهدي وایم چې ته په رښتیا سره د الله تعالی رسول یې، ما له تا سره بیعت وکړ، ستا د تره له زوی سره مې بیعت وکړ. او دده په لاس مې د الله تعالی دین ومانه او په اسلام مشرف شوم.[۱]

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له نجاشي نه دا غوښتنه کړې وه چې جعفر او په حبشه کې میشته نور مهاجرین ده ته ورواستوي، نجاشي د همدې غوښتنې په اساس ټول مهاجرین په دوو کښتیو کې له عمرو بن امیه الضمري سره ورولیږل.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په خیبر کې تشریف درلود چې دا مهاجرین ور ورسیدل.[۲] همدغه نجاشي په نهم هجري کال کې له تبوک غزا نه وروسته وفات شو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یې د وفات په ورځ خپله خواشیني څرګنده کړه او په غیابت کې یې د جنازې لمونځ ادا کړ.

د اصحمه له وفات نه وروسته بل څوک دده په ځای وټاکل شو، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هغه ته هم لیک ولیږه او د اسلام بلنه یې ورکړه، خو دا ثابته نده چې دې نجاشي یا پاچا ایمان راوړی ؤ او که نه.[۳]

## ۲- د مصر پاچا مقوقس ته لیک

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د مصر او اسکندریې پاچا چې د منصور پوري په قول یې نوم جریج بن متی او د داکتر حمید الله په قول یې نوم مقوقس ؤ لیک واستاوه. ددغه مبارک لیک متن په لاندې ډول دی:

(**بسم الله الرحمن الرحيم من محمد عبد الله ورسوله إلى المقوقس عظيم القبط، سلام**

(1). زاد المعاد ۳/ ۶۱

(2). ابن هشام ۲/ ۳۵۹

(3). مسلم ۲/ ۹۹

**على من اتبع الهدى، أما بعد، فإني أدعوك بدعاية الإسلام، أسلم تسلم، وأسلم يؤتك الله أجرك مرتين، فإن توليت فإن عليك إثم أهل القبط، {يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْاْ إِلَى كَلَمَةٍ سَوَاء بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلاَّ نَعْبُدَ إِلاَّ اللّهَ وَلاَ نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلاَ يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضاً أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللّهِ فَإِن تَوَلَّوْاْ فَقُولُواْ اشْهَدُواْ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ}.**

د الله د بنده او رسول محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له خوا د قبطياتو (مصر) مشر مقوقس ته. په هغه چا دې سلام وي چې د هدايت په لار روان دی. اما بعد: زه دې اسلام ته رابولم. اسلام راوړه تر څو په امن وې، ايمان راوړه الله تعالی به دوه اجرونه درکړي، که دې زما بلنه ونه منله نو د قبطيانو ګناه به هم ستا پر غاړه وي، [ووايه اې محمده! چې اې اهل کتابو راځئ تاسې په طرف د يوې کلمې (خبرې) چې برابره ده په منځ زمونږ او ستاسې کې (او هغه دا ده) چې عبادت به نه کوو مګر يوازې د الله او شريک به نه نيسو په الله پورې هيڅ شی او نه به نيسي ځينې زمونږ ځينې نور خدايان غير له الله (جل جلاله) ( لکه چې تاسې کتابيان احبار او رهبان نيسئ) نو که وګرځيدل دوی (له توحيده) او اسلامي احکامو ته يې شا واړوله پس ووايئ تاسې (اې مؤمنانو کتابيانو ته چې) شاهدان يئ تاسې پدې چې په تحقيق مونږ مسلمانان يوو (او تاسې نه يئ).] [1]

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دغه ليک حاطب بن ابي بلتعه ته ورکړ، هغه چې کله مقوقس ته ورغی ورته ويې ويل: له تانه مخکې دلته مصرکې يوه سړي د خدايي دعوه کړې وه او ځانته يې لوی رب وايه. خو الله تعالی هغه ته په دنيا او اخرت کې سخته سزا ورکړه، انتقام يې ورنه واخيست. ته له نورو نه پند واخله، هسې نه چې نور بيا له تا نه پند واخلي.

په ځواب کې مقوقس ورته وويل چې مونږ دين لرو او يوازې هغه وخت به يې بدلوو چې لدينه غوره دين ومومو. حاطب ورته وويل: مونږ تا د هغه دين قبلولو ته رابولو کوم چې الله تعالی غوره کړيدی، او د نورو ټولو اديانو په ځای يې خپلو بندګانو ته انتخاب کړيدی، د الله رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ټول خلک اسلام ته رابللي، ډير کلک مخالفت يې له قريشو نه ليدلی، او تر ټولو نه زياته دښمني يهودانو

---

[1] . دا د زادالمعاد عبارت دی ٦١/٣، خو دکتور حميدالله چې کوم عبارت ذکر کړی هغه د هغه ليک متن دی چې پدې وروستيو کې تر لاسه شوی او ځنې کلمې يې لدې متن سره توپير لري، په هغه متن کې ليکل شوي: "فاسلم تسلم يؤتك الله" همدا راز په هغه کې د "اثم القبط" لفظ د اثم اهل القبط په عوض راغلی، رسول اکرم کې سياسي زندګي ص ١٣٧،١٣٦.

ورسره کړیده، له دوی ټولو نه نصرانیان ورته لنډ دي، قسم په خدای چې موسی (علیه السلام) د عیسی (علیه السلام) په هکله داسې زیری ورکړی دی لکه څرنګه چې عیسې (علیه السلام) د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په هکله ورکړی دی، مونږ تا د قرآنکریم لور ته رابولو لکه څرنګه چې تاسې د تورات خاوندان د انجیل لوري ته رابولئ، هر نبي (علیه السلام) چې له هر قوم سره ژوند کوي هغه یې امت وي، د خلکو مسؤلیت دا دی چې په همدې نبي (علیه السلام) ایمان راوړي، تاسې هم د همدې نبي (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په زمانه کې ژوند کوئ، د مسیح (علیه السلام) له دین نه دې هم نه منع کوو، بلکه په همغه دین د عمل او منلو امر درته کوو.

مقوقس وویل: ما ددې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په هکله فکر وکړ، دې نتیجې ته ورسیدم چې په کم ارزښته څیز امر نه کوي، له ښه او ګټور کار نه نهي هم نه کوي، ګمراه او شاعر هم ندی، کاهن او دروغجن هم ندی، د هغه د نبوت نښانې مې هم لیدلې هغه د پټو شیانو ښودنه کوي، او د پټو او ځانګړیو خبرو په هکله هم معلومات ورکوي، خو پدې هکله نور فکر هم کوم.

بیا مقوقس د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لیک واخیست او په صندوق کې یې چې د فیل له غاښ نه جوړ شوی و کیښود، مهر یې پرې ولګاوه او یوې خادمې ته یې ورکړ. ورپسې یې یو کاتب چې عربي یې زده وه راوغوښت او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته یې داسې ولیکل:

**بسم الله الرحمن الرحیم.** د مصر د مشر مقوقس له خوا محمد بن عبدالله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته! سلام علیک اما بعد ستا لیک مې ولوست، په مطلب یې پوه شوم. پوه شوم چې کومې خوا ته مې بولې. پدې هم خبر وم چې یو نبي (علیه السلام) پاتې دی، ما ګمان کاوه چې دغه نبي (علیه السلام) به په شام کې ظهور کوي، ما ستا د قاصد درناوی وکړ، او تا ته مې دوې خادمانې درولیږلې. دا دواړه زموږ په وړاندې د ډیر قدر درلودونکې دي، تا ته مې یوه جوړه جامې هم درواستولې، همدا راز یوه قاطره (قچره) مې هم درته اهداء کړه، و السلام علیک. یوازې همدا یې ولیکل، خو ایمان یې را نهووړ، او دغه دوې خادمانې یوه ماریه نومیده او بله سیرین، او د قاطرې نوم دلدل ؤ. او همدا قاطره د معاویه (رضي الله عنه) د خلافت تر

زماني ژوندی وه.[۱]
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ماریه خپل ځان سره وساتله او له همدې نه يې ابراهيم نومی زوی پيدا شو، او سيرين يې حسان بن ثابت (رضي الله عنه) ته ورکړه.

## ۳- د فارس پاچا کسری ته ليک

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د فارس پاچا کسری ته داسې ليک واستاوه: (**بسم الله الرحمن الرحيم. من محمد رسول الله إلى كسرى عظيم فارس، سلام على من اتبع الهدى، وآمن بالله ورسوله، وشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له، وأن محمداً عبده و رسوله، وأدعوك بدعاية الله، فإني أنا رسول الله إلى الناس كافة، لينذر من كان حياً ويحق القول على الكافرين، فأسلم تسلم، فإن أبيت فإن إثم المجوس عليك**). **بسم الله الرحمن الرحيم**، د محمد رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له خوا د فارس مشر کسری ته په هغه چا دې سلام وي چې د هدايت په لار روان، په الله او رسول يې ايمان راوړی وي، او دا شاهدي وايي چې له يوه الله پرته بل (د عبادت وړ) نشته. الله شريک نلري، او محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د الله بنده او رسول دی. زه تا د الله لوري ته رابولم، زه د ټولو خلکو لپاره رسول رالیږل شوي يم، تر څو ژوندي کسان له بد انجام نه وويرول شي، او په کفارو حقه خبره دليل وګرځي. اسلام راوړه تر څو په امن شې، که دې اسلام رانهووړ نو د فارسيانو ګناه به هم پر تا وي.
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ددې ليک د وړلو دنده عبدالله بن حذافه السهمي ته وسپارله. سهمي لاړ او دغه ليک يې د بحرين مشر ته وسپاره، معلومه نده چې د بحرين مشر د بل چا په لاس دا ليک وليږه او که خپله عبدالله سهمي يووړ. په هر حال کله چې ليک کسری ته ورسيد او ورته ولوستل شو، نو هغه ليک څيرې کړ او په ډير کبر سره يې وويل: زما د رعيت يو عادي او حقير شخص خپل نوم زما له نامه نه مخکې ليکي!! کله چې دغه خبره رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ورسيده نو ويې فرمايل: (**مزق الله ملكه**). الله تعالی د هغه پاچايي خرابه کړه. او همداسې وشول لکه څرنګه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) فرمايلي و. د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له ليک نه

---
[1]. زاد المعاد ۳/ ۶۱

وروسته کسرى د يمن والي باذان ته وليکل: دغه شخص تـه چې پـه حجاز کې دى دوه چالاک سړي وليږه تر څو مـا تـه يې راولـي. باذان هم دوه کسـان غـوره کړل او لـه يـوه ليک سره يې د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضورته وليږل، پـه ليک کې يې دا ورته ليکلي و چې لدې کسانو سره کسرى ته ورشه. دا کسـان چـې کلـه مـدينې تـه ورسيدل او لـه رسـول الله (صلى الله عليـه و الـه و صحبه و سلم) سـره يـې ملاقات وکړ، يوه يې ويل: باذان پاچا د کسرى شاهنشاه په امر مونږ تا ته راليږلي يوو چې تا له ځان سره کسرى ته بوزو، پدې ترڅ کې يې څه ګواښ هم وکړ. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: چې سبا بيا له ما سره وګورئ.

په همدې وخت کې د کسرې په کور کې د ننه کودتا شوې وه. دا وروستـه لـه هغـه چـې لښکرو يې د قيصر د سپايانو په وړاندې رسوا ماتې خوړلې وه، د کسرى زوى شيرويه پاڅيدلى ؤ، خپل پلار يې وژلى ؤ او پخپله يې پاچايي اعلان کړې وه. دا کودتا د اووم هجري کال د سه شنبې په شپه د جمادي الاولى په لسمه شوې وه[1].

رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د وحي لـه لارې پـدې پيښـه خبر شـو، سهار يې چې تشريف راوړ، د باذان عسکرو ته يې کيسه وکړه، هغوى ورتـه وويـل: تـه پوهيږې چې څه وايې؟ مونږ خو لدينه په وړه خبره باندې درته په غصه يوو، آيا ستا دا خبرې هم وليکو او پاچا ته يې وليږو؟ ده ورتـه وفرمايـل: (**نعم أخبراه ذلك عني، وقولا له: إن ديني وسلطاني سيبلغ ما بلغ كسرى ! وينتهي إلى منتهي الخف والحافر، وقولا له: إن أسلمت أعطيتك ما تحت يدك، وملكتك على قومك من الأبناء**).

هو، ويې ليکئ او پرې خبر يې کړئ، او دا هم ورته ورسوئ چې زما ديـن او واکمنـي بـه تر هغه ځايه پورې رسيږي چيرته چې اوس د کسرى واکمني ده، او زمـا واکمنـي بـه تـر هغه ځايه رسيږي چيرته چې ستاسې د آس او اوښه پښـه هلتـه نـه شـي رسـيدلى، دا هـم ورته ورسوي چې: که اسلام دې راوړ نو ستا واکمنـي بـه تـا تـه وسـپارم، او د خپـل قـوم مشر به دې غوره کړم.

دا دواړه کسان روان شول او خبر يې باذان ته يوور. په همدې وخت کې لږ شيبه وروسته باذان ته دا خبر هم راورسيد چې شيرويه خپـل پـلار کسـرى وژلـى دى، پـه همـدې ليـک

[1]. فتح الباري ۸/ ۱۲۷

کې شیرویه باذان ته لیکلي وُ: د هغه کس د هڅونې هڅه مه کوه کوم چې په هکله یې زما پلار درته لیکلي و اوس تر دوهم امر پورې انتظار باسه. همدا کار ددې سبب شو چې باذان او په یمن کې میشته ټول فارسیان په اسلام مشرف شي.[۲]

## ۴- د روم پاچا (قیصر) ته لیک

امام بخاري د یوه اوږده حدیث د را نقلولو په ترځ کې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د هغه لیک متن راوړی دی کوم چې د روم پاچا هرقل ته یې لیږلی وُ، ددغه لیک متن څه داسې دی:

**(بسم الله الرحمن الرحيم. من محمد عبد الله ورسوله إلى هرقل عظيم الروم، سلام على من اتبع الهدي، أسلم تسلم، أسلم يؤتك الله أجرك مرتين، فإن توليت فإن عليك إثم الأريسيين { يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْاْ إِلَى كَلَمَةٍ سَوَاء بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلاَّ نَعْبُدَ إِلاَّ اللّهَ وَلاَ نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلاَ يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضاً أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللّهِ فَإِن تَوَلَّوْاْ فَقُولُواْ اشْهَدُواْ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ}) [آل عمران: ٦٤]**[١].

[د محمد بن عبدالله چې د الله تعالی رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او بنده دی له خوا د روم واکمن هر قل ته. په هغه چا دې سلام وي چې د هدایت په لاره روان وي، اسلام راوړه تر څو په امن شې، په اسلام مشرف شه، الله تعالی به دوه اجرونه درکړي، که د اسلام رانه ووړې نو د ټولو اریسیونو (پیروانو) ګناه به ستا په غاړه وي (د ایت ترجمه ځکې شویده).]

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دغه لیک د دحیه بن خلیفه الکلبي په لاس ولیږه او امر یې ورته وکړ چې لیک د بصری مشر ته وسپاري تر څو هغه یې قیصر ته ورسوي. بخاري له ابن عباس (رضي الله عنهما) نه په روایت سره وایي چې ابو سفیان بن حرب وایي: هر قل د قریشو له یو شمیر مشرانو سره وغوښتلم، مونږ شام ته د تجارت لپاره تللي وو. دا هغه وخت وُ چې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره د حدیبیې تړون لاسلیک شوی وُ. ابو سفیان وایي: مونږ هرقل ته ورغللو هغه په ایلیاء (بیت المقدس) کې وُ[۲] خپل دربار ته یې وبللو. ورسره د روم

---

[2]. محاضرات تاریخ الامم – ۱/ ۱۴۷. فتح الباري ۸/ ۱۲۷، ۱۲۸

[١]. صحیح البخاري ٥٠٤/١.

[۲]. دغه وخت قیصر له حمص نه بیت المقدس ته راغلی و، تر څو د الله تعالی د هغه احسان شکرانه ادا کړي چې پر دوی یې کړی و او فارسیانو ته یې ماتې ورکړې وه (صحیح مسلم : ۲/ ۹۹). فارسیانو خپل مشر خسرو پرویز وژلی وُ او له رومیانو سره یې سوله کړې وه او دایې منلې وه چې د روم اشغال شوې ځمکې به بیرته رومیانو ته سپاري، او هغه صلیب یې هم ورسپارلی و

مشران هم ناست وو ترجمان يې راوباله او راته ويې ويل له تاسې نه کوم يو له دې شخص سره چې د نبوت دعوه يې کړيده نسبي نژديوالی لري؟ کوم يو يې ډير نژدې خپل دی؟ ابو سفيان وايي: ما ورته وويل: زه ډير ورلنډ يم. هرقل وويل: دا سړی او ملګري يې زما خوا ته رالنډ کړئ، ملګري يې دده شاته کينوئ، بيا يې خپل ترجمان ته وويل: زه لدې سړي نه د نبوت د مدعي يعنې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په هکله پوښتنې کوم، زما ملګرو ته يې وويل که دې سړي دروغ راته وويل، نو تاسې يې راته په ګوته کړئ. ابو سفيان وايي که له خپلو ملګرو څخه نه وی شرميدلی چې بيا به وايي دروغجن دی، نو په محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پسې به مې دروغ ويلي وای.

ابو سفيان زياتوي، د هرقل لومړنی سوال دا وُ چې د محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د نسب په هکله څه وايئ؟ ما ورته وويل: هغه د ډير لوړ او شريف نسب خاوند دی. بيا يې وويل: له ده نه مخکې له تاسو نه چا دا ډول خبره او دعوه کړيده؟ ورته ومې ويل: نه. راته ويې ويل: له پلرونو نه يې کوم يو د واک او قدرت خاوند وُ؟ ومې ويل: نه. پوښتنه يې وکړه چې اوس يې پيروان کمزوري خلک دي او که د مال او واک خاوندان؟ ورته ومې ويل: کمزوري خلک يې ملګري دي. ويې ويل: د پيروانو شميره يې زياتيږي که کميږي؟ ما ورته وويل: شميره خو يې مخ په زياتيدو ده. سوال يې وکړ چې له پيروانو نه يې څوک له خپل دين نه د کرکې له امله بيرته له خپل دين نه ګرزي (مرتد کيږي) ؟ ومې ويل: نه. راته ويې ويل: د نبوت له دعوی نه مخکې مو له هغه نه دروغ اوريدلي؟ ومې ويل: نه. ويې ويل: ايا غدر او خيانت کوي؟ ومې ويل: نه، خو اوس مو ورسره يو تړون کړيدی وګورو چې څه کوي؟ ابو سفيان وايي لدې خبرې پرته ما ته بل هيڅ داسې مجال په لاس رانغی چې د محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په هکله له ځانه څه ووايم. بيا يې راته وويل: ايا تاسو جګړه ورسره کړيده؟ ومې ويل: هو. ويې ويل: د جګړو نتيجې يې څه ډول وي؟ ورته ومې ويل: جنګ زمونږ او ده تر منځ داسې وُ چې کله به مونږ او کله به هغه برلاسی و. پوښتنه يې وکړه چې په کومو څيزونو امر درته کوي؟ ورته ومې ويل: راته وايي: د يوه الله عبادت وکړئ، هيڅ شريک مه ورسره نيسئ، د خپلو پلرونو خبرې پريږدئ، همدا راز د لمانځه، رښتيا، خپلوۍ، دوستۍ او پاکۍ امر راته کوي.

---

چې نصرانيان ګومان کوي چې عيسې (ع) ورباندې اعدام شوی و، قيصر په ۶۲۹م (۷ه) کال بيت المقدس ته راغی چې صليب پخپل ځای کيږدي او ددې برې شکر په ځای کړي.

بيا يې خپل ترجمان ته وويل: دې قريشي تهووايه چې د نسب په هکله مې پوښتنه درنه وکړه تا وويل هغه د شريف نسب درلودونکی دی، رسولان همداسې وي هغوی د نسب له پلوه هم له نورو نه لوړ وي. پوښتنه مې درنه وکړه چې له ده نه مخکې يې د قوم کوم فرد دا ډول دعوه کړېده ؟ تا راته وويل: نه، که داسې وای چې لدينه وړاندې کوم شخص داسې دعوه کړې وای، نو ما به ويل چې کيدی شي ده به د هغه په پيروی سره دا ډول دعوه کړې وي. درته ومې ويل چې له پلرونو نه يې کوم يو واکمن او پاچا وُ؟ تا وويل: نه ، که فرضاً له پلرونو نه يې کوم يو پاچا او مشر تير شوی وای، نو ما به ويل چې د خپل پلار پاچايي غواړي. دا مې درته وويل چې له نبوت نه مخکې مو دروغ ورنه اوريدلي؟ تا وويل نه، نو زه په يقين سره دا ويلی شم داسې نه شي کيدای چې څوک دې انسانانو ته دروغ نه وايي خو په الله پسې دې دروغو ته زړه ښه کړي. بله مې دا خبره درته وکړه چې پيروان يې کمزوري خلک دي او که د مال او مقام خاوندان؟ تا راته وويل: چې کمزوري خلک يې پيروان دي، حقيقت هم همداسې دی چې د رسولانو (عليهم السلام) پيروان کمزوري خلک وي. دده د پيروانو د شمير په هکله مې پوښتنه درنه وکړه، تا راته وويل چې د پيروانو شميره يې مخ په زياتيدو ده، د ايمان خاوندان همداسې وي. درته ومې ويل چې څوک چې يو ځل مسلمان شي آيا بيا بيرته له خپل دين نه د کرکې له امله له دين نه ګرزي؟ تا وويل: نه. همداسې ده ايمان چې يو ځل په زړه کې ځای ونيسي بيا په زور هم نه شي ورنه ايستل کيدلی. پوښتنه مې درنه وکړه چې آيا هغه غدر او خيانت کوي؟ تا وويل: نه غدر نه کوي، رسولان (عليهم السلام) همداسې وي غدر او خيانت نه کوي. ددې پوښتنه مې وکړه چې په څه امر درته کوي؟ تا راته وويل: هغه امر راته کوي چې د يوه الله عبادت وکړو، شريک ورسره ونه نيسو، او د بتانو له عبادت نه مو منع کوي، د لمانځه، رښتيا ويلو او پاکۍ امر راته کوي. که دا ستا خبرې رښتيا وي نو همدا پيغمبر (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به ان دا زما تر پښو لاندې ځای هم نيسي، زه خبر وم چې هغه به په همدې وخت کې مبعوثيږي، خو پدې نه پوهيدم چې هغه به له تاسې څخه وي، که زه پدې پوهيدلی چې ده ته ورسيدی شم نو د ليدلو تکليف به مې يې ګاللی وای. او که زه دده په حضور کې وای، نو دواړه پښې به مې يې ور مينځلې وای. بيا يې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) کتاب(ليک) راوغوښت او ويې ولوست. کله چې د ليک له لوستلو نه فارغ شو، ګڼه ګوڼه جوړه شوه خلکو شورکاوه، نو مونږ ته د وتلو امر وشو. ابو سفيان وايي کله چې مونږ ته د بيرون وتلو امر وشو، ما خپلو ملګرو ته وويل: د ابو کبشه (محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د زوی کار جوړ شو،

له ده نه خو د رومیانو (ژیړ پوټکو) پاچا هم ویریږي. لدي نه وروسته زما پوخ یقین ؤ چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دین به حتماً بریالی کیږي، په همدې فکر کې وم تر څو په اسلام مشرف شوم.(۱)

په قیصر باندې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د لیک دا اثر خو ابو سفیان ولید. پر هغه باندې ددې خط بل اثر دا ؤ چې قیصر د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) قاصد دحیه کلبي ته جامې او تحفې ورکړې، خو کله چې دحیه بیرته مدینې ته روان ؤ په حسمی نومې سیمه کې د جذام قبیلې څو کسانو ډاکه ورباندې واچوله او ټول شیان یې ورنه یوووړل، مدینې ته له رسیدو وروسته د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته حاضر شو د خپل سفر راپور یې ورکړ. ورپسې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) زید بن حارثه (رضي الله عنه) حسمی ته واستاوه، چې ورسره پنځه سوه وسله وال نور هم وو، لاړ او په حسمی کې یې چې د وادي قری شا ته پرته وه په جذام قبیله برید وکړ، ډیر کسان یې ورنه ووژل، سل ښځې او ماشومان یې اسیران کړل، زر اوښان او پنځه زره پسونه یې هم په غنیمت ونیول. د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او جذام قبیلې تر منځ اور بند هم شوی ؤ لدې پیښې نه وروسته د جذام یوه مشر زید بن رافعه راغی او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته یې احتجاج وکړ. نوموړي په اسلام مشرف شوی ؤ، له دحیه سره یې مرسته هم کړې وه، په همدې اساس رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دده احتجاج قبول کړ او امر یې وکړ چې اولادونه، ښځې او مالونه یې بیرته ورکړل شي.

زیاتره سیرت لیکونکي دا سریه له حدیبیې نه مخکې ذکر کوي، پداسې حال کې چې دا سیي نده ځکه قیصر ته د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لیک له حدیبیې نه وروسته استول شوی ؤ. ابن قیم هم وایي دغه سریه له حدیبیې نه وروسته واقع شویده.(۲)

## ۵- منذر بن ساوی ته لیک

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د بحرین والي یا پاچا منذر بن ساوی

(1). صحیح بخاري ۴/۱. صحیح مسلم ۲/ ۹۸ - ۹۹

(2). زاد المعاد ۲/ ۱۲۲. حاشیة تلقیح فهوم الاثر ص ۲۹.

ته ليک وليکه، او د علاء بن الحضرمي په لاس يې ورولیږه. منذر يې اسلام ته را دعوت کړ. په ځواب کې منذر ورته وليکل: اما بعد، يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! ستاسې ليک مې ولوست، خپل قوم ته مې واوراوه، ځينې داسې وو چې اسلام يې خوښ کړ، او ځينو نورو اسلام و نه مانه، زما په ملک کې يهود او مجوس هم اوسيږي، پدې هکله لارښوونه راته وکړه. د همدې په ځواب کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وليکل: (**بسم الله الرحمن الرحيم. من محمد رسول الله إلى المنذر بن ساوي، سلام عليك، فإني أحمد إليك الله الذي لا إله إلا هو، وأشهد أن محمداً عبده ورسوله، أما بعد، فإني أذكرك الله عز وجل، فإنه من ينصح فإنما ينصح لنفسه، وإنه من يطيع رسلي ويتبع أمرهم فقد أطاعني، ومن نصح لهم فقد نصح لي، وإن رسلي قد أثنوا عليك خيراً، وإني قد شفعتك في قومك، فاترك للمسلمين ما أسلموا عليه، وعفوت عن أهل الذنوب، فاقبل منهم، وإنك مهما تصلح فلم نعزلك عن عملك. ومن أقام على يهودية أو مجوسية فعليه الجزية**).

[**بسم الله الرحمن الرحيم**، له محمد رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه منذر بن ساوی ته! سلام عليک. زه د هغه الله حمد او ثنا وايم چې له هغه پرته بل د عبادت وړ څوک نشته، شاهدي وايم چې محمد د الله بنده او رسول دی. اما بعد زه الله تعالی دريادوم، څوک چې نيکي کوي، خير غواړي هغه يې په خپله ګټه دی، څوک چې زما د قاصدانو اطاعت وکړي، امر يې ومني هغوی په حقيقت کې زما اطاعت کړيدی، چا که زما له رسولانو سره نيکي وکړه دا نيکي يې له ما سره ده. زما قاصدانو ستا صفت وکړ، ما ستا د قوم په رابطه ستا شفاعت قبول کړ، مسلمانان په خپل حال پريږده ګنهګارانو ته مې عفوه وکړه، عفوه يې قبوله کړه، او تر څو پورې چې ته په صلاح او خير وې له چوکۍ څخه دې نه عزل کوو، که څوک په يهوديت او مجوسيت باندې قايم پاتې کيږي پر هغه جزيه ده، جزيه ورنه اخله.[1]]

## ۶- د يمامه پاچا هوذه بن علي ته ليک

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د يمامه مشر هوذه بن علي ته پدې

---

(1). زاد المعاد ۳/ ٦١. دکتور حميد الله چې کوم عبارت راوړی په هغه کې د [لا اله الا هو] په ځای [لا اله غيره] ليکل شوي.

متن یو لیک ولیږه: (**بسم الله الرحمن الرحیم. من محمد رسول الله إلی هـــوذة بـــن علي، سلام علی من اتبع الهدی، واعلم أن دیني سیظهر إلی منتهی الخف والحـــافر، فأسلم تسلم، وأجعل لك ما تحت یدیك**).

[**بسم الله الرحمن الرحیم**، د الله د رسول محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له خوا هوذه بن علي ته! سلام دې په هغه چا وي چې د هدایت په لار روان وي، پوه شه چې زما دین به پر ټولو هغو سیمو برلاسی کیږي چیرته چې پیاده او سپور رسیدلی شي، اسلام راوړه تر څو په امن شې، که په اسلام مشرف شوې چوکۍ به دې درسره پاتې وي.
دا لیک سلیط بن عمرو العامري یووړ. ]
کله چې سلیط هوذه ته ورغی، هغه هرکلی ورته ووایه، عزت یې ورکړ، او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته یې داسې ولیکل: رښتیا هم چې تاسې ډیر غوره شي ته بلنه کوئ، همدا راز زما د پاچایۍ رعب هم په عربانو پروت دی. ما پخپل امرکې درسره شریک کړه تر څو پیروي دې وکړم. سلیط ته یې جایزه او په هجرکې جوړې شوې جامې هم ورکړې.
سلیط ټولې تحفې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته وړاندې کړې، او د خپل سفر راپور یې هم ورکړ.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د هوذه خط ولوست او ویې ویل: (**لو سألني قطعة من الأرض ما فعلت، باد، وباد ما في یدیـــه**). که یوه ټوټه ځمکه رانه وغواړي هم وربه یې نکړم، هغه هم تباه شو او څه چې ورسره دي هغه هم تباه شول.
او کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د مکې له فتحې نه راستون شو جبریل (علیه السلام) خبر ورکړ چې هوذه مړ شو. پدې وخت کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل:

(**أما إن الیمامة سیخرج بها کذاب یتنبي، یقتل بعدي**).په یمامه کې به داسې کذاب پیدا کیږي چې د نبوت دعوه به وکړي، خو له ما نه وروسته به ووژل شي.
چا سوال وکړ چې قاتل به یې څوک وي یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)؟ ده وفرمایل: (**أنت وأصـــحابك**).ته او ستا ملګري به یې وژني. وروسته بیا

همداسې وشول.[1]

## ۷- د دمشق مشر حارث بن ابي شمر غساني ته لیک

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) داسې لیک ورته لیکلی و: (**بسم الله الرحمن الرحيم. من محمد رسول الله إلى الحارث بن أبي شمر، سلام على من اتبع الهدى، وآمن بالله وصدق، وإني أدعوك إلى أن تؤمن بالله وحده لا شريك له، يبقي لك ملكك**).

[**بسم الله الرحمن الرحيم**، د الله درسول محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له خوا حارث بن ابي شمر ته. په هغه چا دې سلام وي چې په حقه لار روان وي، په حق يې ايمان راوړې وي، ريښتونی وي. زه بلنه درکوم چې په يوه الله ايمان راوړې، شريک ورسره ونه نيسې که داسې وکړې نو پاچايي به دې درسره وي.]

دا لیک یې د شجاع بن وهب چې له بني اسد قبیلې څخه ؤ په لاس ولیږه. کله چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خط ور ورسید نو ویې ویل: څوک به زما نه پاچايي اخلي؟ زه وريسې ورځم. پدې توګه مسلمان نه شو.[1]

## ۸- د عمان پاچا ته لیک

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د عمان پاچا جیفر بن جلندي او ورور ته يې چې عبد نومیده داسې لیک ولیکه: (**بسم الله الرحمن الرحيم. من محمد رسول الله إلى جيفر وعبد ابني الجلندي، سلام على من اتبع الهدي، أما بعد:**

**فإني أدعوكما بدعاية الإسلام، أسلما تسلما، فإني رسول الله صلى الله عليه وسلم إلى الناس كافة، لأنذر من كان حياً ويحق القول على الكافرين، فإنكما إن أقررتما بالإسلام وليتكما، وإن أبيتما [أن تقرا بالإسلام] فإن ملككما زائل، وخيلي تحل**

[1].زاد المعاد ۳/ ۶۳

[1]. زاد المعاد ۳/ ۶۳. محاضرات تاريخ الامم الاسلامية : ۱/۱۴۶

بساحتكما، وتظهر نبوتي على ملككما).
بسم الله الرحمن الرحيم، د الله تعالى د رسول محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له خوا د جلندي زامنو جیفر او عبد ته! په هدایت او نیغه لار برابرو باندې دې سلام وي. اما بعد زه مو اسلام ته رابولم، اسلام راوړئ تر څو دواړه په امن شئ. زه د الله تعالی له لوري ټولو انسانانو ته رسول رالیږل شوی یم. زه خلک د کفر او بدۍ له عواقبو نه ویروم، حق ورته بیانوم تر څو په کفارو باندې دلیل قایم شي. که تاسې اسلام ومانه، هملته به مو پخپله چوکۍ پرېږدم، او که اسلام و نه منۍ نو پاچايي مو ختمیدونکې ده، ستاسې په پاچایۍ به زما د آسونو برید او یلغار جوړ شي، زما نبوت به حتماً ستاسې پر پاچایۍ غلبه مومي.
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دغه لیک د عمرو بن العاص (رضي الله عنه) په لاس ولیږه. عمرو وايي: روان شوم تر څو عمان ته ورسیدم، لومړی عبد ته ورغلم، هغه يې له ورور نه زیات هوښیار او نرم سړی ؤ ورته ومې ویل چې زه رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تاسې ته رالیږلی یم. ده راته وویل: ورور مې د عمر او مقام له پلوه له ما نه مخکې دی، راځه زه به دې هغه ته ورولم تر څو ستا لیک ولولي. او بیا يې زیاته کړه: ته څه غواړې؟ ما ورته وویل: زه د یوه الله لور ته بلنه درکوم. له الله نه پرته د نورو ټولو عبادت پرېږده، پدې سره شاهدي ووایه چې محمد د الله بنده او رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دی. عبد وویل: اې عمرو! ته د خپل قوم د سردار زوی یې، دا راته ووایه چې ستا پلار پدې هکله څه کړي؟ د هغه عقیده څه وه؟ هغه زمونږ لپاره نمونه دی.
ما ورته وویل: پلار مې پداسې حال کې مړ شو چې په محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) يې ایمان نه درلود. زما هیله دا وه چې هغه په اسلام مشرف شي، او د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تصدیق وکړي. زه هم لکه پلار مې مشرک وم تر څو الله تعالی د اسلام لارښوونه راته وکړه. عبد راته وویل: څومره وخت کیږي چې د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پیروي دې غوره کړیده؟ ځواب مې ورکړ، لږ وخت کیږي چې په اسلام مشرف شوی یم.
راته ويې ویل چیرته مسلمان شوې؟ ما ورته وویل: په حبشه کې د نجاشي په وړاندې. او دا مې هم ورته وویل چې نجاشي پخپله هم په اسلام مشرف شویدی. عبد راته وویل نو رعیت يې څه ورسره وکړل؟ ما ورته وویل: هغوی يې امر ومانه او پیروي يې کوي.

ویې ویل: آیا دیني او مذهبي مشرانو یې هم پیروي وکړه؟ ما ورته وویل: هو. عبد راته وویل: اې عمرو! پوه شه چې دروغ سړی ډیر ژر رسوا کوي. ما ورته وویل:زه خو دورغ نه وایم، زمونږ دین د دروغ ویلو اجازه نه ورکوي. بیا یې وویل: فکر کوم چې هرقل به د نجاشي په اسلام نه وي خبر؟ ما ورته وویل: نه، هرقل پدې ښه خبر دی چې نجاشي اسلام راوړیدی. ده راته وویل: ته پدې خبر څنګه خبر شوی؟ ما وویل: نجاشي به هرقل ته خراج ورکاوه، خو کله چې په اسلام مشرف شو، نو ویې ویل قسم په خدای که لدینه وروسته یو درهم هم ورکړم. او کله چې هرقل پدې کیسه خبر شو، نو ورور یې چې نیاق نومیده ورته وویل: آیا خپل هغه غلام همداسې پریږدې چې خراج ورنکړي؟ او دا اجازه ورکوې چې د بل چا دین ومني؟ هرقل ورته وویل: دا یو شخص دی چې د ځان لپاره یې یو دین غوره کړیدی، نو زه څه ورسره کولی شم؟ په خدای قسم که د پاچایۍ غم نه وای راسره نو ما به هم لکه نجاشي دا دین مانه.

عبد وویل: اې عمرو! دا ته څه وایې؟ ما ورته وویل: قسم په خدای چې زه ربښتیا وایم . هغه راته وویل: ښه، اوس دا راته ووایه چې محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په څه شیانو امر او له کومو شیانو څخه نهي کوي؟ په ځواب کې مې ورته وویل: هغه امر کوي چې مونږ د الله تعالی اطاعت وکړو، او نافرماني یې ونکړو. هغه د صله رحمۍ امر کوي، او له هر ډول ظلم، زنا، شرابو، بت پرستۍ نه نهي کوي. عبد وویل: دا څومره ښه او غوره خبره ده، څومره غوره شیانو ته بلنه کوي. که زما ورور زما خبره ومني نو مونږ به ټول سواره درسره روان شو او د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضورته به حاضر شو، ایمان به ورباندې راوړو، او تصدیق به یې کړو، خو ورور مې په پاچایۍ ډیر ویریږي، د واک ډیر حریص دی، هغه خپلواک نه شي پریښودئ، هغه ته ګرانه ده چې د بل چا پیروي وکړي.

ما ورته وویل: که هغه اسلام راوړي، نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به یې بیرته د خپل قوم مشر وټاکي. د هغه دنده به بیا دا وي چې له بډایانو نه صدقې واخلي او په غریبانو یې وویشي. عبد وویل: دا هم څومره نیک عمل دی، بیا یې وویل: صدقه څه ته وایي؟ شروع مې وکړه هغه ته مې صدقه او زکات تشریح کړ، د هر شي د زکات اندازه مې ورته بیان کړه او په اوښانو مې ورته خلاصه کړه. راته ویې ویل: یا عمرو! هغه حیوانات چې د باندې څري ونې او بوټې خوري او اوبه څښي آیا پدې ډول څارویو کې هم صدقه شته؟ په ځواب کې مې وویل: هو. هغه وویل: فکر نکوم چې زما قوم به د وطن لدې لیرې والي او شمیرې له زیاتوالي سره دې خبرې ته غاړه کیږدي. عمرو وایي څو ورځې هملته ورته انتظار وم. عبد به زما خبرې خپل ورور

ته رسولې. تر څو يوه ورځ يې زه وغوښتلم. ورد ننه شوم پيره دارانو لـه متهو نـه ونيـولم، ده ورته وويل: خوشې يې کړئ. خوشې يې کړم، ما غوښتل چې کينم. پيره دارانو د کيناستلو اجازه رانکړه پاچا ته مې وکتل. هغه راته وويل: وايه څه ويل غواړې؟ ما د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) مهر شوی ليک ور ورانـدې کړ، مهر يې مات کړ، ليک يې پرانيست او تر پايه يې ولوست. بيايې خپل ورور تـه ورکړ، هغه هم ولوست. خو ما ليدل چې ورور يې له ده نه نرم دی، بيا يې راته وويل: وايه د قريشو دريځ څه دی؟ ما ورته وويل: هغوی د محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) پيروي غوره کړيده. ځينې لـه زړه نـه او لـه ديـن سره د مينـې پـه بنـاء پـه اسلام مشرف شويدي، او ځينې نور بيا پـه زور سره مغلوب شوي. پاچا راتـه وويـل: نـور څوک لـه محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره دي؟

ما وويل: خلکو دا دين خوښ کړيدی، هغوی د الله تعالى په فضل سره دا درک کړيده چې دوی په گمرا ه ی کې وو او اوس حق ته راغلي دي. فکر کوم دلته لـه تـا نـه پرتـه نـور څوک گمراه ندي پاتې. که ته هم نن اسلام رانه وړې او پيـروي يـې ونکـړې، نـو لښکرې درپسې راځي له ريښو نه به دې باسي هر څه به دې ختميږي، نو اسلام راوړه تر څو پـه امن شې، که اسلام راوړې نو محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) بـه دې بيرتـه د خپل قوم مشر وټاکي، هيڅوک پلي او سواره به نـه درتـه راځي. هغـه راتـه وويـل: يـوه ورځ مهلت راکړه. ته سبا بيا راشه.

زه لاړم او ورور ته يې ورغلم. هغه راته وويل: يا عمرو! هيله من يم چې ايمان راوړي او د واکمنۍ حرص پريږدي. سهار ورغلم، خو اجازه يې را نکړه چې ورسره وگورم. ورور ته يې ورغلم ورته ومې ويل چې ما ته خو له پاچا سره د ليدو اجازه رانکړل شوه. هغه وروستلم. پاچا راته وويل ستا په خبرو کې مې فکر وکړ، که زه اوس پاچايي داسې چا ته پريږدم چې شهسواران يې لا تر اوسه دلته ندي رارسيدلي، نو دا زما لپاره مناسبه نه ده او عربان به مې ډير کمزوری وشميري، او که د هغه سواره دلتـه راورسيدل نـو لـه داسې يوه مقاومت سره به مخ شي چې مخکې به يې ليدلی هم نه وي.

په ځواب کې مې ورته وويل: ستا خوښه، زه نو سبا بيرته روانيږم. کله چې هغـه زمـا لـه ستنيدو نه ډاډه شو، نو خپل ورور يې گوښه کړ او ورتـه ويـې ويـل: دغـه پيغمبـر (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) چې په کومو خلک غالب او بريالی شوی، مونږ د هغوی په نسبت په هيڅ حساب يوو، ده چې هر چا ته پيغام استولی، ټولو يې دعوت منلی.

په همدې اساس يې بل سهار زه ورغوښتلم، او همدتـه پاچـا او ورور يـې دواړو اسلام

راوړ او د رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تصدیق یې اعلان کړ. دواړه په اسلام مشرف شول، او ما ته یې اجازه راکړه چې له خلکو نه صدقې راټولې کړم او په غریبانو یې وویشم او د خلکو تر مینځ فیصلې وکړم. که چا به مخالفت راسره وکړ هغوی دواړو به مې عملي مرسته کوله.[۱]

ددې پیښې له سیاق نه داسې ښکاري چې دغه لیک د نورو په نسبت وروسته استول شوی، او ګمان کیږي چې د مکې له فتحې نه وروسته لیکل او استول شوی وي.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پدې لیکونو سره خپل دعوت د هغه وخت زیاترو پاچایانو ته ورساوه. په ځواب کې ځینې پاچایان په اسلام مشرف شول او یو شمیر همداسې کافر پاتې شول. خو دومره خبره ده چې د هغو کفارو توجه هم همدې خوا ته را واوښتله. او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له مبارک نامه او اسلام سره ځه نا ځه آشناشول.

---

(1). زاد المعاد ۳/ ۶۲- ۶۳

# له حدیبیه صلحې نه وروسته پوځي تحرکات

## د غابه یا ذي قرد غزا

د بني فزاره قبیلې یوې ډلې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په خلاف د یوه اقدام په نتیجه کې د مسلمانانو په یو شمیر څارویو ډاکه واچوله، غلا یې کړل. همدې ډاکوانو ته د سزا ورکولو پخاطر دا غزا پیښه شوې وه. له حدیبیې نه وروسته د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لومړنۍ غزا همدا وه، که څه هم ځینې روایتونه وایي چې لومړنۍ غزا یې خیبر وه. امام بخاري ددې باب په مقدمه کې وایي چې د غابه غزا له خیبر نه دری ورځې مخکې واقع شویده. مسلم هم همدا خبره له سلمه بن اکوع نه په روایت سره نقل کړیده. د سیرت لیکونکو زیاترو دا ویلي چې دغه غزا له حدیبیه سولې نه مخکې وه، خو د بخاري روایت د تاریخ لیکونو له قول نه زیات صحیح دی.[1]

ددې غزا قهرمان سلمه بن اکوع دی. سیرت لیکونکي روایتونه ټول له ده نه نقلوي او وایي چې: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپلې شیدې ورکونکې اوښانې له خپل شپانه او غلام رباح سره څر ځای ته لیږلې وې، سلمه وایي زه هم ورسره وم او د طلحه آس مې له ځان سره بوولی و، سهار ناڅاپه عبدالرحمن فزاري پر اوښانو حمله وکړه، ټول یې وتښتول، شپون یې په قتل ورساوه. ما رباح ته وویل چې لاړ شه، دا آس طلحه ته ورسوه، او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له پیښې خبر کړه. زه په یوه هسک ځای ودریدم مخ مې د مدینې په لور کړ او دری ځلې مې په لوړ آواز چیغه وکړه یا صباحاه!! بیا په غلو پسې روان شوم، په غشو مې ویشتل

---

[1]. صحیح البخاري باب غزوه ذات قرد ۲/ ۶۰۳ . صحیح مسلم باب غزوه ذي قرد ۱۱۳/۲تر ۱۱۵. فتح الباري ۴۶۰/۷ تر ۴۶۳، زاد المعاد ۲/ ۱۲۰

او دا شعر مې زمزمه کاوه:

انــا ابــن الاکــوع　　　　والیــوم یــوم الرضــع

زه د اکوع زوی یم، نن ورځ د شیدو رودلو ورځ ده. یعنې نن به معلوم شي چې چا د خپلې مور شیدې رودلې دي.

ابن اکوع وايي ما په مسلسله توګه کفار په غشو ویشتل، که له هغوی نه به یو راپسې راغی نو زه به د ونې بیخ ته ورته کیناستلم او له همغه ځای نه به مې وویشت او ټپي به شو، تر څو هغوی د غرونو په منځ کې تنګې درې ته ننوتل. زه غره ته وختلم او د غره له سر نه مې تیږې پرې راغورځولې همداسې په هغوی پسې وم، تر څو د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ټول اوښان مې شاته پاتې شول. هغوی دا ټول را ته خوشي کړل او لاړل. که څه هم هغوی د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ټول اوښان راته خوشي کړل، خو بیا هم زه ورپسې وم په غشو مې ویشتل، چې مجبور شول دیرش چادر او دیرش نیزې ورغورځوي، دا د دې پخاطر چې بار یې سپک شي. دوی به چې هر څه پرېښودل ما به د نښانې په توګه تیږې ورباندې اچولې تر څو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او اصحاب (رضي الله عنهم) ورته متوجه شي او ویې پیژني. زه ورپسې وم هغوی د یوې غونډۍ په یوه تنګه لاره کې د غرمې ډوډۍ ته کیناستل، زه له دوی نه پاس وختلم او ورته ګورم له دوی نه څلور کسان ماته راوختل. ما ورته وویل: آیا ما پیژنئ چې زه څوک یم؟ دوی دومره را لنډ شوي وو چې زما غږ یې ښه اوریده، ما ورته وویل زه سلمه بن اکوع یم، زه چې په چا پسې روان شوم هغه به حتماً رانیسم، او که څوک ما پسې شي او زما د نیولو هڅه وکړي نو کله به مې هم ونه نیسي، هغوی چې زما خبرې واوریدلې څلور واړه بیرته ستانه شول.

زه پخپل ځای ناست وم، په همدې وخت کې مې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پوځیان ولیدل چې د ونو په مینځ کې راروان دي، مخکې یې اخرم روان وُ، ورپسې ابو قتاده، ورپسې مقداد بن اسود وُ. حضرت اخرم له عبدالرحمن سره مخامخ شو، سره ونښتل د عبدالرحمن آس زخمي شو، خو عبدالرحمن وتوانید اخرم په شهادت ورسوي ، بیا یې آس ورنه واخیست ورباندې سپور شو، خو قتاده ورپسې راورسید او عبدالرحمن یې همدلته وواژه، نو مشرکین په تیښته شول. زه هم ورپسې په منډه شوم، لمانښام ته نژدې هغوی ډیر وږي وو غوښتل یې لږ اوبه وڅښي خو ما اجازه ورنکړه چې له چینې نه اوبه وڅښي، یو څاڅکی یې هم ترخولې نکړ. رسول الله

(صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او لښکر يې لماسختن راپسې راورسيد ما عرض وکړ يا رسول الله ! دا خلک تږي دي، که له ماسره سل کسان وليږې ،نو زه به د دوی ټول آسونه ورنه واخلم، او دوی به هم ټول لاس تړلي درته راولم. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: : (**يا بن الأكوع. ملكت فأسجح**). اې د اکوع زويه! برلاسی شوې يې، نو لږ نرمي وکړه. بيايې وفرمايل: (**إنهم ليقرون الآن في غطفان**). چې اوس دوی ته په بنو غطفان کې ميلمستيا کيږي يعنې دوی به اوس د هغوی ميلمانه وي.

بيا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**خير فرساننا اليوم أبو قتادة، وخير رجالتنا سلمة**). نن ورځ زمونږ تر ټولو غوره شهسوار ابو قتاده دی، او له ټولو نه غوره پلی مو سلمه دی. سلمه وايي چې بيا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دوې برخې راته راکړې يوه برخه د پلي او بله د سواره، او بيا يې زه پخپله عضباء نومې اوښه ورسره سپوره کړم او مدينې ته راستانه شوو. پدې غزا کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ابن ام مکتوم خليفه ټاکلی ؤ، او د غزا بيرغ يې مقداد بن عمرو ته ورکړی ؤ.[1]

---

[1]. زاد المعاد ۲/ ۱۲۰. او دوه وروستي مصدرونه.

# د خیبر غزا

## د ۷ کال د محرم میاشت

خیبر لوی ښار ؤ، ښه فصلونه او مضبوط برجونه یې درلودل، د مدینې منورې شمال ته ۶۰ یا ۸۰ میله لیرې پروت ؤ، اوس د یوه کلي حیثیت لري، هوا يې هم ډیره ښه نده.

### د خیبر غزا سبب

د حدیبیې له سولې نه وروسته رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د مخالف مثلث له لوی قوت (قریشو) نه بې غمه شو، د هغوی له اړخه یې زړه جمع شو، نو نیت یې وکړ چې ددې مثلث له دوو نورو اضلاعو یا برخو سره حساب تصفیه کړي.
او دایې ضروري وګڼله چې په سیمه کې د امن او امنیت ټینګولو پخاطر د یهودو او نجد د نورو قبایلو خطر هم له مینځه یوړل شي، ترڅو مسلمانانو له جګړې نه فارغ او د الهي دین دعوت ته وزګار شي.
څرنګه چې خیبر د مسلمانانو په خلاف د ټولو توطئو، او سازشونو داسې مرکز ؤ چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په ضد ټول جنګونه او فعالیتونه له همدې ځایه تنظیمیدل نو مسلمانانو ته په کار وه چې لومړی همدا شیطاني ځاله ورانه کړي.
د یادونې وړ ده چې د خیبر یهودانو د احزاب په غزا کې د مسلمانانو په خلاف ټول‌ې عربي قبیلې راوپارلې، بني قریظه یې دیته اړ کړل چې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره غدر او خیانت وکړي. هغوی پدې هم بسنه ونکړه بلکه په مدینه کې د ننه یې هم له منافقینو سره اړیکې ټینګې کړې، له غطفان او په صحرا کې میشته کوچیانو سره یې تماسونه ونیول، پخپله یې هم د جګړې تیاري نیوله، په همدې اساس مسلمانان له سختو مشکلاتو سره مخ وو. یهودانو د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ترور توطئه جوړه کړه، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مجبور شو ددې شرارتونو د مخنیوي پخاطر پوځي تحرکات ولري، او د یهودي لښکر ځینې شیطان مشران لکه سلام بن ابي حقیق، او اسیر بن رزام له مینځه یوسي.

خو خبره پدې هم پای ته نه رسيدله، د يهودانو خطر لوی ؤ، او ددې خطر له مينځه وړلو يوه لوی او جدي اقدام ته ضرورت درلود. مسلمانانو تر هغې پورې ددې فرصت نه درلود چې له يهودانو سره مقابله وکړي تر څو پورې يې چې له لوي دښمن (قريشو) سره د سولې تړون نه ؤ کړی، او کله چې مسلمانان د قريشو له شر نه بې غمه شول نو د يهودانو مقابلې ته يې وخت وموند.

## د خيبر په لور

ابن اسحاق وايي: رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) له حديبيې نه راستون شو، ذي الحجه او د محرم مياشتې څو ورځې يې همدلته مدينه کې تېرې کړې، او بيا په همدې محرم مياشت کې د خيبر په لور روان شو. مفسرين وايي چې خيبر هغه وعده وه چې الله تعالى پدې آيت کې له رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره کړې وه:

((وَعَدَكُمْ اللَّهُ مَغَانِمَ كَثِيرَةً تَأْخُذُونَهَا فَعَجَّلَ لَكُمْ هَذِه)) (الفتح: ٢٠)

[الله تعالى له تاسو سره د ډيرو غنائمو او ولجو وعده کړيده چې وا به يې خلئ تاسې، نو الله تعالى ژر درکړل دا غنائم.]

## اسلامي لښکر

منافقان او د کمزوري ايمان خاوندان د حديبيې په غزا کې له رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره نه وو تللي، سستي يې کړې وه، الله تعالى د دوی په هکله خپل رسول (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته داسې امر وفرمايه:

((سَيَقُولُ الْمُخَلَّفُونَ إِذَا انطَلَقْتُمْ إِلَى مَغَانِمَ لِتَأْخُذُوهَا ذَرُونَا نَتَّبِعْكُمْ يُرِيدُونَ أَنْ يُبَدِّلُوا كَلامَ اللَّه قُلْ لَنْ تَتَّبِعُونَا كَذَلِكُمْ قَالَ اللَّهُ مِنْ قَبْلُ فَسَيَقُولُونَ بَلْ تَحْسُدُونَنَا بَلْ كَانُوا لا يَفْقَهُونَ إِلاَّ قَلِيلاً)) (٤٨:١٥)

[ژر به ووايي (تاته وروسته پاتې کيدونکي (خلک) کله چې روان شئ تاسې غنيمتونو (د خيبر ته) د پاره ددې) چې واخلئ تاسې هغه غنائم، پرېږدئ مونږ چې په تاسې پسې درشو اراده لري دوی چې بدل کړي حکم د الله. ووايه اې محمده! چې له سره به متابعت ونکړئ تاسې زمونږ، همداسې فرمايلي وو الله پخوا بيا به ووايي چې کينه

کوئ ستاسي له مونږ سره بلکه دوی نه پوهيدل مګر لږ.]
همدا وه کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د خيبر په لور روانيده، نو اعلان يې وکړ چې يوازې هغه کسان به ورسره ځي چې په جهاد کې برخه اخيستل غواړي. پدې ترتيب سره له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره يوازې تر ونې لاندې بيعت کوونکي چې شميره يې ۱۴۰۰ تنه وو روان شول.
په مدينه کې يې سباع بن عرفطه غفاري خليفه وټاکه. ابن اسحاق وايي چې نميله بن عبدالله ليثي يې خليفه ټاکلی وُ، خو محققين وايي چې لومړنی روايت قوي دی.[1]
په همدې وخت کې ابوهريره (رضي الله عنه) پـه داسې حـال کې مدينې تـه هجرت وکړ چې په اسلام مشرف شوی وُ، د سهار په لمانځه کې يې په سباع بن عرفطه پسې اقتدا وکړه. او کله چې له لمانځه نه فارغ شو سباع ته ورغی، هغه څه توښه ورکړه او روان شو په رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پسې ور ورسيد.
رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې په هکله له مسلمانانو سره خبره وکړه او هغوی پخپلو غنيمتونو کې هغه (ابو هريره) او ملګري يې ورسره شريک کړل.

## له يهودانو سره د منافقانو تماس

منافقانو د يهودانو په ګټه کار کاوه، د منافقانو رئيس عبدالله بن ابي بن سلول د خيبر يهودانو ته احوال وليږه چې متوجه اوسئ محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ستاسي په لور در روان شويدی، متوجه اوسئ، خپل تدابير ونيسئ، ګورئ همت له لاسه ورنکړئ، ورنه ونه ويريږئ، تاسي د شمير او وسايلو له پلوه له هغه نه پياوړي ياست، د محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) قوم ډير لږ دی، هغوی تش لاسي هم دي، وسلې نلري.
يهودانو ته چې د ابن ابي خبر ورسيد کنانه بن ابي حقيق او هوذه بن قيس يې غطفان قبيلې ته واستول او د کمک غوښتنه يې ورنه وکړه.
بني غطفان قبيله د يهودانو ملګرې وه او د مسلمانانو په خلاف يې له دوی سره مرسته کوله. پدې غوښتنې سره يهودانو دا وړانديز هم وکړ که دوی پر مسلمانانو بريالي شول نو د خيبر د ميوو نيمه برخه به بنو غطفان ته ورکوي.

---

[1]. فتح الباري ۷/ ۴۶۵. زاد المعاد ۲/ ۱۳۳.

## د خیبر لار

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خیبر ته د رسیدو پخاطر لومړی د عصر نومي غره په لور لاړ، بیا له صهباء نومې سیمې نه تیر شو، وروسته رجیع ته ورسید هغه چې له غطفان نه یې د یوې شپې، ورځې مزل درلود. د غطفان قبیلې خلکو تیاري نیولې وه او د خیبر په لور وخوځیدل تر څو د یهودانو مرسته وکړي، دوی لا خیبر ته نه وو رسیدلي چې له شا نه یې شور او ځوږ تر غوږو شو، ګمان یې وکړ لکه چې مسلمانانو یې پر اولادونو او مالونو حمله کړې، همدا وه چې بیرته ستانه شول، او د خیبر یهودان یې یوازې پریښودل. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هغه دوه لارښوونکي راوغوښتل کوم چې مسلمانانو ته یې لاره ښووله، له دوی نه د یوه نوم حسیل ؤ. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل چې داسې لار راوښیئ چې خیبر ته د شمال یعنې شام له لوري ورتاو شو، تر څو شام ته د یهودانو د تیښتې لاره بند کړو، او همدا راز د دوی او غطفان تر مینځ لاره هم غوڅه شي.

له لارښوونکو نه یوه وویل: یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دا لار زه درته ښیم! روان شو تر څو یوې څلور لارې ته ورسید هلته یې عرض وکړ یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! له دې ټولو لارو نه خپل مقصد ته رسیدلی شو، اوس ستا خوښه په کومه لاړ شو؟ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر ورته وکړ چې د هرې یوې لارې نوم ورته واخلي. هغه وویل: دا لار حزن نومیږي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: دا دې وي، پدې نه ځو. هغه بیا وویل ددې بلې لارې نوم شاش دی. د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دا هم خوښه نه شوه. هغه وویل دریمه لار د حاطب په نامه یادیږي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هغه هم خوښه نکړه. پدې وخت کې حسیل وویل: چې اوس یوازې یوه لاره پاتې ده: عمر (رضي الله عنه) وویل: د هغې نوم څه دی؟ هغه وویل: نوم یې مرحب دی. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په همدې مرحب نومې لار باندې تګ خوښ کړ.

## د لارې په اوږدو کې واقع شوې ځنې پېښې

١- سلمه بن اکوع (رضي الله عنه) وايي: له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره د خيبر په لور روان وو، د شپې مو مزل کاوه چې يوه کس عـامر تـه وويـل: څـه خو راته واوروه، عامر شاعر و، راکوز شو پيل يې وکړ داسې بدلې يې بللې:

اللهم لولا انت ما اهتدينا — و لا تصـــدقنا ولا صلينا

فاغفر فداء لـــك ما اتقينا — و ثبت الاقدام ان لاقينا

والـــقين ســــكينة علينا — انا اذا صيح بنــــا ابينا

و بالصـــياح عــولوا علينا

[اې الله! که ته نه وای نو مونږ به هدايت نه وای موندلی، نـه بـه مـو صـدقه ورکړی وای او نه به مو لمونځ ادا کړی وای، خدايه! مونږ له تا قربان، ښښنه راتـه وکـړې، چـې تقـوی غوره کړو او که له دښمن سره مخامخ شوو ثبات را پـه برخـه کـړې او سـکون رابانـدې نازل کړې مونږ ته چې آواز وشي نو مونږ ځواب نه وايو، غرور کوو، او د چيغـو پـه ډګـر کې خلک باور راباندې لري.]

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د آواز په اوريدو سره وويل : (**من هذا السائق**). دا آواز ويونکی څوک دی؟ ورته وويل شول چې دا عامر بن اکوع دی. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**يرحمه الله**).[**الله تعالی دې رحم پرې وکړي.**]

له اصحابو (رضي الله عنهم) نه يوه کس وويل: ستاسو دعا د هغه په حق کې لازمه شوه، اوس د هغه شهادت واجب شو، تاسو ولې مونږ د هغه له وجود نه لا زيات نه برخمن کولو؟! يعنې کاشکې د عمر د اوږدوالي دعا مو ورته کړې وای[6].

اصحاب (رضي الله عنهم) پدې پوهيدل چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د جنګ په وخت کې چاته په ځانګړې توګه دعا وکړي نو هغه حتماً په شهادت رسيدونکی دی.[(٢)]

د خيبر په غزا کې هم همداسې وشول او حضرت عامر (رضي الله عنه) شهيد شو. همدا وجه وه چې اصحابو (رضي الله عنهم) رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)

---

[6]. صحيح بخاري باب غزوه خيبر٦٠٣/٢. صحيح مسلم باب غزوه دي قرد و غيرها ٢/ ١١٥.

[(2)]. صحيح مسلم.

ته عرض وکړ چې ولې يې هغه ته د اوږده عمر دعا ونکړه تر څو دوی له ده نه نور هم مستفيد شوی وای.

۲- رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له خيبر سره نژدې د صهباء په وادي کې د لمازديګر لمونځ ادا کړ. بيا يې توښې راوغوښتلې، ټولو خپلې خپلې توښې راوړې چې ټول ميده شوي غنم وو، امر يې وکړ چې ټول دلته واچوي، واچول شول. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او اصحابو (رضي الله عنهم) ورنه وخوړل. بيا د ماښام لمانځه ته پورته شو، مبارکه خوله يې ومينځله، اصحابو (رضي الله عنهم) هم خپلې خولې ومينځلې او په زاړه اوداسه يې لمونځ ادا کړ، وروسته يې د ماخستن لمونځ هم وکړ.[1]

## اسلامي لښکر د خيبر په لمنو کې

هغه شپه چې په سهار يې جګړه پيل شوه مسلمانانو خيبر ته نژدې تيره کړه، يهودان نه وو ورباندې خبر. د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) عادت ؤ چې کوم قوم ته به د شپې ورسيد، نو تر سهاره به نه ورنژدې کيده، حمله به يې نه ورباندې کوله، دا شپه يې هم همداسې وکړل. سهار وختي پاڅيد د سهار لمونځ يې په تياره کې ادا کړ مسلمانان روان شول د خيبر په لور يې مخه کړه، هلته يهودان د ناخبری په حالت کې له بيلچو، ټسکورو او تبرونو سره د خپلو ځمکو او پټيو په لور روان وو، کله يې چې اسلامي لښکر وليد ويې ويل: قسم په خدای چې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) راغلی، منډې يې کړل بيرته خپل ښارته ننوتل. په همدې وخت کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**الله أكبر، خربت خيبر، الله أكبر، خربت خيبر، إنا إذا نزلنا بساحة قوم فساء صباح المنـــذرين**). الله اکبر، خيبر وران شو، الله اکبر خيبر وران شو، مونږ چې د کوم قوم ساحې ته ورشو نو د ګواښل شويو خلکو سهار خراب وي.[2]

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د خپل لښکر لپاره يو ځای غوره کړ. حباب بن منذر (رضي الله عنه) ورته راغی عرض يې وکړ: يا رسول الله (صلی الله عليه

[1]. مغازي الواقدي غزوه خيبر ص ۱۱۲..

[2]. صحيح بخاري باب غزوه خيبر۲/ ۶۰۳- ۶۰۴.

و اله و صحبه و سلم) دا ځای دې د الله په امر غوره کړیدی، او که تا خپله د جنګي تاکتیک په توګه انتخاب کړیدی؟ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: دا زما شخصي نظر دی. منذر ورته وویل: دغه ځای له نطاه برجونو سره ډیر نژدې دی د یهودانو ټول جنګیالي په همدې برج کې دي، هغوی زمونږ په احوال خبر دي، مونږ ګوري، پداسې حال کې چې مونږ نه دوی وینو او نه یې په هکله پوره معلومات لرو. د هغوی غشي مونږ ته رارسیږي، خو زمونږ غشي دوی ته نه رسیږي، دلته مونږ د هغوی له شبخون نه هم په امن نه یو. بله دا چې دا ځای د خرما د ونو په منځ کې واقع دی، ژور هم دی، ځمکه یې هم خرابه ده، غوره به وي چې بل مناسب ځای وټاکي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: سیې خبره دې وکړه، وروسته یې د لښکر لپاره بل ځای غوره کړ.

کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خیبر ته نژدی شو ویې فرمایل: (قفوا). **فوقـــف الجيش، فـــقال: (اللهم رب السموات السبع وما أظللـــن، ورب الأرضين السبع وما أقللن، ورب الشياطين وما أضللن، ورب الريـــاح ومـــا أذرين، فإنا نسألك خير هذه القرية، وخير أهلها، وخير ما فيها، ونعوذ بك من شر هذه القرية، وشر أهلها، وشر ما فيها، أقـــدموا، بســـم الله)**. ودریږئ، ټول لښکر ودرید، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: اې د اوو آسمانونو او تر آسمانو لاندې د ټولو مخلوقاتو لویه ربه! اې د اوو ځمکو او پکې د ټولو موجوداتو ربه! اې د شیطانانو او د دوی له خوا د ګمراه شویو ربه! مونږ له تا نه ددې کلي خیر غواړو، ددې کلي د اوسیدونکو او ټولو له شر نه تا ته پناه در وړو. بیا یې وفرمایل: روان شئ، مخ په وړاندې د خدای په نامه سره.[1]

## د جنګ تیاري او د خیبر برجونه

پر خیبر له حملې نه مخکې شپه رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: **(لأعطين الراية غدًا رجلاً يحب الله ورسوله ويحبه الله ورسوله، [يفتح الله على يديه ]) فلما أصبح الناس غدوا على رسول الله صلى الله عليه وسلم، كلـــهم يرجو أن يعطاها، فقال: (أين علي بن أبي طالب؟) فقالوا: يا رسول الله، هو يشتكي**

---

[1]. ابن هشام ۲/ ۳۲۹.

**عينيه، قال: (فأرسلوا إليه)، فأتي به فبصق رسول الله صلى الله عليه وسلم في عينيه، ودعا له، فبرئ، كأن لم يكن به وجع، فأعطاه الراية، فقال: يا رسول الله، أقاتلهم حتى يكونوا مثلنا، قال: (انفذ على رسلك، حتى تنزل بساحتهم، ثم ادعهم إلى الإسلام، وأخبرهم بما يجب عليهم من حق الله فيه، فوالله، لأن يهدي الله بك رجلا واحدًا خير لك من أن يكون لك حمر النعم).**

سهار به بيرغ داسې شخص ته ورکوم چې لـه الله تعالى او رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره محبت لري، الله او رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) هم ورسره مينه لري. کله چې سهار شو، اصحاب (رضي الله عنهم) ټول د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته ورتلل هر يوه دا تمه لرله چې بيرغ به ده ته ورکړل شي. پدې وخت کې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: علي (رضي الله عنه) چيرته دی؟ اصحابو (رضي الله عنهم) ورته وويل: **هغه** خو د سترګو تکليف لري.[1] ويې فرمايل: را يې غواړئ. ځوک لاړل او علي (رضي الله عنه) يې راووست. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې سترګې پخپلو مبارکو لاړو ورلمدې کړې، دعا يې ورته وکړه او سترګې يې داسې جوړې شوې لکه چې هيڅ مرض نه وو پکې، بيايې بيرغ ورکړ. علي (رضي الله عنه) عرض وکړ يا رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم)! تر هغې پورې به ورسره جنګيږم تر څو هغوی زمونږ په شان مسلمانان شي. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: په اطمينان سره لاړ شه تر څو د دوی ساحې ته ورسيږې، هلته هغوی ته د اسلام بلنه ورکړه، د الله تعالى حقوق ورته بيان کړه، قسم په خدای که الله تعالى ستا په لاس يوه سړي ته هدايت وکړي، نو دا له سرو اوښانو نه درته غوره دی.[2]

## خيبر په دوو برخو ويشل شوی و

په لومړنۍ برخه کې يې دا پنځه برجونه وو:

---

[1]. د همدې رنځ له کبله علي (رضي الله عنه) په سر کې له لښکر نه پاتې شوی و، خو وروسته ورپسې راغلی ؤ.

[2]. صحيح بخاري ۲/ ۵۰۵-۶۰۶. ځينې روايات وايي چې علي (رضي الله عنه) ته بيرغ د برجونو د فتحې لپاره د څو هڅو له ناکامۍ نه وروسته ورکړل شو، خو د محققينو رايه هغه ده کومه چې مونږ ذکر کړيده.

۱- د ناعم برج. ۲- د صعب بن معاذ برج. ۳- د قلعه زبیر برج. ۴- د ابي برج. ۵- د نزار برج.
لومړي درې برجونه په نطاه نومې سیمه او دوه نور په شق نومې سیمه کې پراته وو.
د خیبر په دوهمه برخه کې چې په کتیبه سره یې شهرت درلود درې برجونه پراته وو چې نومونه یې دا دي:
۱- د قموص برج دا د بني نضیر د مشر ابي حقیق برج ؤ. ۲- د وطیح برج. ۳ – د سلالم برج. په خیبر کې لدې آتو برجونو نه علاوه نور برجونه او کلا ګانې هم وې، خو هغه نورې ددې آتو په شان لویې او مضبوطې نه وې.
د جګړې زیات شدت د خیبر په لومړنۍ برخه کې ؤ، دوهمه برخه که څه هم جنګیالان پکې ډیر وو خو ټول بیله جګړې تسلیم شول.

## د جګړې پیل او د ناعم برج فتح کیدل

مسلمانانو لومړی پر ناعم برج حمله وکړه، همدلته د یهودو لومړنۍ دفاعي کرښه هم وه. دې برج که له یوې خوا زیات استراتیژیک اهمیت درلود له بل پلوه د یهودانو مشهور قهرمان مرحب هغه چې په زرو شمار ؤ هم همدلته اوسیده.
علي (رضي الله عنه) مسلمانان د همدې برج په لوري مرش کړل، هلته یې یهودانو ته د اسلام بلنه ورکړه خو هغوی اسلام و نه مانه، د خپل مشر مرحب تر مشرۍ لاندې د مسلمانانو مقابلې ته راووتل. مرحب را وړاندې شو او مسلمانانو ته یې د مقابلې چیلنج ورکړ. سلمه بن اکوع وایي: په خیبر کې د هغوی مشر مرحب د جګړې میدان ته راوړاندې شو، توره یې په لاس کې وه او دا شعر یې وایه:

**قد علمت خیبر اني مرحب    شاكي السلاح بطل مجرب**
**اذا الحروب اقبلت تلهب**

[د خیبر خلک پدې پوه دي چې زه مرحب یم، مسلح یم، د جنګ او جګړې په دوران کې تجربه کار اتل یم.
سلمه وایي دده مقابلې ته زما تره (عامر) ورووت او ویې ویل:

**قد علمت خیبر اني عامر    شاكي السلاح بطل مغامر**

[خیبر وال پدې خبر دي چې زه عامر یم، بیباکه، وسله په لاس اتل یم.]
دواړو یو پر بل د ګوزار هڅه وکړه، د مرحب توره زما د تره عامر په ډال ولګیده، عامر هڅه وکړه چې له لاندې نه په مرحب ګوزار وکړي، خو توره یې لنډه وه، که څه هم غوښتل يې‌د یهودي په پنډۍ ګوزار وکړي خو توره یې پخپله ګونډه برابره شوه، سخت زخمي شو، او بیا له همدې ټپ نه وفات شو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دده په هکله فرمايلي: (إن له لأجرين ــ وجمع بين إصبعيه ــ إنه لَجَاهِدٌ مُجَاهِد، قَلَّ عربي مَشَى بها مِثْلَه). دده (عامر) لپاره دوه اجرونه دي او پخپلو دوو مبارکو ګوتو یې اشاره وکړه، ده داسې جهاد وکړ چې په عربو کې به دده په شان مجاهد کم موندل شي[1].
داسې ښکاري چې مرحب به بیا د مقابلې غږ کړی وي، او هماغه خپل شعر به یې وایه او په میدان کې به تاویده. همدا وه چې دا ځل یې د مقابلې لپاره علي (رضي الله عنه) ووت، او دا شعر یې ووایه:

انا الذي سمتني امي حيدره كليث غابات كريه المنظره

اوفيهم بالصاع كيل السندره

[زه هغه څوک یم چې مور مې حیدر (زمری) نوم راباندې ایښی دی، زه لکه د ځنګل د پاچا (زمري) په شان هیبتناک یم. زه د ټولو د نیزو پوره حساب ورکوم.]
علي (رضي الله عنه) دا شعر زمزمه کړ او په مرحب یې داسې ګوزار وکړ چې ځای په ځای یې نسکور کړ، ورپسې د همده په لاس خیبر فتح شو.[2]
کله چې علي (رضي الله عنه) د یهودانو برجونو ته ورلنډ شو، یوه یهودي له برج نه راوکتل او ویې ویل: ته څوک یې؟ ده ځواب ورکړ چې زه علي بن ابي طالب (کرم الله وجهه) یم. یهودي وویل: قسم په هغه کتاب چې پر موسی (علیه السلام) نازل شویدی چې تاسې برلاسي شوئ. بیا د مرحب ورور یاسر راووت او ویې ویل: څوک راسره مقابله کوي؟ له مسلمانانو نه زبیر (رضي الله عنه) مقابلې ته ور وړاندې شو، مور یې صفیه (رضي الله عنها) وویل: یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! هسې نه چې زوی مې مړ نه شي؟ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)

---

[1]. مسلم باب غزوه خيبر ۱۲۲/۲ ،باب غزوه دي قرد ۱۱۵/۲ . صحيح البخاري باب غزوه خيبر ۶۰۳/۲
[2]. د مرحب د قاتل، د قتل د نېټې او د دغه برج د فتحې په اړه د مصادرو تر منځ لوی اختلاف وجود لري.

وفرمایل: (**بل ابنك يقتله**).نه، بلکه ستا زوی به هغه وژني. همغه وه چې زبیر (رضي الله عنه) پدې وتوانید چې یهودی (یاسر) ووژني.
د ناعم برج په شاو خوا کې سختې جګړې وشوې، یو شمیر وتلي یهودان پکې مړه شول، د نورو یهودانو روحیات کمزوري شول، د مسلمانانو د مقابلې توان یې له لاسه ورکړ. ځینې مصادر وايي چې دا جګړه څو ورځې روانه وه، مسلمانان له سخت مقاومت سره مخ وو، په پای کې یهودان بې وسه شول، د مقابلې توان یې بایلود، او له همدې برج نه صعب نومي برج ته واوښتل، او مسلمانانو د ناعم برج فتحه کړ.

## د صعب بن معاذ د برج فتحه کول

په ناعم نومي برج پسې دوهم مهم برج د صعب په نامه یادیده. پر دې برج د برید قومانده د حباب بن منذر انصاري په غاړه وه، مسلمانانو برج درې ورځې کلا بند کړ، په دریمه ورځ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ددې برج د فتحې لپاره خاصه دعا وکړه.
ابن اسحاق روایت کوي چې د اسلم قبیلې بني سهم کورنۍ مسلمانان د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راغلل عرض یې وکړ: مونږ ستړي شوي یوو، هیڅ مو په لاس کې نشته. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (**اللهم إنك قد عرفت حالهم، وأن ليست بهم قوة، وأن ليس بيدي شيء أعطيهم إياه، فافتح عليهم أعظم حصونها عنهم غَنَاء، وأكثرها طعامًا ووَدَكًا**).خدایه ته د دوی په حال خبر یې، دوی وس نلري، زه هم څه نلرم چې ورېې کړم، خدایه! ته د دوی په لاس تر ټولو لوی برج فتحه کړې تر څو څه شی یې لاسته ورشي، هغه برج د دوی په لاس فتح کړې چې ډیره غله او ډیر غوړي وي پکې. کله چې سهار شو، الله تعالی د دوی په لاس د صعب بن معاذ برج فتحه کړ. او پدې برج کې له ټولو برجو نه زیات خواړه او وازدې یعنې غوړي وو.[1]
کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اصحاب (رضي الله عنهم) پر برج باندې د حملې لپاره استول، نو د بني اسلم قبیلې کسان له نورو نه مخکې وو. د برج مخې ته مقابله او جګړه وشوه، په پای کې په همدې ورځ له لمر لویدو نه مخکې برج فتحه شو. مسلمانانو پدې لوی برج کې د هغه زماني یو شمیر توپونه او ټانکونه

[1]. ابن هشام ۲/ ۳۳۲

هم په غنيمت ونيول.
د ابن اسحاق په روايت پدې ورځو کې مسلمانان له سختې لوږې سره مخ شوي وو، او له ډيرې لوږې يې خره ذبح کړي وو او د همدې خرو غوښې يې په ديگونو کې بار کړې وې. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) چې له مسئلې خبر شو د اهلي خره د غوښې له خوړولو نه يې نهي وکړه، او داديگونه واړول شول.

## د زبير د کلا فتح

د ناعم او صعب برجونو له فتح کولو وروسته يهودان ټول د زبير کلا ته لاړل. دغه يوه ډيره مضبوط کلا وه، موقعيت يې هم داسې و چې آسونه او پياده ځواکونه نه شواى ورباندې ورختلی. همدا وجه وه چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) محاصره کړه، محاصره درى ورځې اوږده شوه. يو يهودي راغی او رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته يې عرض وکړ چې يا ابا القاسم! که ته يوه مياشت هم محاصرې ته ادامه ورکړې يهودانو ته څه مشکل نشته ځکه چې له دوى سره خواړه شته د اوبو مشکل يې هم نشته، د شپې له خوا د خپل ضرورت وړ اوبه اخلي او بيرته پخپله کلا کې ځاى نيسي، خو که تا اوبه ورباندې بندې کړې، نو دوى به مجبور شي چې بيرون ته راووزي. همدا وه چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) اوبه ورباندې بندې کړې، دوى راووتل او سخته جگړه يې وکړه. يو شمير مسلمانان شهيدان شول، لس کسه يهودان هم ولگيدل، بالاخره رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) بريالی شو او دا کلا يې هم فتحه کړه.

## د اُبي د کلا فتحه

کله چې د زبير کلا هم د مسلمانانو په لاس فتحه شوه، يهودان د ابي کلا ته لاړل او هلته يې سنگر ونيو. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا کلا هم محاصره کړه، د محاصرې په دوران کې دوه يهودي اتلان يو په بل پسې راووتل او د مقابلې ټېر يې وواهه. مقابله وشوه دواړه د مسلمانانو په لاس ووژل شول. لدې دوو يهودى جنگياليو نه يو د مشهور مسلمان اتل د سرې لنگۍ خاوند ابو دجانه سماک بن خرشه انصاري په لاس ووژل شو. کله چې ابو دجانه دغه يهودى وواژه نو د کلا په لور يې مخه کړه، مسلمانان هم ورپسې ورغلل گرمه جگړه ونښته، مسلمانان کلا ته ورد ننه شول، يهودان په تيښته بريالي شول او ځانونه يې د نزار برج ته ورسول.

## د نزار برج فتحه

د خيبر پدې برخه کې نزار تر ټولو زيات مضبوط برج ؤ، يهودانو باور درلود چې مسلمانان به په هيڅصورت کې هم دغه برج ونه شي نيولی، دوی پدې برج دومره زړه تړلی و چې خپل اولادونه او ښځې يې هم همدلته ورسره ساتلي وو.
مسلمانانو هم دغه برج کلک کلا بند کړ، په يهودو يې سخت فشار راووست، خو څرنګه چې برج د غره په څوکه کې پروت ؤ، ورننوتل ګران وو. يهودانو هم دا جرائت نه درلود چې له برج نه د باندې راووزي، خو د برج له درز نه يې د غشو او ډبرو په ويشتلو سره سخت مقاومت وکړ. کله چې د نزار برج محاصره اوږده شوه، مسلمانان ونه توانيدل برج ونيسي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) امر وکړ چې د هغه وخت توپونه ورته نصب شي، داسې ښکاري چې مسلمانانو به هم د توپ څه ډزې کړې وي او په همدې ګوليو سره يې د برج په ديوالونو کې درزونه پيدا کړل، او له همدې لارې نه د ننه ور داخل شول. په برج کې د ننه سخته جګړه ونښته چې په نتيجه کې يې يهودانو ماتې وخوړه، ډير تلفات يې ورکړل پدې هم ونه توانيدل چې د پخوا په شان بل برج ته پناه يوسي، بلکه څوک چې په تيښته بريالي شول هغوی خپل اولادونه او ښځې مسلمانانو ته پريښودلې. او پدې ترتيب او ددې برج په فتحې سره د خيبر د لومړۍ برخې (نطاه او شق) ټول برجونه فتحه شول، که څه هم پدې برخه کې يو شمير نور واړه برجونه هم وو، خو د نزار برج له سقوط نه وروسته يهودانو پخپله هغه واړه برجونه خوشي کړل او ټول د خيبر دوهمې برخې ته منتقل شول.

## د خيبر د دوهمې برخې فتحه

د نطاه او شق له فتحې نه وروسته، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د بني نضير قبيلې د نورو برجونو چې په کتيبه کې پراته او وطيح، قموص او سلالم نوميدل، په لور توجه وکړه، چيرته چې ټول يهودان راټول شوي وو.
سيرت ليکونکي پدې برجونو کې د جګړې د پيښيدو په هکله اختلاف لري. د ابن اسحاق له روايت نه داسې ښکاري چې د قموص برج د فتح کيدو په وخت کې جګړه شوې وي، او دا برج په جګړې سره فتحه شوی نه د خبرو له لارې[1].
واقدی وايي چې: د خيبر دغه برخه د خبرو له لارې فتحه شوې، خو دا هم کيدای شي

---

[1]. ابن هشام ۲/ ۳۳۱- ۳۳۶- ۳۳۷

چې د قموص برج په شاو خوا کې لومړی جګړه شوې وي او بيا د خبرو له لارې تسليم شوې وي. او پاتـه دوه نـور برجونـه بيلـه جګړې تسـليم شـويدي. پـه هـر حـال رسـول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دې برخې (کتيبه) ته له راتګ نـه وروسـته يهـودان کلا بند کړل، چې پوره ۱۴ ورځې محاصره وو. په پای کې رسول الله (صلی الله عليـه و اله و صحبه و سلم) اراده وکړه چې دا برجونه هم په توپونو وولي، خو کله چې يهـودان پوه شول چې نور وژل کيږي نو د سولې او خبرو وړانديز يې وکړ.

## خبرې او مذاکرات

ابن ابي حقيق د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته څوک واستول او ورته ويې ويل: آيا خوښه دې ده چې خبرې سره وکړو؟ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا وړانديز ومانه، هغه راغی خبرې پيل شوې، او پدې سره جوړ شول چې په برجونو کې موجود يهودي جنګيالان به ټول په امن وي، د يهودانو اولادونه به د دوی وي، اسيران کيږي به نه، خو هغوی به ټول له خيبر نه وزي، خپلې ځمکې، مالونه، سره او سپين به ټول رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته سپاري، خپل آسونه، وسلې، نيزې او نور ټول به پريږدي، يوازې هغه څه به ورسره وړی شي چې په غاړه يې وي لکه جامې. خو د ابو داود په يوه روايت کې راځي چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا ورسره ومنله چې يهودان به له خيبر نه د وتلو په وخت د دومره مال د وړلو اجازه لري چې اوښ يې وړی شي.[1] په همدې اتفاق وشو او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وويل: (**وبرئت منكم ذمة الله وذمة رسوله إن كتمتموني شيئا**)[2].

که څه مو پټ کړل، نو الله ته به يې ځواب ورکوئ. د الله او رسول الله (صلی الله عليـه و الـه و صـحبه و سـلم) ذمـه درنـه خلاصـه ده. پـدې ترتيـب سـره تـړون وشـو او خيبـر د مسلمانانو په لاس فتحه شو. او برجونه ورته وسپارل شول.

## د ابي حقيق د دوو زامنو وژل کيدل

سره لدې چې دا تړون وشو، خو د حقيق زامنو ډير مالونه پټ کړل، هغـه ژي يـې هـم پټ

---

[1] . سنن ابي داؤد، باب ما جاء في حكم خيبر ۷٦/۲.
[2] . زاد المعاد ۱۳٦/۲.

کړل چې د حیي بن اخطب بې شمیره دارایي او ګاڼې وې پکې کومې چې د بني نضیر د شړلو په وخت یې له ځان سره خیبر ته راوړې وې.
ابن اسحاق روایت کوي: کنانه بن ابي حقیق (الربیع) چې د بني نضیر خزانې وې ورسره، د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راوستل شو، پوښتنه یې ورنه وکړه چې د بنو نضیر خزانې چیرته دي؟ ده سره لدې چې د خزانې ساتونکی ؤ انکار وکړ، پدې وخت کې یو بل یهودی راغی او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته یې وویل چې ما به هر سهار کنانه لیده چې دغې مخروبې ځمکې ته به راته. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) کنانه ته وویل: (**أرأیت إن وجدناه عندك أأقتلك**؟)ګوره که چیرته دغه خزانه له تاسره پیدا شوه نو آیا بیا دې ووژنو؟ کنانه وویل: هو، که له ما سره وموندل شوه نو ومې وژنئ. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر وکړ چې دغه خرابه وکیندل شي. له کیندلو وروسته څه اندازه مالونه لاسته راغلل، بیا له کنانه نه پوښتنه وشوه چې نور مالونه چیرته دي؟ هغه بیا هم انکار وکړ، همدا وه چې زبیر (رضي الله عنه) ته وظیفه ورکړل شوه چې کنانه تعذیب کړي تر څو د خزانې ځای په ګوته کړي.
زبیر (رضي الله عنه) په چقماق باندې په سینه سینه کې واهه تر څو مرګ حال شو، وروسته رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) محمد بن مسلمه (رضي الله عنه) ته وسپاره، او هغه یې د خپل ورور محمود په بدل کې سر پرې کړ. (محمود د مسلمه زوی چې د محمد ورور ؤ د ناعم برج تر څنګ ناست ؤ چې یهودانو د میچنې تیږه ورباندې غورځولې او په شهادت یې رسولی ؤ.)
ابن قیم وایي چې: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ابي حقیق د دواړو زامنو د وژلو امرکړی ؤ، او په دوی باندې د کنانه د تره زوی شاهدي ویلې وه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د حیي بن اخطب لور صفیه هم په اسارت ونیوله، صفیه پدغه وخت کې د کنانه بن ابي حقیق په نکاح کې وه.

## د غنیمتونو ویش

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) فیصله وکړه چې یهودان له خیبر نه وشړي، خو هغوی ورته راغلل عرض یې وکړ چې مونږ ددې ځمکې په هکله له تاسې نه زیات معلومات او تجربه لرو، مونږ همدلته پریږدئ دا ځمکې به درته کاله کوو. له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او اصحابو (رضي الله عنهم) سره نه

دومره وخت او فرصت و او نه هم دومره کسان وو ورسره چې دلته په ځمکه کار وکړي، همدا وه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) فیصله وکړه چې یهودان به پدې ځمکو کار کوي په بدل کې به يې د ټولو حاصلاتو او میوو نیمه برخه دوی ته ورکول کیږي. او دا فیصله بـه تر هغې پورې عملي وي تر څو پورې چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خوښه وي. یهودان همدلته پاتې شول او عبدالله بن رواحه (رضي الله عنه) به د حاصلاتو پـه اړه د تخمین پـه اساس فیصله کوله یعنې تخمیني اندازه به يې معلوموله. همدا راز رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د خیبر ځمکې په ۳۶ برخو وویشلې، بیا هره برخه په سلو برخو مشتمله وه پدې حساب سره ټولې درې زره شپږ سوه بـــرخې وې. د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او مسلمانانو حصه نیمه یعنی ۱۸۰۰ برخې وې، شخصاً د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یوه برخه وه او هغه هم لکه د بل هر مسلمان د بـرخې په اندازه، او پاتې نیمه بله برخه چې (۱۸۰۰) نورې برخې کیدلې هغه يې د خاصو حالاتو، ځان او مسلمانانو د مشکلاتو یا ټولنیزو ستونزو لپاره وساتله. او دا نیمه برخه ځمکه یې لدې امله په ۱۸۰۰ برخو وویشله چې دا په حقیقت کې د الله لـه طرفه د حدیبیې د ټولو غازیانو حاضر وو که غائب لپاره یو نعمت، روزي او بدله وه. د حدیبیې غازیان ۱۴۰۰کسان وو، دوه سوه آسونه هم ورسره وو، د هر آس لپاره دوې برخې وې، پدې حساب ټولې برخې یو زر اته سوه شوې چې د سواره لپاره درې او د پلي لپاره یوازې یوه برخه وه.[۱]

د خیبر غنیمتونه بې حسابه وو، بخاري له ابن عمر (رضي الله عنهما) نه روایت کوي چې وايي: د خیبر تر فتحې پورې مونږ په نس نه وو ماړه شوي، همدا راز عائشه (رضي الله عنها) وايي: کله چی خیبر فتحه شو نو مونږ وویل اوس به په خرماوو ماړه شو.[۲]

او کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له خیبر نه بیرته مدینې ته تشریف راوړ، نو ټولو مهاجرینو هغه باغونه بیرته خپلو انصارو وروڼو ته ورکړل چې دوی ته يې د مرستې په دود ورکړي وو، ځکه اوس خو مهاجرین هم په خیبر کې د مال، باغ اوخرما خاوندان شوي وو.[۳]

---

[1]. زاد المعاد ۲/ ۱۳۷ – ۱۳۸.

[2]. ، صحیح بخاري ۲/ ۶۰۹.

[3]. زاد المعاد ۲/ ۱۳۷، صحیح مسلم ۲/ ۹۶.

## د جعفر بن ابي طالب او اشعريانو(رضي الله عنهم) راتګ

د خيبر د غزا پـه دوران کې د رسـول الله (صـلی الله عليـه و الـه و صـحبه و سـلم) د تـره زوی جعفر بن ابي طالب (رضي الله عنه) او ملګري يې له ابـو موسـی اشـعري او ملګرو سـره يې راورسيدل. ابـو موسـی (رضـي الله عنـه) وايـي: مونـږ پـه يمـن کې د رسـول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د وتلو خبر واورید، همدا وه چې زه او دوه ورونه مې له څـو پنځـوس کسـانو سره يـو ځـای د رسول الله (صـلی الله عليـه و الـه و صـحبه و سلم) په لور د هجرت سفر پيل کړ، په کښتۍ کې سپاره شوو، خو کښتۍ د حبشې پـه لور يووړو، هلته مو له جعفر او ملګرو سره يې ملاقات وشو، هغوی راته وويـل: رسـول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مونږ دلته راليږلي يـوو او همدلتـه يې د پـاتې کيدو امر راته کړيدی، تاسی هم راسره پاتې شئ، نو ورسره پاتې شـوو. تـر څـو وروسـته روان شوو او پداسې وخت کې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور تـه ورسيدو چې خيبر يې فتحه کړی و، مونږ چې ور ورسيدو نـو مونـږ تـه يې هم پـه غنيمت کې برخه راکړه. غايبانو تـه يې(هغـه چې پـه غـزا کې نـه وو ورسره) د خيبر له غنيمتونو نه څه ورنکړل، يوازې مونږ د جعفر ملګرو تـه يې برخـه راکړه او بس [1].

کله چې جعفر (رضي الله عنه) د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضـور ته ورسيد هرکلی يې ورته ووايه، ښکـل يې کړ او ويې فرمايـل: (**والله ما أدري بأيهما أفرح؟ بفتح خيبر أم بقدوم جعفر**). والله که پوهيږم په کومه خوشالی خوښي وکړم، د خيبر په فتحه او که د جعفر په راتګ[2]؟

جعفر (رضي الله عنه) او ملګري يې وروسته لـه هغې راغلي وو چې رسـول الله (صـلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نجاشي ته عمرو بن اميه الضمري ليږلئ او د مسلمانانو د بيرته ليږلو خبره يې ورته کړې وه، نو نجاشي هغوی پـه دوو کښتيـو کې ورواسـتول. د جعفر (رضي الله عنه) ملګري ۱۶ نارينه وو، ښځې او اولادونـه يې هـم ورسره وو. او نور مسلمانان مخکې له حبشی نه مديني ته راغلي وو.[3]

---

(1). صحيح بخاري ۱/ ۴۴۳. فتح الباري ۴۸۴/۷تر ۴۸۷.

(2). زاد المعاد ۲/ ۱۳۹ .

(3). محاضرات تاريخ الامم الاسلاميه للخضري ۱۲۸/۱ .

## له صفیه (رضي الله عنها) سره د رسول الله (ﷺ) واده

مخکې مو وویل چې د صفیه (رضي الله عنها) میړه کنانه بن ابي حقیق د غدر په سزا کې ووژل شو، نو صفیه (رضي الله عنها) په اسارت ونیول شوه. کله چې اسیرانې ښځې ټولې راغونډې شوې، دحیه بن خلیفه کلبي راغی او له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه یې د یوې وینځې سوال وکړ. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: لاړ شه او له اسیرو ښځو نه یوه واخله. دحیه لاړ او په صفیه بنت حیي یې لاس کېښود، پدې وخت کې یو صحابي د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راغی او ورته ویې ویل: یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! تا دحیه ته د بنو نضیر او بنو قریظه قبیلې سرداره یعنی صفیه ورکړه! دغه میرمن خویوازې ستاسې له شان سره ښایي! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: احوال ورکړئ چې هغه راولي. دحیه سره له صفیې راغی. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وکتل او ویې ویل: ددې په بدل کې بله اسیره واخله. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) صفیه (رضي الله عنها) اسلام ته راوبلله، هغې اسلام ومانه، په اسلام مشرف شوه، نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) آزاده کړه او په نکاح یې کړه، او مهر یې همدا آزادي وه. د مدینې په لار چې د سد صهباء سیمې ته ورسیدل صفیه (رضي الله عنها) له حیض نه پاکه شوه، نو ام سلیم ورته جوړه کړه، د شپې یې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته واستوله، او پدې ترتیب سره دا واده تر سره شو. سهار یې د خرما، میده شویو اوړو او غوړیو نه تیاره شوې شوروا ولیمه ورکړه، درې ورځې یې د لارې په اوږدو کې د واده د شپو په توګه ورسره تیرې کړې.[۱]

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د صفیه (رضي الله عنها) په مخ کې شین والی ولید ورته ویې ویل چې دا څه دي؟ دې وویل: یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! ما ستا له راتګ نه مخکې خوب ولید چې سپوږمۍ له خپل ځای نه بېځایه شوه او زما په غیږ کې راولویده. پدې وخت کې م ې ستا په هکله هیڅ معلومات نه درلودل، دغه کیسه او خوب مې خپل میړه ته ووایه، هغه په مخ ووهلم او راته ویې ویل لکه چې د هغه پاچا هیله لرې چې په مدینه کې دی.[۲]

---

[۱]. صحیح بخاري ۱/ ۲،۵۴/۶۰۴_۶۰۶، زاد المعاد ۲/ ۱۳۷.

[۲]. ابن هشام ۲/ ۲۳۶، زاد المعاد.

## په زهرو ککړ پسه

د خیبر لـه فـتحې نـه وروسـته پداسې حـال کې چې رسـول الله (صلی الله علیـه و الـه و صحبه و سلم) د فـاتح لاربښود په حیث دلتـه ځـای پـه ځـای شـوی وُ د سـلام بـن مشـکم ښځې زینب بنت حارث یو کباب شوی پسه ورته راوړ. نومـوړې پوښتنـه کـړې وه چې د پسه کوم غړی د رسول الله (صلی الله علیـه و الـه و صـحبه و سلم) ډیر خوښیـږي، ورتـه ویلی شوي وُ چې لاس یا څکینئ پښي. نو په همدې پښه کې یې ډیر زهر ورتـه واچـول بیا یې ټول پسه په زهروککړکړ، بیا یې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته راووړ او مخې ته یې ورته کیښود. رسـول الله (صـلی الله علیـه و الـه و صـحبه و سـلم) همدا پښه چې ډیر زهر پکې وُ راونیوله، غوښه یې ورنـه بیلـه کـړه ویې ژوولـه خـو تیـره یې نه شوه، بیرته یې تپ کړه. ویې فرمایـل: (**إن هذا العظم لیخبرني أنه مســـموم**).دا هډوکی راته وایي چې زهر پــکې گډ شویدي. بیـا یـې هغـه ښځه راوغوښتلـه ،ورتـه وویې ویـل : (**ما حملك علی ذلـــك؟**) ولـې دې دا کـار کـړئ؟ ښځې اعــتراف وکړ ویې ویل: ما ویل که محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پاچا وي، نـو پـدې سره به ورنه بې غمه شو، او که رسول وي، نو حتماً بـه خبر ورکـړل شي او دا غوښـه بـه ونه خوري. وروسته رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) عفـوه ورتـه وکـړه. د غوښې خوړلو په وخت کې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره بشـر بن البراء بن معرور هم وُ هغه یوه اندازه غوښه وخوړله چې له امله یې مړ شو.

دې ښځې ته د عفوې په اړه مختلف روایتونه رانقـل شـویدي، ځیـنې وایـي عفـوه ورتـه وشوه او نـور وایـي چې ووژل شـوه، خـو اتفـاق بیـا پـدې شـویدی چې لومـړی رسـول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) عفوه ورته وکړه، خو کله چې بشر مړ شو، نو دغه ښځه یې ورباندې قصاص کړه.[1]

## د خیبر په غزا کې د شهیدانو او مشرکینو د مړیو شمیره

پـه خیبـر غـزا کـې ۱۶ مسـلمانان پـه شـهادت ورسـیدل، څلـور قریشـان، یـو لـه اشـجع قبیلې، یو له اسلم قبیلې یو د خیبر له خلکو او نور انصار (رضي الله عنهم) وو.
بل روایت وایي چې ددې غزا د شهیدانو شمیره ۱۸ تنه وه. منصـور پـوري دغـه شـمیر

---

[1]. زاد المعاد ۲/ ۱۳۹ . فتح الباري: ۷/ ۴۹۷. اصلـه کـیسه پـه بخاري ۱/۴٤۹، ۲/۸٦۰،٦۲۰ او ابـن هشام ۲/۳۳۷_۳۳۸ کې ذکر شویده.

۱۹ تنه ښوودلی او وایي : سیرت لیکونکو د خیبر شهیدانو شمیره پنځلس ښودلې ده، خو ما له ډیرې څېړنې وروسته ۲۳ نومونه موندلي، چې یو نوم رنیف بن حبیب یوازې په طبري کې، بل رنیف بن وائله یوازې په واقدي کې راغلی دی، یو (بشر بن براء) په زهرو لړلې پسه له امله مړ شو، یو بل کس (بشر بن عبدالمنذر) داسې دی چې ځنې وایي په خیبر کې شهید شوی او نور وایي چې په بدر کې په شهادت رسیدلی دی، خو صحیح روایت دا دی چې په بدر کې شهید شویدی.[1] له یهودانو نه پدې غزا کې۹۳ کسه وژل شویدي.

## فدک

خیبر ته له رسیدو نه وروسته رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) محیصه بن مسعود (رضي الله عنه) د فدک یهودانو ته واستاوه، تر څو هغوی اسلام ته راوبولي، خو هغوی خبره اوریده کړه.

خو کله چې خیبر فتح شو، نو الله تعالی یې په زړونو کې رعب واچاوه، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته یې د سولې وړاندیز وکړ او ویې ویل چې: د خیبر د یهودانو په شان دوی هم د فدک په نیمایي حاصلاتو سره سولې ته تیار دي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د دوی وړاندیز ومانه، د فدک سیمه ټوله خاص د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لپاره وه. ځکه دلته مسلمانانو هیڅ ډول جنګ او جدل نه و کړی.[2]

## وادي القِری

کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د خیبر له فتحې نه فارغ شو، نو د وادي القری په لور یې مخه کړه، هلته یو شمیر یهودان چې څه عربان هم ورسره وو اوسیدل.

دې سیمې ته له رسیدو سره سم د یهودانو له لوري پر مسلمانانو د غشو باران وشو، د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یو غلام (مدعم) هم ووژل شو. خلکو وویل: جنت یې دې مبارک وي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)

[1]. رحمه للعالمین ۲/ ۲۶۸ تر ۲۷۰.
[2]. ابن هشام ۲/ ۳۳۷ – ۳۵۳ .

وفرمایل: (كلا، والذي نفسي بيده، إن الشَّمْلَة التي أخذها يوم خيبر من المغـــانم، لم تصبها المقاسم، لتشتعل عليه نارًا)، فلما سمع بذلك الناس جاء رجل إلى النبي صلى الله عليه وسلم بشِرَاك أو شراكين، فقال النبي صلى الله عليه وسلم: (شراك من نار أو شراكان من نار). نه داسې نده، قسم په هغه ذات چې زما ژوند یې په واک کې دی، هغه شمله (یو ډول پراخه جامه ده) به چې له ویش نه مخکې یې د خیبر له ولجو نه اخیستې وه په ده باندې اور بلوي. اصحابو (رضي الله عنهم) چې دا خبره واوریدله، نو هر یو لاړ چا یوه او چا به دوې تسمې رانیولې وې راوړلې به یې. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) فرمایل: د اور یوه تسمه د اور دوې تسمې.[1]

بیا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپل لښکر د مقابلې لپاره تیار کړ، په لیکو یې برابر کړل، عمومي بیرغ یې سعد بن عباده ته ورکړ. یو جنډه یې حباب بن منذر، بله یې سهل بن حنیف، دریمه یې عباد بن بشر ته ورکړه. وروسته یې یهودانو ته د اسلام بلنه ورکړه خو هغوی اسلام ونه مانه، یو کس یې مقابلې ته راووت، مخې ته زبیر بن عوام ورغی او هغه یې رانسکور کړ. وروسته بل راوړاندې شو هغه یې هم وواژه. وروسته دریم د مقابلې میدان ته راغی، د مسلمانانو له اړخه علي (رضي الله عنه) ورمخې ته شو او هغه یې ځای په ځای کړ. پدې ترتیب سره مقابله روانه وه تر څو له یهودانو نه ۱۱ تنه ووژل شول. هر کله به چې یو ورنه وژل کیده نور به اسلام ته رابلل کیدل. پدې ورځ به د لمانځه په وخت کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لمونځ په جماعت ادا کړ، بیا به یې یهودانو ته د اسلام بلنه ورکوله، هغوی به اسلام نه مانه، پدې ترتیب سره تر لماسختن پورې جګړه روانه وه، وروسته سهار شو، لمر د نیزې په اندازه هسک شوی ؤ چې یهودان په زور سره تسلیم شول مالونه یې ټول ولجه شول. مسلمانانو ته ډیر مالونه او سامانونه په لاس ورغلل، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) همدلته د قری په وادي (سیمه) کې څلور ورځې پاتې شو، غنیمتونه یې په اصحابو وویشل، خو ونې، ځمکې او باغونه یې لکه د خیبر د ځمکو په شان له یهودانو سره پریښودل.[2]

---

[1]. صحیح بخاري ۲/ ۶۰۸

[2].زاد المعاد ۲/ ۱۴۶ . ۱۴۷

## تیماء

د تیماء یهودان چې د خیبر، فدک او وادي قرى له فتحې نه خبر شول، فورا یې رسول الله (صلى الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته د سولې وړاندیز وکړ. رسول الله (صلى الله علیه و اله و صحبه و سلم) هم د دوی وړاندیز ومانه سوله یې ورسره وکړه، او خپل مالونه یې همدوی ته پرېښودل[1].

او داسې تړون یې ورسره ولیکه: دا د بني عادیا لپاره د محمد رسول الله (صلى الله علیه و اله و صحبه و سلم) تړون دی، دوی به محفوظ او خوندي وي، جزیه به ورکوي، دښمني به نه ورسره کیږي او نه به له خپلې خاورې نه شړل کیږي، دا تړون به همیشنی وي. تړون لیک د خالد بن سعید په لاس ولیکل شو[2].

## د مدینې په لور

پدې پسې رسول الله (صلى الله علیه و اله و صحبه و سلم) د مدینې په لور روان شو. د سفر په جریان کې خلک یوې درې ته ورسیدل په لوړ آواز یې الله الکبر، الله اکبر، لا اله الا الله، ویل، رسول (صلى الله علیه وسلم) ورته وفرمایل: **(أربعوا علـــى أنفســـكم، إنكـــم لا تدعون أصَمَّ ولا غائبا، إنكم تدعون سميعا قريبا).**

[له ځان سره لږ نرمي وکړئ، تاسو خو کوم کاڼه یا غائب ته دعا نه کوئ، بلکه تاسو هغه ذات ته فریاد کوئ چې اوریدونکی او نژدې دی.]

یوه شپه یې مزل وکړ، د شپې په وروستۍ برخه کې یې د لارې په اوږدو کې واړول، ویده شو، خو له ویده کیدو نه مخکې یې بلال ته وویل: بیدار اوسه، چې د سهار لمانځه ته مو راویښ کړې.

بلال (رضي الله عنه) خپل پیتې ته ډډه وهلې او خوب وړی و. او کله چې لمر ښه تود شو، راویښ شول. لومړی او تر ټولو د مخه رسول الله (صلى الله علیه و اله و صحبه و سلم) راویښ شو. بیا لدې وادي (درې) نه ووت، لږ مخکې لاړ، او هلته یې د سهار لمونځ په جماعت سره ادا کړ. په بل روایت کې راغلي چې دغه کیسه په بل سفر کې

---

(1). زاد المعاد ۲/ ۱۴۷.

(2).ابن سعد ۲۷۹/۱.

پیښنه شوې وه.[۳]
د خیبر غزا له حوادثو نه دا څرګندیږي چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ۷ هـ کال د صفر په وروستۍ برخه او یا ربیع الاول په میاشت کې مدینې ته ستون شویدی.

## د ابان بن سعید سریه

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د یوه ماهر قوماندان په حیث پدې ښه پوهیده چې له حرامو میاشتو نه اخوا د مدینې خوشي او خالي پریښودل په ځای عمل ندی، ځکه د مدینې شا و خوا پراته اعراب د مناسب فرصت انتظار باسي، او پدې تمه دي چې په غلچکي برید سره مسلمانانو ته زیان واړوي مالونه یې لوټ او غلا کړي.
همدا وجه وه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ابان بن سعید په مشرۍ یوه سریه نجد ته ولیږله تر څو اعراب وویروي. ددې سریې سره همزمان خپله رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د خیبر په لور روان شو. ابان بن سعید د خپلې دندې له سرته رسولو نه وروسته بیرته راستون، او په خیبر کې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره پداسې وخت کې یو ځای شو چې خیبر فتحه شوی و. موثق روایت دا دی چې دغه سریه د ۷ هـ کال د صفر په میاشت کې وه، ددې سریې کیسه بخاري هم رانقل کړیده.[۱]
ابن حجر وایي: زه ددې سریې په هکله معلومات نلرم.[۲]

---

[۳]. ابن هشام ۲/ ۳۴۰. زاد المعاد ۱۴۷/۲.
(1). صحیح البخاري ۲/ ۶۰۸ -٦٠٩.
(2). فتح الباري ۷/ ۴۹۱.

په اووم هجري کال کې

# د ذات الرقاع غزا

وروسته له هغې چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پدې وتوانید د کفر د مثلث دوې (ضلعې) برخې درې ورې کړې، نو د دریمې برخې ماتولو ته یې پام شو. دغه دریمه ډله د نجد په دښتو او میرو کې پراته سخت زړي اعراب او کوچیان وو چې وخت نا وخت به یې شوکې او ډاکې اچولې. څرنګه چې دا کوچیان په کوم ښار یا کلي کې نه اوسیدل، د کلاګانو او برجونو خاوندان نه وو چې کلا بند، او له مینځه یووړل شي بلکه په پراخو سیمو کې تیت او پرک پراته وو، نو بری وربانديې ګران وُ. د دوی مشکل د مکې او خیبر له خلکو نه ډیر لوی وُ، د دې ډول شر او فساد په وړاندې یوازې تادیبي عملیات کیدلی شوای او بس.
پرکوچیانو باندې د فشار اچولو، او د مدینې په شاو خوا کې د برید لپاره راټولو شویو اعرابو د ماتولو په نیت رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دیو لړ تادیبي پوځي عملیاتو پیل وکړ، غزا ته لاړ، او دغه غزا په تاریخ کې د ذات الرقاع په نوم شهرت لري.
زیاتره سیرت لیکونکي عقیده لري چې دغه غزا په څلورم هجري کال کې پیښه شویده، خو د ابو موسی‌ا شعري او ابو هریره (رضي الله عنهما) ګډون پکې دا څرګندوي چې باید دا غزا د خیبر له فتحې نه وروسته شوې وي، همدا وجه ده چې سیي روایت دا ښیي چې دغه غزا د ۷ ه کال په ربیع الاول کې شویده.
ددې غزا کیسه داسې ده: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته خبر راغی چې د غطفان قبیلې د انمار یا بني ثعلبه او بني محارب کورنۍ پر مدینه د برید لپاره راټولې شویدي، نو د دوی د مقابلې لپاره د ۴۰۰ یا ۷۰۰ کسه غازیانو په ملګرتیا له مدینې نه ووت.
ابوذر (رضي الله عنه) او په بل روایت یې عثمان بن عفان (رضي الله عنه) په مدینه کې خپل خلیفه وټاکه، مخکې لاړ، او له مدینې نه د دوو ورځو په مزل لیرې نخل نومې

سیمې ته ورسید ، هلته د غطفان قبیلې له یو شمیر کسانو سره مخ شو خو جګړه ونه شوه، مګر رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په همدې ورځ د خوف لمونځ ادا کړ.

امام بخاري له ابو موسی اشعري (رضي الله عنه) نه روایت کوي وایي: مونږ له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره په یوه غزا کې روان وو، مونږ ۶ کسان وو چې په نوبت سره به په یوه اوښ سپریدو. پښې مو ټټاکې او زخمي شوې، وپړسیدې، زما پښې هم زخمي شوې نوکان مې ولویدل، نو مونږ به خپلې پښې په ټوټو کې پټولې، او له همدې وجې نه دې غزا ته ذات الرقاع یعنی د ټوټو او پیوندونو جګړه ویل کیږي.[۱]

بخاري بل روایت له جابر (رضي الله عنه) نه رانقل کړی وایي: په ذات الرقاع غزا کې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره ملګري وو، هر چیرته به چې ښه سیوره لرونکې ونه راغله هغه به مو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته پریښوده. یو ځل رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تر ونې لاندې تشریف کیښود ، نور اصحاب (رضي الله عنهم) په اغزي لرونکو ونو کې سره تیت شول هر چا ځانته سیوره لټوله، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپله توره په ونه کې راوځړوله. جابر (رضي الله عنه) وایي: مونږ ټول ویده شو، په همدې وخت کې یو مشرک راغی، د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) توره یې واخیستله په رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یې غږ وکړ چې اوس رانه ویریږې که نه؟ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (لا) نه. هغه ورته وویل: نو څوک به دې رانه خلاص کړي؟ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وویل: (الله). الله به مې ساتي.

جابر زیاتوي: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مونږ ته آواز وکړ، ورغلو که وینو چې یو اعرابي ورسره ناست دی. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) راته وفرمایل: (**إن هذا اخترط سيفي وأنا نائم، فاستيقظت وهو في يده صَلْتًا. فقال لي: من يمنعك مني؟ قلت: الله، فها هو ذا جالس**). زه ویده وم او دې سړي مې توره اخیستې وه، زه پداسې حال کې راویښ شوم چې توره یې په لاس کې راته نیولې وه، راته ویې ویل: څوک به دې رانه ژغوري؟ ما ورته وویل: الله تعالی. دا دی تاسې

---

[۱]. صحیح البخاري ۲/ ۵۹۲. مسلم ۲/ ۱۱۸

یې وینئ چې اوس له ما سره ناست دی. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هغه اعرابي ته هیڅ هم ونه ویل، معاف یې کړ.
په بل روایت کې راځي چې: لمونځ ادا شو، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یوې ډلې اصحابو (رضي الله عنهم) ته دوه رکعته لمونځ ورکړ، بیا دا ډله لاړه، نور پاتې اصحاب (رضي الله عنهم) راغلل او دوه رکعته پاتې لمونځ يې وروسته ادا کړ، او پدې ترتیب رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپله څلور رکعته لمونځ ادا کړ، خو اصحابو دوه دوه رکعته لمونځ وروسته وکړ.[1]
د اعرابي کیسه ابو عوانه هم راوړیده په هغې کې راځي چې: توره د اعرابي له لاسه پریوته. او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) واخیسته ورته ویې فرمایل: (من يمنعك مني؟) څوک به دې رانه ژغوري؟ اعرابي ورته وویل: تر ټولو غوره نیونکی اوسه، رحم راباندې وکړه! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: (تشهد أن لا إله إلا الله وأني رسول الله؟) د شهادت کلمه ووایه. اعرابي وویل: عهد درسره کوم چې په خلاف به دې جګړه ونکړم، او نه به له هغه قوم سره ملګرتیا وکړم چې ستا په خلاف جنګیږي. راوي وایي: نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) عفوه ورته وکړه او پرې یې ښود، هغه لاړ خپل قوم ته ورغی او ورته ویې ویل: زه تاسې ته له ټولو انسانانو نه د غوره شخصیت له لوري راغلی یم.[2]
بخاري وایي چې مسدد له ابو عوانه هغه له ابي بشر نه روایت کوي چې: ددغه اعرابي نوم غورث بن حارث وُ[3]. ابن حجر وایي: د واقدي د روایت په اساس د دغه اعرابي نوم دعثور وُ او اسلام یې هم راوړی وُ، خو داسې ښکاري لکه چې دا دواړه دوې بیلې بیلې کیسې وي چې په دوو غزاګانو کې واقع شویدي.[4]
له دې غزا نه د بیرته ستنیدو په وخت کې د مشرکانو یوه ښځه د مسلمانانو په اسارت کې راغله، ددې ښځې میړه قسم وکړ چې تر هغې پورې به بیرته نه ګرزي تر څو یې د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له اصحابو (رضي الله عنهم) نه د کوم چا وینه نه وي تویې کړې، په همدې اساس د شپې له مخې راغی، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دوو کسانو ته د پیرې امر کړی وُ، دا دواړه چې یو یې عباد

---

(1). صحیح بخاري ۱/ ۴۰۷ – ۴۰۸، ۲/ ۵۹۳
(2). مختصر سیره الرسول. ۲/ ۲۶۴ . فتح الباري ۴۱۶/۷.
(3). صحیح بخاري ۲/ ۵۹۳.
(4). فتح الباري ۷/ ۴۲۸.

بن بشر او بل يې عمار بن ياسر ؤ د پيرې په دوران کې هغه وخت د نوموړي مشرک تر بريد لاندې راغلل چې عباد لمونځ کاوه په لمانځه ولاړ ؤ، مشرک په غشي وويشت. هغه غشی له بدن نه ويوست خو لمونځ يې پرې نه ښود بيا يې په دريو نورو غشو وويشت، خو بيا يې هم لمونځ پرې نه ښود، کله يې چې پای ته ورساوه سلام يې وګرځاوه خپل ملګری يې راويښ کړ، هغه چې دده دا حالت وليد ورته ويې ويل: سبحان الله، ولې دې زه نه راويښولم؟ عباد ورته وويل: ما داسې سورت تلاوت کاوه، چې زړه مې ونه منله تلاوت نيمګړی پرېږدم.[1]

ددې غزا له برکته د سخت زړو عربانو په زړونو کې ويره وليده، او لدينه وروسته د غطفان قبيلې دغه کورنيو د سر پورته کولو جرات ونکړ، ورور ورو يې ځواک اوبه کيده تر څو ټولې سلامي شوې او افراد يې ټول په اسلام مشر شول. ځينو خو يې بيا د مکې په فتحه کې برخه درلوده د حنين په غزا کې شريک وو، او د غنيمت له مالونو نه يې خپله برخه تر لاسه کړه. د مکې له فتحې نه وروسته رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ځينو کورنيو ته زکات راټولونکي واستول، دوی ورته زکاتونه ورکړل، پدې ډول سره د کفر مثلث مات شو، او په ټوله سيمه کې امن او آرامي حاکمه شوه، نور مسلمانانو دا توان درلود چې يو ځای بل ځای له پيښيدونکو ورو مشکلاتو سره په ډيره اسانۍ مقابله وکړی شي. ويلی شو چې ددې غزا په نتيجه کې د لويو لويو ښارونو او سيمو فتحه کيدلو ته لاره اواره شوه.

## د همدې کال نور عسکري عمليات

له غزا نه وروسته رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د اووم هجري کال تر شوال مياشتې پورې په مدينه کې پاتې شو پدې مدت کې يې دا عسکري عمليات تر سره کړيدي:

۱-د غالب بن عبدالله ليثي سريه: د ۷ هجري کال د صفر يا ربيع الاول په مياشت کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) غالب په قديد سيمه کې د بني ملوح مقابلې ته وليږه. ځکه دې قوم د بشير بن سويد ملګري په شهادت رسولي وو. نو دغه ډله اصحاب يې له هغوی نه د انتقام پخاطر ور واستول. هغوی ورغلل د

---

[1]. زاد المعاد ۱۱۲/۲. د تفصيلاتو لپاره ابن هشام ۲/ ۲۰۳ – ۲۰۹ ، زاد المعاد ۲/ ۱۱۰ او فتح الباري ۷/ ۴۱۷ تر ۴۲۸ وګوره.

شپې لـه مخې يـې بريـد وربانـدې وکـړ، يـو شـمير يـې ورنـه ووژل او څـاروي يـې ورنـه راوستل. پدې وخت کې د دښمن زيات شمير لښکر ورپسې راغی، او پداسې حال کې چې مسلمانانو ته ډير ورلنډ شوی ؤ باران وشو او لـوی سيل راغـی د دواړو لښکرو تر مينځ حايل واقع شو، او مسلمانان وتوانيدل په بريالیتوب سره شاتګ وکړي.

**۲- د ۷ هـ کـال پـه جمـادي الثانيـه کـې د حسـمی سـريه:** ددې پـيښې تفصيلات مخکې پاچايانو ته د ليکونو په فصل کې تير شويدي.

**۳- د ۷ ھ کال د شعبان په مياشت کې تربه ته د عمر بن خطاب** (رضي الله عنه) سريه: پدې سريه کې له عمر (رضي الله عنه) سره **۳۰** مجاهدين وو، د شپې به يې مزل کاوه او د ورځې له خوا به پټيدل، خو بيا هم د هوازن قبيلې خلک وربانـدې خبر شول او د د دوی له رسيدو نه مخکې وتښتيدل، کله چې عمر (رضي الله عنه) ورغی هيڅوک هم په ګوتو ورنه غلل.

**۴- د ۷ ھ کال د شعبان په مياشت** کې د بشير بن سعد انصاري سريه: ده ته وظيفه ورکړل شوه چې د فدک سره خوا کې بني مره باندې حمله وکړي. لـه ده سره هم (۳۰) کسان وو، ورغی له بريد نه وروسته يې يو شمير څاروي او پسونه او نور ورنه ولجه کړل بيرته را روان شول، خو د دښمن له خوا تعقيب او تر بريد لاندې ونيول شول، جګړه وشوه تر څو د بشير او ملګرو يې ټول غشي تمام شول، او پدې ترتيب سره لـه بشير نه پرته ټول اصحاب (رضي الله عنهم) په شهادت ورسيدل، بشير پخپله پـه ټپي حالت کې فدک ته ځان ويوست او هلته ترهغې پورې لـه يهودانو سره پاتې شو تر څو زخمونه يې جوړ شول بيا مدينې ته ستون شو.

**۵- د ۷ ھ کال په رمضان مياشت** کې د غالب بن عبدالله ليثي سريه: دا سريه د بني عوال، او په ميفعه کې د بني عبد بن ثعلبه په خلاف وه. يو بل روايت وايي چې دا د جهينه قبيلې د حرقات کورنۍ په خلاف وه. پدې سريه کې لـه اسامه بـن زيـد (رضي الله عنهما) سره يو سل ديرش مجاهدين وو، د دښمن له افرادو نه يې څوکسان ووژل او يو شمير څاروي يې ورنه په غنيمت ونيول. پـه همدې سريه کې اسامه (رضي الله عنه)

یو تن چې نوم یې نهیک بن مرداس ؤ وروسته له هغې وواژه چې په خوله یې لا اله الا الله کلمه وویله. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اسامه ته وویل: (**أقتلته بعد ما قال: لا إله إلا الله؟**) آیا د لا اله الا الله ویلو وروسته دې وواژه؟! اسامه وویل: کلمه یې د ځان ژغورلو په خاطر وویله! رسول (صلی الله علیه وسلم) ورته وفرمایل:(**فهلا شققت عن قلبه فتعلم أصادق هو أم كاذب؟**).آیا تا یې سینه چاک کړې وه چې رښتیا او دروغ یې درته څرګند شوي وي.

**۶- د عبدالله بن رواحه سریه:** نوموړی له ۳۰ کسانو سره د ۷ هـ کال د شوال په میاشت کې د خیبر په لور واستول شو. سبب یې دا ؤ چې اسیر او یا بشیر بن رزام د غطفان قبیلې خلک د مسلمانانو په خلاف راټولول، مسلمانانو اسیر له دیرشو کسانو سره راویوست او دا تمه یې ورکړه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به د خیبر ولایت ده ته ورکوي، هماغه وه چې هغه له ۳۰ ملګرو سره راووت او ورسره روان شو، خو کله چې د قرقره نیار سیمې ته ورسیدل د دواړو ډلو تر مینځ سوء تفاهم را مینځته شو او په نتیجه کې اسیر سره له ټولو ملګرو یې ووژل شو.

**۷ - د بشیر بن سعد انصاري سریه:** د ۷ هـ کال په شوال میاشت کې په یمن او جبار کې د میشته اعرابو په خلاف چې د غطفان قبیلې سیمه وه ۳۰۰ مسلمانان واستول شول. ددې لښکر وظیفه دا وه چې له هغې ډلې سره مقابله وکړي کومه چې د مدینې پر څنډو یې د حملې لپاره تیاري نیوله. مسلمانانو به د شپې مزل کاوه د ورځې به یې کمین نیوه، کله چې مشرکین د بشیر له راتګ نه خبر شول وتښتیدل، مسلمانانو ډیرې ولجې ونیولې، دوه کسان یې هم ورنه اسیران کړل، مدینې ته یې راوستل، او هلته دواړو اسلام راوړ.

**۸- د ابي حدرد اسلمي سریه:** ابن قیم وایي چې دا په اووم هجري کال له عمره القضاء نه مخکې کې وه. لنډیز یې داسې دی چې د جشم بن معاویه قبیلې یو سړی له ډیر شمیر لښکرو سره غابه ته راغی او غوښتل یې قیس قبیله د مسلمانانو په خلاف راوپاروي. همدا وه چې رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یې مقابلې ته ابو حدرد واستاوه، له ده سره دوه کسان وو. ابو حدرد له ډیرې حکیمانه استراتیژۍ نه کار واخیست، دښمن ته کلکه ماتې ورکړه، ډیر اوښان او پسونه یې ورنه ولجه کړل.[1]

---

[1]. زاد المعاد ۲/ ۱۴۹ – ۱۵۰ ( تفصیل لپاره رحمه للعالمین، زاد المعاد، تلقیح فهوم الاثر او مختصر سیره الرسول وګوره.

# د قضاء عمره

حاکم وايي: دا خبره په تواتر سره ثابته ده چې کله د ذي القعدې مياشت رابره شوه رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپلو اصحابو (رضي الله عنهم) ته امر وکړ چې د قضاء شوې عمرې د ادا لپاره ځانونه تيار کړي، چا چې په حديبيه کې برخه درلوده هغه ټول به ځي. همدا وه چې ټول روان شول، په حديبيې کې له ګډون کوونکو سربيره څه نور اصحاب هم د عمرې په نيت ووتل، د ټولو شميره په ښځو او ماشومانو سربيره دوه زره کسان وو.[١]

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په مدينه کې عويف ابا رهم غفاري خليفه وټاکه. شپيته څاروي يې ورسره روان کړل او ناجيه بن جندب اسلمی يې پدې وګماره چې ددې اوښانو پالنه او ساتنه وکړي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له ذي الحليفه نه احرام وتاړه، تلبيه يې ويله، مسلمانانو هم دده مبارک پيروي کوله، تلبيه ويونکي ورپسې روان وو. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د جګړې لپاره تياري نيولې وه، وسله يې ورسره اخيستې وه، ځکه د قريشو له خيانت نه يې ويره درلوده، خو کله چې ياجج نومې سيمې ته ورسيد ټولې وسلې لکه ډالونه،نيزې، غشي يې همدلته کيښودل، د اوس بن خولي انصاري تر مشرۍ لاندې يوه دوه سوه کسيزه ډله يې د وسلو په ساتنه مکلفه کړه او خپله له نورو مسلمانانو سره چې يوازې تورې ورسره وې هغه هم په تيکيو کې مخ په وړاندې لاړ.[٢]

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مکې ته د داخليدو په وخت کې په خپله قصواء نومې اوښه سپور ؤ، مسلمانان تورې په لاس د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) شاو خوا ته روان وو، ټولو تلبيه ويله او مکې ته داخل شول.

مکې ته د مسلمانانو د داخليدو په وخت کې مشرکان د کعبې شريفې شمال ته پراته قعيقعان نومي غره ته لاړل او له هغه ځای نه يې مسلمانانو ته کتل، يو بل ته يې

---

(1). فتح الباري ٧/ ٧٠٠.

(2) .نفس المصدر، زاد المعاد ١٥١/٢.

ويل چې: اوس به داسې کسان راځي چې د يثرب تبو يې زور ايستلی دی. همدا وجه وه چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له مخکې نه خپلو اصحابو (رضي الله عنهم) ته امر کړی وُ چې د طواف په لومړيو دريو دورو کې به اوږې اچوي، د قوت مظاهره دې وکړي او په چستۍ او چالاکۍ سره دې طواف ادا کړي. ددې امر حکمت دا وُ تر څو مشرکان وګوري چې مسلمانان د دوی د تصور خلاف زور او قوت لري[1]. همدا راز رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) امر کړی وُ چې د احرام په دوران کې ټول بنۍ اوږې لوڅې پريږدي او د څادر دواړه خواوې په چپې اوږې واچوي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مکې ته له هغه کنډو نه داخل شو چې لار يې حجون ته رسيده. مشرکان په ليکو ولاړ وو او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته يې کتل، چې تلبيه يې ويله راغی پخپلې نيزې سره يې حجر اسود لمس کړه، طواف يې وکړ، مسلمانانو هم طواف کاوه، عبدالله بن رواحه (رضي الله عنه) پداسې حال کې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مخې مخې ته روان وُ چې توره يې په لاس کې وه او لاندېني اشعار يې زمزمه کول:

| | |
|---|---|
| خــلوا بني المشركين عن سبيله | خــلوا فكل الخير في رسوله |
| قــد انزل الرحمن في تــتزيله | في صحف تتلى على رسوله |
| يــا رب اني مــوْمن بقيــله | اني رايت الــحق في قبــوله |
| بان خير القتــل في سبيــله | اليــوم نضربكم على تتزيله |
| ضربا يزيل الــهام عن مقيله | و يذهل الخليل عن خليله [2] |

[اې د مشرکينو زوزاته! دده لاره پريږدئ، لاره يې پريږدئ چې ټول خير د الله په رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) کې دی. رحمن رب پخپل کتاب کې نازل کړی، پداسې صحيفو کې چې دده پر رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې تلاوت کيږي. اې ربه! زه د هغه په قول ايمان لرم، او ددې خبرې منل حق بولم، چې بهترين مرګ هغه دی چې د الله په لار کې وي. نن به مونږ په تاسو د هغه کتاب مطابق ګوزارونه کوو، داسې ګوزار چې ککرۍ پرې کوي او داسې ګوزار چې دوست له دوست نه غافل او بې خبر ګرزوي.]

---

[1] صحيح البخاري ١/ ٢١٨- ٢/ ٦١١، ٦١٠ . صحيح مسلم ١/ ٤١٢

[2]. د اشعارو ترتيب مونږ پدې ترتيب برابر کړيدی، خو په کتابونو کې په مختلف ډول راوړل شويدی..

د انس (رضي الله عنه) په روایت کې راغلي چې عمر (رضي الله عنه) وویل: اې ابن رواحه! د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په وړاندې او په حرم شریف کې شعر وایې؟ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: **(خَلِّ عنه یا عمر، فلهو أسرع فیهم من نضح النبل)**.پرېږده اې عمره! پر مشرکینو ددې شعر اغیزه تر غشو هم زیاته ده.[1]

د طواف په دریو لومړیو دورو کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او مسلمانانو په قوت او چالاکۍ سره اوږې اچولې، کله چې مشرکینو پدې حالت کې ولیدل نو یو بل ته یې وویل: زمونږ خو ګمان و چې دا خلک به تبې وهلي او کمزوري شوي به وي، ګورئ دوی له هر چا نه پیاوړي او چالاک دي!![2]

په طواف پسې یې د صفا او مروه تر منځ سعي وکړه، بیا یې هغه ځای ته وکتل چیرته چې د ذبحې اوښان درول شوي وو، ویې فرمایل: **(هذا المنحر، وکل فجاج مکة منحر)**. دا د نحر (قربانۍ) ځای دی، د مکې هره کنده د نحر ځای دی. په همدې ترتیب سره یې له مروه سره خوا کې قرباني وکړه او هملته یې سر وخراوه. مسلمانانو هم د خپل رهبر پوره متابعت او پیروي کوله. بیایې یوه ډله خلک یاجج ته ولیږل تر څو هلته د وسلې ساتنه وکړي، او په هغه ځای کې توظیف شوي خلک مکې ته راشي او خپل د عمرې مناسک ادا کړي.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) درې ورځې په مکه کې پاتې شو، په څلورمه ورځ سهار مشرکین ورته راغلل، او اصحابو (رضي الله عنهم) ته یې وویل: خپل رهبر ته وواياست چې وخت مو پوره شوی. همدا وه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له مکې نه وخوځید او لاړ په سرف نومې سیمه کې یې واړول.

هغه وخت چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له مکې نه روان شو د حمزه (رضي الله عنه) لور ورپسې را روانه شوه چیغې یې پسې وهلې اې زما کاکا! اې کاکا! علي (رضي الله عنه) په غیږ کې راونیوله. بیا د علي، جعفر او زید (رضي الله عنهم) تر مینځ وربانددې دعوه شوه، هر یوه غوښتل چې له ځان سره یې بوزي او کفالت بې په غاړه واخلي، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) داسې فیصله او

---

[1]. الترمذي، ابواب الاستئذان والادب، باب ما جاء في انشاد الشعر ۱۰۷/۲.

(2). مسلم ۱/ ۴۱۲.

امر يې وکړ چې دا نجلۍ به له جعفر (رضي الله عنه) سره وي ځکه چې نجلۍ خاله د جعفر (رضي الله عنه) ښځه وه.

په همدې سفر کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له میمونه بنت حارث عامریه (رضي الله عنها) سره واده وکړ. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مکې ته له داخلیدو نه مخکې جعفر بن ابي طالب (رضي الله عنه) حضرت میمونه (رضي الله عنها) ته ورلیږلی ؤ، هغې خپل صلاحیت او اختیار عباس (رضي الله عنه) ته سپارلی ؤ، ځکه خور يې ام الفضل (رضي الله عنها) د حضرت عباس (رضي الله عنه) ښځه وه. عباس (رضي الله عنه) فیصله وکړه چې میمونه (رضي الله عنها) رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته نکاح کړي. او کله چې له مکې نه روان شو نو ابو رافع ته يې وظیفه ورکړه چې میمونه (رضي الله عنها) ورته راولي، همدا وه چې نکاح وشوه او په سرف سیمه کې مبارک واده تر سره شو[١].

دغې عمرې ته ځکه د قضاء عمره وايي چې دا د حدیبیې د عمرې قضاء و او یا دا چې دا عمره د حدیبیې د سولې د تړون او مصالحې چې په عربي کې ورته قضا او مقاضاه ویل کیږي، مطابق ترسره شوه، زیاترو همدا دوهمه وجه تایید کړیده[٢] ددې عمرې څلور نومونه دي: قضاء، قضیه، قصاص او صلح[٣].

## لدې عمرې نه وروسته څو نورې سریې

**١- د ابن ابي عوجاء سریه:** د ٧ ه کال په ذي الحجه میاشت کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ابن ابي عوجاء د **٥٠** کسانو په مشرۍ بني سلیم ته ولیږه، تر څو هغوی اسلام ته راوبولي. هغوی په ځواب کې ورته وویل: مونږ اسلام ته ضرورت نلرو، په نتیجه کې سخته جګړه وشوه، ابو عوجاء ټپي شو، او له دښمن نه دوه کسان په اسارت ونیول شول.

**٢- د غالب بن عبدالله سریه:** د ٧ هجري کال په صفر میاشت کې غالب بن عبدالله د **٢٠٠** کسانو په مشرۍ د فدک هغې سیمې ته واستول شو چیرته چې د بشیر

---

[١]. زاد المعاد ٢/ ١٥٢ .
[٢]. زاد المعاد – ١/ ١٧٢ فتح الباری ٧/ ٥٠٠ .
[٣]. فتح الباري ٧/٥٠٠.

بـن سـعد ملګـري پـه شـهادت رسـيدلي وو. دوی د دښمـن څـه افـراد ووژل او يـو شـمير حيوانات يې ورنه ولجه کړل.

**۳- د ذات اطلـح سـريه:** د آتـم هجـري پـه ربيـع الاول مياشـت کې بنـو قضـاعه پـر مسلمانانو د بريد لپاره زيات شمير کسان راغونډ کړي وو. رسـول الله (صلی الله عليـه و الـه و صـحبه و سـلم) د کعـب بـن عميـر انصـاري پـه مشـری (**۱۵**) کسـان ورواسـتول. هغوی له دښمن سره له مخامخ کيدو وروسته لومړی د اسلام بلنه ورکړه، خو هغـوی د دوی دعوت ونه مانه، جګړه پيل شوه په نتيجه کې ټول مسلمانان په شهادت ورسيدل، يوازې يو کس د شهيدانو له مينځ نه ژوندی راووت او يا را وايستل شو او بس.[۱]

**۴- د ذات عرق سريه:** د ۸ هـ کال په ربيع الاول مياشت کې د بنو هـوازن پـه خلاف وه. بني هوازن به وخت نا وخت د مسلمانانو له دښمنانو سره مـرستې کـولې، همـدا وه چې رسول الله (صلی الله عليه و الـه و صـحبه و سـلم) شـجاع بـن وهـب اسـدي لـه **۲۵** کسـانو سره د دوی مقابلې ته واستاوه، هغوی لاړل او له دښمنانو نـه يـې زيـات څـاروي ولجه کړل او سالم بيرته راستانه شول.[۲]

---

[1]. رحمه للعالمين ۲۳۱/۲

(2). رحمه للعالمين، تلقيح فهوم اهل الاثر لابن الجوزي ص ۳۳

# د موته جګړه

د موته جګړه تر ټولو سخته او خونړۍ جګړه ده چې مسلمانانو د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په ژوند کې کړيده. همدا جګړه د نصرانيانو د سيمو او هيوادونو د فتحې او نيولو پيلامه وه. داجګړه د ۸ هـ کال په جمادي الاولی چې د ۶۲۹ کال د سپتمبر يا اګست مياشتې سره سمون خوري واقع شويده.
موته چې د ميم په پيښ او همزه په سکون ويل کيږي د شام په لاندينۍ برخه بلقاء کې پرته يوه سيمه ده چې له بيت المقدس نه ډيره فاصله نلري تقريبا دوه منزله ورنه ليرې ده.

## د جګړې سبب

ددې جګړې سبب دا دی چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د حارث بن عمير ازدي په لاس د بصری واکمن ته ليک واستاوه. د لارې په اوږدو کې د قيصر له لوري د شام د بلقاء حاکم شرحبيل بن عمرو غساني لاره ورته ونيوه، هغه يې ونيو او بيا يې په شهادت ورساوه.
د سفيرانو وژل نه يوازې ډ ير لوی جرم بلکه د جنګ د اعلان په معنی وُ. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پدې سره ډير په غوسه شو فوراً يې درې زره کسيز لښکر تيار کړ.[1] چې له احزاب غزا نه پرته په هيڅ يوه غزا کې همدومره زيات شمير غازيانو برخه نه ده اخيستې.

## د لښکر مشران او د رسول الله (ﷺ) لارښوونې

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ددې لښکر مشري زيد بن حارثه (رضي الله عنه) ته وسپارله، او ويې فرمايل : (**إن قتل زيد فجعفر، وإن قتل جعفر فعبد الله**

[1] زاد المعاد ۲. ۱۵۵ فتح الباري ۷ / ۵۱۱ .

بن رواحة). كه زيد شهيد شو، نو په ځاى به يې جعفر (رضي الله عنه) قوماندان وي، كه هغه هم شهيد شو، نو عبدالله بن رواحه به دغه دنده په غاړه اخلي[1]. دوى ته يې سپينه جنډه ورکړه چې زيد بن حارثه ته يې وسپارله.[2]

رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) لښكر او مشرانو ته يې هدايت وكړ چې لومړى به د حارث بن عمير د شهادت ځاى ته ورشي، له همغه ځاى نه به خلک اسلام ته راوبولي، كه اسلام يې راووړ نو ښه او كه نه نو د الله په توكل سره به بريد ورباندې وكړي. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: (**اغزوا بسم الله، في سبيل الله، مَنْ كفر بالله، لا تغدروا، ولا تغلوا، ولا تقتلوا وليداً ولا امرأة، ولا كبيراً فانياً، ولا منعزلاً بصومعة، ولا تقطعوا نخلاً ولا شجرة، ولا تهدموا بناء**). د الله په نامه سره د الله په لار كې د كفارو په خلاف وجنګيږئ، غدر او خيانت مه كوئ، عهد مه ماتوئ، واړه، ښځې، زاړه او په عبادت بوخت راهبان مه وژنئ، ونې او بوټي مه پرې كوئ، كلي او كورونه مه ورانوئ. [3]

## له لښكر سره په مخه ښه او د عبدالله بن رواحه (رضي الله عنه) ژړا

لښكر تيار شو، خلک راټول شول، د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) له خوا ټاكل شويو قوماندانانو سره يې په مخه ښه وكړه. پدې وخت كې عبدالله بن رواحه (رضي الله عنه) خپلى ا وښكې كنترول نه شواى كړى، پــه ژړ ا شـــو. سوال ورنه وشو ولې ژاړې؟ عبدالله وويل: قسم په خداى په دنيا پسې نه ژاړم، لـه تـــا سې نه د جدايي په سبب هم ژړا نه كوم. د ژړا سبب مې دا دى چې ما لـه رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه د قرآنكريم تلاوت اوريدلى چې پـه يـوه آيت كې يې د دوزخ ياد راغلى او داسې فرمايي: ((**وَإِنْ مِنْكُمْ إِلاَّ وَارِدُهَا كَانَ عَلَى رَبِّكَ حَتْماً مَقْضِيّاً**)) (مريم: ٧١) [د تاسې هر يو به دوزخ ته داخليږي، دا د الله حكم او فيصله ده.] نه پوهيږم چې يو ځل دې اورته داخل شم بيا به څنګه ور نه وزم؟ مسلمانانو ورته وويل: الله تعالى مو مل شه. الله مو ساتندوى شه، الله مو بيرته سالم او غانم راوله. په ځواب

[1]. صحيح البخاري باب غزوه موته من ارض الشام ٢/ ٦١١ .
[2]. مختصر سيره الرسول للشيخ عبد الله النجدي ص ٣٢٧ .
[3].نفس المصدر، رحمه للعالمين ٢/ ٢٧١ .

کې عبدالله بن رواحه (رضي الله عنه) دا شعر ووایه.

**لکنني اســـال الرحمن مغفرة وضربة ذات فرغ تقذف الزبدا**

**او طعنة بيدي حران مجهزة بحربة تنفذ الاحشاء و الكبدا**

**حتى يقال اذا مروا على جدثي ارشده الله من غاز و قد رشدا**

[خو زه له رحمن رب نه د مغفرت سوال کوم، ورنه غواړم چې هډوکي ماتونکی او ماغزه شیندونکی ګوزار مې په برخه کړي، یا د داسې نیزه باز د لاس ګوزار غواړم چې ینه او کولمې مې پرې کړي، تر څو چې کله مې خلک په قبر تیریږي نو وایې دا د هغه غازي قبر دی چې الله هدایت ورته کړی او په نیغه لاره برابر وُ.

پدې پسې لښکر روان شو، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپله تر وداع نـــومې غونډۍ پورې ورسره ملګرې ؤ هلته ودرید او په مخه ښه یې ورته وویله.[1]

## اسلامي لښکر او ترینګلي حالات

د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د اصحابو (رضي الله عنهم) دا لښکر روان شو، د شمال په لور تر معان پورې مخکې لاړ، دغه سیمه له شمالي حجاز سره خوا کې پرته ده. هلته استخباراتو خبر ورته راوړ چې هرقل د بلقاء په مآب نومې منطقه کې له یو لک لښکر سره ځای په ځای شویدی، او یو لک نور کسان د نورو قبایلو لکه لخم، جذام، بلقین، بهراء او یلي هم ورسره یو ځای شویدی.

## په معان کې مشورتي غونډه

مسلمانانو له دومره لوی لښکر سره د مقابلې لپاره تیاري نه درلوده، هغوی ته دا حالت ناڅاپي او نابېره پیښ شوی ؤ حیران وو چې دا درې زره کسیز لښکر به څه ډول پر دوه لکه لښکر باندې حمله کوي؟ دوه ورځې په معان کې پاتې شول، مشورې یې کولې، یو ځل یې وویل: راځئ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته لیک ولیږو د ښمن د لښکر په هکله خبر ورکړو، هغه به یا نور کسان راولیږي، او یا به بل څه هدایت راکړي چې مونږ به یې عملي کړو.

---

[1]. ابن هشام ۳۷۳/۲ ، ۳۷۴ . زادالمعاد ۱۵۶/۲. مختصر سیره الرسول للشیخ النجدي ص ۳۲۷ .

عبدالله بن رواحه (رضي الله عنه) ددې نظريې مخالفت وکړ، خلک يې وهڅول ويې ويل: اې ملګرو! تاسې چې له څه نه ويره لرئ هغه هماغه شهادت دی چې په لټه کې يې تردې ځايه راغلي ياست، جګړه خو د افرادو په ډېرښت او قوت نده، مونږ خو له دښمنانو سره په ځواک او ډېرښت نه جنګيږو بلکه مونږ په هغه دين ورسره جنګيږو چې الله تعالی عزت پرې راکړئ، توکل په خدای وکړئ، ملاوې وتړئ، يا به بريالي شئ او يا به مو شهادت په برخه شي! په پای کې ټولو همدا د عبدالله (رضي الله عنه) رايه ومنله او د مقابلې فيصله يې وکړه.

## اسلامي لښکر پر دښمن ناتار جوړوي

اسلامي لښکر دوې ورځې په معان کې پاتې شو، وروسته د دښمن په لور وخوځيد، او د بلقاء سيمې په مشارف نومي کلي کې د هرقل له سپاپانو سره مخ شو. دښمن مخکې راغی، مسلمانان د موته خوا ته کاږه شول او هلته يې سنګر ونيو، د جګړې تياري يې ونيوله، د ميمنې (ښي اړخ) مشري يې قطبه بن قتاده عذري او د کيڼې خوا قومانده يې عباده بن مالک انصاري ته ورکړه.

## د جګړې پيل او اتلو مجاهدينو شهادت

په موته کې دواړې لښکرې سره مخامخ شوې، سخت جنګ ونښت، دری زره مسلمانانو د دوه لکو جګړه مارانو مقابله کوله. عجيبه صحنه او سخته جګړه وه، خو د ايمان قوت تاريخونه جوړوي جنډه د زيد بن حارثه (رضي الله عنه) په لاس کې وه، په ډېره ميړانه جنګيده، تر هغې پورې يې پر دښمن حملې کولې تر څو د دښمن په نيزو سره سوری سوری شو او د شهادت جام يې په سر واړاوه.

پده پسې جعفر بن ابي طالب (رضي الله عنه) جنډه پورته کړه، په بې ساري توګه جنګيده، کله چې جګړه ډېره تنده شوه، ستړی شو، نو له خپل سره تور بخون آس نه کوز شو د هغه پښې يې ووهلې جګړې ته يې ادامه ورکړه تر څو ښی لاس يې پرې شو، جنډه يې په چپ لاس کې ونيوه، همداسې جنګيده تر څو چپ لاس يې هم پرې شو، بيا يې جنډه په دواړو مټو په غيږ کې ونيوه او همداسې اوچته يې نيولې وه تر څو په شهادت ورسيد. په يوه روايت کې راغلي چې يوه رومي داسې ګوزار پرې وکړ چې په نيمايي سره دوې ټوټې شو. الله تعالی دده د دواړو لاسونو په بدل کې په جنت کې دوه

وزرونه ورکړل، چیرته یې چې زړه وې هلته پرې الوزي او همدا وجه ده چې په جعفر طیار یا جعفر ذي جناحین سره شهرت لري. امام بخاري له نافع نه روایت کوي چې ابن عمر (رضي الله عنهما) ورته ویلي چې د جعفر (رضي الله عنه) له شهادت نه وروسته زه دده جسد ته ودریدم، پنځوس د نیزو، تورو او غشو ټپونه یې خوړلي وُو، یو ټپ یې هم په شا نه وُ لګیدلی ټول یې په مخ او سینه خوړلي وو.(۱)

په بل روایت کې راځي چې ابن عمر (رضي الله عنهما) وایي: زه پدې غزا کې حاضر وم، د جعفر (رضي الله عنه) په لټون کې وو چې د شهیدانو په مینځ کې مو وموند ،ومو لیدل چې له نوي (۹۰) نه زیات د تورې، نیزې او غشو ګوزارونه یې خوړلي دي.(۲)

او له نافع نه د العمري په روایت کې دا هم شته چې دا ټول ټپونه یې په سینه وو.(۳)

کله چې جعفر بن ابي طالب (رضي الله عنه) لدې بې ساري او اتلانه جګړې نه وروسته په شهادت ورسید، نو جنډه عبدالله بن رواحه (رضي الله عنه) پورته کړه، پخپل آس سپور وُ، د دښمن په لور ورغی. د حملې تیاري یې کوله پدې وخت کې څه متردد غوندې شو، آس یې لږ کوږ هم شو، خو فوراً یې دا شعر ووایه:

| | |
|---|---|
| اقســـمت یـــا نفس لتنزلنه | كـــارهة او لتـــطاوعنه |
| ان اجلب الناس وشدوا الرنه | مالي اراك تكرهين الجنه |

[اې نفسه! قسم دی چې حتماً به مقابلې ته وردانګې، په خفګان وي که په خوشالۍ دا به کیږي، که خلکو جنګ پیل کړی او نیزې یې نیولې دي نو زه ولې تا له جنت نه په تیښته کې وینم؟]

بیایې د مقابلې میدان ته وردانګل، پدې وخت کې یې د تره زوی یو له غوښې ډک هډوکی ورته راوړ، ورته وېې ویل دا واخله او ځان څه ناڅه ورباندې تقویه کړه، دا څو ورځې خو ډیر کړیدلی یې! ورنه وایې خیست یو کپ یې ورنه وکړ نور یې ایسته واچاوه، توره یې واخیستله په جګړه یې پیل وکړ او د ژوند تر وروستۍ لحظې پورې په پوره میړانه وجنګید ترڅو په شهادت ورسید.

---

(1). بخاري ۲ / ۶۱۱

(2). بخاري ۲/ ۶۱۱

(3). فتح الباري ۵۱۲/۷ . لدې احادیثو نه په ظاهر دا معلومیږي چې دواړه یې د ټپونو په هکله اختلاف لر، خو دا داسې جمع کیدلی شي چې د ټپونو زیاتوالی یې د غشو د لګیدو له امله یاد شویدی.

## اسلامي جنډه د سیف الله په لاس کې

پدې وخت کې د بني عجلان قبیلې یو کس چې ثابت بن ارقم نومیده رامخې ته شو، جنډه یې پورته کړه، غږ یې وکړ، اې مسلمانانو! یو کس خپل مشر وټاکئ. دوی ورته وویل: همدا ته مو مشر. ده وویل نه، زه دا کار نه کوم، بالاخره ټول په خالد بن ولید (رضي الله عنه) باندې راضي او سلا شول. خالد (رضي الله عنه) جنډه پورته کړه سخته جګړه یې وکړه. بخاري ورنه روایت کوي چې وایي: د موته په ورځ زما په لاس کې نهه (۹) توري ماتې شوې، په پای کې یوازې یوه یماني وره غونډې توره راسره پاتې شوه. په بل لفظ کې راځي چې وایي: د موته په ورځ مې نهه (۹) توري په لاس کې کړې شوې یوازې زما یمني توري تاب راوړ او راسره پاتې شوه.[۱]

د موته په ورځ مخکې لدینه چې څه خبر راشي رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته د وحي په واسطه خبر ورکړ شو او هغه داسې وفرمایل: (**أخذ الراية زيد فأصيب، ثم أخذ جعفر فأصيب، ثم أخذ ابن رواحة فأصيب ـــ وعيناه تذرفان ـــ حتى أخذ الراية سيف من سيوف الله، حتى فتح الله عليهم**).د جګړې په میدان کې زید په شهادت ورسید، بیا جنډه جعفر پورته کړه هغه هم شهید شو، بیا عبدالله بن رواحه جنډه پورته کړه هغه هم په شهادت ورسید. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دا خبرې کولې او له مبارکو سترګو نه یې اوښکې روانې وې، زیاته یې کړه بیا جنډه سیف الله پورته کړه او د همده په لاس د مسلمانانو بری په برخه شو.[۲]

## د جګړې پای

که څه هم مسلمانانو بې ساري مقاومت کاوه، او په بې ساري میړانه جنګیدل، خو بیا هم دا تصور کمزوری ښکاریده چې بری به هم د دوی په برخه وي، ځکه د دښمن په مقابله کې د دوی شمیر ډیر کم او وسایل یې هم لږ وو، خو خالد بن ولید (رضي الله عنه) خپل مهارت او حکمت په کار واچاوه او مسلمانانو ته یې نجات ورکړ.

---

(1). صحیح بخاري باب غزوه موته من ارض الشام۲/ ۶۱۱

(2). صحیح بخاري ۲/ ۶۱۱ -۳. نفس المصدر ٦١١/٢ .

ددې جګړې د پايلې په اړه مختلف روايتونه راغلي دي، له صحيح روايتو نه دا څرګندېږي چې خالد (رضي الله عنه) ټوله ورځ د دښمن مقابله وکړه، خو دا يې ضروري ګڼله چې بايد له يوې کاميابې استراتيژۍ نه ګټه واخيستله شي تر څو مسلمانان نجات ومومي او مشرکين داسې وويرول شي چې د مسلمانانو د تعقيب جرات ونه شي کړی، ځکه هغه پوهيده که چېرې مسلمانان د عقب نشينۍ په وخت کې د دوی تر ګوزار لاندې راشي نو بيا به يې ژغورل ممکن نه وي. همدا وه چې د جګړې په دوهمه ورځ يې جنګي استراتيژي بدله کړه، د لښکر ترتيب يې بدل کړ، له سره يې ځايونه ورته وټاکل، مقدمه يې د ساقې په ځای ودروله او ميمنه يې د ميسرې په ځای او ميسره د ميمنې په ځای توظيف کړه،کله چې د دښمن له لښکرو سره مخامخ شول نو دکفارو ټوليو هر يوه له خپل مخ سره نوي کسان وليدل، فکر وکړ لکه چيګ مدد او کومک ورته راغلی دی، يو ځل يې په زړونو کې ويره پيدا شوه، دښمنان د ويرې او تشويش په حالت کې وو چې خالد (رضي الله عنه) د ورو ورو عقب نشينۍ يا په شاتګ امر وکړ. دوی داسې په شاتګ کاوه چې د لښکر په تنظيم کې هيڅ بدلون نه ليدل کېده روميان هم نه ورپسې راتلل ځکه هغوی دا ګمان کاوه لکه چې مسلمانان چل ورسره کوي غواړي روميان د صحرا په لوري بوزي او هلته يې حساب تصفيه کړي.
پدې ترتيب سره دښمن په شا شو، او د مسلمانانو په تعقيب پسې يې هيڅ هڅه ونکړه، او مسلمانان پدې وتوانيدل چې روغ رمټ مدينې ته ستانه شي.[1]

## د دوارو خواوو مړي

پدې جګړه کې ۱۲ مسلمانان په شهادت ورسيدل، د کفارو د مړيو شميره پوره نده معلومه خو داسې ښکاري چې له هغوی نه به زيات کسان وژل شوي وي.

## د جګړې اغيزې

که څه هم مسلمانانو لدې جګړې نه مطلوب هدف تر لاسه نه شوای کړای او خپل کسات يې وا نه شوی اخيستلی، خو بيا يې هم د دوی لپاره ګټورې اغيزې درلودې. پدې سره ټول عرب ويرې او ډار ونيول، د مسلمانانو رعب پرې ولويد، هغه وخت روميان زبر ځواک وو او عربانو ګمان کاوه چې لدوی سره ټکر يعنې بربادي او خودکشي، نو پدې جګړې سره دا ګمان هم غلط ثابت شو.

---

[1]. فتح الباري ۷/ ۵۱۳. زاد المعاد ۲/ ۱۵۶ .

لـه دوه لکـه عسـکرو سره د درې زره مسـلمانو سـپايانو مقابلـه داسـې يـوه بې سـاري مقابلـه وه چـې د تـاريخ لـه عجـايبو نـه شـميرل کيـږي. دې جګـړې دا ثابتـه کـړه چـې مسلمانان هسې ندي لکه څرنګه چې عربانو او روميانو تصور کاوه، له دوی سره د الله تعالی مرستې دي. همدا وجه وه چې ددې جګړې نـه وروسـته ډيـرې سر کشـې قبيلـې اسـلام تـه سـلامي شـوې، بنـو سـليم، اشـجع، غطفـان، فـزاره او ذبيـان قبيلـې پـه اسـلام مشرفې شوې.

همدغه جګړه له بـلې خوا له روميانو سره د لويو خونړيو جګړو پيلامـه وه، او پـه پـای کې د همدې جګړې له برکته د روميانو ډير ښارونه فتح شول.

## د ذات السلاسل سريه

کلـه چې رسـول الله (صلی الله عليـه و الـه و صحبه و سلم) د شـام پـه غـاړو کې د پرتـو عربي قبايلو په اهدافو او دريـځ پـوه شـو او ويـې ليـدل چې دغـه قبيلـې پـه جګـړه کې د مسلمانانو په خلاف د روميانو خواته ودريدلې، نو دا ضروري ورته ښکاره شوه چې د روميـانو او دې عربـانو تـر ميـنځ بيلتـون راوسـتل شـي تـر څـو پـه راتلـونکې کـې د مسلمانانو په خلاف دومره لوی ائتلاف جوړ نه شي.

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ددې کار د عملي کولو لپـاره عمـرو بـن العاص غوره کړ، ځکه د ده انا يعنې د پلار مور له "بلي" قبيلې څخه وه. د ۸ ه کـال پـه جمادي الاخره کې يې دوی ته واستاوه تر څو همکاري يې ترلاسه کړي. پـه يـوه روايت کې خو لا دا راځي چې دوی ته خبر را ورسيد چې د قضاعه قبيلې خلک راټول شـوي او د مدينې په لور راتلل غـواړي، نـو رسـول الله (صلی الله عليـه و الـه و صحبه و سلم) عمرو ته وظيفه ورکړه چې هغـوی تـه ورشـي او خبرې ورسره وکـړي. کيـدای شـي همـدا دواړه سببونه سره يو ځای شوي وي.

رسول الله (صلی الله عليـه و الـه و صحبه و سلم) عمـرو بـن العـاص (رضـي الله عنـه) تـه سپينه جنډه ورکـړه، يـوه بلـه يـې تـوره هـم ورسـره ورکـړه، درې سـوه مخـور مهـاجرين او انصار يې دده تـر قومانـدې لانـدې ورکـړل. لـه دوی سـره ديـرش آسـونه هـم وو. امـر يـې ورته وکړ چې له بلي، عذره او بلقين قبيلـو نـه مرسـته وغـواړي. عمـرو (رضـي الله عنـه) روان شو د شپې به يې مزل کاوه او د ورځې له مخې بـه يـې چيرتـه کمـين نيـوه، او کلـه چې هغوی ته ورلنډ شو نو خبر شو چې د دښمن شميره ډيره زياتـه ده. رسـول الله (صلی

الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته يې د رافع بن مکيث جهيني په لاس احوال وليږه، او د نورې مرستې غوښتنه يې ورنه وکړه. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په ځواب کې ابو عبيده بن الجراح (رضي الله عنه) له دوو سوو کسانو سره د هغه مرستې ته ورولېږه، جنډه يې ورکړه. پدې ډله کې مشهور اصحاب لکه ابوبکر او عمر هم شامل وو، دوی ته يې امر وکړ چې لاړ شي او له عمرو سره يو ځای شي. دواړه به يو موټی وي، اختلاف به نه کوي. کله چې دوی هلته ورسيدل ابو عبيده اراده وکړه چې په لمانځه کې د خلکو امامت وکړي، خو عمرو (رضي الله عنه) ورته وويل: چې امير زه يم، ته خو مې مرستې ته راغلی يې. همدا وه چې ابو عبيده (رضي الله عنه) هم دده خبر ومنله، اطاعت يې ورنه وکړ، او عمرو به په لمانځه کې د خلکو امامت کاوه. اسلامي لښکر د قضاعه تر سيمې پورې مخکې لاړ، د هغوی د سيمې ليرې ليرې ځايونو ته ورغلل، هلته له يو شمير کسانو سره مخ شول، بريد يې وروباندې وکړ خو د دښمن ټول افراد وتښتيدل او تيت و پرک شول. وروسته عمرو بن العاص عوف بن مالک اشجعي له خپل اړخه رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته له مکمل احوال سره ولېږه، او هغه يې پخپل بري او په ټولو تفصيلاتو آګاه کړ.

ذات السلاسل د لومړني سين په پيښې يا زور سره لوستل کيږي، دا د يوې سيمې نوم دی چې د قری وادي شا ته او له مدينې نه د لسو ورځو مزل په اندازه ليرې پرته ده. ابن اسحاق وايي چې مسلمانانو د جذام په سيمه کې له سلسل نومې چينې سره واړول او له همدې کبله دې ځګړې ته ذات السلاسل وايي.[١]

## د ابو قتاده سريه

دا د ۸ هـ کال د شعبان په مياشت کې وه، سبب يې دا ؤ چې بني غطفان په خضره نومې سيمه کې چې په نجد کې پرته او په محارب قبيلې پورې مربوطه وه را ټول شوي وو، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د هغوی مقابلې ته اباقتاده (رضي الله عنه) له (۱۵) کسانو سره واستاوه. دوی لاړل له دښمن نه يې يو شمير کسان ووژل، څه يې ورنه اسيران کړل، ولجې يې لاسته راوړلې. او له پنځلسو ورځو سفر نه وروسته بيرته ستانه شول.[٢]

---

(1). ابن هشام ۲/ ۶۲۳ تر ۶۲۶ – زاد المعاد ۲/ ۱۵۷

(٢). رحمه للعالمين ۲/ ۲۴۴. تلقيح فهوم اهل الاثر ص ۳۳.

# د مکې فتحه

ابن قیم وایي: د مکې فتحه هغه لویه سوبه ده چې الله تعالی د خپل دین، رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او مؤمنو بندګانو د عزت او له کفارو او مشرکانو نه د خپلې خونې او وطن د آزادۍ سبب وګرزوله. دا هغه سوبه ده چې د آسمان اوسیدونکي پرې خوښ شول، د عزت د څلي څوکه يې پاس له آسمان سره ولګیده ، له برکته یې ډلې ډلې، خلک په اسلام مشرف شول، او د ځمکې مخ یې په نور روښانه او سوکالــه کړ.[۱]

## د غزا سبب

مخکې مو وویل چې د حدیبیې د سولې یوه ماده دا وه چې عربي قبایل اجازه لري، کولې شي پخپله خوښه له محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او یا قریشو سره تړون او ائتلاف وکړي، له تړون نه وروسته همدا قبیله د همغه اړخ یوه برخه بلل کیږي، او تیری وربانديې د سولې له تړون نه مخالفت او پر همغه بله ډله تیری شمیرل کیږي.د همدې مادې په اساس خزاعه له محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او بنوبکر له قریشو سره تړون او ائتلاف لاسلیک کړ، او پدې ترتیب دا دواړه قبیلې یوه د بلې له تیري او جګړې نه په امن شوه. د دوی تر منځ زړه دښمني وه چې د اسلام له برکته يې تر مینځ اوربند وشو. پدې وخت کې بنوبکر یو ځل بیا د کسات په فکر کې شول. د ۸ هـ کال د شعبان په میاشت کې نوفل بن معاویه د یلي د بنوبکر له یو شمیر کسانو سره د شپې له مخې پر خزاعه باندې شبخون وکړ، له "وتیر" نومې چینې سره یې د هغوی یو شمیر کسان ورووژل، او پدې ترتیب د جګړې اوربل شو. د جګړې په جریان کې قریشو له بنوبکر سره مرسته وکړه، وسلې یې ورکړې، د شپې یې څه جنګیالان هم ور واستول په نتیجه کې بنو خزاعه مجبور شول حرم ته پناه یوسي.

هلته د بنوبکر خلکو نوفل ته وویل: دا دی مونږ حرم ته داخل شوو، د خدای روی ومنه، د خپل رب حرمت وساته وویریږه! خو نوفل ډیره غټه او د کفر خبره وکړه ویې

---

[1]. زاد المعاد ۲/ ۱۶۰

ویل: اې بنوبکر! نن اله "خدای" نشته، خپل وار او کسات واخلئ، قسم چې تاسې په حرم کې د ننه غلا کوئ، نو خپل انتقام ولې نه پکې اخلئ؟
خزاعه چې مکې ته پناه یووړه هلته یې د بدیل بن ورقاء خزاعي او خپل مولی (ملګري) رافع کورته مخه کړه، هلته ننوتل. عمرو بن سالم خزاعي په منډه رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ورغی، مدینې ته لـه رسیدو وروسته د رسول الله (صلی الله علیـه و الـه و صـحبه و سـلم) پـه حضـور کـې ودریـد ، هغـه (صـلی الله علیـه و الـه و صحبه و سلم) له اصحابو (رضي الله عنهم) سره په جومات کې تشریف درلود ، عمرو دا شعرونه ورته وویل:

یـــا رب اني ناشـــد محمدا — حلفنا و حـــلف ابیه الاتلدا
قدکنتم ولدا و کـــنا والدا — ثـــمة اسلمنا ولم نـــترغ یدا
فانصر هداك الله نصرا ایدا — وادع عبـــادالله یـــاتوا مددا
فیـــهم رسول الله قد تجردا — ابیض مثل البدر یسمو صعدا
ان سیم خسفا وجهه تر بدا — في فیلق کالبحریجري مزبـــدا
ان قریشـــا اخلفوك الموعدا — و نقضـــوا میثاقـــك الموکدا
و جعلوا لي في کداء رصدا — و زعموا ان لست ادعو احدا
و هم اذل، و اقـــل عددا — هم بیـــتونا بالـــوتیر هـــجدا

و قتلـــونا رکعـــا و ســـجدا

[اې ربـه! زه محمـد (صـلی الله علیـه و الـه و صـحبه و سـلم) تـه دده عهـد او دده د پـلار پخوانی عهد وریادوم، تـــا سې اولادونه وئ او مونږ پلرونه وو (دا ځکـــه د قصي ښځه چې د عید مناف مور وه او حبی نومیدله له بنو خزاعه قبیلې څخه وه نو بنو خزاعـه د بني مطلب ماماخیل کیدل). بیـا مونـږ ستاسې اطاعـت وکـړ او هیـڅ سرغړونه مـو نـده کړی، الله دې تاسې ته هدایت وکړي، کلک مدد مو وکړئ، خلک هم مدد او مرستې ته راوغواړه هغوی مرستې تـه راځـي د دوی پـه مینـځ کـې وسله پـه لاس د سپوږمۍ پـه شان سپین او ګلالی رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دی چې د کمال په لور

اوچتيږي. که پر هغوی ظلم وشي په سپکه ورته وکتل شي نو د مخ يې رنګ يې بدل شي، او د خروشان سمندر په شان د لښکر په منځ کې تشريف راوړي، په رښتيا سره چې قريشو ستاسې د عهد مخالفت کړيدی، او کلک تړون يې مات کړيدی هغوی ما ته په کداء کې کنده او کمين نيولی و، او ګمان يې کاوه چې زه به څوک خبر نه شم کړای پداسې حال کې چې هغوی ډير کم، ذليل او خوار دي. هغوی "وتير" کې پر مونږ حمله وکړه او مونږ يې د رکوع او سجدې په حالت کې ووژلو.]

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په ځواب کې ورته وفرمايل: (**نصرت يا عمرو بن سالم**). اې عمرو بن سالم! ستا سره مرسته وشوه. پدې پسې په آسمان کې يوه ټوکره وريځ راښکاره شوه، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**إن هذه السحابة لتستهل بنصر بني كعب**). دې وريځې د بنو کعب د بري زيری راوړی. بيا بديل بن ورقاء خزاعی د خپلې قبيلې له څو کسانو سره ووت، روان شو او ځان يې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ورساوه، له حالاتو يې خبر کړ، دا يې ورته وويل چې له دوی نه څو کسان مړه شوي او قريشو پدې جګړه کې د بنو بکر مرسته کړې، دا احوال يې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ورساوه او بيرته مکې ته ستون شو.

## ابوسفيان د تړون د تجديد هڅه کوي

قريشو چې څه وکړل هغه له تړون نه څرګنده خلاف ورزي، لوی غدر او خيانت وُ، ددې خيانت لپاره يې هيڅ دليل او بهانه نه درلوده. همدا وه چې هغوی هم ډير ژر پخپل غدر پوه شول. د وضعې نزاکت يې درک کړ، مشورتي شوری يې راوبلله. غونډې فيصله وکړه چې ابو سفيان مدينې ته لاړ شي او هلته له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره تړون نوی او تجديد کړي.

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له مخکې نه خپلو اصحابو (رضي الله عنهم) ته ويلي وو چې قريش به له خپل غدر او خيانت نه وروسته څه ډول اقدام کوي؟ هغه (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) فرمايلي وو: (**كأنكم بأبي سفيان قد جاءكم ليشد العَقْدَ، ويزيد في المدة**). کيدای شي ابو سفيان د تړون د نوي کيدو او مودې د تمديد لپاره درته راشي. ابو سفيان د قريشو د فيصلې مطابق روان شو، په عسفان سيمه کې له بديل بن ورقاء سره مخ شو چې له مدينې نه مکې ته روان وُ. ګمان يې وکړ

لکه چې رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ورغلی، نو ورته ويې ويل: بديله! له کوم ځای نه ر ا غلی ؟ هغه ورته وويل: له خزاعه سره پدې دره او دې ساحل کې وګرزيدم. ابو سفيان ورته وويل: د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضورته نه وې ورغلی؟ ده ورته وويل: نه. بديل چې مکې ته لاړ ابو سفيان وويل: که مدينې ته تللی وي نو اوښې ته به يې (نوی) يعنې د خرما د دانو کنجاړه ورکړې وي، لاړ او د بديل د ا وښې ځای يې وکوت، پچه يې راوخيستله او ماته يې کړه ويې ليدل چې د خرماوو د دانو اثار پکې شته، دا يې چې وليده نو ويې ويل قسم په خدای چې بديل د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته ورغلی دی.

په هر حال ابوسفيان مدينې ته ورسيد ، د خپلې لور ام حبيبه (رضي الله عنها) کورته ورغی، هلته يې اراده وکړه چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په فرش کيني، خو ام حبيبه (رضي الله عنها) هغه فرش ورنه ټول کړ. ده ورته وويل: لورې! دا فرش دې زما لپاره مناسب و نه باله، او که دې زه ددې وړ ونه بللم چې وربانديې کينم؟ دې وفرمايل: دا د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) فرش دی، ته مشرک يې او ددې وړ نه يې چې وربانديې کينې. ده ورته وويل: قسم په خدای چې له ما نه وروسته په شر او بدۍ اخته شوې يې. بيا ابوسفيان ووت او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته ورغی، خبرې يې ورته وکړې، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هيڅ ځواب ورنکړ. ورپسې ابوبکر (رضي الله عنه) ته ورغی هغه ته يې وويل چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته يې شفاعت وکړې. ابوبکر (رضي الله عنه) د نه ځواب ورکړ. بيا عمر (رضي الله عنه) ته ورغی، او همدا غوښتنه يې ورنه وکړه. هغه ورته وويل: زه به رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ستاسې شفاعت کوم؟ قسم په خدای که له وړو لرګيو پرته بل هيڅ ونلرم هم له تاسې سره به جهاد کوم. بيا د علي (رضي الله عنه) کره ورغی، هلته فاطمه (رضي الله عنها) هم وه، حسن (رضي الله عنه) وړوکی ؤ او د دوی په غيږ کې لوبيده. ابو سفيان وويل: يا علي (رضي الله عنه)! ته له نورو نه د نسب او خپلوۍ له پلوه ډير را نژدې يې، زه د يوه ضرورت پخاطر راغلی يم، نه غواړم تش لاس او نامراده بيرته ستون شم، هيله ده رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته زما شفاعت وکړې! ده ورته وويل: افسوس ستا په حال اې ابو سفيانه! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اوس داسې فيصله کړيده، چې مونږ نه شو کولی پدې رابطه خبرې ورسره وکړو. ابو سفيان د فـــا طم ې (رضي الله عنها) لوري ته وکتل او

ورته ویې ویل: کیدای شي چې خپل زوی حسن ته امر وکړې چې هغه د خلکو په مینځ کې مونږ ته د پناه راکولو غږ وکړي، هغه به پدې سره تر پایه د عربانو سردار وي؟ فاطمې (رضي الله عنها) وویل: زما زوی اوس پدې موقف کې ندی چې چا ته پناه ورکړي، هغه به څوک وي چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په حضور کې چا ته پناه ورکړای شي ؟! یعنې هیڅوک د هغه د ارادې خلاف چا ته پناه نه ورکوي.

ددې خبرو په اوریدو سره د ابو سفیان په سترګو تیاره شوه، علي (رضي الله عنه) ته یې په ډیره مایوسۍ، ناهیلۍ او خفګان کې وویل: فکر کوم چې حالات ډیر راباندې تنګ شول، مشکل زیات شو، اوس مشوره راکړه څه وکړم؟علي (رضي الله عنه) ورته وویل: زما په فکر خو هیڅ چاره نه ده درته پاتې، خو څرنګه چې ته د بني کنانه مشر یې، نو لاړ شه د خلکو په مینځ کې پناه وغواړه، او بیا لاړ شه خپل کور ته ستون شه. ابو سفیان وویل: دا به مې څه په درد وخوري؟ علي (رضي الله عنه) وویل: فکر نه کوم چې ګټه درته ولري، خو بله چاره نشته. همدا وه چې ابو سفیان جومات ته لاړ، هلته ودرید ویې ویل: اې خلکو! ما تاسې ته پناه راوړې ده، دا خبره یې وکړه لاړ او پخپل اوښ سپور شو. هلته چې قریشو ته ورسید هغوی ورته وویل: څه دې راوړي؟ ده وویل: لاړم له محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره مې خبرې وکړې، خو هغه هیڅ ځواب را نکړ، بیا ابوبکر ته ورغلم له هغه نه مې هم خیر و نه لید. بیا عمر ته ورغلم د هغه موقف خو ډیر تند و، بیا علي (رضي الله عنه) ته ورغلم هغه مې له ټولو نه نرم وموند، بیا یې څه مشوره راکړه هغه مې عملي کړه، خو نه پوهیږم چې څه ګټه به ولري او که نه؟ دوی ورته وویل: د څه مشوره یې درکړه؟ ده وویل: راته ویې ویل چې د خلکو په وړاندې پناه غوښتنه اعلان کړم، ما همداسې وکړل. دوی وویل: آیا محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ستا پناه قبوله کړه؟ ده وویل: نه. دوی ورته وویل: علي (رضي الله عنه) خو ملنډې درباندې وهلې دي. ده وویل نه: بله هیڅ چاره نه وه، همدا یوازینۍ لاره او چاره وه.

## د جګړې تیاري

د طبراني د روایت په اساس مخکې لدینه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته د قریشو له خوا د تړون د ماتیدو خبر راشي، رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) عائشې (رضي الله عنها) ته امر کړی ؤ چې د سفر تیاري ونیسي او

سامان يې ورته برابر کړي، هيڅوک هم نه وو خبر. ابوبکر (رضي الله عنه) يوه ورځ د عائشه (رضي الله عنها) کورته ورغی ورته ويې ويل دا څه سامان دی تيار کړی زما لوري! دې ورته وويل: و الله که خبره يم. ابوبکر وويل: " دا وخت خو له روميانو سره د جګړې هم ندی، نه پوهيږم رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) کومې خوا ته ځي؟ عائشې وويل: زه هم نه يم خبره. له همدې نه درې ورځې وروسته سهار عمرو بن سالم خزاعي له ۴۰ سپرو کسانو سره راورسيد، او هغه مخکې تير شوي اشعار يې وويل. همدلته خلک پوه شول چې قريشو عهدمات کړيدی، په عمرو پسې بديل بيا ابو سفيان راغی، نو اصحاب پوه شول، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د تياری امر ورته وکړ، او پدې يې خبر کړل چې د مکې په لور روانيږي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا دعا هم وکړه: (**اللّهم خذ العيون والأخبار عن قريش حتی نبغتها في بلادها**). اې ربه! ته د قريشو سترګې پټې کړې، جاسوسان يې غافل کړې تر هغې پورې خبر مه ورکوې تر څو مونږ ناڅاپي بريد ورباندې وکړو.

ددې لپاره چې خبر يې پټ ساتلی وي رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ۸ هـ کال د روژې په لومړنيتيه د ابو قتاده بن ربعي په مشری يو آته کسيز ګروپ د اضم درې ته واستاوه. دغه سيمه له مدينې نه ۳۶ ميله ليرې د ذي خشب او ذي مروه تر مينځ پرته وه. دا ددې لپاره تر څو خلک داسې ګمان وکړي چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دې خوا ته حرکت کوي. دا ګروپ لاړ تر ټاکل شوي نقطې پورې ورسيد او همدلته مکې ته د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له تګ نه خبر شول، او مکې ته وريسې ورغلل. دا ګروپ له عامر بن اضبط سره مخامخ شو، هغه د مسلمانی سلام ورباندې واچاوه، خو محلم بن جثامه چې له پخوا نه يې څه ستونزه ورسره درلوده هغه وواژه اوښ او سامان يې ورنه واخيستل، همغه وه چې الله تعالی دا آيت را نازل کړ: (**ولا تقولوا لمن القی اليکم السلام لست مومنا)) الايـــه**. [مه وايئ هغه چاته چې سلام يې درباندې واچاوه چې مومن نه يې] بيا يې محلم د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضورته وړاندې کړ چې مغفرت ورته وغواړي، خو کله چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په وړاندې ودريد، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: خدايه! محلم مه بښې! ببننه مه ورته کوې! دا دعا يې درې ځله تکرار کړه. محلم ورنه روان شو او اوښکې يې په څادر يا کميس پاکولې. ابن اسحاق وايي: د محلم قوم ګمان کوي

چې وروسته رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مغفرت ورته وغوښت. (زاد المعاد ۲/ ۱۵۰ ابن هشام ۲/ ۶۲۶ تر ۶۲۸).

□ پدې وخت کې حاطب بن ابي بلتعه يو ليک وليکه قريشو ته يې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د تيارۍ او ارادې په هکله خبر پکې ليکلی و، يوې ښځې ته يې ورکړ تر څو د اجرت په بدل کې يې قريشو ته ورسوي. نوموړې ښځې دغه ليک پخپلو کوڅيو کې پټ کړ او روانه شوه.

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته غيبي خبر ورکړ شو چې حاطب ليک ليږلی دی، فوراً يې علي او مقداد (رضي الله عنهما) ته وظيفه ورکړه چې پدې ښځې پسې ورشي، امر يې ورته وکړ : (**انطلقوا حتى تأتوا رَوْضَةَ خَاخٍ، فإن بها ظعينة معها كتاب إلى قريش**). لاړ شئ د روضه خاخ سيمې ته ورشئ هلته يوه مسافره ده او ورسره د قريشو لپاره يو ليک دی. هغوی په ډيره بيړه ورپسې ورغلل، آسونه يې ځغلول چې په هماغه ځای کې يې همغه ښځه وليده، ورته ويې ويل: له تا سره يو ليک دی؟ دې ورته وويل: نه، له ماسره ليک نشته. دوی يې بار تلاشي کړ، خو ليک په لاس ور نه غی.

علي (رضي الله عنه) ورته وويل: په خدای قسم رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دروغ نه وايي، مونږ هم دروغ نه وايو، يا به ليک راکوې او يا به دې جامې هم تلاشي کوو لوڅوو به دې!! ښځې چې دا حالت او جديت وليد، نو ويې ويل: لږ اخوا شئ، هغوی بلې خوا ته لاړل، دې خپلې کوڅۍ خلاصې کړې،ليک يې ورنه راويوست او دوی ته يې ورکړ. هغوی بيا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته راوړ.

پدې ليک کې داسې ليکل شوي و: د حاطب بن ابي بلتعه له خوا قريشو! ته وروسته پکې ليکل شوي و چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ستاسې په لور دروانيږي، خبر اوسئ. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حاطب راوغوښت ورته ويې ويل چې دا ولې؟ ده وويل: يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! حوصله وکړه، زه مسلمان يم، نه مرتد شوی يم او نه مې دين بدل کړی دی، څرنګه چې زه قريشي نه يم، خو ورسره تړلی يم، زما اولادونه او کورنۍ هلته له دوی سره دي، ورسره داسې اړيکې او خپلوي هم نلرم چې زما د اولادونو حمايت وکړي، د نورو اصحابو خو هلته خپلوان شته چې دفاع ورنه وکړي، په همدې خاطر ما وغوښتل چې د دوی داسې ملاتړ حاصل کړم چې زما د اهل او اولاد ساتنه وکړي. عمر (رضي الله عنه) وويل: يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! اجازه راکړه

چې سر يې غوڅ کړم، ده له الله او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره خیانت کړیدی، دا منافق شویدی. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (**إنه قد شهد بدراً، وما يدريك يا عمر لعل الله قد اطلع على أهل بدر فقال: اعملوا ما شئتم فقد غفرت لكم**). نه يې خبر چې حاطب په بدر غزا کې برخه اخیستې ده، او نه يې خبر اې عمره! چې الله تعالی د بدر ټولو غازیانو ته خبر ورکړیدی فرمایلي يې دي: هر څه چې کوئ ويې کړئ، ما (الله تعالی) عفوه درته کړې ده. ددې فرمودې په اوریدو سره د عمر (رضي الله عنه) له سترګو اوښکې روانې شوې، او ویې ویل الله او رسول ښه پوهیږي[7].

پدې ترتیب سره الله تعالی د مسلمانانو راز پټ وساته، د قریشو غوږونه کاڼه او سترګې يې پټې شوې، جاوسوسان ټول غافل شول او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د جنګي تیارۍ په هکله هیڅ خبر نه شول.

## اسلامي لښکر د مکې په لور

د آتم هجري کال د روژې په لسمه رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مدینه د مکې په نیت پریښوده، لس زره اصحاب (رضي الله عنهم) ورسره ملګري وو، ابو رهم غفاري يې د مدینې خلیفه وټاکه او پخپله مکې ته روان شو.

د لارې په اوږدو کې په جحفه یا لږ اخوا سیمه کې يې تره عباس (رضي الله عنه) په مخه ورته راغی، هغه له اسلام راوړلو نه وروسته له خپل اهل و عیال سره د هجرت لاره نیولې وه چې همدلته له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره مخامخ شو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) چې ابواء ته ورسید د تره زوی يې ابو سفیان بن حارث او د عمه زوی يې عبدالله بن ابي امیه هم په مخه ورته راغلل، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مخ ترې واړاوه ځکه له دوی نه يې ډیر تکلیفونه او اذیتونه لیدلي وو. ام سلمه (رضي الله عنها) ورته وویل: دا نه ښایي چې د تره او ترور زوی دې د ستا په حضور کې تر ټولو بدبخت وي. علي (رضي الله عنه) ابو سفیان بن حارث ته وویل: ځان د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مخ ته ورسوه او هغه خبره ورته وکړه چې د یوسف (علیه السلام) وروڼو یوسف

---

[7] صحيح البخاري ۲/ ۴۲۲- ۲/ ۶۱۲۱۶۳ .

(علیه السلام) تـه کړې وه ((قَالُوا تَاللَّهِ لَقَدْ آثَرَكَ اللَّهُ عَلَيْنَـا وَإِنْ كُنَّـا لَخَـاطِئِينَ)) (يوسف: ۹۱) [قسم خورو چې الله تا ته پر مونږ فضیلت در کړیدی. او مونږ پـه غلطـه او خطا کاران وو.]

ځکه رسول الله (صلی الله علیه و الـه و صـحبه و سلم) نـه خوښوي څوك لـه ده نـه زیاتـه غوره خبره وکړي، هیڅوك هـم لـه ده نـه زیات د ښـې خبـرې خاوند ندی. ابو سفیان همـد اسې وکړل د رسول الله (صلی الله علیـه و الـه و صـحبه و سلم) مخې ته ورغـی او همـدا خبـره یـې ورتـه وکړه. پـه ځـواب کـې رسـول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل:

((لَا تَثْرِيبَ عَلَيْكُمْ الْيَوْمَ يَغْفِرُ اللَّهُ لَكُمْ وَهُوَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ)) (يوسف: ۹۲)

[تـرجمه: نـن هيڅ ملامـتيا نشته دربـانـدې، الله بـه بښنـه درتـه کوي او هغه لـه ټولـو نـه زيات مهربـان دی.]

بیا ابو سفیان دا شعرونه وویل:

| | |
|---|---|
| لعمــرك اني حين احمل راية | لتغلب خيل اللات خيل محمد |
| لكالمــدلج الحيران اظلم ليله | فهذا اواني حين اهدى فاهتدي |
| هداني هاد غير نفسي و دلني | على الله من طــردته كل مطرد |

[ستا پـه عمر قسم! هغه وخت چې ما ددې لپاره جنډه پورتـه کړې وه چې د لات لښـکرې بـه د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پر لښکرو غلبـه مومي، زمـا مثـال د هغـه مسـافر ؤ چـې د شـپې پـه تیـاره کـې حیـران او سرګردان وي، خـو اوس هغـه وخـت راغلـی دی چـې د هدایت لاره ومـومم او پـه سـمه روان شـم، مـا تـه یـوه لارښـود هدایت وکړ، همدې هادي د الله لور ته بوتلم، که څه هم مـا هغـه تـه ډیـر تکلیـف رسـولی او لـه ځان نه مې شړلی ؤ.]

پدې سره رسول الله (صلی الله علیه و الـه و صـحبه و سـلم) هغـه پـه سینه وواهـه او ورتـه ویې فرمایل: (أنتَ طَرَّدْتَني كل مُطَرَّد؟)[1]. [تا زه له ځان او وطن نه شړلی وم].

ابو سفیان ښه مسلمان شو، او ویل شوي پخپـل ژونـد کـې یـې د حیـا لـه مخـې د رسـول (صلی الله علیه و الـه و صـحبه و سـلم) پـه وړانـدې سر پورتـه نکـړ. رسـول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هم مینه ورسره لرله د جنت زیـری یـې ورکـړی و، او فرمایـل بـه یې: هیله لرم د حمزه خلیفه شي. کله چې د ابوسفیان ځنکدن ؤ خلکـو وربانـدې ژړل.

[1]. زاد المعاد ۲/۱٦۲_۱٦۳.

ده ويل: مه ژاړئ قسم په خدای چې له اسلام نه وروسته مې هيڅ د ګناه خبره په ژبه نده راوړې.

## اسلامي لښکر له مرالظهران سره اړوي

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له خپلو اصحابو (رضي الله عنهم) سره روان ؤ، ټولو روژه نيولې وه، مخکې لاړل تر څو د عسفان او قديد تر مينځ پرتې کديد نومې چينې ته ورسيدل، هلته رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) روژه ماته کړه، مسلمانانو هم دده اطاعت وکړ، ټولو روژه ماته کړه[1].
بيا روان شول، ماښام يې په مرالظهران (وادي فاطمه) کې يې واړول. اصحابو ته يې امر وکړ هغوی ټولو اورونه بل کړل، لس زره اورونه بل شول. عمر (رضي الله عنه) ته يې وظيفه ورکړه چې د پيرې د امورو مشري په غاړه واخلي.

## ابو سفيان د رسول الله (ﷺ) په حضور کې

عباس (رضي الله عنه) د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په سپينه قاطره (کچره) سپور شو، لاړ کتل يې تر څو کوم بوټوه او يا بل څوک پيدا کړي چې قريشو ته خبر يوسي او ورته ووايي چې راشي او له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه مکې ته له داخليدو نه مخکې د امن سوال وکړي. ځکه د الله په کرم سره قريش هيڅ خبر نه وو د ويرې او خوف په حالت کې وو. ابو سفيان به له مکې نه د باندې ووت حالات او لارې به يې څارلې. پدې ورځ هم چې حکيم بن حزام او بديل بن ورقاء هم ورسره ملګري وو راوتلی و خبرونه يې تعقيبول. عباس (رضي الله عنه) وايي: زه د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په قاطره سپور وم چې د ابو سفيان آواز مې واوريد، له بديل سره يې خبرې کولې.دواړه د بيرته ستنيدو په حال کې وو. ابوسفيان ورته وايي: ما د نننۍ شپې په شان دومره زيات اورونه او لښکرې کله هم ندي ليدلې. بديل ورته ويل: کيدای شي دا به د خزاعه قبيلې خلک وي، چې جګړې سورولي دي. ابو سفيان ورته وايي: خزاعه لدينه ډيرکم او کمزوري دي، هغوی دومره عسکر له کومه کړل چې دومره اورونه بل کړي! عباس (رضي الله عنه) زياتوي: ما غږ

[1]. صحيح البخاري ٦١٣/٢.

وربانديې وکړ اې ابو حنظله! ابو سفيان وپېژندلم ويې ويل: ابو الفضل يی؟ ما وويل: هو. ده راته وويل: مور او پلار مې درنه جار، څه کوې؟ ما ورته وويل: دا دی رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له خپل لښکر سره راغلی، سهار دې قريشو ته خير وي، د قريشو تباهي ده. ابو سفيان وويل: وايه، چاره څه ده؟ مور او پلار مې له تا قربان؟ ما ورته وويل: قسم په خدای که د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) لاس دربانديې بر شو نو سر به دې قلم کړي، راځه له ما سره پدې قاطره سپور شه تر څو د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته دې ورولم او امن درته وغواړم. ابو سفيان راغی او را سره سپور شو، او دواړه نور ملګري يې بيرته ستانه شول.

عباس وايي: ابو سفيان مې چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راوست، له هر اور ځای نه به چې تيريدو هغوی به راته ويل چې دا څوک دی؟ خو کله به يې چې زه د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پر قاطره وليدم، نو يو بل ته به يې وويل د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تره دی. همداسې روان وو تر څو د عمر (رضي الله عنه) ځای ته ورسيدو، مونږ يې چې وليدو، را پاڅيد ويل يې دا څوک دی؟ راغی او چې ابوسفيان يې له ما سره وليد ويې ويل: دا د خدای دښمن ابو سفيان. الحمد لله چې بې له کوم تړون او عهد نه په لاس راغی، بيا په منډه د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په لور روان شو، ما قاطره ورپسې وځغلوله، ترينه مخکې شوم، هلته له قاطرې نه کوز شوم فوراً د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته ورغلم، عمر (رضي الله عنه) هم راغی ويې ويل: يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ابو سفيان راغلی، اجازه راکړه چې سر يې پرې کړم. عباس وايي: ما ورته وويل: يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ما هغه ته پناه ورکړيده. بيا د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خوا ته کيناستم خبرې مې ورسره پيل کړې او له ځان سره مې ويل چې نن شپه به له ما پرته بل څوک ورسره مجلس ونکړي. عمر (رضي الله عنه) چې ډير اصرار وکړ نو ما ورته وويل: عمره! لږ حوصله وکړه. که ابو سفيان ستا له قبيلې بني عدي بن کعب څخه وای، نو بيا به دې دا خبرې نه کولی. عمر وويل: پريږده عباسه! قسم په خدای چې ستا په اسلام د خپل پلار خطاب له اسلام نه زيات خوشاله شوم، دا ځکه چې زه پوهيږم چې ستا په اسلام راوړلو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د خطاب له مسلمانيدو نه زيات خوشاله دی. پدې پسې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**اذهب به يا عباس إلى**

**رحلك، فإذا أصبحت فأتني به)**. اې عباسه! ابوسفيان خپلې مېنې ته درسره بوزه، سهار يې راته راوله. سهار مې ورووست. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: **(ويحك يا أبا سفيان، ألم يأن لك أن تعلم أن لا إله إلا الله؟)** افسوس ستا په حال اې ابو سفيانه، آيا اوس هم پدې اعتراف نه کوې چې الله يو دی، او نه غواړې ووايې: لا اله الا الله. ابو سفيان وويل: مور او پلار مې له تا قربان. ته څومره مهربان، کريم او نژدې دوست يې. زه فکر کوم که له الله (جل جلاله) پرته بل خدای موجود وای نو زما به يې څه مدد کړی وای! رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: **(ويحك يا أبا سفيان، ألم يأن لك أن تعلم أني رسول الله؟)**افسوس ستا په حال اې ابو سفيانه! آيا اوس پدې باور نلرې چې زه (محمد) د الله رسول (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) يم؟ ابو سفيان وويل: مور او پلار مې درنه قربان، ته بې حده زيات مهربان، کريم او نژدې دوست يې، پدې اړه (ستا د رسالت) مې لا تر اوسه په زړه کې څه خو شته. عباس ورته وويل: خوار شې، اسلام راوړه او د شهادت کلمه ووايه، مخکې لدينه چې سر دې قلم شي د **(لا اله الا الله محمد رسول الله)** مبارکه کلمه ووايه. همغه وه چې ابو سفيان په اسلام مشرف شو او د شهادت کلمه يې وويله. عباس وويل: يا رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم)! ابو سفيان داسې شخص دی چې فخر او وياړ يې ډېر خوښېږي ده ته يو څه ورکړه! رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: **(نعم، من دخل دار أبي سفيان فهو آمن، ومن أغلق عليه بابه فهو آمن، ومن دخل المسجد الحرام فهو آمن)**.څوک چې د ابو سفيان کور ته داخل شو هغه په امن دی، چا چې د خپل کور دروازه ورپسې بنده کړه هغه هم په امن دی، څوک چې مسجد حرام ته داخل شو هغه هم په امن دی. يعنې دا درې ډوله خلک په امن دي.

## اسلامي لښکر له مرالظهران نه د مکې په لور

د اتم هجري کال د رمضان مياشتې په اوولسمه د سه شنبې ورځې په سهار رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم)، مرالظهران د مکې په لور پرېښود. عباس (رضي الله عنه) ته يې امر وکړ چې ابو سفيان د درې په تنګۍ کې د غره له پزې سره ودروي تر څو د الله تعالی لښکرې پخپله سترګو وګوري. عباس (رضي الله عنه)

همداسې وکړل د درې په تنګه برخه کې يې ابو سفيان ودراوه، د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) لښکرې تيريدلې، هرې قبيلې بيل بيرغ درلود، هر يوه به چې لدې ځای نه تيريدله ابو سفيان به پوښتنه کوله دا څوک دي؟ عباس (رضي الله عنه) به ورته معرفي کوله مثلاً ورته ويل به يې چې دا سليم قبيله ده. ابو سفيان به ويل چې: له سليم سره زما څه کار. بيا به يې بله ورته معرفي کوله چې دا مزينه قبيله ده، ده به همدغه خبره کوله چې له دوی سره زما څه. تر څو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له خپل شنه ګروپ سره رابښکاره شو، انصار او مهاجرين ورسره ملګري وو، ټول وسله بند وو ابو سفيان چې دا مؤمن لښکر وليد پوښتنه يې وکړه وې ويل سبحان الله، دا څوک دي اې عباسه ؟ عباس (رضي الله عنه) ورته وويل: دا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دی چې د انصارو او مهاجرينو په منځ کې روان دی. ابو سفيان وويل: هيڅوک هم د دوی مقابله نه شي کولی، او زياته يې کړه، ابو فضله! ستا د وراره پاچايي ډيره لويه شوه. ابو الفضل عباس ورته وويل: دا نبوت دی زما وراره د الله رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دی. ابو سفيان وويل بې شکه چې دا عظمت د نبوت دی، اوس همدا ويل سيې دی. د انصارو جنډه له سعد بن عباده (رضي الله عنه) سره وه، کله چې له ابو سفيان سره مخ شو ورته وې ويل: نن د جنګ ورځ ده، نن به دا حرمت له مينځه ځي، الله به نن قريش خوار او ذليل کړي.

خو کله چې ابو سفيان له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره مخامخ شو عرض يې وکړ يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! آيا د سعد خبره دې واوريدله؟ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: څه يې وويل. خبره يې ورته وکړه، پدې ترڅ کې عثمان او عبدالرحمن بن عوف وويل: مونږ هم ويره لرو هسې نه سعد په قريشو کې څه مرګ ژوبله ونکړي! رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**بل اليوم يوم تُعَظَّم فيه الكعبة، اليوم يوم أعز الله فيه قريشاً**). نن د کعبې د درناوي او احترام ورځ ده، نن د قريشو د عزت او سر لوړې ورځ ده. بيا يې له سعد (رضي الله عنه) نه د جنډې اخستلو حکم وکړ، او دده زوی قيس بن سعد (رضي الله عنه) ته يې وسپارله. ددې معنی دا ده چې ګويا جنډه له سعد نه وانه خستله شوه ځکه قومانده ورسره پاتې شوه. او په بل روايت سره جنډه زبير (رضي الله عنه) ته ورکړل شوه.

## قريش په ناڅاپي توګه د اسلامي لښکر په وړاندې

کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ابو سفيان د دريدو له ځای نه تير شو، نو عباس (رضي الله عنه) ورته وويل: ابو سفيانه! زرکوه خپل قوم ته نجات ورکړه، ويې ژغوره. ابو سفيان په منډه ځان مکې ته ورساوه او په لوړ آواز سره يې چيغه وکړه: اې قريشو! دا دی محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) راورسيد، له هغه سره دومره لښکر دی چې هيڅوک يې هم مقابله نه شي کولی، واورئ! څوک چې د ابوسفيان کور ته داخل شو هغه په امن دی. ددې خبرې په اوريدو سره يې ښځه هند بنت عتبه راغلله او خپل ميړه (ابوسفيان) يې له بريتونو راونيو او ويې ويل: مړ کړئ دا له غوړيو نه ډک ژی، مړ کړئ دا د نريو پنډيو خاوند، بدې دې وي دې مخکښ خبر راوړونکي ته. ابو سفيان بيا وويل: افسوس ستاسې په حال، دا به هيڅ ستاسې په درد و نه خوري، ګورئ غره نه شئ دا ښځه مو تير نه باسي له محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره دومره لښکر دی چې حساب يې نشته، څوک چې د ابو سفيان کورته داخل شو هغه په امن دی. قريشو ورته وويل: الله دې خوار کړه، ستا کور به مونږ ته څه ګټه راورسوي؟ ده ورته وويل: څوک چې پخپل کور ننوزي او دروازه ورپسې بنده کړي هغه هم په امن دی، چا چې جومات ته پناه يووړه هغه هم په امن دی. همدا وه چې خلک تيت شول څوک خپلو کورونو او څوک جوماتو ته ننوتل، خو ځينې اوباشان يې وهڅول، او د مقابلې خبره يې ورته وکړه، ويل يې که دوی غالب شول نو مونږ به ورسره وو، او که ووژل شول، نو څه چې غواړي هغه به ورکړو. پدې ترتيب سره يو شمير جاهل او لويدلي خلک، له عکرمه بن ابي جهل سره راغونډ شول، له دوی سره صفوان بن اميه او سهيل بن عمرو هم وو، په خندمه کې يې له مسلمانانو سره د مقابلې لپاره سنګر ونيو. پدې ډله کې د بني بکر قبيلې يو کس چې حماس بن قيس نوميده هم ملګری و، ده چې کله وسلې برابرولې ښځې يې ورته وويل: دا وسلې د څه لپاره تياروې؟ ده وويل: له محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او اصحابو سره د مقابلې لپاره. ښځې يې وويل: قسم په خدای چې هيڅوک د محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مقابله نه شي کولی. ده ورته وويل: زه غواړم چې د محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ځينې ملګري ستا خادمان کړم بيا يې دا شعر ووايه:

ان يقبلوا اليوم فما لي عله هذا سلاح كامل و اله

و ذو غرارين سريع السله

[که هغوی نن مقابلې ته راغلل نو زه به هيڅ عذر ونلرم، ټوله وسله، نيزې، او دوه تيغه لرونکې تورې هر څه پوره دي، يعني بالکل مقابلې ته تياريم.]
په خندمه نومي ځای کې مقابلې ته راټولو شويو کسانو کې همدغه کس هم و چې له محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره د جګړې لپاره راغلی و.

## اسلامي لښکر په ذي طوی کې

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مخکې روان و، تر څو ذي طوی ته ورسيد، د الهي لوی نعمت يعنی مکې د فتحې د شکرانې په دود يې خپل مبارک سر د الله تعالی د عظمت، رحمت او کرم په وړاندې له ډيرې تواضع نه دومره خم کړی و چې د مبارکې ږيرې ويښتان يې نژدې د اوښې له ځل سره لګيدل. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په همدې ځای کې خپل لښکر تقسيم کړ: خالد بن وليد (رضي الله عنه) ته يې د ښي اړخ قومانده وسپارله پدې طرف کې د اسلم، سليم، غفار، مزينه، جهينه او ځينې نورې عربي قبيلې وې. هغه ته يې امر وکړ چې د مکې له لاندينی برخې نه داخل شي، او ورته ويې ويل: (**إن عرض لكم أحد من قريش فاحصدوهم حصداً، حتى توافوني على الصفا**). ((که څوک مو مخې او مقابلې ته راغلل نو له مينځه يې يوسئ او پدې ترتيب سره به صفا کې له ما سره يوځای شئ)). د کيڼې خوا قومانده له زبير بن عوام (رضي الله عنه) سره وه د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) بيرغ هم له ده سره و. هغه يې مامور کړ چې د مکې له پورتنی برخې (کداء) نه داخل شي، او په حجون کې دې له خپل بيرغ سره د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د رسيدو انتظار کوي. ابو عبيده (رضي الله عنه) له پليو او بې وسلې سپايانو سره و، هغه ته يې امر وکړ چې د مکې وسطې لار په مخکې ونيسي او له همغې لارې نه په مکه کې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضورته حاضر شي.

## اسلامي لښکر په مکه مکرمه کې

ټول لښکر روان و، هر ګروپ په ټاکل شوي لار د مکې په لور وخوځېد. خالد (رضي الله عنه) له خپلو ملګريو سره مخکې لاړ څوک يې چې مخې ته ودريد له مينځه يې يووړ، دده له ملګرو نه هم دوه کسان کرز بن جابر فهري او خنيس بن خالد بن ربيعه په شهادت ورسيدل. دوی دواړه له لښکر نه ګوښي په بيله لار روان وو چې د مشرکينو تر بريد لاندې راغلل او شهيدان شول.

خالد (رضي الله عنه) په خندمه کې د مشرکينو له اوباشانو او کم عقلانو سره مخ شو، څه نښته وشوه چې په ترڅ کې يې ۱۲ تنه مشرکين ووژل شول او نور وتښتيدل. حماس بن قيس هغه چې له ډير پخوا نه يې مقابلې ته وسلې تيا روله هم له جګړې نه وتښتيد، کور ته لاړ او خپلې ښځې ته يې وويل: دروازه راپسې بنده کړه. ښځې يې ورته وويل: هغه ستا غورې څه شوې؟!، ده په ځواب کې دا شعر ورته ووايه:

| | |
|---|---|
| انك لوشهـــدت يوم الخندمه | اذ فر صفوان و فر عكرمه |
| و استقبلتنا بالسيوف المسلمه | يقطعن كل ساعد و جمجمه |
| ضربا فلا يسمع الا غـــمغمه | لـــهم نهيت خلفنا و همهمه |

لم تنـــطقي في اللوم ادنى كلمه

[که تا د خندمه صحنه ليدلې وای چې صفوان او عکرمه وتښتيدل، مونږ ته د (مسلمانانو) له خوا نه په تورو سره هرکلی وويل شو داسې تورې چې سرونه او ښنې يې ريبلې، د تورې ګوزارونه به يې کول او د زمريانو په شان آوازونه به يې کول په مونږ پسې وو، که تا دا ليدلي وای نو د ملامتيا يوه خبره به دې هم نه وای کړې.]

خالد (رضي الله عنه) مکې ته داخل شو او ځان يې په صفا کې د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته ورساوه. زبير (رضي الله عنه) هم مخکې لاړ د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) بيرغ يې په حجون کې له فتح جومات سره پورته کړ، او ورباندې يې د پوستکي (چرم) يوه خيمه ودروله او هملته انتظار ئ تر څو رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) تشريف راوړ.

## رسول الله (ﷺ) مسجد حرام ته داخليږي او بتان نسکوروي

رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) حرکت وکړ مهاجرين او انصار چار چاپير ورنه روان وو مسجد حرام ته يې تشريف يووړ حجر اسود ته ورغی لمس يې کړه،

طواف يې وکړ، نيزه يې په لاس کې وه، پدې وخت کې په بيت الله او شاو خوا کې (۳۶۰) بتان وو، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به بتان پخپله نيزه وهل او فرمايل به يې: ((وَقُلْ جَاءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ إِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوقاً)) (الاسراء: ۸۱) [او وايه چې حق راغی او باطل له مينځه لاړ، بيشکه باطل له مينځه تلونکی دی.] (قُلْ جَاءَ الْحَقُّ وَمَا يُبْدِئُ الْبَاطِلُ وَمَا يُعِيدُ)) (سبا: ۴۹) [او وايه حق راغی باطل نه د نوي کار توان لري او نه تير شوی کار بيرته را ګرځولی شي.] رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا ويل او بتان به پرمخې رانسکوريدل.

## بتان ټول نسکور شول

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پخپله اوښه سپور و طواف يې کاوه، احرام يې هم نه و تړلی، کله يې چې طواف وکړ، نو عثمان بن طلحه يې راوغوښت د کعبې شريفې کلياني يې ورنه واخيستلې امر يې وکړ چې دروازه دې خلاصه شي. دروازه خلاصه شوه، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ور داخل شو هلته يې عکسونه وليدل، د عکسونو په منځ کې يې د ابراهيم (عليه السلام) او اسماعيل (عليه السلام) عکسونه هم وليدل چې دواړه په غشو څه سره ويشي. پدې وخت کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**قاتلهم الله، والله ما استقسما بها قط**). ((الله تعالی دې مشرکان خوار او تباه کړي، قسم په خدای ابراهيم او اسماعيل (عليهما السلام) کله هم به غشو سره تقسيم ندی کړی)). هلته له لرګي نه جوړه شوې يوه کوتره هم وه هغه يې پخپل مبارک لاس ماته کړه او امر يې وفرمايه چې دلته موجود ټول عکسونه دې له مينځه يووړل شي.

## رسول (ﷺ) په کعبه کې لمونځ کوي او قريشو ته خطبه اوروي

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) کعبې شريفې ته له داخليدو نه وروسته دروازه ورپسې بنده کړه، اسامه او بلال (رضي الله عنهما) هم ورسره وو. د دروازې ديوال ته مخامخ ودريد، په داسې ځای کې ولاړ و چې له ديوال نه يې درې ګزه فاصله درلوده، دوې ستنې يې چپې او يوه ستنه يې ښۍ خوا ته او درې ستنې يې شا

ته وي. هغه وخت د كعبې شريفې چت په شپږو ستنو ولاړ وُ، بيا يې هملته لمونځ ادا كړ. ورپسې په بيت الله كې وګرزيد، تكبير يې وايه، د توحيد نعره يې په ژبه وه، دروازه يې پرانيستله، قريش په زيات شمير كې جومات ته راغلي وو، لـيـك‌ې لـيـك‌ې ناست وو، انتظار يې يوست چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) به څه معامله ورسره كوي؟ پداسې حال كې چې قريش ټول د لاندې ناست وو، رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د كعبې د دروازې دواړه څنګ درې. ونيولې ويې فرمايل: (**لا إله إلا الله وحده لا شريك له، صدق وعده، ونصر عبده، وهزم الأحزاب وحده، ألا كل مأثُرَة أو مال أو دم فهو تحت قدمي هاتين، إلا سدَانَة البيت وسقاية الحاج، ألاوقتيل الخطأ شبه العمد ــ السوط والعصا ــ ففيه الدية مغلظة، مائة من الإبل أربعون منها في بطونها أولاد.**

**يا معشر قريش إن الله قد أذهب عنكم نخوة الجاهلية وتعظمها بالآباء، الناس من آدم، وآدم من تراب ثم تلا هذه الآية: {يا أيها الناس إنا خلقناكم من ذكر وأنثى وجعلناكم شعوبا وقبائل لتعارفوا إن أكرمكم عند الله أتقاكم إن الله عليم خبير}**(الحجرات : ١٣). له يوه الله پرته بل څوک د عبادت وړ ندي، الله يو دی شريک نلري، الله خپله وعده ريښتونې كړه، له خپل بنده سره يې مرسته وكړه، ټولو احزابو ته يې ماتې وركړه، واورئ! د بيت الله شريـفـې د كليانو له ساتنې، او حاجيانو ته له اوبو وركولو نه پرته نورې ټولې وياړنې، كمالات، خون او مال ټول زما تر پښو لاندې دي، يعنې دا ټول ملغى اعلانوم، واورئ! په سهوه سره قتل، شبه عمد چې په متروكه (دره) يا ډنډه سره وي، پدې ډول قتل سره مغلظ يا سخت ديت لازميږي ددې ديت اندازه سل اوښان دي چې څلويښت به يې حمل (بار لرونكې) اوښانې وي.
اې قريشو! الله تعالى له تاسې نه د جاهليت د زمانې بيځايه غيرت، غرور په پلار او نيكونو وياړ له مينځه يووړ، ټول انسانان له آدم (عليه السلام) نه او آدم (عليه السلام) له خاورو نه پيدا شويدی.
[اې خلكو تاسې مو له يوه نارينه او ښځې نه پيدا كړي ياست، بيا مو په څانګو او قبيلو ددې پخاطر سره ويشلي ياستئ چې يو بل سره وپيژنئ، د الله په نزد تر ټولو زيات د قدر او منزلت خاوند هغه دی چې د زياتې تقوى خاوند وي، الله تعالى په هرڅه

عالم او خبر دی.]

## نن په تاسې ملامتيا نشته

بيايې زياته کړه: (يا معشر قريش ما ترون أني فاعل بكم؟) قالوا: خيرًا، أخ كـريم وابن أخ كريم، قال: (فإني أقول لكم كما قال يوسف لإخوته: {لاَ تَثْرَيبَ عَلَيْكُمُ} اذهبوا فأنتم الطلقاء).اې قريشو! څه فکر کوئ زه به څه ډول معامله درسره وکړم؟ دوی وويل: حتماً به ښه معامله راسره کوې، ته مهربان ورور او مهربان وراره يې. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: زه نن هغه خبره درته کوم کومه چې يوسف (عليه السلام) خپلو وروڼو ته کړې وه [ نن په تاسې باندې ملامتيا نشته] ورځئ تاسې آزاد ياست.

## د بيت الله شريف کلياني بيرته خپل اهل ته سپارل

پدې پسې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په جومات کې کيناست، علي (رضي الله عنه) ورغی د بيت الله کليانۍ يې په لاس کې وې، ويې ويل: يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! حجاجو ته د اوبو ورکولو له دندې سره د حجابت (کليانو ساتلو) دنده هم راوسپاره. په بل روايت کې راځي چې دا خبره عباس (رضي الله عنه) ورته کړې وه. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: (أين عثمان بن طلحة؟). عثمان بن طلحه چيرته دی؟ هغه راوغوښتل شو. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: (هاك مفتاحك يا عثمان، اليوم يوم بر ووفاء). واخله عثمانه دا کليانۍ بيرته واخله، نن د وفا او نيکۍ ورځ ده. ابن سعد په طبقات کې روايت کوي چې د کليانو ورکولو په وخت کې يې داسې ورته وفرمايل: (خذوها خالدة تالدة، لا ينزعها منكم إلا ظالم، يا عثمان إن الله استأمنكم على بيته، فكلوا مما يصل إليكم من هذا البيت بالمعروف).واخلئ دا کليانې واخلئ، د تل لپاره يې واخلئ، دا به له ظالم نه پرته بل څوک نه درنه اخلي، اې عثمانه! الله تعالی خپله خونه تاسې ته امانت در کړيده، د الله تعالی لدې خونې چې

څه په لاس درځي له هغې نه په حلاله او شرعي توګه استفاده وکړئ.

## بلال (رضي الله عنه) د کعبې معظمې په بام آذان کوي

د لمانځه وخت شو، رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپل مؤذن بلال (رضي الله عنه) ته امر وکړ چې د کعبې بام ته وخيژي او آذان وکړي. پدې وخت کې ابو سفيان بن حرب، عتاب بن اسيد او حارث بن هشام د کعبې په صحن کې ناست وو، عتاب وويل: زما پلار اسيد بختور ؤ چې دا حالت يې ونه ليد، ددې شخص آواز يې وانه وريد او هغه څه يې وا نه وريدل چې د غوسې سبب يې کيدل. حارث وويل: که زه پدې پوه شم چې محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په حق دی، نو حتماً به يې پيروي کوم. ابو سفيان ورته وايي: زه خو هيڅ نه وايم، ځکه که هر څه ووايم دا شګې به راباندې شاهدي ووايي، دغه کاڼي به مې احوال افشا کړي. همدا وه چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) تشريف راوړ ورته ويې فرمايل: زه پوه شوم چې تاسې څه ويلي، او دوی چې څه ويلي وو هماغه خبرې يې ورته تکرار کړې. حارث او عتاب وويل: مونږ شاهدي وايو چې ته د الله رسول (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې، قسم په خدای که زمونږ خبرې هيچا هم اوريدلې وي، يعنې هيڅوک داسې نه وو چې مونږ ووايو هغه به درته دا خبرې رسولې وي.

## د فتحې يا شکرانې لمونځ

په همدې ورځ رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ام هانئ بنت ابي طالب (رضي الله عنها) کور ته تشريف يووړ، غسل يې وکړ او هملته يې اته رکعته لمونځ ادا کړ، دا د ضحی (غرمې) وخت ؤ.

ځينې ګمان کوي چې دغه لمونځ د څاښت(ضحی) لمونځ ؤ، خو صحيح دا ده چې دا د څاښت نه، بلکه د فتحې يا شکرانې لمونځ ؤ. ام هانئ په خپل کور کې خپلو دوو ليورو ته پناه ورکړې وه، رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: (قد أجرنا من أجرت يا أم هانئ). چا ته چې تا پناه ورکړيده زمونږ قبوله ده، مونږ هم پناه ورکوو يا ام هانئ! که څه هم علي (رضي الله عنه) غوښتل چې هغه دواړه ووژني، خو ام هانئ دروازه ورپسې بنده کړه، او له رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه يې دا وغوښتل چې ددې پناه قبوله کړي، چې هغه همداسې

وکړل.

## د څو لويو مجرمينو د وژلو حکم

د فـتحې په ورځ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د نهو لويو مجرمينو د قتل امر صادر کړ، هغوی يې مباح الدم و بلل او امر يې وکړ چې کـه د کـعــبې تر پردو لاندې هم په لاس راشي باید ووژل شي. ددغه مجرمينو نومونه دا وو: عبدالعزی بن خطل، عبدالله بن ابي سرح، عکرمه بن ابي جهل، حارث بن نفيل بـن وهـب، مقيس بن صبابه، هبار بن اسود، د ابن خطل دوې ډمانی چې دواړو به تل د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هجوه کوله، ساره چې د بني مطلب خادمه وه دا همغه ښځه ده چې قريشو ته يې د حاطب ليک راوړه او ورسره ونيول شو.

ابن ابي سرح خو نجات ومومند ځکه عثمان (رضي الله عنه) د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راووست، د هغه شفاعت يې وکړ تر څو چې اسلام يې ومنل شو، لومړی رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) څه شيبه پدې خاطر سکوت غوره کړ چې ګوندې اصحاب ورپاڅيږي او ابن ابي سرح ووژني، خو داسې و نه شول نو عفوه يې ورته وکړه، او له مرګ نه وژغورل شو. ابن ابي سرح مخکې اسلام راوړی او هجرت يې کړی وُ، خو بيا بيرته مرتد شوی او مکې ته ستون شوی وُ.

عکرمه يمن تـه وتښتيد، ښځې يې دده لپـاره لـه رسـول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه امـن وغوښت، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امـن ورته اعلان کړ. ښځه يې ورپسې ورغله رايې ووست په اسلام مشرف او ښـه مسـلمان شو. ابـن خطـل د کـعبې په پردو کې پټ شـوی وُ، ځان يې ورپورې نښلـولی و، پدې وخت کې يو صحابي (رضي الله عنه) د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضـور تـه راغـی او خبـر يـې ورکـړ، رسـول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل مړ يې کړئ، هغه لاړ او همدلته يې وواژه.

مقيس بن صبابه د نميله بن عبدالله له لاسه ووژل شو. مقيس مخکې اسلام راوړی وُ، مـدينې تـه تللی او هلتـه يـې يـو انصـاري وژلـی وو بيـا بيرتـه مرتـد شـوی او مکـې تـه راستون شوی وُ. حارث چې په مکه کې به يې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ډير زيان او اذيت رساوه د علي (رضي الله عنه) په لاس جهنم ته واستول شو.

هبار بن اسود هغه څوک وُ چې د زينب (رضـي الله عنهـا) د هجـرت پـه وخت کې يې د هغې اوښه تريولې وه چې په نتيجه کې زينب (رضي الله عنهـا) لـه اوښ نـه پر يـوه تيـږه لويدلې او خپل ماشوم يې ضايع کړی وُ. همدغه هبار چې مباح الـدم اعـلان شـوی وُ د

فتحې په ورځ وتښتيد وروسته په اسلام مشرف شو او رښتونی مسلمان ورنه جوړ شو. هغه دوې وينځې دمانې چې د وژلو امر يې شوی ؤ يوه يې ووژل شوه او بلې ته يې امن وغوښتل شو، پناه ورکړل شوه په اسلام مشرفه او نجات يې وموند. همدا راز ساره هم مسلمانه شوه او امان ورکړل شو.
ابن حجر وايي: ابو معشر وايي: د مباح الدم اعلان شويو په ډله کې حارث بن طلاطل خزاعي هم شامل ؤ چې د علي (رضي الله عنه) په لاس په هلاکت ورسيد. حاکم په همدې ډله کې د کعب بن زهير نوم هم راوړی دی. دده کيسه مشهوره ده، خو هغه وروسته راغی، اسلام يې راوړ. او د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ډيره مدحه يې وکړه. همدا راز حاکم پدې جمله کې د وحشي بن حرب، هند بنت عتبه چې د ابو سفيان ښځه وه او مسلمانه شوه، ارنب چې د ابن خطل وينځه وه او ووژل شوه او ام اسعد چې هغه هم په قتل ورسيده نومونه هم راوړيدي. (لدې جملې نه يوازې دوې وروستۍ ښځې (ارنب – ام سعد) وژل شوې دي دا د ابن اسحاق روايت دی) او پدې ترتيب هغه کسان چې د وژلو حکم يې شوی و ۱۴ تنه وو چې ۸ يې نارينه او ۶ يې ښځې وې امکان لري چې ام سعد او ارنب هماغه د ابن خطل وينځې وي، په نومونو، او يا لقبونو او کنيه نومونو کې به يې اختلاف پيدا شوی وي.[1]

## صفوان بن اميه او فضاله بن عمير اسلام راوړي

که څه هم رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د صفوان د وژلو حکم نه ؤ کړی او هغه يې مباح الدم نه ؤ بللی، خو څرنګه چې د قريشو د مخورو مشرانو له ډلې څخه و، وويريد او له مکې نه وتښتيد.
عمير بن وهب جمحي له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه امن ورته وغوښت، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې غوښتنه ومنله، امن يې ورکړ او خپله هغه مبارکه لنګۍ (دستار) يې ورولېږله چې مکې ته ورسره راغلی و.
عمير ورپسې ورغی هغه په جده کې ؤ پداسې حال کې يې ونيو چې په کښتۍ کې د يمن په لور روانيدونکی ؤ، د امن خبر يې ور ورساوه او بيرته يې راوګرځاوه. د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راغی او ورته ويې ويل: دوې مياشتې مهلت راکړه چې په مسئله کې ښه غور وکړم. رسول الله (صلی الله عليه و اله

[1]. فتح الباري ۸/ ۱۱_۱۲.

و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: (**أنت بالخیار أربعـــة أشـــهر**). څلور میاشتې مهلت درکوم.
هماغه وه چې وروسته صفوان په اسلام مشرف شو، ښځه یې له ده نه مخکې مسلمانه شوی وه، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په هماغه زړه نکاح دوی ته د ګډ ژوند اجازه ورکړه. فضاله چې ډیر میړنی شخص ؤ، کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) طواف کاوه، هغه راغی نیت یې درلود رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په قتل ورسوي، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هغه ته دده د بدې ارادې په هکله خبر ورکړ، پدې ترتیب سره هغه هم په ایمان مشرف شو.

## د فتحې په دوهمه ورځ د رسول الله (ﷺ) خطبه

د فتحې په دوهمه ورځ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د خطبې لپاره پورته شو، خلک ورته ناست وو. خطبه یې په حمد او ثنا سره پیل کړه ویې فرمایل: (**أيها الناس، إن الله حرم مكة يوم خلق السموات والأرض، فهي حرام بحرمة الله إلى يوم القيامة، فلا يحل لامرئ يؤمن بالله واليوم الآخر أن يسفك فيها دماً، أو يعضد بها شجرة، فإن أحد ترخص لقتال رسول الله صلى الله عليه وسلم فقولوا: إن الله أذن لرسولة ولم يأذن لكم، وإنما حلت لي ساعة من نهار، وقد عادت حرمتها اليوم كحرمتها بالأمس، فليبلغ الشاهد الغائب**).

اې خلکو! الله تعالی له هغې ورځې نه چې ځمکه او آسمان یې پیدا کړیدي مکې ته حرمت ورکړیدی او تر قیامته پورې د الله تعالی په حکم د همدې حرمت درلودونکې ده، هیڅ مؤمن ته هغه چې په الله او آخرت ایمان لري نده روا چې په مکه کې د چا وینه تویې کړي، یا د مکې ونه پرې کړي. که چا په مکه کې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په جنګ استدلال کاوه، نو ورته ووایئ چې الله تعالی خپل رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته اجازه ورکړې وه خو تاسې ته یې اجازه نده درکړې، ما ته د ورځې یوه برخه حلاله وګرزول شوه، خو نن بیرته د پرون په شان د مکې حرمت اعاده شو. موجود کسان دې دغه لارښوونې غايبينو ته ورسوي. په بل

روایت کې راځي چې ويې فرمایل: (**لا يعضد شوكه، ولا ينفر صيده ولا تلتقط ساقطته إلا من عرفها، ولا يختلى خلاه**)، **فقال العباس: يا رسول الله، إلا الإذخر، فإنه لقينهم وبيوتهم، فقال**: (**إلا الإذخر**). د مکې اغزي پرې کول هم ندي روا، ښکار یې له ځایه نه پورته کول کیږي، په ځمکه پراته بې مالکه شیان یې نه اخیستل کیږي، یعنې چا ته نده روا چې په لارو کې موندل شوي شیان واخلي، خو هغه کسان چې دا شیان و پیژني یعنې خپل یې وي او یا یې مالک ته ورسولی شي نو بیا ورته روا ده چې پورته یې کړي. او نه ده روا چې ځوک ددې ځای وابنه پرې کړي یعنې د وښو پرې کول هم جواز نلري. عباس (رضي الله عنه) عرض وکړ یا رسول الله! له اذخر (یو ډول بوټی دی) پرته ځکه دا یې د کورونو او وینځو لپاره دی. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: بیله اذخر څخه. مطلب دا چې دا بوټی مستثنی شو، پرې کول یې جواز لري.

پدې ورځ خزاعه قبیلې له بني لیث قبیلې نه یو کس د خپل مړي په بدل کې چې د جاهلیت په دوران کې بني لیث وژلی ؤ وواژه. پدې هکله رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) داسې وفرمایل: (**يا معشر خزاعة، ارفعو أيديكم عن القتل، فلقد كثر القتل إن نفع، ولقد قتلتم قتيلا لأدينه، فمن قتل بعد مقامي هذا فأهله بخير النظرين، إن شاءوا فدم قاتله، وإن شاءوا فعقله**).

اې خزاعه والو! له وژلو نه ډډه وکړئ که په وژلو کې ګټه وي، نو بس دي ډیر مو وژلي دي، تاسې داسې څوک وواژه چې باید زه یې دیت ورکړم که چا لدینه وروسته څوک ووژل، نو د مقتول کورنۍ کولی شي په خپله خوښه یا قاتل ووژني (قصاص شي) او یا دا چې د مقتول دیت تر لاسه کړي. په بل روایت کې راغلي، د یمن یو اوسیدونکی چې ابو شاه نومیده پورته شو او عرض یې وکړ یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! ماته څه ولیکه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (**اكتبوا لابي شاه**). ابو شاه ته ولیکئ[1].

## د انصارو اندیښنه

[1] . صحیح البخاري ۲۲/۱، ۲۱٦_۲٤۷_۳۲۸_۳۲۹+۲/٦۱٥_٦۱۷. صحیح مسلم۱/٤۳۷_٤۳۹. ابن هشام ۲/٤۱٥تر ٤۱٦. ابو داود ۱/۲۷٦.

کله چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له خوا مکه مکرمه فتحه شوه، هغه مکه چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) کور، وطن، اصلي ټاټوبی وُ. انصارو پخپل مینځ کې سره وویل: اوس چې الله تعالی خپل رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د مکې په فتحې سره ونازاوه، او خپل ټاټوبی یې ورته فتح کړ، نو آیا فکر نه کوئ چې دې به همدلته پاتې شي؟! دا خبرې یې پداسې وخت کې کولې چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په صفا ولاړ وُ لاسونه یې په دعا پورته نیولي و. کله چې له دعا نه فارغ شو، انصارو ته یې وویل: (**ماذا قلتم؟**) څه مو سره وویل؟ دوی ځواب ورکړ هیڅ مو هم ندي ویلي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) اصرار وکړ تر څو هغوی خپله خبره ورته وکړه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: (**معاذ الله، المحیا محیاکم، والممات مماتکم**). الله ته پناه وړم، مرګ به مې له تاسې سره وي، او ژوند به مې هم له تاسې سره وي.

**بیعت**

وروسته له هغې چې د الله په کرم سره مکه فتحه شوه، د مکې خلکو ته حقیقت څرګند شو، په حق پوه شول باوري شول چې له اسلام پرته بله د نجات او بري لاره نشته، نو په اسلام مشرف شول او له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره د بیعت لپاره راټول شول. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په صفا ناست و خلک ورته راتلل او بیعت یې ورسره کاوه، عمر (رضي الله عنه) لاندې ولاړ وُ خلک یې تنظیمول. خلکو ټول پدې بیعت ورسره وکړ چې د توان په اندازه به د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر مني او پیروي به یې کوي.

په تفسیر مدارک کې راځي[1]: وروسته له هغې چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د نارینه وو له بیعت نه فارغ شو، نو ښځو ورسره بیعت پیل کړ. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) همهلته صفا کې تشریف درلود عمر لاندې ورته ناست و. ښځې به راتللې او عمر به د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په امر بیعت ورنه اخیست، او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خبره به یې ورته رسوله. په همدې وخت هند بنت عتبه راغله ځان یې پیچلی او

[1]. تفسیر المدارک د بیعت آیت ته دی مراجعه وشي.

پټ کړی وُ، له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه ويريدله چې ويې نه پيژني ځکه له حمزه (رضي الله عنه) سره يې ډير ظلم کړی وُ، همدا وجه وه چې پداسې حال کې بيعت ته راغله چې ځان يې ښه پيچلی وُ.

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ښځو ته وفرمايل: (**أبايعكن علـــى ألا تشركن بالله شيئا**).

پدې بيعت درنه اخلم چې له الله تعالی سره به هيڅ شريک نه نيسئ، عمر (رضي الله عنه) په همدې سره چې له الله سره به شريک نه نيسئ له ښځو نه بيعت واخيست. بيا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**ولا تسرقن**) پدې به بيعت کوئ چې غلا به نه کوئ، پدې وخت کې هندې وويل: ابو سفيان ډير سخت او بخيل سړی دی، که فرضا زه د هغه له مال نه څه اندازه واخلم، نو آيا دا هم غلا شميرل کيږي؟ ابو سفيان وويل: ځه، څه دې چې زما له مال نه واخيستل يا دې اخيستي هغه درته حلال دي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وخندل، هنده يې وپيژندله او ويې فرمايل: (**وإنك لهند؟**) ته هنده يې؟ دې وويل: هو، زه هنده يم عفوه راته وکړه، يا نبي الله، الله تعالی دې تا ته عفوه وکړي!

بيا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**ولا يـــزنين**). پدې به بيعت کوئ چې زنا به نه کوئ، هند وويل: آيا اصيله ښځه هم زنا کوي؟ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**ولا يقتلن أولادهـــن**). د بيعت بل ټکی به دا وي چې خپل اولاد به نه وژنئ. هند وويل: مونږ خو هغوی واړه لوی کړل، خو تا سړي راته ووژل، تاسې پوه شه او دوی، د بدر په ورځ ددې زوی حنظله بن ابي سفيان وژل شوی وُ. پدې سره عمر (رضي الله عنه) دومره وخندل چې پريوت، او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) هم مسکی شو. بيا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**ولا يأتين ببهتان**) پدې به بيعت کوئ چې بهتان به نه کوئ، هند وويل: بهتان ډير بد کار دی، يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! ستا ټول امرونه ډير نيک او غوره دي.

بيا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**ولا يعصـــينك في معروف**) پدې به بيعت راسره کوئ چې په نيکۍ کې به سرغړونه نه کوئ، هميشه به

مې امر منئ، هند وويل: دلته چې درته راغلي يوو، نو دا مو په زړه کې نشته چې بيا به دې نافرماني کوو. هند چې کله ستنه شوه، د خپل بت په ماتولو يې شروع وکړه او ويل يې مونږ په تا غوليدلي او تيروتلي وو.

## په مکه کې د رسول الله (ﷺ)هستوګنه

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نولس (۱۹) ورځې په مکه کې پاتې شو، خلک يې اسلام ته رابلل، د هدايت او تقوی لاربښوونې يې ورته کولې. په همدې ورځو کې يې اسيد خزاعي ته وظيفه ورکړه چې د حرم شريف پولې تازه او نوې کړي، نوي بريدونه يې ورته کېښودل. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د اسلامي بلنې لپاره يوه خوا بله خوا دعوتي ګروپونه واستول، دې ګروپونو ته يې همدارنګه امر کړی ؤ چې د مکې په شاو خوا کې موجود بتان مات کړي. همدا وه چې ټول بتان مات شول. د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له اړخه په مکه کې اعلان وشو: څوک چې په الله او آخرت ايمان لري بايد پخپل کور کې بت ونه ساتي که له چاسره بت وي بايد فوراً يې مات کړي.

## جنګي ګروپونه او پلاوي

۱- **له فتحې نه وروسته** چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ډاډه شو، د آتم هجري کال د رمضان په **۲۵** مه يې خالد بن وليد (رضي الله عنه) ته وظيفه ورکړه چې عزی نومي بت ته ورشي او دړې وړې يې کړي. دغه بت په نخله نومه سيمه کې ؤ دا د قريشو او ټولو بني کنانه تر ټولو لوی معبود ؤ، منجوري يې له بني شيبان قبيلې سره وه. خالد له **۳۰** سپرلو سره ورغی او دړې وړې يې کړ. کله چې بيرته راغی رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پوښتنه ورنه وکړه : **(هل رأيت شيئا؟) قال : لا قال: (فإنك لم تهدمها فارجع إليها فاهدمها) فرجع خالد متغيظًا قد جرد سيفه فخرجت إليه امرأة عريانة سوداء ناشرة الرأس فجعل السادن يصيح بها، فضربها خالد فجزلها باثنتين، ثم رجع إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم فأخبره، فقال: (نعم، تلك العزى، وقد أيست أن تعبد في بلادكم أبدا)**څه دې وليدل؟ ده وويل: هيڅ مې هم و نه ليدل. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: نو بيا دې

مات کړې ندی، ورشه او مات یې کړه.
خالد (رضي الله عنه) بیا ور روان شو ښه په غوسه ۍ توره یې په لاس کې نیولې وه، که ګوري چې یوه لوڅه لغړه توره ببر سرې ښځه یې مخې ته راووتله، منجور چیغې پسې و هلې، خو خالد د تورې په ګوزار سره دوې ټوټې کړه بیا د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته حاضر شو او کیسه یې ورته وکړه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: هو، همدا ښځه عزی بت ۍ، هغه به نور تر قیامته دلته ونه نمانځل شي.

۲- په همدې میاشت کې یې عمرو بن عاص (رضي الله عنه) ته وظیفه ورکړه چې لاړ شي او سواع نومی بت ونړوي. دغه بت له مکې نه درې میله لیرې د رهاط په سیمه کې ۍ او هذیل قبیلې به یې عبادت کاوه. کله چې عمرو هلته ور ورسید منجور یې ورته وویل: څه غواړې؟ ده وویل: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر راته کړی چې دغه بت ونړوم. منجور ورته وویل: دا کار نه شې کولی. ده ورته وویل: ولې؟ هغه وویل: ددې کار اجازه نه درکول کیږي، یعنې لاس به دې نیول کیږي. عمرو ورته وویل: ته لا تر اوسه هم په غلطه روان یې، ستا په حال صد افسوس، آیا دغه بت ویني او اوري؟ چې ته یې په هکله دا تصور لرې؟ بیا ورنږدې شو او بت یې ټوټې کړ، خپلو ملګرو ته یې امر وکړ چې د بت د خزانو کوټې هم ونړوي، هغه یې ړنګې کړې خو هیڅ یې پکې ونه موندل، بیا یې منجور ته وویل: ودې لیدل څنګه شو؟ هغه وویل: الله ته تسلیم یم.

۳- په همدې میاشت کې یې سعد بن زید اشهلي (رضي الله عنه) ته امر وکړ چې له ۲۰ سپرو سره لاړ شي او منات بت ړنګ کړي. دغه بت په مشلل سیمه کې له قدید سره نژدې پروت و، اوس، خزرج او غسان قبیلو به یې عبادت کاوه. کله چې سعد ورغی منجور یې ورته وویل: څه غواړې؟ ده ورته وویل: منات نړوم. ده ورته وویل: دا ته او دا منات. سعد ورمخکې شو، دلته هم یوه توره بربنډه ببرسرې ښځه راووتله، ښیرې او نالې کوي، سینه ډبوي، منجور ورته وویل: اې مناته! پام دا له تا نه باغیان دي، نیسه یې! سعد ګوزار پرې وکړ او ویې وژله. بیا بت ته ورغی درې وړې یې کړ، دلته یې هم په خزانه کې هیڅ و نه موندل.

۴- خالد چې د عزی له ماتولو نه بيرته راستون شو، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د همدې کال په شعبان مياشت کې بني جذيمه ته وليږه تر څو هغوی اسلام ته رادعوت کړي. همدا وه چې له (۳۵۰) مهاجرو او انصارو او د بني سليم له کسانو سره روان شو ورغی هغه خلک يې اسلام ته راوبلل. دوی ددې پر ځای چې ووايي اسلمنا يعني اسلام مو راوړيدی ويې ويل صبانا، صبانا يعني دين موبدل کړ، دين موبدل کړ، پدې خبرې سره خالد پيل وربانديې وکړ وژل يې او نيول يې، دومره اسيران يې ورنه ونيول چې هر کس ته يې يو اسير ورکړ، يوه ورځ يې بياخپلو ملګرو ته امر وکړ چې هر څوک دې خپل اسير ووژني، ابن عمر او ملګرو يې دا امر ونه مانه. او کله چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راغلل دا کيسه يې ورته وکړه، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپل لاسونه پورته کړل او ويې فرمايل: (**اللهم إني أبرأ إليك مما صنع خالدًا**). اې ربه! زه د خالد له کړو نه برائت اعلانوم، دا خبره يې دوه ځله تکرار کړه.[1]

د خالد له ملګرو نه يوازې د بني سليم کسانو خپل بنديان وژلي وو، مهاجرينو او انصارو دا امر نه ؤ منلی. پدې پسې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) علي (رضي الله عنه) واستاوه تر څو د هغې قبيلې د مړيو ديت ورکړي او د تاوان معاوضه يې ادا کړي. ددې پيښې په اړه د خالد او عبدالرحمن بن عوف تر مينځ سخت جنال را پيدا شوی ؤ، خبره ان رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ورسيده چې بيايې خالد ته وفرمايل: (**مهلا يا خالد، دع عنك أصحابي، فوالله لو كان أحد ذهبا، ثم أنفقته في سبيل الله ما أدركت غدوة رجل من أصحابي ولا روحته**). پام کوه خالده! زما له اصحابو سره غرض مه لره، قسم په خدای که د احد غره په اندازه سره زر د خدای په لار کې خيرات ورکړې، زما د يوه صحابي د سهار او يا ماښام قدرې اجر به هم ونه مومې.[2]

دا وه د مکې فتحه، همدا سرنوشت ټاکونکې غزا او لويه سوبه وه، په همدې سوبې سره شرک له منځه لاړ، له عربي جزيره نه د شرک ټغر ټول شو. مخکې زياترو قبيلو د اسلام او کفر تر منځ د جګړې پايلې او نتيجې ته انتظار يوست. دوی دا باور

---

[1]. صحيح بخاري ۱/ ۴۵۰ . ۲/ ۶۲۲

(2). ددې غزا تفصيلات مو لدې کنابونو څخه اخستی دي: ابن هشام ۲/ ۲۸۹ تر۴۳۷. بخاري(کتاب الجهاد و کتاب المناسك او ۲/۶۱۲ تر ۶۲۲، فتح الباري ۳/۸تر ۲۷، مسلم۱/۴۳۷_۴۳۹، ۲/۱۰۲_۱۰۳_۱۳۰ زاد المعاد۲/۱۶۰تر۱۶۸، مختصره سيره الرسول۳۲۲_۳۵۱.

درلود چې په حرم شريف کې به حتماً د حق غلبه وي. دوی ته دا باور هغه وخت پيدا شوی ؤ او ورنه په اثبات رسيدلی و چې نيمه پيړۍ مخکې اصحاب الفيل مات او هلاک شوي وو، و ﷺ نه شوای کړای بيت الله شريف او حرم ونيسي. دوی ايمان درلود چې په حرم به د حق حاکميت وي. د ﷺ حديبيې تړون ددې لويې فتحې سريزه او پيلامه وه. د هغه تړون له برکته خلک په امن شول يو له بل سره يې د اسلام په هکله مناقشې وکړې، په مکه کې پټ مسلمانان را ښکاره شول، او له همدې امله ډير خلک په اسلام مشرف شول، ومو ليدل چې د فتحې په ورځ د اسلامي لښکر شميره لس زرو ته رسيدلې وه.

د مکې په فتحې سره له ټولو حقايقو نه پردې پورته شوې، په ټوله عربي جزيره کې د اسلام او مسلمانانو سياسي او ديني حاکميت ثابت شو، په ديني او د نيوي لحاظ دواړو سره مشرتابه د دوی په لاس کې ولويده حالاتو د مسلمانانو په ګټه بدلون وموند، روښانه او ځلانده سوبه وشوه، پدې پسې نور حالات له هر پلوه د مسلمانانو په ګټه څرخيدل. هر څه د دوی په واک کې وو. نورو اقوامو او قبايلو بله چاره نه درلوده، مجبور وو ټول د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته حاضر شي پخپله په اسلام مشرف او نور خلک ورته راوبولي. په دې ډول سره په دوو راتلونکو کلونو کې ټول خلک د اسلام دعوت منلو او نورو ته رسولو لپاره تيار او چمتو شول.

# دریمه مرحله

دا مرحله د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ژوند وروستنۍ مرحله ده په همدې دوره کې د اسلامي دعوت ونې بار راوړ جهاد او کړاونو نتیجه ورکړه. او عربي جزیرې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او مسلمانانو د نه ستړویدونکو هلو ځلو، منډو تړړو او مشکلاتو په نتیجه کې پخه شوې میوه وخوړه. د مکې فتحه هغه لویه کامیابي او ګټهاټ ؤ چې په لاسته راوړو سره یې د تاریخ مسیر بدل شو، په دغه سوبې سره ماضي له راتلونکې نه بیله شوه، د جاهلیت په زمانه کې قریش د دیني زعامت د سمبول په حیث پیژندل کیدل، خلکو ټولو هغوی د دین انصار بلل، ټولو د دوی دیني زعامت منلی ؤ، خو اوس د همدې دیني مشرانو (قریشو) تسلیمي او له اسلام نه پیروي په حقیقت کې په ټوله عربي جزیره کې د بت پرستۍ د له مینځ تللو په معنی وه، حقیقت هم همداسې ؤ په همدې فتحې سره له جزیرې نه د بت پرستۍ ټغر ټول شو.

## دا مرحله په دوو برخو ویشلی شو:

۱- د جهاد او قتال برخه.

۲- اسلام ته د ولسونو او قبایلو تسلیمي.

دا دواړه برخې یو له بل سره اوبدل شوې، یو له بل سره تړل شوې او یو په بل کې ننوتلې دي، خو مونږ زیار ایستلی هره برخه بیله تر نظر تیره کړو، څرنګه چې جهاد او قتال په مخکیني دور پورې ډیر تړلی دی، نو ځکه مو لومړی د جهاد او قتال برخې ته ځای ورکړیدی.

# د حنين غزا

مکه مکرمه د ناڅاپي او داسې حملې په ترځ کې فتحه شوه چې عربان يې حيران کړل، شاو خوا پرتې قبيلې له فتحې نه وروسته د داسې واقعيت په وړاندې ولاړې وې چې د بدلون او تغيير وس يې نه درلود. همدا وجه وه چې لـه ځو زوررو، شريرو او کبرجنو پرته نورې ټولې قبيلې په اسلام مشرفې شوې. له هغې جملې نه چې کبر او سرکشي يې وکړه د هوازن او ثقيف قبيلې وې. دوی اسلام و نـه مانـه د مقـابلې لاره يې خپلـه کړه، ورسره د قيس عيلان قبيلې ځينې کورنۍ لکـه نصر، جشم، سعد بـن بکـر او د بني هلال ځينې کسان هم ملګري وو. دوی د ځان لپاره دا مناسبه و نه بلله چې اسلام ته سر کيږدي، فيصله يې وکړه چې له رسول الله (صلی الله عليـه و الـه و صحبه و سلم) سره به ټکر کوي. لاړل خپل مشر مالک بـن عـوف نضري تـه ورغلل لـه هغـه نـه راټول شول او د جګړې لپاره يې ملا وتړله.

## د دښمن لښکرې په اوطاس کې

د دښمن ځواکونو عمومي قوماندان مالک بن عوف له خپلو لښکرو سره روان شو، لـه ټولـو سره يې اولادونـه ښځې او مالونـه هم وو، مخکې تـر اوطـاس پـورې ورسيدل. اوطاس حنين ته نژدې د هوازن قبيلې يوه دره وه. حنين او اوطاس دوې بيلې بيلې درې دي، حنين د ذي مجاز خوا تـه پرتـه ده چې ددې ځـای او عرفـات د غـره تـر مينځ څـه باندې لس ميله مسافه ده .[۱]

## د پوځي امورو ماهر بوډا د خپل مشر غلطي په ګوته کوي

کله چې مالک بن عوف په اوطاس کې واړول. د خلکو په مينځ کې دريد بـن صـمه هم وٌ، نوموړی ډير زوړ، خو غيرتي، په جنګي امورو کې مـاهر او تجربـه کـار سـپين ږيـری وٌ. دريد لـه خپلو ملګرو نـه پوښتنـه وکړه اوس مونږ پـه کومـه دره کې پراتـه يـوو؟ دوی

[1]. فتح الباري ۸/ ۲۷ - ۴۲

ورته وویل: په اوطاس دره کې یوو. دغه زاړه تجربه کار جنګي ماهر وویل: دا د آسونو د جنګ لپاره ډېره مناسبه دره ده، نه تیږې شته پکې نه ډېره نشیبه او ځوړه ده، نه ډېره کلکه ده او نه ډېره نرمه، ښه آس ځغلولو ته برابره ده.
بیا یې وویل دا څه دي د اوښ آواز مې تر غوږو شو، د خرو او پسونو آوازونه هم اوریدل کیږي، د ماشومانو ژړاګانې هم اورم دا څه دي؟ خلکو ورته وویل چې مالک بن عوف امر کړی چې ټول خلک باید له ځان سره ښځې، اولادونه او مالونه ټول راولي. مالک یې راوغوښت او ددې کار د علت په هکله یې پوښتنه ترې وکړه. مالک ورته وویل زما هدف دا دی چې له خلکو سره چې مالونه او اولادونه وي، نو دوی به سخته جګړه او مقاومت وکړي، له خپل اولاد او مال نه د دفاع پخاطر به هر څه کوي. درید ورته وویل: ربښتیا چې شپون یې یعنې د مشرتابه وړ نه یې، څوک چې یو ځل ماتې وخوري بیا یې څه شی راټینګولی شي؟! که برې ستا وي نو یوازې وسله وال کسان به دې په درد وخوري او که ماتې دربانديې ګډه شوه نو د مال، اولاد او ښځو تاوان به هم در اوښتی وي، رسوا او شرمیدلی به وې. بیا یې د ځینو سردارانو او قبیلو نه پوښتنه وکړه بیا یې ورته وویل: اې مالکه! تا د بني هوازن ماشومان او ښځې د سپرو تورزنو مقابلې ته راوستلې دي، دا مناسب کار ندی. دوی محفوظو، خوندي او د قوم هسکو مینو ته ولیږه، د دوی له لیږلو نه وروسته په آسونو پښه واړوئ او له بې دینانو سره وجنګیږئ، که بریالي شوئ نو وروسته پاتې شوي به درسره یو ځای شي، او که ماتې مو وخوړه، نو ستاسې اولاد، ښځې او مالونه خو به خوندي پاتې شوي وي! مالک ددې زاړه خبره ونه منله، د هغه نصیحت ته یې غوږ ونه نیو، او ویې ویل: زه داسې نه شم کولی ته زوړ شوی یې، عقل دې هم زوړ شویدی، قسم په خدای چې هوازن به یا زما اطاعت کوي او یا به دا توره پخپله خېټه منډم تر څو له شا مې ووزي. حقیقت دا دی چې اصلاً مالک نه غوښتل د درید نوم لوړ شي، او پدې جګړه کې دده رول وي، پدې خبرې سره د هوازن خلکو وویل: مونږ ستا پیروي کوو. درید وویل چې: دا داسې جګړه ده چې نه پوره ونډه پکې لرم او نه پوره ورنه بېل یم بیا یې دا شعر ووایه:

| | |
|---|---|
| یا لیتني فیها جذع | اخب فیها و اضع |
| اقود وطفاء الدمع | کانها شاة صدع |

[کاشکې زه پدې ورځ ځوان وای، برید، حمله او منډه تړه مې کولی، هغه آس مې ځغلولی چې د متوسط یا برابر پسه په شان اوږده ویښتان لري.]

## د دښمن جاسوسان

په همدې وخت کې هغه جاسوسان هم بيرته راورسيدل کوم چې مالک د مسلمانانو د حالاتو معلومولو پخاطر ليږلي وو. هغوی په ډير بد حالت کې راغلي وو، ټوک ټوک وو، روحيات يې لويدلي وو، مالک ورته وويل: خوار شئ دا څه دربانديې شوي؟ هغوی ورته وويل: مونږ وليدل چې سپين سپين خلک په تور بخونو آسونو سپاره دي، ددې منظر په ليدو سره له واکه ووتلو نور ټينګ نه شوو او پدې حالت ګرفتار شو.

## د رسول الله (ﷺ)استخبارات

وروسته له هغې چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د دښمن ځواکونو له تحرکاتو نه خبر شو، ابو حدرد اسلمي ته يې وظيفه ورکړه چې لاړ شي د دښمن په مينځ کې ځای ونيسي او مکمل احوال يې راوړي.

## رسول الله (ﷺ)د حنين په لور

د آتم هجري کال د شوال په شپږمه د شنبې په ورځ مکې ته د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د راتګ په نولسمه ورځ، اسلامي لښکر چې شميره يې دولس زره تنه وه له مکې نه د حنين په لور روان شو. په اسلامي لښکر کې لس زره هغه مسلمانان وو چې د مکې په فتحه کې يې برخه درلوده او پاتې دوه زره نور د مکې خلک وو چې زياتره يې تازه په اسلام مشرف شوي وو. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) عتاب بن اسيد په مکه کې خليفه وټاکه، له صفوان بن اميه نه يې چې لا مشرک ؤ سل زغرې عاريت واخيستلې او روان شو.

د شپې له خوا يو سپور راغی خبر يې راوړ چې: زه فلانې غره ته تللی وم، ومې ليدل چې هوازن قبيله ټوله له اولادونو، ښځو او مالونو سره راوتلې ده. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تبسم وکړ او ويې فرمايل: (**تلك غنيمة المسلمين غدًا إن شاء اللّٰه**). ان شاء الله سبا ته به دا ټول شيان د مسلمانانو له خوا ولجه نيول کيږي. په همغه شپه انس بن ابي مرثد غنوي[1] په رضا کارانه توګه پيره کوله.

---

[1]. سنن ابي داود و شرحه عون المعبود ۲/ ۳۱۷

مسلمانانو د لارې په اوږدو کې یوه لویه شنه ونه ولیدله چې ذات انواط بلل کیدله. عربانو به په هغې باندې خپلې وسلې را ځړولې او هملته به یې ذبحه کوله او څه وخت به ورسره پاتې کیدل. له مسلمانانو نه هم ځینو وویل: یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! مونږ ته هم لکه د مشرکینو په شان یوه ذات انواط جوړه کړه! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: (**اللّه أكبر، قلتم والذي نفس محمد بيده كما قال قوم موسي: اجعل لنا إلها كما لهم آلهة، قال: إنكم قوم تجهلون، إنها السَّنَنُ، لتركبن سُنَنَ من كان قبلكم**)[1].

الله اکبر، تاسې خو داسې خبره وکړه لکه څرنګه چې د موسی قوم موسی (علیه السلام) ته کړې وه. ورته ویلي یې وو، مونږ ته هم د دوی د خدایانو په شان خدای جوړ کړه! په ځواب کې موسی (علیه السلام) ورته ویلي وو چې تاسې نه پوهیږئ، ربتیا ده چې دا هماغه طریقه ده تاسې به حتما د پخوانیو قومونو لارې او طریقې تعقیبوئ.

ځینو مسلمانانو چې د لښکر دا دومره زیات شمیر لیدلی و، نو ویل یې نن خو به بالکل ماتې ونه خورو، خو دا خبره په رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ډیره سخته تمامه شوې وه.

## اسلامي لښکر تر غلچکي برید لاندې

د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لښکر د چارشنبې په شپه د شوال په لسمه حنین ته ورسید. خو مالک بن عوف له مسلمانانو نه مخکې هلته رسیدلی و، خپل عسکر یې د درې په مهمو ځایونو، لارو او تنګیو کې ځای په ځای کړي وو، امر یې ورته کړی و چې دې ځای ته د مسلمانانو په رسیدو سره سم باید برید ورباندې وشي او په غشو وویشتل شي.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سهار وختي خپل لښکر تیار کړ، جنډې او بیرغونه یې وترل په مسلمانانو یې وویشل، او په دره کې مخ په وړاندې روان شول. په همدې وخت کې په کمین کې ناست دښمن د غشو باران پرې جوړ کړ، سخته حمله یې ورباندې وکړه، مسلمانان مجبور شول شا تګ وکړي، خو منظم شاتګ نه، بلکه ماتې ورباندې ګډه شوه هر چا خپله مخه ونیوه، یو په بل خبر نه و، ابو سفیان

---

[1]. ۲- الترمذي.

چې نوی مسلمان شوی ؤ ددې حالت په لیدو سره وویل اوس یې والله که څوک په سره بحیره کې هم راتینګ کړای شي!
جبله یا کلده چې د جنید زوی ؤ وویل: خبردار! دا دی نن جادو او سحر باطل او مات شو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ښي طرف ته مخ واړاوه او فرمایل یې: (**هَلُمُّوا إلى أيها الناس، أنا رسول الله، أنا محمد بن عبد اللّه**) اې خلکو! زما خوا ته راشئ، زه رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یم، زه محمد بن عبدالله یم. پدې شیبو کې یوازې کم شمیره مهاجرین او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د کورنۍ غړي ورسره پاتې وو. همدلته یو ځل بیا د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) بې مثله غیرت او میړانه په اثبات ورسیدله په پوره جرات او شجاعت سره یې مقابله کوله او فرمایل به یې: (**أنـــــا النبي لا كَذِبْ ** أنا ابـــن عبد المطلب**) زه رینښتونی پیغمبر یم، زه د عبدالمطلب زوی یم.
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د غره په شان ولاړ ؤ ابو سفیان بن حارث یې د قاطرې واګې نیولې وې، عباس (رضي الله عنه) یې رکاب ته ولاړ ؤ د جګړې په همدې سختو لحظاتو کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) راکوز شو او له خپل رب نه یې د بري سوال وکړ، ویې ویل: (**اللّهم أنزل نصرك**). یا ربه! بری راکړې، نصرت را په برخه کړې!

## مسلمانان بیرته راګرځي

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپل تره عباس (رضي الله عنه) ته چې ښه لوړ غږ یې درلود امر وکړ چې خلکو ته چیغه وکړي. عباس (رضي الله عنه) وایي: ما په لوړ آواز غږ وکړ: چیرته دي د بیعه الرضوان یاران؟ وایي: ددې آواز په اوریده سره هغوی داسې را تاو شول او دومره په بیړه راغلل لکه چې غوا پخپل خوسي پسې ورځي، ټولو وویل: لبیک، لبیک[1]. ځینو به کوشش کاوه چې د خپل اوښ مخه راواړوي خو نه به یې شوای کولی، نو له اوښ نه به راکوزیده، هغه به یې پرېښود، له خپلې زغرې او تورې سره به د آواز په لور راته، پدې ترتیب سره تقریبا سل تنه راټول شول او په دښمن یې ورودانګل.

---

[1] .صحیح مسلم ۱۰۰/۲.

بیا یې انصارو ته بلنه ورکړه، غږ یې وکړ اې انصارو! اې انصارو! بیا یې یوه یوه قبیله یادوله پدې ترتیب سره خبره بني حارث بن خزرج ته ورسیده.
مسلمانان ټول یو په بل پسې راتلل، ټول ګروپ ګروپ بیرته د جګړې میدان ته راغلل، سخته جګړه پیل شوه، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) چې د جګړې حالت ولید ویې فرمایل:

(**الآن حَمِي الوَطِيسُ**) اوس د جګړې تنور ګرم شو.

بیا یې یو موټی خاورې واخیستلې او د مشرکانو پر مخونو یې وروشیندلې او ویې فرمایل (**شاهت الوجوه**) [بد دې وي دا مخونه.] دا خاورې د مشرکینو په سترګو کې ولویدلې د ټولو سترګې ډکې شوې او په همدې ډول ورو ورو د کفر په لښکر کې ماتې ګډه شوه او د مقابلې توان یې له لاسه ورکړ.

## د دښمن ماتې

د همدې یو موټي خاورو له شیندلو نه لږ وروسته په دښمنانو کې ماتې ګډه شوه، یوازې له ثقیف قبیلې نه ۷۰ تنه ووژل شول. مسلمانانو د هغوی مال، وسله، اهل اولاد ټول غنیمت کړل.
دې حالت ته الله تعالی داسې اشاره فرمایې:

((**لَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ فِي مَوَاطِنَ كَثِيرَةٍ وَيَوْمَ حُنَيْنٍ إِذْ أَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنْكُمْ شَيْئاً وَضَاقَتْ عَلَيْكُمُ الأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ ثُمَّ وَلَّيْتُمْ مُدْبِرِينَ (٢٥) ثُمَّ أَنزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَى رَسُولِهِ وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ وَأَنزَلَ جُنُوداً لَمْ تَرَوْهَا وَعَذَّبَ الَّذِينَ كَفَرُوا وَذَلِكَ جَزَاءُ الْكَافِرِينَ**)) (التوبة: ٢٥ – ٢٦)

[الله تعالی له تاسې سره په ډیرو ځایونو کې مدد کړیدی، او خصوصا د حنین په ورځ چې غره کړی تاسې ډیروالي ستاسې، دغه ډیروالي ستاسې هیڅ درد دوا نه کړ، له ویرې نه دا ارته ځمکه دربانديې تنګه شوه، بیا مو شا کړه دښمن ته بیا الله خپل تسکین نازل کړ پر رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او مؤمنانو باندې، او داسې لښکرې یې راولیږلې چې نه وې لیدلې تاسې او کافرانو ته یې عذاب او جزا ورکړه، د کافرانو سزا همدا ده.]

## مسلمانان په دښمنانو پسې

دښمن ماتې وخوړه، ځينې يې طائف، نور يې نخله او يوه ډله يې اوطاس ته وتښتېدل. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ابو عامر اشعري د يوه ګروپ په مشرۍ اوطاس ته وليږه. هلته څه کمه جګړه وشوه مشرکينو بيا ماتې وخوړه، خو ابو عامر (رضي الله عنه) هم په شهادت ورسيد.

د سپرو مسلمانانو يو بل ګروپ په هغو مشرکينو پسې ورغی چې نخلې ته تښتېدلي وو. هلته ربيعه بن رفيع هغه زوړ دريد بن صمه وواژه. زيات شمير مشرکان طائف ته وتښتېدل چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د غنيمتونو له ټولولو وروسته هلته ورپسې ورغی.

## غنيمتونه يا ولجې

ددې غزا ولجې ډېرې زياتې وې، پدې ولجو کې ۶۰۰۰ اسيرانې (وينځې) ۲۴۰۰۰ اوښان، له څلويښت زرو نه زيات پسونه، ۴۰۰۰ اوقيه نقره يا سپين زر( اوقيه هغه وخت د زرو د اندازې يو مقياس ؤ چې تقريبا له ۷ مثقالو سره برابره ده) چې ټول ۱۶۰ زره درهم کيدل. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) امر وکړ چې ټول غنيمتونه په جعرانه کې راټول شي، مسعود بن عمرو غفاري ته يې وظيفه ورکړه چې د هغې ساتنه وکړي، او د طائف له غزا نه مخکې يې د ويشلو حکم نه وکړی.

د اسيرو ښځو په ډله کې شيماء بنت حارث السعديه چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) رضاعي خور کيدله هم وه کله چې هغه راوستل شوه، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپل چادر ورته وغوړاوه، شيماء وربانډې کيناستله، نيکي يې ورسره وکړه او خپل قوم ته يې وليږله.

# د طائف غزا

د طائف غزا په حقيقت کې د حنين د غزا ادامه ده، ځکه د هوازن او ثقيف ماتې خوړلې لښکرې له خپل قوماندان مالک بن عوف نضري سره يو ځای لاړې، او ټول په طائف کې ميشته شول، هملته يې په کلاګانو کې ځايونه ونيول. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) چې په جعرانه کې د ولجو له ټولولو نه فارغ شو د همدې آتم کال په شوال مياشت کې د طائف په لور وخوځيد.

خالد (رضي الله عنه) يې له زرو مخکښانو سره مخکې وليږه، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) هم ورپسې روان شو له نخله يماني، قرن المنازل ورپسې له ليه نه تير شو، هلته د مالک يوه کلا وه هغه يې ړنګه کړه، مخکې لاړ طائف ته له رسيدو سره سم يې د طائف کلا محاصره کړه، نژدې يې سنګر ورته ونيو. ددغه کلابندۍ موده لنډه نه وه. مسلم له انس (رضي الله عنه) نه په روايت سره دا موده څلويښت (۴۰) ورځې ښودلې ده، خو سيرت ليکونکو دغه موده د رواياتو په خلاف سره شل ورځې، يا ۱۸ ورځې او يا ۱۵ ورځې ښودلې ده.[۱]

د محاصرې په دوران کې دواړو خواوو يو پر بل د تيرو او غشو وارونه کول، په لومړي سر کې مسلمانان د محاصره شويو کفارو له خوا د غشو تر سخت بريد لاندې راغلل. يو شمير ورنه ټپيان او ۱۲ تنه شهيدان شول، په پاې کې مجبور شول خپل سنګر بدل کړي او په هغه ځای کې يې نوې قرارګاه جوړه کړه چيرته چې اوس د طائف جومات دی.

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) منجنيق يا د هغه وخت توپ نصب کړ په مشرکينو يې ګوزارونه وکړل، کلا درز وکړ، او څو تنو مسلمانانو د هغه وخت له ټانک نه په استفادې سره له همدې درز نه کلا ته د ننوتلو هڅه وکړه ترڅو اور ورته کړي، خو کفارو په اور سرې شوې اوسپنې پرې واچولې، هغوی له ټانګونو نه راووتل او کفارو په غشو سره څو تنه ورنه په شهادت ورسول.[۲]

---

(1). فتح الباري ۴۵/۸ .

(2). د هغه وخت ټانک د اوسني وخت د ټانک په شان نه و، بلکه دا به له لرګي نه جوړيده خلک به پکې ننوتل، بيا به د کلا بيخ ته ورټيل وهل کيده چې هلته پداسې حال کې چې پکې ناست کسان ديوال سوری کړي او يا له شته سوريو نه کلا ته د ننه شي.

پدې وخت کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له نوي جنګي تاکتيک نه کاروا‌خيست او داسې اقدام يې وکړ چې کفار دې ته اړ باسي تسليم شي. پدې لړ کې يې د هغوی د انګورو د ونو او تاکونو قطع کولو او سيځلو امر وکړ، تاکونه پرې او وسوځول شول، همدا وه چې ثقيف غوښتنه وکړه چې د خدای پخاطر او د خپلوۍ په اساس دغه سلسله نوره بنده کړئ. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د دوی غوښتنه ومنله. د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له خوا آواز وشو هر غلام چې له کلا نه راووزي او زمونږ لوري ته راشي هغه آزاد دی. پدې اعلان پسې ۲۳ تنه راغلل[1]. پدې ډله کې يو هم ابوبکره ؤ، هغه د طائف له کلا نه راکوز شوی ؤ، او د لاندې د يوه څاه په څرخ باندې ناست ؤ پښې يې ځوړندې کړې وې، له همدې امله رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ابو بکره نوم وربانـدې کيښـود. دا ټول غلامان يې آزاد کړل، هر يو يې يوه يوه مسلمان ته وسپاره تر څو د دوی خرڅ و خوراک ورکړي، پدې کار سره کفار په غوسه شول، او دا ډير سخت وربانديې تمام شو.
محاصره اوږده شوه، د کلا فتحه کول سخت او مشکل ؤ، د کفارو په غشو او سرو شويو اوسپنو سره يو شمير مسلمانان زخميان او شهيدان شول، په کلا کې د ننه له کفارو سره د يوه کال آذوقه هم وه، له بيرون نه هم لاره مونـدل ورتـه ګران و. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له نوفل بن معاويه سره مشوره وکړه، نوفل ورته وويل: هغوی لکه ګيدړې په غارونو کې د ننه دي، که همدلته انتظار وباسې نو وبه يې نيسې، او که خوشي يې کړې نو زيان نه شي در رسولئ. همدا وه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د محاصرې پاې ته رسولو فيصله وکړه، عمر (رضي الله عنه) ته يې امر وکړ چې خلکو ته غږ وکړي چې: ((ان شاء الله سبا به روانيږو)). دا اعلان مسلمانانو ته عجيب ښکاره شو، سخت وربانديې تمام شو، ويې ويل: ځو به خو مخکې لدينه چې دا کلا فتحه کړو!! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**اغدوا على القتال**).ځئ، سبا هم جنګ وکړئ.
مسلمانان سهار جنګ ته لاړل، يو شمير ورنه ټپيان شول. بيا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپله اعلان وکړ: (**إنا قافلون غداً إن شاء اللّه**).[ان شاء الله سبا به ستنيږو] مسلمانان دا ځل خوښ شول او ټول روان شول. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تبسم کاوه، او کله يې چې کوچ کاوه امر يې وکړ چې داسې وايي :

[1] . بخاري۲/٦۲۰ .

(آیبون تائبون عابدون، لربنا حامدون). یعنې په داسې حال کې بیرته ځو چې توبه ګار یوو، عبادت کوونکي او د خپل رب ثنا ویونکي یوو. چا عرض وکړ یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! ثقیف ته ښیرې وفرمایه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (اللّهم اهد ثقیفا، وائت بهم).اې ربه ثقیف ته هدایت وکړې، او زما حضور ته يې راولې.

## په جعرانه کې د ولجو ویشل

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له طائف نه ستون شو او څه د پاسه لس ورځې په جعرانه کې پاتې شو، غنیمت شوي مالونه یې نه ویشل انتظار یې یوست چې کیدای شي د هوازن نمایندګان راشي او خپل مالونه بیرته ور وسپاري، خو څوک را معلوم نه شول. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د غنیمتونو ویشل پیل کړل، تر څو د مکې مشران د قبایلو سرداران او نور مخور چې ډیر حریص وو، پدې مالونو سره خوښ چوپ او قانع کړي. لومړی یې هغو کسانو ته چې نوي مسلمان شوي وو او ددې ضرورت لیدل کیده چې زړونه یې راجلب شي، تشویق او ترغیب شي، ښه برخه ورکړه، دې ډول خلکو ته مؤلفت القلوب ویل کیږي، همدوی ته یې له نورو نه مخکې ښه لویه برخه وربیله کړه.

ابو سفیان ته یې څلویښت اوقیې نقره (سپین زر) او سل اوښان ورکړل، خو لدې سره هم ابو سفیان وویل: زوی مې یزید؟ یعنې زوی ته مې هم برخه ورکړه! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یې زوی ته هم همدومره برخه ورکړه. ابو سفیان بیا وویل: هغه بل زوی مې معاویه؟ هغه ته هم څه ورکړه! هغه ته یې همدومره برخه ورکړه. ورپسې یې حکیم بن حزام ته سل اوښان ورکړل، هغه د نورې برخې سوال وکړ، نور هم همدومره اوښان ورکړل شول. صفوان بن امیه ته یې هم درې ځله سل، سل، اوښان یعنې ټول ۳۰۰ اوښان ورکړل. دا په شفاء نومي کتاب کې راغلي[1].

او حارث بن کلده ته یې هم سل اوښان ورکړل، همدا راز د قریشو او نورو قبایلو سردارانو ته یې سل، سل اوښان ورکړل، نورو ته یې پنځوس، پنځوس اوښان، ورپسې څلویښت، څلویښت اوښان ورکول، خلکو به ویل محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دومره بخشش ورکوي لکه چې له فقر نه بالکل ویره نلري.

په همدې وخت کې کوچیانو یو ځل چور جوړ کړ، په رسول الله (صلی الله علیه و اله و

---

[1] . الشفاء بتعریف حقوق المصطفی للقاضي عیاض ۸٦/۱.

صحبه و سلم) ورټول شول هر یوه مال ورنه غوښت، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مجبور شو د یوی ونې خوا ته ودرید، چادر یې په زور ورنه کش شو، ویې فرمایل: (**أیها الناس، ردوا علي ردائي، فو الذي نفسي بیده لو کان عندي عدد شجر تهامة نعماً لقسمته علیکم، ثم ما ألفیتموني بخیلاً ولا جباناً ولا کذاباً**).

[اې خلکو! چادر مې پرېږدئ، چادر مې راکړئ، قسم په هغه ذات چې زما مرګ او ژوند یې په لاس کې دی، که د تهامې د ونو په اندازه څاروي م ې لـرلـئ ټول به مې درباندې ویشلي وای، بله دا چې تاسې خو زه کله هم بخیل، ډارن او دروغجن نه یم لیدلئ.]

ورپسې د خپلې اوښې خوا ته ودرید، له بوکام نه یې یو ویښته راویوست په ګوتو کې یې نیولی و فرمایل يې:(**أیها الناس، واللّه مالي من فیئکم ولا هذه الوبرة إلا الخمس، والخمس مردود علیکم**).

[ اې خلکو! په خدای قسم که مې لدې غنیمتونو نه ددې ویښته په اندازه هم څه شی اخیستي وي، یوازې خمس (پنځمه برخه) زما حق ده، ګورئ چې هغه هم بیرته تاسې ته درکول کیږي.]

مؤلفه القلوب ته لدې لویو لویو برخو ورکولو نه وروسته یې زید بن ثابت ته امر وکړ چې غنیمتونه او خلک را حاضر کړي، ټول مالونه یې وویشل، چې هر پلي کس ته څلور اوښان، څلویښت پسونه ورسیدل، د سپرو برخه دوولس اوښان او ۱۲۰ پسونه وو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په ډیره حکیمانه توګه دا مالونه وویشل، ځکه ډیر داسې کسان شته چې د خیټې له لارې اسلام ته راوستل کیدی شي، یعنې له مادي لارو نه د حق په لور رابلل کیدی شي، لدې ډول کسانو سره عقل او منطق کارنه کوي، لومړی به یې خیټه ور ډکوې بیا به یې حق ته رابولې، دا کسان هغو څارویو ته پاتې کیږي چې په شنو وښو یا شفتلې سره یې په لاره بوولی شې، دا ډله انسانان هم همداسې مادي تشویقونو او اسبابو ته ضرورت لري تر څو ورو ورو له اسلام سره الفت او مینه پیدا کړي او په حق اعتراف وکړي.[1]

---

[1]. فقه السیره ص ۲۹۸ – ۲۹۹ .

## د رسول الله (ﷺ)لدې ویش نه د انصاروخفګان

په پیل کې اصحاب (رضي الله عنهم) د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ددې حکیمانه ویش او مدبرانه سیاست په راز او ګټو پوه نه شول ددې ویش تر شا پټ اهداف یې درک نه شوای کړی، نو همدا وه چې ځینې اعتراضونه او انتقادات راولاړ شول. پدې ویش کې انصارو د زیات تاوان احساس کاوه، ځکه هغوی ته د حنین له بخششونو نه هیڅ ونه رسیدل. دوی خو هغه کسان وو چې د سختۍ او ماتې په وخت غړ پرې وشو او دوی په ډیره بیړه دجګړې ډګر ته راودانګل، جهاد یې کاوه او له رسول (صلی الله علیه وسلم) نه کلکه دفاع وکړه. او د همدوی دمقاومت له برکته ماتې په بري بدله شوه، خو اوس چې د ولجو د ویشلو وخت شو د همغو فراریانو او له جګړې نه په شا شویو کسانو لاسونه ډک دي، ډیر بخششونه ورکړل شول، خو دوی (انصارو) ته هیڅ هم په برخه ونه رسیدل.[۲] دا تصور ددې سبب شو چې ناراضه شي.

ابن اسحاق له ابو سعید خدري (رضي الله عنه) نه روایت کوي وایي: کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دا بخششونه په قریشو او نورو عربي قبیلو وویشل، او انصارو ته یې هیڅ برخه ورنکړه، دوی خفه شول او پدې هکله خبرې او پوښتنې راولاړې شوې. ځینو وویل: اوس خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له خپل قوم سره یو ځای شو. سعد بن عباده (رضي الله عنه) رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ورغی او عرض یې وکړ:یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! ستا لدې ویش نه انصار خفه شویدي، تا بخششونه خپل قوم ته ورکړل، نورو عربانو ته دې هم لویې برخې ورکړې، خو انصارو ته دې هیڅ ورنکړل! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل :

(**فأين أنت من ذلك يا سعد؟**) ستا څه نظر دی اې سعده! ده وویل: زه خو هم د همدې قوم یو غړی یم. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: (**فاجمع لي قومك في هذه الحظيرة**). لاړ شه او خپل قوم دې پدې پنډ غالي کې را ته راغونډ کړه. سعد لاړ او انصار یې په یوه پنډ غالي کې راټول کړل، یو شمیر مهاجرین

---

(2). فقه السیره ص ۲۹۸_۲۹۹ .

هم راغلل هغوی ته يې اجازه ورکړه ورسره کيناستل، ورپسې نور راغلل، خو هغوی ته يې اجازه ورنکړه. کله چې ټول راغونډ شول، سعد ورغی او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته يې وويل چې انصار را ټول شويدي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تشريف راووړ حمد او ثنا يې وويله بيايې وفرمايل: **(يا معشر الأنصار، ما قَالَةٌ بلغتني عنكم، وَجِدَةٌ وجدتموها على في أنفسكم؟ ألم آتكم ضلالاً فهداكم اللّه؟ وعالة فأغناكم اللّه؟ وأعداء فألف اللّه بين قلوبكم؟) قالـــوا: بلـــى، اللّه ورسولــه أَمَنُّ وأفْضَلُ** . اې انصارو! ستاسې يوه خبره راته رارسيدلې ده، لکه چې تاسې له ما خفه شوي ياستئ؟ آيا داسې نده چې زه تاسې ته پداسې حالت کې درغلم چې تاسې ګمراهان وئ الله تعالی هدايت درته وکړ، تاسې بې وسه وئ الله تعالی وس او دارايي در کړه، يو د بل دښمنان وئ الله تعالی سره دوستان کړئ؟ انصارو وويل هو همداسې ده، پر مونږ باندې د الله تعالی او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) زياته مهرباني او کرم دی او لـه هر څه نـه راتـه غوره دي. بيا يې زياته کړه: **(ألا تجيبوني يا معشر الأنصار؟)** اې انصارو ولې ځواب نه را کوئ؟ دوی وويل: د څه ځواب در کړو يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)؟! پر مونږ د الله او رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) لوی فضل شويدی. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: **(أما واللّه لو شئتم لقلتم، فصَدَقْتُمْ ولصُدِّقْتُمْ: أتيتنا مُكَذَّبًا فصدقناك، ومخذولاً فنصرناك، وطريداً فآويناك، وعائلاً فآسَيْنَاك)**.

قسم په الله که غواړئ چې ووايئ او که ووايئ ريښتوني به هم وئ، ووايئ چې يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! تـه مونږ تـه پداسې حالت کې راغلې چې خلکو دروغ در پورې تړل او مونږ دې تصديق وکړ، چا مرسته نه درسره کوله مونږ دې مدد وکړ، چا ځای نه درکاوه او مونږ ځای درکړ، محتاج وې مونږ دې مرسته وکړه. بيا يې زياته کړه: **(أوَجَدْتُمْ يا معشر الأنصار في أنفســـكم في لَعَاعَةٍ من الدنيا تَألَّفْتُ بها قوماً ليُسْلِمُوا، ووَكَلْتُكم إلى إسلامكم؟ ألا ترضـــون يـــا معشر الأنصار أن يذهب الناس بالشاة والبعير، وترجعوا برسول اللّه صلى الله عليه**

**وسلم إلى رحالكم؟ فوالذي نفس محمد بيده، لولا الهجرة لكنت امرأ من الأنصار، ولو سلك الناس شِعْبًا، وسلكت الأنصار شعباً لسلكت شعب الأنصار، اللّهم ارحم الأنصار، وأبناء الأنصار، وأبناء أبناء الأنصار).** [اې انصارو د ناچیزې مادي متاع په سبب له ما خفه نه شئ. ما غوښتل پدې بې ارزښته متاع سره د خلکو زړونه واخلم تر څو اسلام راوړي ستاسې په اسلام ډاډ څرګند شوی. اې انصارو! آیا دا مو نده خوښه چې خلک له اوښانو او پسونو سره روان وي او تاسې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره خپلې مېنې ته ستانه شئ؟ قسم په هغه ذات چې زما نفس د هغه په واک کې دی، که هجرت نه وی نو زه به له انصارو نه یو فرد وای، که ټول خلک په یوه لاره روان شي او انصار په بله زه به د انصارو په لاره ځم. اې الله ته په انصارو رحم وکړه، د انصارو په زامنو رحم وکړه او د انصارو په لمسیانو رحم وکړه.] پدې خبرو سره ټولو دومره وژړل چې ږیرې یې په اوښکو لمدې شوې، ټولو وویل: زمونږ لپاره رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) کافي دی، همدا عظیمه برخه راته بس ده. بیا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تشریف یوړ. او دوی هم سره تیت شول[1].

## د هوازن پلاوی

وروسته له هغې چې غنیمتونه وویشل شول، د هوازن قبیلې نمایندګان پداسې حال کې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راغلل چې په اسلام مشرف شوي وو. دوی ۱۴ کسان وو، مشر يې زهیر بن صُرَد وُ، ابو بُرقان چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) رضاعي تره کیده هم ورسره وُ. د نوموړي د نوم په هکله څه اختلاف شته ځینو یې نوم ابومروان او ابو ثروان هم بللې دی. هغوی له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه سوال وکړ چې احسان ورسره وکړي بندیان او مالونه یې بیرته ورکړي، او داسې خبرې یې وکړې چې د ټولو زړونه پرې وسوځیدل. ابن اسحاق وایي: پدې ډله کې نهه سرداران وو، چې اسلام یې راوړ،بیعت یې وکړ، بیا یې عرض وکړ: یا رسول الله (صلی الله علیه وسلم)! د تاسو له خوا په نیول شویو کسانو کې میندې، خویندې، تروریانې(عمه ګانې او خاله ګانې دي،چې دا ټولې د قومونو ناموس او غیرت شمیرل کیږي:

[1] . ابن هشام ۴۹۹/۲_۵۰۰. په بخاري کی هم دیته ورته روایت ذکر شویدی ۶۲۰/۲_۶۲۱.

**فامنن علينا رسول اللّه في كــرم ** فإنــك المرء نرجــوه وننتظر**

**امنن على نسوة قد كنت ترضعها ** إذ فوك تملؤه من محضها الدرر**

[يا رسول الله(عليه السلام) د خپل كرم له مخې پر مونږ منت كيږده، ته هسې شخصيت يې چې مونږ تمه او هيله درته لرو، پر هغو ميرمنو احسان وكړه چې تا يې شيدې خوړلې او رضاعي اړيكې ورسره لرې.]

رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: : (**إن معي من تـــرون، وإن أحب الحديث إلى أصدقه، فأبناؤكم ونساؤكم أحب إليكم أم أمـــوالكم؟**) له ماسره خو دغه كسان شته چې تاسې يې وينئ، رښتيا خبرې ډيرې غوره گڼم، دا راته وواييئ چې خپل اولادونه او ښځې ډيرې درباندې گرانې دي او كه خپل مالونه؟ دوى وويل: مونږ هيڅ شى له خپل نسب،ا ولاد، حسب او شرف سره نه برابره وو. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**إذا صليت الغداة ـــ أي صلاة الظهر ـــ فقوموا فقولوا: إنا نستشفع برسول اللّه صلى الله عليـــه وســـلم إلى المـــؤمنين، ونستشفع بالمؤمنين إلى رسول اللّه صلى الله عليه وسلم أن يرد إلينا سبينا**).كله مو چې د ماسپښين لمونځ ادا كړ پورته شئ او وواييئ چې مونږ رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) مسلمانانو ته او مسلمانان رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته شفيع وراندې كوو چې زمونږ بنديان راته آزاد كړي. د ماسپښين لمونځ چې وشو، هغوى پورته شول او همدا خبرې يې وكړې، رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: : (**أما ما كان لي ولبني عبد المطلـــب فهـــو لكـــم، وسأسأل لكم النـــاس**).كوم شى چې په ما او بني مطلب پورې اړه لري هغه ټول ستاسې، او ستاسې لپاره له نورو خلكو نه همداسې غوښتنه كوم. مهاجرينو او انصارو وويل: له مونږ سره چې څه شيان شته هغه ټول د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) دي، خو الأَقْرَع بن حابس وويل: زه او بنو تميم دا مالونه او شيان بيرته نه وركوو. عُيَيْنَة بن حِصْن هم وويل: زه او بنو فزاره هم دا كار نه كوو. عباس بن مِرْدَاس هم همدا ډول خبره وكړه ويې ويل: زه او بنو سُلَيْم هم دا شيان نه ستردوو، خو

بنو سليم وويل: زمونږ شيان د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دي. عباس ورته وويل: تاسې زه توهين کړم. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**إن هؤلاء القوم قد جاءوا مسلمين، وقد كنت استأنيت سَبْيَهُمْ، وقد خيرهم فلم يعدلوا بالأبناء والنساء شيئاً، فمن كان عنده منهن شيء فطابت نفسه بأن يرده فسبيل ذلك، ومن أحب أن يستمسك بحقه فليرد عليهم، وله بكل فريضة ست فرائض من أول ما يفيء اللّه علينا**). دا خلک پداسې وخت مونږ ته راغلي چې اسلام يې راوړيدی، ما خو د دوی د بنديانو په هکله څه انتظار هم ويوست اوس مې هم دوی ته اختيار ورکړ چې مالونه غواړي او که اولادونه، خو هغوی وويل هيڅ شی هم له خپلو اولادونو او ښځو سره نه برابروي، نو له چا سره چې د دوی اسير شته که خوښه يې وي هغه دې بيرته دوی ته ورکړي، او که څوک نه غواړي له خپل حق نه تير شي، نو غوره ورته دا ده چې اسير بيرته ورکړي زه به د دوی د هرې برخې په عوض کې له راتلونکي غنيمت نه شپږ برخې ورکړم. خلکوپه ځواب کې وويل: مونږ ته د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خوښه له هرڅه نه غوره ده، يعنې دده پخاطر ټول اسيران بيرته دوی ته ورکوو. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**إنا لا نعرف من رضي منكم ممن لم يرض، فارجعوا حتى يرفع إلينا عُرَفَاؤكم أمركم**). تاسې لاړ شئ تر څو ستاسې مشران او قومندانان ګزارش راکړي، ځکه اوس ما ته ستاسې راضي او ناراضي معلوم نه شو. بيا ټولو د هوازن قبيلې بنديان ځوانان وو که ماشومان او که ښځې ټول يې بيرته ورکړل، يوازې عيينه چې يوه زړه ښځه يې په برخه رسيدلې وه نه ورکوله، په پای کې يې له څه بحث نه وروسته هغه هم ورکړه. رسول اکرم (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) هرې اسيرې ښځې ته يو يو جوړه قبطي جامې هم ورکړې.

## عمره او مدينې ته ستنيدل

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په جعرانه کې د ولجو له ويش نه وروسته عمره ادا کړه او بيا يې مدينې منورې ته تشريف يووړ. عتاب بن اسيد يې په مکه مکرمه کې خپل خليفه وټاکه د کائناتو سردار د هجرت د اتم کال د ذي القعدې په ۲۴ مه بيرته مدينې ته ستون شو.

محمد غزالي وايي: د الله تعالی له لوري د ځرګندې فتحې له پيرزوينې وروسته مدينې

ته د ستنیدلو او لدینه آته کاله وړاندې هجرت تر منځ ځومره فاصله او ځومره توپیر موجود دی؟! وګ و رئ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پداسې حال کې مدینې ته هجرت کړی ؤ چې له مکې نه شړل شوی، تر تعقیب او څارنې لاندې ؤ، ګوښی ؤ، مسافر ؤ، د انس، الفت، ځای او ځای ګیر په لټه کې ؤ چې د مدینې اوسیدونکو ښه راغلاست ورته ووایه، دده راتګ یې نیکمرغي وبلله، ځای یې ورکړ، تود هرکلی یې ورته ووایه، اطاعت یې ورنه وکړ، ورته تسلیم شول، مرستې یې ورسره وکړې، له لاربښوونو څخه یې ګټه پورته کړه، دده (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د حضور او موجودیت په بدل کې یې د ډیرو دښمنۍ ته تن ورکړ، خو دا دی اوس آته کاله وروسته بیرته همغه مدینې ته چې مخکې بې پناه پکې لټوله پداسې حال کې روان دی چې مکه یې فتحه کړې، د جاهلیت واکمني یې نسکوره او غرور یې ورمات کړی، د کفر او شرک زور اوبه شوی، د جاهلیت غرور تر پښو لاندې شوی، همغه جاهل او ګمراه خلک په اسلام مشرف او عزتمن شوي، اسلام ورته له هر څه محترم او مقدم شوی، همدا وجه ده چې مخکینۍ ګناوې یې ورته ښنل شوې الله تعالی فرمایې:

((إِنَّهُ مَنْ يَتَّقِ وَيَصْبِرْ فَإِنَّ اللَّهَ لا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ)). (یوسف: ۹۰)

[ترجمه: چا چې تقوی او صبر وکړ نو الله تعالی د نیکو کارانو اجر نه ضایع کوي[۱].]

---

[۱] . فقه السیرة ۳۰۳. ددی غزواتو_دمکې فتحه، حنین او طائف_ د تفصیل لپاره دا کتابونه وګورئ:زاد المعاد ۲/ ۱۲۰تر۲۰۱. اپن هشام ۲/۳۸۹ تر ۵۰۱. صحیح البخاري ۲/۲۱۲ تر ۲۲۲. فتح الباري ۸/۳تر۵۸.

# د مکې له فتحې وروسته
## پلاوي او سرايا

لدې اوږده او برياليي سفر څخه له راتګ نه وروسته د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته ډير پلاوي او وفدونه راغلل، همدا راز رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مختلفو سيمو ته واليان، موظفين او بلونکي واستول. او د هغو قوتونو په خلاف يې عسکري اجرآت وکړل کوم چې اسلام ته يې سر نه ايښود، کبر يې کاوه او په واقعيت يې اعتراف نه کاوه، په لاندې کرښو کې لدې وضعې نه په لنډه توګه داسې يادونه کوو:

## د زکات راټولونکي

مخکې مو وويل چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د آتم هجري کال په وروستيو کې له مکې نه راستون شو، لږه موده وروسته د ۹ (نهم) هجري کال د محرم مياشت رابره شوه، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) لاندېني کسان مختلفو قبايلو ته وليږل تر څو له هغوی نه د زکات مالونه راټول کړي:

۱- عيينه بن حصن بني تميم قبيلې ته
۲- يزيد بن حصين اسلم او غفار قبيلو ته.
۳- عباد بن بشر اشهلي سليم او مزينه قبيلو ته.
۴- رافع بن مکيث جهينه قبيلې ته.
۵- عمرو بن العاص بني فزاره ته.
۶- ضحاک بن سفيان بني کلاب ته.
۷- بشير بن سفيان بني کعب ته.
۸- ابن لتبيه ازدي بني ذبيان ته.
۹- مهاجر بن ابي اميه صنعاء ته. (نوموړی هملته ؤ چې اسود عنسي بغاوت او د نبوت دعوه وکړه).
۱۰- زياد بن لبيد حضر موت ته.
۱۱- عدي بن حاتم طيئ او بنو اسد ته.
۱۲- مالک بن نويره بني حنظله ته.
۱۳- زبر قان بن بدر د بني سعد يوی برخې ته.
۱۴- قيس بن عاصم د بني سعد بلې برخې ته.

۱۵- علاء بن حضرمي بحرين ته.
۱۶- علي بن ابي طالب نجران ته (د صدقې او جزيې را ټولولو لپاره).
دا کسان ټول د نهم هجري کال په محرم مياشت کې ندي استول شوي، بلکه ځينې يې لدې نيټې نه وروسته هغه وخت ليږل شويدي چې مربوط قبايل په اسلام مشرف شوي.
خو ددې عاملينو يا د زکات راټولونکو موظفينو د ليږلو پيل د نهم کال په محرم مياشت کې وځ، دا هم د حديبيې تړون له مثبتو نتايجو څخه دی، او پدې دلالت کوي چې لدې تړون نه وروسته اسلام او مسلمانان ډير ځواکمن شويدي. د مکې له فتحې نه وروسته خو خلک ډله ډله په اسلام مشرف شوي او ډيرو خلکو د اسلام امر ته غاړه ايښې ده.

## سرايا (جنګي ګروپونه)

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) که له يوې خوا مختلفو قبايلو ته زکات راټولونکي وليږل، له بلې خوا دا هم يو ضرورت وځ چې بايد د عربي جزيرې امنيت په ځانګړې توګه د لارو ساتلو ته هم پاملرنه شوی وای. له همدې امله رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا لاندې سرايا (واړه جنګي ګروپونه) يوې او بلې خوا ته واستول:

**۱- د عيينه بن حصن فزاري سريه:** د نهم هجري کال د محرم په مياشت کې يې د ۵۰ سپرو په مشرۍ بني تميم ته وليږه. پدې ډله کې له انصارو او مهاجرينو څخه هيڅوک نه وو. ددې سريې سبب دا وځ چې بنو تميم ځينې کورنۍ له زکات ورکولو نه منعې کړې وې، او د مسلمانانو په خلاف يې راپارولې. عيينه ورپسې ورغی، د شپې به يې مزل کاوه او د ورځې به يې کمين نيوه، تر څو ور ورسيد او په دښته کې يې حمله ورباندې وکړه هغوی وتښتيدل. عيينه وتوانيد يوولس سړي، يوويشت ښځې او ديرش ماشومان په اسارت ونيسي، هغوی يې له ځان سره مدينې ته راوستل، هلته يې د رملة بنت حارث په کور کې واچول. همدا وه چې د هغوی لس تنه مشران مدينې ته ورپسې راغلل د رسول (صلی الله عليه وسلم) دروازې ته ودريدل، چيغې يې وهلې اې محمده (صلی الله عليه وسلم)! زمونږ فرياد واوره! رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته تشريف راوړ، دوی له لمنې ونيو، خبرې يې ورسره پيل کړې. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) څه وخت ورسره ولاړ وځ، بيا يې تشريف يووړ د ماسپښين لمونځ يې ادا کړ او بيا په جومات کې کيناست. هغه خلک راغلل خپل څه وياړونه يې ياد کړل، خپل خطيب (وياند) عطارد بن حاجب يې رامخې ته کړ هغه څه خبرې وکړې. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د اسلام خطيب (وياند) ثابت بن قيس بن شماس ته امر وکړ چې د دوی د وياند ځواب ووايي.

بیا د هغوی شاعر زبرقان بن بدر شعر ووایه مدح او ستاینه یې وکړه خپل ویاړونه یې یاد کړل، په ځواب کې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) شاعر حسان بن ثابت (رضي الله عنه) شعر ورته ووایه.

پدې پسې اقرع بن حابس وویل: بیشکه چې د دوی ( مسلمانانو) ویاند زمونږ له ویاند نه غوره دی، او شاعر یې زمونږ له شاعر نه ډیر مخکې دی، آواز یې له مونږ نه لوړ او خبرې یې زمونږ له خبرو نه ډیرې درنې دي، دايې وویل بیا ټول په اسلام مشرف شول.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته ښې تحفې او سوغاتونه ورکړل، د دوی ښځې او اولادونه یې ورته وسپارل. سیرت لیکونکي عقیده لري چې دغه سریه د نهم هجري کال په محرم کې شویده، خو دا خبره د نقد او اعتراض وړ ده، ځکه لدې نه خو داسې څرګندیږي چې اقرع بن حابس لدې تاریخ نه مخکې اسلام ندی راوړی پداسې حال کې چې همدې اقرع خو د هوازن د اسیرانو د بیرته ورکولو په وخت کې ویلي و چې زه او بنو تمیم خپل بندیان بیرته نه ورکوو! دا ددې معنی لري چې باید اقرع له هوازن نه مخکې مسلمان شوی وي.

**۲- د قطبه بن عامر سریه:** د نهم هجري کال په صفر میاشت کې د خثعم یوې کورنۍ ته چې تربه ته نژدې (تباله) کې یې اړولي ؤ واستول شو. له قطبه سره شل کسان او لس اوښان وو چې په نوبت سره به پرې سپریدل. لاړل او پر هغوی یې برید وکړ، سخته جګړه ونښتله، دواړو خواوو ډیر تلفات ورکړل، قطبه له څو ملګرو سره یو ځای په شهادت ورسید، خو په پای کې مسلمانان پدې بریالي شول چې له کفارو نه څو ښځې په اسارت ونیسي، پسونه او اوښان ورنه غنیمت کړي.

**۳- د ضحاک بن سفیان کلابي سریه:** د نهم هجري کال د ربیع الاول په میاشت کې د کلاب قبیلې په لور. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دا ګروپ ددې پخاطر ولیږه تر څو کلاب قبیله اسلام ته راوبولي، خو هغوی اسلام و نه مانه او له مسلمانانو سره په جنګ شول، په پای کې یې ماتې وخوړه، د سر تلفات یې هم ورکړل، او مسلمانان بیرته ستانه شول.

**۴- د علقمه بن مجزز مدلجي سریه:** د نهم هجري کال په ربیع الآخر میاشت کې د جدې د ساحلي برخو په لور وه. له علقمه سره دری سوه جنګیالان وو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وظیفه ورکړه چې د هغو حبشیانو مقابلې ته ورشي کوم چې په مکه او د جدې په شا و خوا ساحلی برخو کې د چور و چپاول لپاره

راتېول شوي وو. علقمه د بحر له لارې مخکې لاړ تر څو جزيرې ته ورسيد، حبشيان خبر شول او تېول وتښتيدل[1].

**۵ – د علي بن ابي طالب سريه:** د نهم هجري كال په ربيع الاول مياشت كې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) هغه ته وظيفه وركړه چې لاړ شي او د طيئ قبيلې قلس نومی بت ويجاړ كړي. له ده سره (۱۵۰) تنه مجاهدين ملګري وو، چې سل اوښان او پنځوس آسان هم ورسره وو دوه بيرغونه چې يو لوی او رنګ يې سپين او بل وړوكی تور رنګی ؤ.

د سهار په وخت كې يې د حاتم پر كلي حمله وكړه، بت يې مات كړ، زيات شمير پسونه او اوښان يې غنيمت كړل، زيات كسان يې بنديان كړل، د بنديانو په جمله كې د عدي بن حاتم خور هم وه. عدي پخپله شام ته وتښتيد، مسلمانانو د بت په خزانو كې درې تورې، درې زغرې او څه نور شيان وموندل، غنيمتونه يې سره وويشل، د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) برخه يې ورنه جدا كړه، خو د حاتم كورنۍ يې و نه ويشله، كله چې مدينې ته ستانه شول د حاتم لور له رسول الله (صلى الله عليه وسلم) نه د احسان سوال وكړ او ويې ويل: يا رسول الله (صلى الله عليه وسلم) پلار مې مړ شو، ورونه مې ورك شول، سرپرست نه لرم، زه يوه زړه ښځه يم د چا خدمت نه شم كولی، احسان راباندې وكړه! رسول (صلى الله عليه وسلم) ورته وفرمايل: (**من وافدك؟**) سرپرست مو څوك دی؟ دې وويل: عدي بن حاتم. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**الذي فر من اللّه ورســـوله؟**). هغه چې له الله او رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه يې فرار كړيدی؟ دا يې وويل او ورنه لاړ.

د عدي خور بله ورځ بيا همداسې عرض وكړ، دريمه ورځ يې بيا تكرار كړ، همدا وه چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) احسان پرې وكړ، او هغه يې آزاده كړه. دلته يو صحابي چې په اغلب ګمان سره علي (رضي الله عنه) ؤ ورته وويل: له رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه د ځان لپاره سورلۍ هم وغواړه! هغې د مركب سوال وكړ. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) مركب هم وركړ. بيا د حاتم لور لاړه او شام ته ورسيده هلته يې خپل ورور عدي ته وويل. دې

[1] . فتح الباري ۵۹/۸.

شخص (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دومره احسان راباندې وکړ چې ستا پلار به هم نه وي راباندې کړی، ویریږې او که تمه ورته لرې کـه هر څه وي حتماً به ورځې! هماغه وه چې عدي هم بې له امانه او بې ضمانته د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راغی. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هغه خپل کور ته بوته، هلته یې ورته وویل: **ما يُفِرُّكَ؟ أيُفِرُّك أن تقول: (لا إله إلا اللّه؟ فهل تعلم من إله سوى اللّه؟) قال: لا. ثم تكلم ساعة ثم قال: (إنما تفر أن يقال: اللّه أكبر، فهل تعلم شيئاً أكبر من الله؟) قال: لا. قال: (فإن اليهود مغضوب عليهم، وإن النصاري ضالون). قال: فإني حَنِيف مسلم، فانبسط وجهه فرحاً، وأمر به فنزل عند رجل من الأنصار، وجعل يأتي النبي صلى الله عليه وسلم طرفي النهار.**

ولې تښتېدلی وې، آیا د کلمې ((**لا اله الا الله**)) نه دې فرار کړی؟ آیا له الله پرته بل حق معبود پېژنې؟ عدي وویل: نه. بیا څه نورې خبرې وشوې. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: آیا لدې تښتې چې وویل شي (**الله اکبر**). آیا له خدای نه پرته بل لوړ او غوره څیز پېژنې؟ عدي وویل: نه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: په یهودو د خدای قهر شوی، او نصرانیان بې لارې شویدي. عدي وویل: زه یو ربښتونی مسلمان یم. د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تېنده له ډېرې خوشالۍ نه وغوړېده امر یې وکړ چې عدي ته دې د یوه انصاري په کور کې ځای ورکړل شي، پدې ترتیب سره به عدي سهار او ماښام د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته حاضر یده.[١]

ابن اسحاق روایت کوي چې عدي وایي: زه رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپل کور کې کېنولم راته ویې فرمایل: **(إيه يا عدي بن حاتم، ألم تكن رَكُوسِيّا؟) قال: قلت: بلي، قال: قال: قلت: بلي. قال: قال: قلت أجل واللّه. قال: وعرفت أنه نبي مرسل، يعرف ما يُجْهَل.**

ایگ عدي! آیا ته رکوسي (هغه وخت د نصرانیت او صائبیت تر منځ د مشرکانو یو

[1]. زاد المعاد ۲/ ۲۰۵

دريم مروج مذهب وُ) نه وې؟ ما وويل: هو. ده وفرمايل: (**أو لم تكن تسير في قومـــك بالمِرْبَاع؟**).آيا د غنيمت څلورمه برخه به دې نه اخيستله؟ وايي: ورته ومې ويل: هو . راته ويې فرمايل: (**فإن ذلك لم يحل لك في دينك**). پداسې حال کې چې دې کار ستا په دين کې جواز نه درلود. ما ورته وويل: هو، په خدای قسم چې همداسې ده. عدي زياتوي: همدلته پوه شوم چې دا د الله رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دی، ځکه له داسې څه نه معلومات لري چې ورته ويل شوي ندي[1].

احمد روايت کوي وايي چې: رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**يا عدي، أسلم تسلم**). يا عدي! مسلمان شه تر څو په امن شې. عدي ورته وايي: زه خو دين لرم. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**أنـــا أعلـــم بدينك منك**). زه ستا د دين په هکله له تا نه ډير معلومات لرم. عدي وايي: ته زما د دين په هکله له ما نه ډير معلومات لرې؟ ويې فرمايل: (**نعم، ألست من الركوســـية، وأنت تأكل مرباع قومك؟**). هو. آيا ته رکوسي نه يې؟ بيا يې راته وفرمايل: آيا د خپل قوم د غنيمت څلورمه برخه به دې نه خوړله؟ ما وويل : هو. همداسې ده. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**فإن هذا لا يحل لك في دينـــك**). ستا په دين کې خو دا کار جواز نلري. عدي وايي چې دا خبره يې وفرمايله نو ورته تسليم شوم[2].

بخاري هم له عدي نه په روايت سره وايي: **قال: بينا أنا عند النبي صلى الله عليه وسلم إذ أتاه رجل فشكا إليه الفاقة، ثم أتاه آخر فشكا إليه قطع السبيل، فقال: (يا عدي، هل رأيت الحيرة؟ فإن طالت بك حياة فلترين الظعينة ترتحل من الحيرة حتى تطوف بالكعبة، لا تخاف أحداً إلا اللّه، ولئن طالت بك حياة لتفتحن كنوز كسري، ولئن طالت بك حياة لترين الرجل يخرج ملء كفه من ذهب أو فضة، ويطلب من يقبله فلا يجد أحداً يقبله منه...) الحديث وفي آخره: قال عدي: فرأيت الظعينة ترتحل من**

---

[1]. ابن هشام ۵۸۱/۲.

[2]. مسند الامام احمد.

**الحيرة حتى تطوف بالكعبة لا تخاف إلا اللّه. وكنت فيمن افتتح كنوز كسري بن هرمز، ولئن طالت بكم حياة لترون ما قال النبي أبو القاسم صلى الله عليه وسلم: (يخرج ملء كفه[1]).**

کله چې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره ناست وم، يو سړی راغی له لوږې نه يې شکايت وکړ، وروسته بل څوک راغی چې له غلو نه يې شکايت درلود. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: اې عدي! حيره دې ليدلې ده؟ که ژوندی وې و به يې وينې، يوه ښځه به له حيره نه راځي، د کعبې طواف به کوي، او له الله پرته به د بل هيچا ويره ورسره نه وي. که دې عمر ياري درسره وکړه نو د کسری خزانې به فتحه کړې او که عمر دې اوږد و نو و به ګورې چې خلک به طلا او يا نقره په لاس کې ګرزوي، پدې لټه کې به وي چې څوک فقير پيدا کړي او خيرات ورکړي، خو داسې غريب به نه مومي چې دده خيرات واخلي. دا حديث شريف ډير اوږد دی چې په وروستۍ برخه کې يې راځي: عدي وايي: ما پخپلو سترګو يوه ښځه وليدله چې له حيره نه راغلې او د کعبې طواف يې کاوه او له الله پرته د بل هيچا ويره ورسره نه وه. زياتوي: همدارنګه زه د هغو کسانو په ډله کې شامل وم چې د کسری بن هرمز خزانې مو فتحه کړې، که تاسو ژوندی وئ حتماً به همداسې حالت وګورئ لکه څرنګه چې ابو القاسم محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) فرمايلي چې غني به پداسې حال کې چې لاس به يې له طلا او نقرې ډک وي، غريب به لټوي چې خيرات ورکړي، خو فقير به نه مومي.

[1] . صحيح البخاري، مشكاة المصابيح ٥٢٤/٢ ته دی مراجعه وشي.

# د تبوک غزا

## ۹ هجري کال د رجب مياشت

د مکې فتحه ډېره لويه کارنامه او د حق او باطل تر منځ پريکنده غزا وه. لدې سوبې نه وروسته مشرکينو ته د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په رسالت کې د شک ځای پاتې نه شو، د تاريخ مسير بدلون وموند، خلک ډلې ډلې په اسلام مشرف شول. مخکې مو وليدل چې څومره وفدونه او نمايندګان د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته حاضر شول، او دا به هم وګورو چې په حجة الوداع کې د مسلمانانو شميره څو ته لوړېږي، دا ټول د مکې د فتحې له برکته. پدې ترتيب سره د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د حکومت داخلي ستونزې حل شوې، نور مسلمانانو دا فرصت درلود چې په پوره ډاډ سره د الله د دين زده کړه او تبليغ وکړي او خلکو ته اسلام ورسوي.

### ددې غزا سبب

مسلمانانو په جزيره کې د ننه مشکلات نه درلودل، خو دغه وخت بې موجبه د روميانو له مخالفت او تهديد سره مخ شول، روميان د هغه وخت زبر ځواک وُ.
په تيرو پاڼو کې مو ولوستل چې د بصرى والي ته د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) قاصد حارث بن عمير ازدي (رضي الله عنه) د شرحبيل بن عمرو غساني له خوا په شهادت ورسيد او همدا د تيرې پيل و. د همدې تيرې په ځواب کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د زيد بن حارثه (رضي الله عنه) په مشرى يو لښکر وليږه چې په موته کې له روميانو سره ونښت، سخته جګړه يې وکړه خو ويې نه شوای کولی له خپل ظالم او کبرجن دښمن نه پوره انتقام واخلي. خو د ليرو او نژدې عربانو پر زړونو يې ډېره غوره اغيزه وکړه. د روم مشر قيصر ديته متوجه و، او پدې پوهيده چې د جګړې پايله څومره د مسلمانانو په ګټه وه او له مسلمانانو سره يې د ځينو عربي قبايلو هم غړې او له روم نه د استقلال هڅې له پامه نه وې اچولې. او په رښتيا سره چې دا هغه خطر و چې ګام په ګام د روم پولو ته ورنژدې کيده، له عربو سره

ګاونډ کې د شام پولې يې تهديدولې.
همدې ته په توجه سره قيصر تصميم ونيو چې بايد مخکې لدينه چې مسلمانان په نه ماتيدونکي ځواک او خطر بدل شي، او مخکې لدينه چې د روم په خوا کې پرتو عربي برخو کې پاڅونونه او انقلابونه پيل شي بايد د اسلامي دولت جرړې له بيخه وايستل او د مسلمانانو ځواک اوبه شي.
له همدې کبله له موته جګړې نه وروسته پوره يو کال قيصر د جنګ تياري نيوله، له روميانو او تر خپل کنترول لاندې عربانو لکه آل غسان او نورو نه يې لوی لښکر جوړ کړ، او د فيصله کوونکي جنګ ټول وسايل يې برابر کړل.

## د روميانو د تيارۍ خبر په مدينه کې

مدينې ته دا خبرونه رارسيدل چې روميانو له مسلمانانو سره د پريکنده جګړې تياري نيولې ده. په مدينه کې د ننه له مسلمانانو سره تشويشونه پيدا شوي وو، حتی چې د يوه پردي او نا آشنا آواز په اوريدو سره به ډيرو داسې تصور کاوه چې ګويا روميانو پر مدينه بريد وکړ.
ددې حالت اندازه له هغه حالت نه ښه څرګنديدای شي چې عمر (رضي الله عنه) ورسره مخ شويدی. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په نهم هجري کال کې له خپلو بيبيانو سره ايلاء وکړه، (ايلاء ديته وايي چې څوک قسم وکړي چې زه به له خپلې ښځې سره جماع نه کوم نه به ورسره يوځای کيږم، که دا موده له څلورو مياشتو نه کمه وي پروا نلري يعنې له څلور مياشتو نه مخکې هر وخت کولی شي له خپلې ښځې سره يو ځای شي خو د قسم کفاره به ورکوي، او که څلور مياشتې تيرې شوې او نوموړې خپلې ښځې ته ورنژدې نه شو نو بيا به قاضي او محکمه مداخله کوي چې هغه دې يا ښځې ته رجوع وکړي يا دې طلاق ورکړي).
د يو شمير اصحابو (رضي الله عنهم) په رايه د څلورو مياشتو له تيريدو وروسته طلاق واقع کيږي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په همدې کال له خپلو ميرمنو نه خفه شوی او يوه مياشت يې ايلاء وکړه، د خپل کور په بالاخانه کې اوسيده، په پيل کې مسلمانان (اصحاب) نه وو خبر، پدې حکم نه پوهيدل بلکه فکر يې کاوه لکه چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپلو ميرمنو ته طلاق ورکړيدی او پدې سره ټول له حده زيات خفه شوي وو.

**عمر** (رضي الله عنه) **دا کیسه داسې بیانوي:**
زما یو انصاري ملګری وُ، هغه به چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په مجلس کې حاضریده او زه به نه وم، نو د مجلس احوال به یې ماته راوړ، او که به زه موجود وم او هغه به نه وُ بیا به ما د مبارک مجلس ګزارش ورکاوه. مونږ دواړو په یوه سیمه کې ژوند کاوه، په نوبت به د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مجلس ته حاضریدو د غسان قبیلې د یوه پاچا دا خبر هم راته رسیدلی وُ چې پر مدینه د حملې نیت لري، نو لدې پلوه ویریدو او تشویش راسره وُ. یوه ورځ ناڅاپي زما انصاري دوست راغی دروازه یې ووهله او غږ یې وکړ: خلاصه کړه، خلاصه کړه! عمر (رضي الله عنه) وایي: ما ورته وویل: څه چل دی؟ آیا غساني حمله وکړه؟ هغه راته وویل: نه لدینه هم لویه پیښه شویده، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له خپلو میرمنو نه بیل شویدی... د حدیث تر پایه.[1]
په بل روایت کې راغلي چې عمر (رضي الله عنه) وایي: ما او انصاري دوست به خبرې سره کولې او ویل به مو چې غسانیان آسونه راته نعل کوي او د برید تیاري نیسي. ملګری مې یوه ورځ د خپل نوبت په اساس د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مجلس ته تللی وُ چې د شپې بیرته راغی دروازه یې په شدت سره وټکوله غږ یې وکړ چې عمر ویده دی؟ زه وویریدم فوراً ور ووتلم. هغه راته وویل: ډیره لویه پیښه شویده. ما ویل: څه دي؟ آیا غسانیان را ورسیدل؟ ویل یې نه، له دې نه هم لویه او مهمه پیښه، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپلو میرمنو ته طلاق ورکړیدی.[2]
دا کیسه پخپله دا ښیي چې مسلمانانو د رومیانو له لوري څومره ویره او تشویش درلود. د رومیانو خطر او لدې طرفه متوجه تهدید دومره لوی وُ چې منافقان یو ځل بیا را ژوندي او امیدوار شوي وو، که څه هم د سر په سترګو یې لیدل چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) څومره بریالیتوبونه تر لاسه کړل، څومره قوت لري. د مسلمانانو همت او غیرت هم ورته ثابت وُ خو بیا هم پدې تمه وو چې کیدای شي رومیان حمله وکړي او مسلمانان نابود کړي. د مسلمانانو کمزوري او تباهي د دوی هیله وه، پدې وخت کې دوی خپل شوم هدف لنډ لیدلو او له همدې امله یې د شر

---

[1]. صحیح البخاري ۲/ ۷۳۰ .
[2]. صحیح البخاري ۱/ ۳۳۴ .

او توطئو یوه اډه جوړه کړه. د شر دغه اډه یې د جومات په نوم ونوموله چې په اسلامي تاریخ کې ورته مسجد الضرار ویل کیږي. منافقانو هیله درلوده له همدې مرکز نه په استفادې سره د مسلمانانو تر مینځ نفاق واچوي، همدا به د کفر او کفارو لپاره مرکز او اډه وي. دوی چې دا جومات جوړ کړ له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه یې وغوښتل چې تشریف راوړي او لمونځ پکې ادا کړي، لدې کار نه یې هدف دا و چې تر څو مسلمانان پرې وغولوي، او متوجه نه شي چې دوی دلته د اسلام په خلاف څه توطئې جوړوي. دوی لدې ځای نه د فساد او توطئې جوړونې مطمئنه او آرامه اډه جوړوله، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دلته لمونځ کول له غزا نه تر بیرته راتګ پورې وځنډاوه، ځکه پدې وخت کې غزا ته تیاری بآندې مصروف و. پدې ترتیب سره منافقان پخپل هدف کې ناکام شول، الله تعالی وشرمول، او کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له غزا نه بیرته راستون شو د همدې مسجد د نړولو حکم یې وکړ، او مسجد وران شو.

## د رومیانو او غسان قبیلې د تیارۍ خاص رپوټونه

دا و هغه حالت او خبرونه چې مسلمانان ورسره مخامخ وو، په همدې ډول حالاتو کې نبطیونو هغه چې له شام نه یې مدینې ته تیل یا غوړي راوړل خبر راوړ چې هرقل څلویښت زره کسیزه لښکر تیار کړیدی، مشر یې یو مخور رومي ټاکلی، لخم، جذام او نورې عربي قبیلې هم ورسره دي. د همدې لښکر لومړنی ټولګی (مقدمه) د بلقا سیمې ته رارسیدلې ده. پدې سره مسلمانان له لوی خطر او تهدید سره مواجه شول. یادونه باید وکړو چې نبطیان د اسماعیل (ع) د زوی نابت اولاده وه، یو وخت یې په شمالي حجاز کې ښه برم درلود، خو ورو ورو مخ په ځوړ لاړل او عادي سوداګران او بزګران شول.

## حالات نور هم ترینګلي شول

حالات ډیر خراب او ترینګلي شول، د سختۍ او شدیدې ګرمۍ موسم و. مسلمانان له نورو ستونزو علاوه د وچکالۍ، بې وسۍ او د سوارۍ لپاره د څارویو له کمبود سره لاس او ګریوان وو. بله دا چې میوې هم پخې شوې وې، د هر چا زړه دا غوښتل چې پخپل باغ کې تر سیوري لاندې وي پداسې وخت کې له کور نه وتل ډیر ګران و، ګرمي هم وه، لاره ډیره اوږده او سخته وه.

## د رسول الله ﷺ پريکنده اقدام

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حالاتو او د شرایطو بدلون ته په ډیر دقت کتل، د پیښو اسباب او عواقب یې څیړل، باور یې درلود که په موجوده حالاتو کې له رومیانو سره له جګړې نه ډډه وشي، سستي وشي، دښمن فرصت ومومي د اسلامي دولت له پولو نه تیری وکړي د مدینې په لور مخکې راشي، دا به د مسلمانانو لپاره ډیرې ناوړې اغیزې ولري. جنګي ځواک، شهرت او حیثیت به یې صدمه ومومي، تشویشونه به راولاړ شي، او کیدای شي هغه مشرکان چې له حنین غزا نه وروسته د بشپړې نابودۍ په مورګه ولاړ وو بیرته ځانونه منظم کړي او هڅه وکړي چې بیا د ژوند او ځواک خاوندان شي. بل خطر دا وُ چې منافقانو هم پر مسلمانانو د پریکنده برید لپاره مناسب فرصت لټاوه، د فاسق ابو عامر له لارې یې د رومیانو له پاچا سره اړیکې ټینګې کړې وې. پلان یې جوړ کړی وُ چې د رومیانو د حملې په صورت کې به دوی له شا نه پر مسلمانانو د توري ګوزار کوي. او که داسې شوي واې نو د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او اصحابو (رضي الله عنهم) د اوږدو او سختو هلو ځلو، جنګونو او کوششونو نتیجه به اوبو وړې وای! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دا ټول واقعیتونه درک کړي وُ، همدا وه چې له زیاتو مشکلاتو سره سره یې له رومیانو سره د دوی له پولو نه اخوا د جګړې او ټکر فیصله وکړه، امر یې وکړ چې باید رومیان فرصت و نه مومي د اسلامي حکومت د پولو او سرحدونو په لوري وړاندې تګ وکړي.

## له رومیانو سره د جګړې لپاره د تیارۍ امر

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپل تصمیم اصحابو (رضي الله عنهم) ته ورساوه، هغوی یې خبر کړل چې باید له رومیانو سره د جګړې تیاري ونیسي. د مکې او شاوخوا نورو سیمو قبایلو ته یې هم د تیارۍ فرمان صادر کړ. د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سنت او عادت داسې وُ چې د جګړې په وخت کې به یې خپله لاره او خپل هدف پټ ساته له توریې نه به یې کار اخیست یدې معنی که غوښتل به یې د شمال په لوري لاړشي نو اعلان به یې داسې کاوه چې جنوب ته ځي، او یا بر عکس، خو دا ځل څرنګه چې شرایط ډیر سخت، تنګ او خطرناک وو نو په څرګنده توګه یې اعلان وکړ چې له رومیانو سره یې د جګړې پریکړه کړیده، ټول یې

خبر کړل تر څو د جګړې تيارئ ونيسي او جهاد ته يې تشويق کړل. په همدې ورځو کې د سوره برائت څو مبارک آيتونه نازل شول، چې مسلمانان هاند او جګړې ته هڅوي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپلو اصحابو ته د الله په لار کې د مالي قربانۍ اهميت هم بيان کړ او ديته يې وهڅول چې هر يو د خدای په لار کې خپل غوره مال په مصرف ورسوي.

## جهاد ته په تيارۍ کې سيالي

له روميانو سره د جګړې لپاره د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له فرمان نه وروسته مسلمانانو يو له بل سره د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د امر په تعيمل کې سيالي کوله. هر چا په ډيره بيړه د جګړې تياري نيوله، مختلفې قبيلې او کورنۍ له هر لوري نه د مدينې په خوا را ماتې وې. ټول مسلمانان آماده شول، له منافقانو پرته ټولو د جګړې اراده کړې وه. ټول جګړې ته روان شول، يوازې درې کسه ريښتوني مسلمانان ورنه پاتې شول نور ټول وخوځېدل.

جګړې ته له روانيدو نه مخکې بې وسه، محتاج او فقير مسلمانان د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته راتلل د جګړې لپاره يې د سپرلۍ او وسايلو سوال کاوه خو کله به يې چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) دا لاندينی ځواب اوريده نو پداسې حال کې به بيرته ورنه تلل چې سترګې به يې له اوښکو ډکې وې: ((لا أَجِدُ مَا أَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ تَوَلَّوا وَأَعْيُنُهُمْ تَفِيضُ مِنْ الدَّمْعِ حَزَناً أَلاَّ يَجِدُوا مَا يُنفِقُونَ)). (التوبة: ۹۲)

[ترجمه: نو ويل تا دوی ته چې ستاسې د سپرلۍ لپاره څه نلرم، نو بيرته تلل دوی پداسې حال کې چې سترګې يې له اوښکو ډکې وې، او پدې خفه دي چې د جهاد په لارکې د نفقې لپاره څه نلري.]

مسلمانانو د الله په لار کې د مال او دارايۍ په خرڅولو کې هم يو له بل سره سيالي کوله د هر يوه هيله دا وه چې زيات اجر وګټي. عثمان (رضي الله عنه) هغه تجارتي کاروان چې د شام د تجارت لپاره يې تيار کړی ؤ ټول رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ورکړ، پدې کاروان کې دوه سوه اوښان سره له ځلونو او کجاوو، دوه سوه اوقيې يعنې ۵/ ۲۹ کيلو ګرامه نقره دا ټول يې د الله په لار کې صدقه کړل. دا ټول مجهز کاروان يې صدقه کړ، سل اوښان سره له ټولو لوازمو او زر ديناره (پنځه نيم کيلو سره زر) نور يې هم د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته

راوړل عرض یې وکړ چې دا هم د الله په لار کې په خرڅ ورسوئ. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پداسې حال کې چې دغه دینارونه یې په لاس کې اړول را اړول فرمایل یې: (ما ضَرَّ عثمان ما عمل بعد الیـــوم)[1]. لدې ورځې نه وروسته چې عثمان هر عمل وکړي هیڅ زیان نه ورسوي. عثمان (رضي الله عنه) پدې هم اکتفا ونکړه، نور مالونه یې هم خیرات کړل، ټول نهه سوه اوښان او سل آسونه یې صدقه کړل، البته د طلا او نقرې حساب خو یې لا بیل دی.

عبدالرحمن بن عوف (رضي الله عنه) دوه سوه اوقیې نقره راوړه. ابوبکر (رضي الله عنه) خپل ټول مال چې څلور زره درهمه وو راوړل، د خپل اولاد لپاره یې الله او رسول کافي وبلل. عمر (رضي الله عنه) هم خپل نیم مال راوړ. عباس (رضي الله عنه) هم ډېر څه راوړل. طلحه، سعد بن عباده، محمد بن مسلمه (رضي الله عنهم) هر یوه ډېر څه حاضر کړل. عاصم بن عدي (رضي الله عنه) نوي وسقه خرما (یو وسق ۶۰ صاع کیږي او پدې حساب ټول دیارلس نیم زره کیلو یا دیارلس نیم ټنه خرما) راوړه. اصحابو (رضي الله عنهم) یو په بل پسې د خپل توان په اندازه مالونه راوړل، د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په حضور کې یې ایښودل، داسې کسان هم وو چې یوازې یو مُد یا دوه مُده یا کمې او زیاتې خرماوې یې راوړلې.[یو مُد ۶۷۵ گرامه وزن لري] ښځو هم چې څه درلودل رایې وړل، چا به مشک راوړل، چا پایزیب، بنګړي، لښتی، ګوتیې او، ټول یې حاضر کړل. له منافقانو پرته هیچا هم بخل ونکړ، ډېر څه جمع شول. ((الَّذِينَ يَلْمِزُونَ الْمُطَّوِّعِينَ مِنْ الْمُؤْمِنِينَ فِـــي الصَّدَقَاتِ وَالَّذِينَ لا يَجِدُونَ إِلاَّ جُهْدَهُمْ فَيَسْخَرُونَ مِنْهُمْ....))). (التوبه: ۷۹)

[ترجمه: هغه منافقان چې عیب وایي په خیرات کوونکو مؤمنانو باندې په ادا د صدقاتوکې او بل د هغو بې وزلو عیب وایي چې هیڅ نه مومي مګر په اندازه د توان او زیار خپل، پس مسخرې کوي دغه منافقان په دوی پورې...]

## اسلامي لښکر د تبوک په لور

لښکر تیار شو، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) محمد بن مسلمه او په بل روایت سباع بن عرفطه په مدینه کې خپل خلیفه وټاکه. علي (رضي الله عنه) ته یې

[1] . جامع الترمذي،مناقب عثمان بن عفان ۲۱۱/۲.

وظیفه ورکړه چې دده د کورنۍ سر پرستي وکړي. کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) روان شو منافقانو داسې خبرې وکړې چې علي (رضي الله عنه) هغه تحمل نه شوی کړی، روان شو له مدینې نه ووت او ځان یې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ورساوه، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) بیرته امر ورته وکړ چې لاړ شي او د خپلې کورنۍ سر پرستي وکړي او ورته ویې فرمایل: (**ألا ترضى أن تكون مني بمنزلة هارون من موسي، إلا أنه لا نبي بعدي**). اې علي! آیا دا دې نده خوښه چې زما په وړاندې داسې مقام ولرې لکه چې هارون یې د موسی (علیه السلام) په وړاندې لرې. خو له ما نه وروسته بل هیڅ پیغمبر نشته.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د پنجشنبې په ورځ د شمال په لور مدینه د تبوک په قصد پرېښوده، د مجاهدینو شمیره ډیره زیاته وه، دیرش زره کسان جګړې ته روان وو، که څه هم ډیر مالونه راټول شول خو بیا هم ددې دومره لوی شمیر عسکرو لپاره کافي نه وو.

لښکر د سورلۍ او توښې له پلوه له مشکلاتو سره مخ و، هرو اتلسو کسانو ته یوه سورلي وه په نوبت به ورباندې سپریدل. غازیانو به له ډیرې لوږې د ونو پاڼې خوړلې د اکثرو کسانو شونډې وپړسیدلې، که څه هم اوښانو ته ډیره اړتیا وه خو بیا هم له ډیرې تندې او لوږې نه دیته مجبور شول څه اوښان حلال کړي، دومره تږي وو چې باید د اوښانو د خیټې اوبه یې څښلې وای. او څرنګه چې لښکر ډیرې سختۍ لیدلې نو دې لښکر ته جیش العسره یعنې د سختیو لښکر هم ویل کیږي.

اسلامي لښکر د لارې په اوږدو کې د ثمودیانو له سیمې (حجر) نه تیر شو، ثمودیانو هلته وادي قری کې له تیږو نه لویې لویې خونې جوړې کړې وې. اصحابو(رضي الله عنهم) اراده وکړه ددې ځای له اوبو نه څه وڅښي، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر وکړ چې: (**لا تشربوا من مائها ولا تتوضأوا منه للصلاة، وما كان من عجين عجنتموه فاعلفوه الإبل، ولا تأكلوا منه شيئاً**). دا اوبه مه څښئ او مه اودس وربانذې کوئ او کوم اوړه مو چې پدې اوبو خوشته کړي هغه خپلو اوښانو ته ورکړئ خپله یې مه خورئ. او زیاته یې کړه چې یوازې له هغې چینې نه اوبه وڅښئ له کومې نه به چې د صالح (علیه السلام) اوښې اوبه څښلې.

بخاري او مسلم له ابن عمر (رضي الله عنهما) نه روایت کوي وایي: کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له حجر نومې سیمې نه تیریده ویې فرمایل: (**لا تدخلوا مساكن الذين ظلموا أنفسهم أن يصيبكم ما أصابهم إلا أن تكونوا باكين**). د

هغه چا کورونو ته مه داخليږئ چې پخپلو نفسونو يې ظلم کړيدی، هسې نه چې د دوی عذاب تاسې ته هم در ورسيږي، دلته پداسې حالت کې داخل شئ چې د الله له ويرې نه ژړا کوونکي وئ. بيا رسول (صلی الله عليه وسلم) خپل مبارک سر پټ کړ او په بيړه، بيړه لدې درې نه ووت.[1]

د لارې په اوږدو کې غازيان سخت تږي شول، اوبو ته زيات اړ وو، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته يې شکايت وکړ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د باران سوال وکړ، يو ځل وريځې رابښکاره شوې ښه باران وشو. خلکو اوبه وڅښلې او د ضرورت په اندازه يې ورسره واخيستلې. کله چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تبوک ته نژدې شو ويې فرمايل: (**إنكم ستأتون غداً إن شاء اللّه تعالى عين تبوك، وإنكم لن تأتوها حتى يَضْحَي النهار، فمن جاءها فلا يمس من مائها شيئاً حتى آتي**). **[**تاسې به سبا د تبوک چينې ته ورسيږئ (ان شاء الله) خو تر نيمې ورځې پورې به ور ونه رسيږئ، که له ما نه مخکې ور ورسيدئ نو ترهغې پورې اوبه مه ورنه څښئ تر څو زه نه وم راغلی.**]**

معاذ (رضي الله عنه) وايې مونږ پداسې حال کې چينې ته ورسيدو چې له مونږ نه مخکې دوه کسان ورسيدلي وو، د چينې اوبه لږ لږ روانې وې، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له هغو دوو کسانو نه پوښتنه وکړه: (**هل مسستما من مائها شيئاً؟**) آيا د چينې اوبو ته مو لاس وروړی دی؟ هغوی وويل: هو. بيا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته د خدای د ارادې او خپلې خوښې مطابق خبره وکړه. بيا يې په مبارکو لاسونو اوبه رابندې کړې تر څو يوه اندازه جمع شوې، مبارک مخ او لاسونه يې وربان‌دې پرې مينځل، نورې يې بيرته په چينه کې واچولې پدې سره يو ځل له چينې نه زياتې اوبه روانې شولې، خلکو وڅښلې او د ضرورت په اندازه يې ورسره واخيستلې. بيا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**يوشك يا معاذ، إن طالت بك حياة أن ترى ماهاهنا قد ملئ جناناً**). اې معاذه! که عمر ياري درسره وکړي، نو و به وينې چې يو وخت به دا سيمه ټوله د ميوو له باغونو ډکه وي.[2]

همدا راز رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د تبوک په لاره کې او په بل

---

(1). صحيح بخاري ۲/ ۶۳۷.

(2). مسلم ۲/ ۲۴۶

روایت تبوک ته له رسیدو وروسته وفرمایل: (**تهب علیکم اللیلة ریح شدیدة، فلا یقم أحد منکم، فمن کان له بعــیر فلیشــد عقَالَــه**). نن شپه به سخت باد درباندې راوالوزي، هیڅوک به نه دریږي، د اوښانو خاوندان دې د اوښانو ګونډې وتړي.

هماغه وه چې د شپې سخت باد راغی، یو سړی د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د امر په خلاف پاڅید ودرید، چې باد پورته کړ او ان د طيئ په غره یې وغورځاوه[1].

همدارنګه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) عادت داسې وٴ چې د لارې په اوږدو کې به یې د ماسپښین او لمازدیګر، ماښام او لماسختن لمونځونه یو ځای ادا کول یعني د لمازدیګر لمونځ به یې د ماسپښین او لماسختن به یې د ماښام په وخت کې یو ځای ادا کاوه چې دیته جمع تقدیم وایي، او یا به یې د ماسپښین لمونځ د لمازدیګر او ماښام د لماسختن په وخت کې یو ځای ادا کول چې دیته جمع تاخیر وایي.

## اسلامي لښکر په تبوک کې

اسلامي لښکر تبوک ته ورسید، له دښمن سره د مقابلې پوره تیاري یې درلوده، مرکز یې جوړ کړ. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ډیره مهمه خطبه وویله، په لنډو ټکو کې یې لوی مفاهیم ادا کړل، مسلمانان یې د دنیا او آخرت ښیګڼو ته راوبلل، د بدو اعمالو او شر له عواقبو نه یې وویرول، وی‌ی ګو اښل. همدا راز د خوښۍ څرګندونه یې وکړه، او دوی ته یې هم د خوښۍ او بري زیرې ورکړ. پدې ترتیب سره یې د هغوی روحیات دومره لوړ کړل چې د وسایلو د کمبود او موادو د نشتوالي جبران پرې وشو. رومیانو چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د لښکر کشۍ خبر واورید ویرې واخیستل، د وړاندې تګ او مقابلې جرات یې نه شوی کولی، له پولو نه اخوا ښارونو کې سره تیت شول. دې کار د مسلمانانو لپاره په زړه پورې نتیجې درلودې، او مسلمانانو داسې سیاسي برياوې لاسته راوړې چې د جنګ او وسلوالې مقابلې په حالت کې یې لاسته نه شوای راوړی. د ایله مشر یحنه بن روبه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راغی او د جزیې په منلو سره یې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره سوله وکړه. د جرباء او اذرح خلک هم حاضر شول جزیه ورکول یې ومنل، رسول الله (صلی الله علیه و

[1]. صحیح مسلم.

اله و صحبه و سلم) هغوی ته یو لیک ولیکه. د ایله واکمن ته د لیکل شوي لیک متن داسې و:

(**بسم اللّه الرحمن الرحيم، هذه أمنة من اللّه ومحمد النبي رسول اللّه ليحنة بن رؤبة وأهل أيلة، سفنهم وسيارالهم في البر والبحر لهم ذمة اللّه وذمة محمد النبي، ومن كان معه من أهل الشام وأهل البحر، فمن أحدث منهم حدثاً، فإنه لا يحول ماله دون نفسه، وإنه طيب لمن أخذه من الناس، وأنه لا يحل أن يمنعوا ماء يردونه، ولا طريقاً يريدونه من بر أو بحر**). [بسم الله الرحمن الرحيم، دا د مهربان الله او محمد رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له خوا د یحنه بن روبه او ایله د خلکو لپاره امان لیک دی. د دوی کښتۍ او ځمکني کاروانونه به ټول محفوظ او خوندي وي، الله او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یې ذمه وار دي. دا تړون او عهد د دوی او د شام او سمندر ټولو هغو خلکو لپاره دی چې له دوی سره همکاري لري، او دیته ورته نظر ولري. که له دوی نه څوک د بد او نا مناسب کار مرتکب کیږي، نو مال یې د مجازاتو مخه نشي نیولی، او د جرم د ارتکاب په صورت کې د هغه مال نورو ته روا دی چې وایې خلي. همدا راز دوی اجازه لري له هرې چینې نه ګټه واخلي او له هرې بحري او ځمکنۍ لارې نه استفاده وکړي.] رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یو څلور سوه شل کسیز سپور ګروپ د خالد بن ولید (رضي الله عنه) په مشرۍ د دومه الجندل مشر اکیدر ته ولیږه، ورته ویې فرمایل: (**إنك ستجده يصيد البقر**).اکیدر به پداسې حال کې ووینۍ چې د غوایانو ښکار به کوي. خالد (رضي الله عنه) لاړ او کله چې د هغوی برجونه ورته ښکاره شول، یو نیلي رنګه غویی یې د قصر له دروازې سره ولیدل شو چې د قصر دروازه یې په ښکرو موښله، اکیدر هم ورپسې راغی او د هغه د ښکار هڅه یې کوله، شپه وه خو سپوږمۍ رڼا کوله، خالد (رضي الله عنه) اوملګري یې پدې وتوانیدل چې اکیدر ونیسي او بیا یې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضورته راووست.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هم د هغه دمرګ حکم ونکړ، بلکه سوله یې ورسره وکړه او هغه دا ومنله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته به له جزیې سره سره دوه زره اوښان، اته سوه وزې، څلور سوه زغرې او څلور سوه نیزې ورکوي، او پدې ترتیب سره یې له هغه سره هم د یحنه، دومه،تبوک، تیماء

او ایله په شان تړون وکړ.
د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د بریالي سیاست په نتیجه کې هغه عربي قبایل چې له رومیانو سره یې همکاري درلوده په بله و ا وښتې، په رومیانو یې باور کم شو د مسلمانانو خوا ته نژدې شوې.
او پدې سره د مسلمانانو د حکومت دایره پراخه شوه، او د روم تر اصلي پولو پورې وغزیده د رومیانو نوکران نور ختم شول خپله ماتې یې ولیده او خبره مستقیماً په رومیانو پورې مربوطه شوه.

## بیرته د مدینې په لور

د مسلمانانو بریالی لښکر پداسې حال کې بیرته مدینې ته روان شو چې الله تعالی له جګړې او وسله والې نښتې پرته ډېر بریالیتوب ورپه برخه کړی ؤ.
د لارې په اوږدو کې له یوې کړ لیچې غونډۍ سره دوولسو منافقانو د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د شهادت توطئه جوړه کړه. کیسه داسې وه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لدې نقطی نه پداسې حال کې تیریده چې نور لښکر په دښته کې روان و، له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره یوازې دوه کسان موجود وو، عمار (رضي الله عنه) چې د اوښې واګې نیولې وې، او حذیفه (رضي الله عنه) چې ورپسې روان ؤ.
منافقانو پدې وخت کې هڅه وکړه لدې فرصت نه ناوړه ګټه پورته کړي، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له خپلو دوو ملګرو سره روان و چې د پښو ثپا او آواز یې واورید پوه شو چې څوک ورپسې په منډه را روان دي ویې کتل چې څو نقاب پوشان په تیزۍ سره د دوی په لور راځي، فوراً یې حذیفه (رضي الله عنه) ته وظیفه ورکړه چې د هغوی مخه ونیسي. حذیفه هم د دوی د سورلیو پر مخونو د ورسره موجود ډال ګوزارونه وکړل، پدې سره منافقان وډار شول او وتښتیدل. او د نور لښکر سره یو ځای شول. وروسته رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د همدې منافقانو نومونه حذیفه (رضي الله عنه) ته وښودل، او دا یې هم ورته وویل چې هغوی کوم شوم نیت او هدف درلود، خو ورته ویې فرمایل چې افشا کوه یې مه. له همدې وجې نه حذیفه (رضي الله عنه) د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) صاحب السر یعنې د راز یار بلل کیږي.
الله تعالی د منافقانو ددې بدې ارادې په هکله فرمایي: ((وَهَمُّوا بِمَا لَمْ يَنَالُوا))

(التوبة: ٧٤) [دوی د داسې کار هڅه وکړه چې پکې بریالي نه شول] یعنې هغوی غوښتل رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په شهادت ورسوي خو ویې نه شوی کولی خپل هدف تر لاسه کړي. کله چې مدینه را ښکاره شوه رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (**هذه طَابَةُ، وهذا أحُدٌ، جبل يحبنا ونحبه**).دا طابه ده، هغه د احد غر دی، هغه احد چې له مونږ سره مینه لري او مونږ هم ورسره مینه لرو.

د مدینې اوسیدونکي چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له راتګ نه خبر شول، ښځې او ماشومان یې مخې ته را ووتل، په ډیر احترام او درناوي یې هرکلی کاوه، او دا شعرونه یې ویل:

**طلــع البـــدرعلينا من ثنيات الودا ع**
**وجب الشـــكرعلينا مادعـــالله دا ع** (١)

[د څورلسم سپوږمۍ راوختله، د وداع له غونډیو نه یې رابانديې رڼا واچوله، تر څو پورې چې د الله لوري ته دعوت روان دی تر هغې پورې پر مونږ شکر لازم دی.]

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د رجب په میاشت کې د تبوک په لور روان شوی ؤ او د رمضان په میاشت کې بیرته راستون شو. ددې غزا ټوله موده پنځوس ورځې وه چې دیرش یې په تبوک او نورې یې په سفر کې تیرې شوې. د تبوک غزا د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وروستۍ غزا وه.

## له غزا نه د پاتې شویو کیسه

بیرته پاتې شوي هغه چې بې عذره له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه پاتې شوي وو، غزا ته نه وو ورسره تللي. د دوی په هکله خاص حکم وشو چې باید له ټولنې ګوښې کړی شي تر څو توبه یې قبوله شوه او بیرته په اسلامي ټولنه کې ومنل شول. د تبوک غزا د ځانګړو شرایطو درلودونکې وه، د مسلمانانو لپاره یې له هر پلوه د سخت امتحان حیثیت درلود په همدې جګړې سره مؤمنان له نورو نه بیل او وپیژندل شول. الله تعالی تل په سختیو سره رینښتوني له دروغجنو نه بیلوي، الله

---

(1). دا د ابن قیم نظر دی.

تعالی فرمایي: (مَا كَانَ اللَّهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى مَا أَنْتُمْ عَلَيْهِ حَتَّى يَمِيزَ الْخَبِيثَ مِنْ الطَّيِّبِ)) (آل عمران: ۱۷۹)

[ترجمه: ندی الله چې پرېږدي مؤمنان مختلط ستاسې په شان، تر څو جلا کړي ناپاکه له پاکه څنې.]

کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د تبوک د غزا حکم صادر کړ، ټول مؤمنان روان شول، څوک چې پاتې شول مطلب یې دا ؤ چې په زړه کې یې نفاق دی. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته به چې وویل شول چې فلانی ندی راغلی په مدینه کې پاتی شویدی نو ده به فرمایل: (**دعوه، فإن يكن فيه خير فسيلحقه الله بكم، وإن يكن غير ذلك فقد أراحكم منه**). [پرې یې ږدئ، که خیر پکې وي نو الله تعالی به یې حتماً راولي، او که خیر نه وي پکې نو ښه ده خدای یې له شر نه وژغورلئ.]

له همدې کبله له رښتینو مومنانو نه هیڅا هم لدې غزا نه سر و نه غړاوه، یوازې د عذر خاوندان پاتې شول او هغه منافقان و نه وتل کوم چې په الله او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یې ایمان نه ؤ. څینو په دروغو سره بهانې جوړې کړې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه یې د پاتې کیدو اجازه واخیستله. لنډه دا چې یوازې منافقان او د عذر خاوندان پاتې شول، نور ټول لاړل، دلته دری کسان داسې هم وو چې له یوې خوا رښتوني مؤمنان وو، عذر یې هم نه درلود، او له بلې خوا له غزا نه هم پاتې شوي وو همدغو کسانو ته پاتې شوي وایي په همدوی الهي ازموینه راغله تر څو بریالي ورنه ووتل.

کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له تبوک نه بیرته مدینې ته تشریف راوړ، لومړی جومات ته لاړ، دوه رکعته لمونځ یې ادا کړ بیا یې له خلکو سره خبرې شروع کړې. منافقان چې شمیره یې له اتیا[1] نه زیاته وه راغلل ډول ډول عذرونه یې وړاندې کول، قسمونه یې خوړل، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به هم د دوی عذر مانه، د دوی ظاهري اعتراف به یې قبلاوه بیعت به یې ورنه اخیست د مغفرت دعا به یې ورته کوله او نور به یې خدای ته سپارل.

پدې ډله کې چې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره غزا ته نه وو

---

[1]. واقدي ویلي چې دغه د انصارو د منافقانو وه، او د اعرابو(بدویانو) لکه بني غفار او نورو د عذر وړاندې کوونکو تعداد هم ۸۲ کسان وو.او عبد الله بن ابي او پیروان یې لدینه جدا وو او د هغوی شمیره هم زیاته وه. فتح الباري ۱۱۹/۸ وګوره.

تللي، درې کسه داسې وو چې د کلک ايمان خاوندان وو، اوس يې هم د رښتيا لاره غوره کړه، دروغ يې ونه ويل اعتراف يې وکړ چې بې عذره لدې غزا نه پاتې شوي وو. دغه درې کسان کعب بن مالک، مراره بن ربيع او هلال بن اميه نوميدل. دوی ومنل چې هيڅ عذر يې نه درلود خو په غزا کې يې ګډون ونکړ، همدا وه چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) امر وکړ چې بايد دوی له ټولنې نه ګوښې شي، مسلمانانو ته يې وويل چې له دوی سره اړيکې وشلوي او خبرې کول ورسره بند کړي.

دوی له ټولنې نه داسې پرې او بيل شول چې دا دومره لويه ځمکه وربانديې تنګه شوه، له ژوند نه ماړه شول له څلويښتو ورځو نه وروسته امر ورته وشو چې له خپلو ښځو نه هم جدا شي، لس ورځې نورې هم له ټولو نه پردي وو، تر څو له پنځوس ورځې بيلتون نه وروسته الله تعالی رحم پرې وکړ توبه يې قبوله شوه او دا آيت شريف نازل شو:((وَعَلَى الثَّلاثَةِ الَّذِينَ خُلِّفُوا حَتَّى إِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمْ الأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ أَنفُسُهُمْ وَظَنُّوا أَنْ لا مَلْجَأَ مِنْ اللَّهِ إِلاَّ إِلَيْهِ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ لِيَتُوبُوا إِنَّ اللَّهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ.))(التوبة: ۱۱۸)

[په هغو دريو کسانو چې بيرته پاتې شوي وو تر هغه پورې چې تنګه شوه پر دوی دا ارته ځمکه او تنګ شول پر دوی زړونه د دوی او يقين يې وکړ چې نشته ځای د پناه له قهره د الله، پناه يوازې له الله سره ده، بيا الله دوی ته د توبې توفيق ورکړ بيشکه چې الله ښه توبه قبلونکی ډير رحم والا دی.]

پر دوی الهي رحم وشو، مسلمانان زيات خوشاله شول، دوی هم له ډيرې خوشالۍ نه صدقې ورکړې او دا يې د ژوند تر ټولو نيکمرغه ورځ وه.

د هغو مؤمنانو په هکله چې د عذر په اساس يې په دې غزا کې ګډون نه و کړی، دا آيتونه را نازل شول: ((لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَاءِ وَلا عَلَى الْمَرْضَى وَلا عَلَى الَّذِينَ لا يَجِدُونَ مَا يُنفِقُونَ حَرَجٌ إِذَا نَصَحُوا لِلَّهِ وَرَسُولِه مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِنْ سَبِيلٍ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ (۹۱) وَلا عَلَى الَّذِينَ إِذَا مَا أَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ قُلْتَ لا أَجِدُ مَا أَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ تَوَلَّوا وَأَعْيُنُهُمْ تَفِيضُ مِنْ الدَّمْعِ حَزَناً أَلاَّ يَجِدُوا مَا يُنفِقُونَ)) (التوبة: ۹۱– ۹۲)

[نشته هيڅ ګناه په کمزورو او نه په رنځورانو او نه په هغو کسانو چې نه مومي دوی هغه مال چې ولګوي يې په غزا کې کله چې اخلاص کوي له الله او رسول سره او نشته پر محسنانو ملامتيا. او نشته ګناه په هغو کسانو چې تا ته راغلل تر څو د سورلۍ

لپاره څه ورکړې، تا ورته وويل ستاسې د سورلۍ لپاره څه نلرم، او دوی پداسې حال بيرته ستانه شول چې سترګې يې له اوښکو ډکې وې پدې غمجن وو چې د خدای په لار کې د لګښت لپاره څه نلري]

همدا راز رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) چې کله د بيرته ستنيدو په وخت کې مدينې ته را لنډ شو نو ويې فرمايل: (**إن بالمدينة رجالاً ما سرتم مَسِيراً، ولا قطعتم وادياً إلا كانوا معكم، حبسهم العُذْرُ**)، **قالوا: يا رسول اللّه، وهم بالمدينة؟ قال:** (**وهم بالمدينة**). په مدينه کې داسې کسان شته چې ناست هلته دي خو ستاسې ټول ثواب يې ګټلی دی، په هره دښته او هره لاره چې تاسې تللي ياست د هغې ثواب دوی ته هم ور رسيدلی دی، ځکه دوی عذر درلود او عذر يې ددې مانع شو چې له تاسې نه پاتې شي. اصحابو (رضي الله عنهم) ورته وويل يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! دوی ته ثواب په مدينه کې ورکول کيږي؟ ده وفرمايل: هو همدا ثواب يې پداسې حال کې په برخه دی چې دوی په مدينه کې ناست دي.

## د تبوک غزا پايلې او اغيزې

دې غزا په عربي جزيره کې د مسلمانانو د نفوذ د پراختيا او پياوړتيا په لار کې لويه اغيزه درلوده خلکو ته ثابته شوه چې دلته يوازې اسلام هغه ځواک دی چې د بقا او دوام چانس لري او مسلمانان له ټولو نه ځواکمن او د زيات نفوذ خاوندان دي.

پدې غزا سره د منافقانو او جاهلانو هيلې له خاورو سره خاورې شوې. دوی تمه درلوده چې ګوندې روميان به مسلمانان له مينځه يوسي خو هسې ونه شول، همدا وه چې دوی هم مجبور شول دېخوا تـه مخه کړي، نورې لارې ورباندې بندې شوې، نو واقعيت ته تسليم شول. او لدينه وروسته نور داسې دليل نه و پاتې چې مسلمانان نرمې ورسره وکړي. الله تعالی امر وکړ چې سختي ورسره وشي، صدقې يې ونه منل شي د جنازې لمونځ يې ادا نه شي، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) بايد نور د دوی لپاره مغفرت و نه غواړي او په قبرونو يې ونه دريږي. امر وشو چې د مسجد ضرار په نامه جوړ شوی د شر مرکز ونړول شي. د قرانکريم آيتونه نازل شول منافقان يې د اسې معرفي کړل لکه چې نومونه يې ياد کړي وي، ډير سپک او رسوا شول، نور ټولو پيژندل، پردې يې له مخونو پورته شوې. ددې غزا اغيزه دا وه چې د عربي پلاويو شميره ډيره شوه، که څه هم د مکې له فتحې نه وړاندې او وروسته د عربي قبايلو نمايندګان د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته راتلل خو

له تبوک نه وروسته ددې ډول وفدونو شمیر نور هم زیات شو.[1]

## ددې غزا په هکله د قرآنکریم لارښوونې

د برائت سورت زیات آیتونه د همدې غزا د حالاتو او احکامو په هکله نازل شول. پدې آیتونو کې ځینې داسې دي چې غزا ته له روانیدو نه مخکې نـازل شـوي، ځیـنې د سفر په دوران کې او نور له غزا نه له بیرته ستنیدو نه وروسته نازل شویدي. ددې آیتونـو پـه واسطه الله تعالی ددې غزا حالات او شرایط بیـان کړي، د منافقـانو حقیقت یې پکې ښکاره کړی او په ګوته کړيدی. د ریښتینو مجاهدینو مقام او فضیلت تـه یـې اشـاره کړیـده، د هغو دریو کسانو توبه پکې قبوله شوې چې بې عذره پاتې شوي وو او داسې نور.

## ددې کال ځینې مهمې پیښې

پدې کال کې څه داسې پیښې شوې چې په تاریخ کې د ډیر اهمیت درلودونکې دي:

<u>۱- لـه تبـوک څخـه</u> د رسـول الله (صـلی الله علیـه و الـه و صـحبه و سـلم) لـه سـتنیدو نـه وروسته د عویمر عجلاني او میرمنې تر مینځ یې لعان واقع شو. لعان یعنې د ښځې او میړه له خوا یو پر بل لعنت ویل.

ددې حکم تفصیل د نور سورت په نهم آیت کې راغلی دی چې لنډیز یې داسې دی: کوم کسان چې خپلو ښځو ته د زنا نسبت کوي او پدې هکله شـاهدان ونلـري، نـو بایـد لومړی میړه څلور ځلې قسم وخوري او په قسم سره ووایي چې پخپلـه خبـره کـې صـادق دی او پنځم ځل ووایي که دروغ یې ویلي وي نو د خدای لعنت دې ورباندې وي، لدینـه وروستـه حد په ښځه راځي، خو که ښځې هم لعان ووایـه یعـنې څلـور ځلـې پـه قسـم سـره یې د میړه خبره دروغ وبلله او پنځم ځل یـې وویـل چـې کـه دروغ وایـي نـو د الله غضـب دې پرې وي پدې سره له حد نه نجات مومي خو دواړه سره جدا کیږي.

---

[1]. ددې غزا تفصیلات مو لدې کتابونونه اخیستي دي: ابن هشام ۵۱۵/۲تر۵۳۷.. زاد المعاد۲/۳تر۱۳، بخاري ۶۳۳/۲تر ۶۳۷، صحیح مسلم مه شرحه للنووي۲۴۶/۲، فتح الباري ۱۱۰/۸تر۱۲۶، مختصر سیره الرسول ۳۹۱تر۴۰۷.

۲- له غامدي قبيلې نه يوه ښځه راغله د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په حضور کې يې په زنا اعتراف وکړ هغه وخت يې وړوکی ماشوم درلود، خو کله يې چې ماشوم له شيدو نه جدا شو، ډوډۍ خوړل يې شروع کړل نو هغه ښځه سنگساره شوه.

۳- د حبشې پاچا اصحمه وفات شو، او رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې د جنازې غائبانه لمونځ ادا کړ.

۴- د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) لور ام کلثوم (رضي الله عنها) چې د عثمان (رضي الله عنه) ميرمن وه وفات شوه. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) ډير غمگين شو او عثمان (رضي الله عنه) ته يې وفرمايل: **(لو كانت عندي ثالثة لزوجتكها)**. که دريمه لور مې درلودی هغه به مې هم تا ته په نکاح درکړې وای.

۵- د منافقانو رئيس عبدالله بن ابي مړ شو. رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې د جنازې لمونځ وکړ او د مغفرت دعا يې ورته وکړه. عمر (رضي الله عنه) مخالفت کاوه چې بايد جنازه يې ونه شي، له جنازې نه وروسته هغه آيتونه را نازل شول چې د عمر (رضي الله عنه) دريځ او خبره پکې تاييد شويده.

# د ابوبکر (رضي الله عنه) حج
## (نهم هجري کال)

د همدې نهم هجري کال په ذي القعده يا ذي الحجه مياشت کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپل يار ابوبکر (رضي الله عنه) د حاجيانو امير وټاکه. امر يې ورته وکړ چې لاړ شي او د حج په دوران کې د مسلمانانو لارښوونه وکړي او مناسک وربانديې ادا کړي. وروسته د برائت سورت هغه آيتونه نازل شول چې د تساوي او برابرۍ په بنسټ يې له مشرکينو سره د شويو تړونونو ما تول اعلان کړل.
له همدې کبله رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) علي (رضي الله عنه) ته وظيفه ورکړه چې لاړ شي او په مکه کې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له خوا دا فرمان خلکو ته اعلان کړي. دغه کار د مالونو او نفسونو په اړه تړونونو کې د عربو د عاداتو مطابق و (د دوی دا دستور ؤ چې دا ډول اعلان به سړی يا پخپله کاوه او يا به يې د کورنۍ د کوم غړي په واسطه اعلاناوه، د کورنۍ له غړو پرته د بل چا له خوا به اعلان نه منل کيده).
علي (رضي الله عنه) روان شو او په عرج او يا په ضجنان کې يې له ابوبکر (رضي الله عنه) سره ملاقات وشو. ابوبکر (رضي الله عنه) پوښتنه ورنه وکړه چې امير يې او که مامور؟ علي (رضي الله عنه) په ځواب کې وويل: نه، زه مامور يم.
بيا دواړه روان شول، ابوبکر (رضي الله عنه) د حج د مناسکو مشري وکړه، د اختر په ورځ علي (رضي الله عنه) له جمرې سره ودريد او خلکو ته يې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) فرمان او پيغام ولوست.
پدې فرمان سره له ټولو مشرکينو سره تړونونه مات او لغوه شول، هغوی ته يې څلور مياشتې وخت ورکړ چې له سره فکر وکړي، له کومو مشرکينو سره چې تړون نه و شوی هغوی ته همدا مهلت وټاکل شو، خو هغه مشرکين چې مسلمانانو ته يې اذيت نه و رسولی او د مسلمانانو په خلاف يې له چاسره مرسته نه وه کړې هغوی ته اعلان وشو چې له دوی سره به تړون تر ټاکلې مودې پورې نافذ، د اعتبار وړ او عملي وي. ابوبکر (رضي الله عنه) ځينی کسان توظيف کړل چې اعلان وکړي لدې کال نه وروسته هيڅ

مشرک نه شي کولی د حج په مراسمو کې ګډون وکړي، هیڅوک تـه اجـازه نشـته پـه بربنډ حالت کې طواف وکړي. ددې فرمان په اعلان سره په حقیقت کې لـه عربي جزیرې نـه د بت او بت پرستۍ ټغر په کلي توګه ټول شو، دا اعـلان شـوه چې نـور شـرک ختم شو، د بت پرستۍ تاریخ پای ته ورسید، او بیا به دلته بت پرستي رواج ونه مومي.[۱]

[1]. صحیح بخاري ۱/۲۲۰_۴۵۱. ۲/۶۲۶_۶۲۷، زاد المعاد ۳/۲۵_۲۶، ابن هشام ۲/۵۴۳_۵۴۴_۵۴۵_۵۴۶.

# د رسول اللهﷺ غزاګانو ته یو نظر

که د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) غزاګانو او دده له لوري استول شویو جنګي ګروپونو او پلاویو ته نظر وکړو، په نتایجو کې يې غور او دقت وکړو، نو دا به راته په ډاګه شي چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د تاریخ تر ټولو لوی او بې سیاله قوماندان و، په شجاعت او حکمت، تدبر او پوهه کې یې ساری نه درلود. او هغه لکه څرنګه چې د نبیانو سردار او سالار دی همداسې د جنګ په ډګر کې هم د با تدبیره، زړورو او بریالیو جنګ سالارانو سردار دی.
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) بې وخته او بې ضرورته جګړه نده کړې، او کله چې د جګړې ضرورت پیښ شوی، نو په پوره شجاعت، تدبیر او قاطعیت سره یې د جګړې امور ترتیب او عملي کړیدي. کله هم داسې نده شوې چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لښکر دې د جنګي استراتیژۍ، پلان او تګلارې د کمزورۍ له امله ماتې خوړلې وي، د مناسب ځای انتخاب، د لښکر تنظیم، مناسبه استراتیژي او نورو برخو کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دا په اثبات رسولې ده چې هغه د نړۍ له هر بل جنګي قوماندان نه پوه او مخکې دی.
د احد او حنین د پیښو او ماتې سبب د یو شمیر غازیانو کمزوري او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د اوامرو مخالفت او هغه څه نه پلي کول و چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له پوځي اړخه لازمي بللي و. او پدې دواړو غزاګانو کې د مسلمانانو له ماتې نه وروسته د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نبوغ، شجاعت او حکمت په اثبات رسیږي. د احد په ورځ د جګړې په ډګر کې دومره استقامت او مقاومت کوي چې له امله یې د جګړې مخه په بله اوړي، ماتې بیرته په بري بدلیږي، همدا راز د حنین په غزا کې هم په پوره حکمت او دقت سره ماتې خوړلی لښکر مقاومت ته رابولي، او داسې یې تنظیموي چې دښمن یې نور په وړاندې مقاومت نه شي کولی، د دښمن روحیات ماتوي، حوصلې یې پریوزي او ماتې خوري. پدې ډول حالاتو کې ډیر لوی او زړور قوماندانان خپله روحیه له لاسه ورکوي، هر څه ورنه شړیږي او د ځان له ژغورنې پرته د بل څه په فکر کې نه وي، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه یوازې مقاومت کوي بلکه د دښمن

بری په ماتې بدلوي. مطلب دا چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) جنګي پوهه او حکمت دومره ؤ چې تاریخ یې ساری نلري.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د خپل حکیمانه جنګي تاکتیک او بریالۍ استراتیژۍ پواسطه وکولی شوای په عربي جزیره کې امنیت ټینګ کړي. د اسلام او سولې دښمنان له مینځه یوسي، مشرکان سولې ته اړ کړي او د اسلامي دعوت په وړاندې ټول خنډونه لیرې کړي هغه پخپل حکمت سره منافقان هم تجرید کړل، ریښتوني مومنان له دروغجنو او منافقانو نه بیل شول.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه یوازې پخپله عظیم لارښود او قوماندان ؤ، بلکه هغه ډیر نور نومیالي قوماندانان هم روزلي دي. او همدا د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په لاس روزل شوي قوماندانان وو چې د خپل لارښود له وفات نه وروسته یې د فارس او روم په مقابل کې جګړې وکړې، د شام او عراق په دښتو کې یې د مقابلې په ډګر کې پر دښمن غلبه ومونده، خپله برلاسي یې په اثبات ورسوله، او پخپل تدبر او حکمت سره یې وکولای شوای دښمنان مات کړي، او د وخت دوې امپراطورۍ دړې وړې کړي.

د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د جګړو او غزاګانو بله ګټه دا وه چې د مسلمانانو لپاره کور، ځمکه او کار پیدا شو، د بې وسه مهاجرینو مشکلات حل شول، هغوی هم جنګي وسایل او مصارف پیدا کړل. دا ټول مشکلات پداسې حال او داسې طریقې سره حل شول چې په هیڅا هم یوه ذره ظلم و نه شو.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د جاهلیت د زمانې ټول دودونه بدل کړل، د هغې تورې دورې د جنګ اسباب او اهداف یې هم له مینځه یووړل. په جاهلیت کې د جنګ معنی او هدف چور، چپاول، ظلم، تیری، انتقام، د نورو حقوق تر پښو لاندې کول، د کلیو او کورونو ورانول، د بې ګناه خلکو بې ځایه وژل، د ښځو په عفت تیری، د ماشومانو، ښځو، زړو او بې وسانو پر حقوقو تیری، د فصلونو او ونو له مینځه وړل او په ځمکه کې هر ډول فساد خورول ؤ. هو جنګ د اسم او معنی دواړو له مخې بدل شو، جنګ په جهاد بدل شو چې هدف یې مقدس او سپیڅلی ؤ دا داسې جنګ و چې انسانیت پرې ویاړي، ددې جنګ هدف له ظلم او وحشت نه د انسان آزادي وه. پدې سره بې وسانو خپل حقوق تر لاسه کړل، د زورورو زور اوبه شو، د زور او ظلم دوره تیره شوه، حق او انصاف قایم شو. ددې جهاد هدف د هغو ښځو، ماشومانو او بو ډاګانو آزادي وه چې ویل به یې: اې ربه! مونږ لدې ظالمانو نه خلاص کړې، مونږ لدې کلي نه چې اوسیدونکي یې ظالمان دي وباسې، ربه! زمونږ چاره

وکړي، زمونږ سره مرسته وکړي، او مونږ ته ولي او سرپرست پیدا کړي.
د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د جګړو هدف دا وُ چې ځمکه له فریب، چل، غدر، خیانت، تیري او فساد نه پاکه کړي. ځای یې انصاف، وفا، عدل، او پاکي ونیسي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د جنګ لپاره شریفانه او سپیڅلي قواعد وضع کړل او کله به یې چې کوم صحابي د لښکر قوماندان ټاکه نو د تقوی، عدل او انصاف توصیه به یې ورته کوله، امر به یې ورته کاوه چې له خلکو سره ښه معامله وکړي. سلیمان بن بریده له خپل پلار نه روایت کوي: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به چې څوک د لښکر قوماندان وټاکه نو د تقوی او له مسلمانانو سره د نیکۍ امر به یې ورته کاوه او فرمایل به یې: (**اغزوا بسم اللّــه، في سبيل اللّه، قاتلوا من كفر باللّه، اغزوا، فلا تغلوا، ولاتغدروا، ولا تمثلوا، ولا تقتلوا وليداً...**) **الحديث**.[د الله په لار کې د الله په نامه جنګیږئ، له کافرانو سره جګړه وکړئ، جنګ وکړئ خو خیانت، غدر، فریب او چل مه کوئ، څوک مه مثله کوئ (اندامونه یې مه پرې کوئ) ماشومان مه وژنئ....] همدا راز د نرمۍ امر به یې ورته کاوه فرمایل به یې: (**يسروا ولا تعسروا، وسكنوا ولا تنفروا**). آساني کوئ، سختي پریږدئ، خلک خپل کړئ او له ځان نه یې مه بیزاروئ.[1]

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به د شپې له خوا پر دښمن برید نه کاوه، په اور د سوځیدو اجازه یې نه ورکوله د ماشومانو، ښځو او زړو له وژلو، او چور چپاول نه یې په کلکه سره نهي کوله، فرمایل به یې: (**إن النُّهْبَى ليست بأحــل مــن الميتة**).غلا او لوټ شوی مال د مرداري غوښې په شان مردار دی. د فصلونو له تباه کولو، ونو، بوټو له قطع کولو نه یې منع فرمایلې. او له خاصو ضروري شرایطو پرته یې کله هم د ونو د پرې کولو اجازه نده ورکړې. دمکې د فتحې په وخت کې یې فرمایلي: (**لا تجهزن على جريح، ولا تتبعن مدبراً، ولا تقتلن أســيراً**). زخمي مه وژنئ، او څوک چې درنه تښتي هغه پسې مه ورځئ، او اسیر مه وژنئ. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) فرمان صادر کړی وُ چې سفیر او قاصد به نه وژل کیږي، د ذمي (هغه مشرک چې له مسلمانانو سره عهد او تړون ولري) مرګ ندی روا.

---

[1]. صحيح مسلم ۲/ ۸۲-۸۳ .

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) فرمايي:
**(من قتل معاهداً لم يُرِحْ رائحة الجنة، وإن ريحها لتوجد من مسيرة أربعين عاماً)**. چا چې ذمي وواژه د جنت بوی به و نه مومي، پداسې حال کې چې د جنت بوی د څلويښتو کلو سفر په مسافه ليرې محسوسيږي.

دا او ديته نورې هغه اساسي لارښوونې دي چې د جاهليت د زمانې جنګ يې په مقدس جهاد بدل کړ.[1]

---

[1]. د تفصيلاتو لپاره : زاد المعاد ۲/ ۶۳ تر ۶۸ و الجهاد في الاسلام للاستاذ ابي الاعلى المودودي ص ۲۱۶ تر ۲۶۲ .

# خلک ډلې ډلې اسلام راوړي

لکه مخکې مو چې وویل د مکې فتحه هغه لویه سوبه وه چې پواسطه یې د بت پرستۍ ستنه له بیخه ووته. عربانو حق او باطل وپیژندل، شک او شبهې له زړونو نه ووتلې، ټولو د اسلام خوا ته رجوع وکړه، او ډلې ډلې خلک اسلام ته راتلل.
عمرو بن سلمه وایي: مونږ له یوې داسې چینې سره اوسیدلو چې د خلکو لار وه را باندې پدې وخت کې ډیر کاروانونه زمونږ له خوا سره تیریدل، پوښتنه به مو کوله په خلکو څه شوي؟ او دا محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) څوک او څه کاره دی؟ په ځواب کې به یې را ته ویل: محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وایي چې: هغه د الله (جل جلاله) رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دی او وحي ورته راځي او الله داسې او هسې وحي ورته کړیده، ما به دا خبره داسې په ذهن کې ساتله لکه په زړه مې چې لیکل شوې وي.
عربان د مکې تر فتحې پورې په انتظار کې وو ویل به یې پریږدئ محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او قوم یې چې سره معلومه یې کړي، هر وخت که محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) برلاسی شو، نو دا به ثابته شي چې هغه په حق دی، او ریښتونی رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دی.
کله چې مکې فتحه شوه نو هرې قبیلې به هڅه کوله له نورو نه مخکې په اسلام مشرفه شي. عمرو زیاتوي زما پلار هم له نورو نه مخکې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته حاضر او په اسلام مشرف شو، کله چې بیرته راغی مونږ ته یې وویل: زه د هغه ریښتوني پیغمبر (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له لوري تاسې ته راغلی یم چې فرمایي: دا لمونځ پدې وخت او دا پدې وخت کې ادا کړئ، کله چې د لمانځه وخت شي، نو یو کس باید آذان وکړي، او بیادې هغه څوک امامت وکړي چې ډیر قرآن کریم یې حفظ وي[1]. د حدیث تر پایه.
لدې حدیث نه دا څرګندیږي چې د مکې فتحې د اسلام او مسلمانانو په قوت او د

---

[1]. صحیح البخاري۲/۲۱۵_۲۱۶.

شرک په له مینځه وړلو کې زیات اثر درلود. لدې فتحې نه وروسته عربان اسلام ته تسلیم شول. تاریخ شاهد دی چې په نهم او لسم هجري کال کې مختلفې قبیلې ډلې ډلې مدینې منورې ته راغلې او په اسلام مشرفې شویدي. د خدای بندګانو ډلې ډلې اسلام راوړی، او پدې مرحله کې د مسلمانانو شمیره دومره زیاتیږي چې د مکې په فتحه کې لس زره کسیز لښکر د تبوک په غزا کې په دیرش زره کسیز لښکر بدلیږي. په ډیره لنډه موده کې د لښکر شمیره دومره زیاتیږي، لدې نه یو کال وروسته د حجه الوداع په دوران کې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره یو لک یا یو لک او څلوېښت زره تنه برخه اخلي، او ټول د الله له رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره یو ځای تکبیر، تهلیل او تلبیه وایي.

## پلاوي او استازي

هغه پلاوي چې د قومونو په نمایندګۍ د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته راغلي، سیرت لیکونکو یې شمیره اویا (۷۰) ښودلې ده، خو دلته د ټولو په هکله خبرې نه شو کولی. او څرنګه چې په مفصله کیسه کې یې ډیره ګنه نشته، نو په اختصار سره له هغو پلاویو نه یادونه کوو چې زیات تاریخي ارزښت لري، خو دا باید په یاد ولرو چې که څه هم د اکثرو قبیلو پلاوي د مکې له فتحې نه وروسته راغلي، خو د مکې له فتحې نه مخکې هم د ځینو قبایلو یو شمیر پلاوي د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راغلي دي.

**۱- عبدالقیس پلاوی:** د دې قبیلې دوه هیئتونه استولي وو، چې لومړی یې په پنځم هجري کال یا له هغه نه هم مخکې ؤ.

ددې قوم یو کس چې منقذ بن حیان نومیده هر وخت به د تجارت لپاره مدینې ته راته، د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له هجرت نه وروسته هم مدینې ته راغی د اسلام په هکله یې معلومات تر لاسه کړل او مسلمان شو. بیایې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لیک او پیغام خپل قوم ته یووړ هغوی هم ټول په اسلام مشرف شول. وروسته یې د حرام په میاشت کې یو ۱۳ یا ۱۴ کسیز پلاوی مدینې ته ولیږه، دوی د همدې سفر په دوران کې د ایمان او هغو لوښو په هکله پوښتنه وکړه کوم چې شراب به یې پکې ساتل. ددې پلاوي مشر اشج عصري ؤ چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یې په هکله فرمایلي: (**إن فيك خصلتين يحبهما**

اللّه: **الحلم والأناة**).په تا کې دوه داسې صفتونه شته چې د الله او رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خوښ دي دا صفتونه يو حلم دې او بل تاني (دقت).
ددې قبيلې دوهم هيئت له فتحې نه وروسته په هغه کال کې مدينې ته راغی چې د عام الوفود په نامه يادېږي. پدې پلاوي کې څلويښت تنه راغلي وو، له دوی سره جارود بن علاء عبدي هم ؤ، نوموړی لدينه مخکې مسيحي ؤ چې بيا په اسلام مشرف شو.[1]

**۲- د دَوس قبيلې پلاوی:** پداسې وخت کې چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په خيبر کې تشريف درلود، ددې قبيلې پلاوی راغی، مخکې پانځو کې مو وويل چې طفيل بن عمرو الدوسي له هجرت نه مخکې مسلمان شو، مکې ته راغلی ؤ او هملته يې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په لاس ايمان راوړ، بيا خپلی قبيلې ته ستون شو، هغوی ته يې د اسلام بلنه ورکړه، خو قوم يې مثبت ځواب نه ورکاوه، طفيل ورنه ناهيلی شو بيرته د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضورته راغی، عرض يې وکړ: يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! دوس قبيلې ته ښيرې وکړه. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**اللهم اهد دوساً**). اې ربه! ته دوس قبيلې ته هدايت وکړې. وروسته يې اسلام راوړ په اووم هجري کال کې چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په خيبر کې تشريف درلود طفيل د خپل قوم له ۷۰ يا ۸۰ کورنيو سره يو ځای مدينې ته راغی او ټول په اسلام مشرف شوي وو.

**۳- د فروه بن عمرو جذامي استازی:** فروه د روميانو تر حکم لاندې يو عربي قوماندان ؤ له روم سره د نژدې پرتو عربي قبايلو قومانده يې په غاړه درلوده. مرکز يې په معان نومې سيمه کې ؤ چې اوس د اردن په جنوب کې پرته ده. فروه چې په اتم هجري کال کې د موته غزا په ترڅ کې د مسلمانانو شجاعت، مقاومت، صبر او تدبير وليد په اسلام مشرف شو او يو نماينده يې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته واستاوه، د خپل اسلام خبر يې ورکړ او يوه سپينه کچره يا قاطره يې هم ورته د تحفې په شکل وليږله.

---

[1]. شرح مسلم نووي ۱/ ۳۳ .فتح الباري ۸/۸۵_۸۶.

رومیان چې د فروه په اسلام خبر شول بندې یې کړ او ورته ویې ویل یا به اسلام پرېږدې او یا به دې سر پرې کوو، هغه په اسلام قایم پاتې شو، همغه وه چې رومیانو په فلسطین کې له عفراء نومې چینې سره په دار وځړاوه او سر یې پرې کړ.[1]

**۴- د صُدَاء پلاوی:** دا پلاوی هغه وخت راغی چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په اتم هجري کال کې له جعرانه څخه راستون شو. کیسه داسې وه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یو څلور سوه کسیز جنګي ګروپ ته وظیفه ورکړه چې لاړ شي او د یمن هغه سیمه تر پښو لاندې کړي چیرته چې د صداء قبیله میشته وه. کله چې دغه ګروپ غازیان د قناه درې په پاسنۍ برخه کې ځای په ځای شول، زیاد بن حارث صدايي خبر شو چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سپایان د دوی سیمې ته راغلي، هماغه وه چې سیخ د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته ورغی عرض یې وکړ یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! ((زه د خپل قوم د نماینده په صفت درته راغلی یم. هیله ده خپل لښکر ته د بیرته ستنیدو امر وکړې، زه د خپل قوم ضامن یم، ضمانت یې کوم)). رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپل سپایان له قناه درې نه راوغوښتل، زیاد هم لاړ خپل قوم یې تشویق کړ چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته ورشي، په نتیجه کې **۱۵** کسه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته راغلل په اسلام مشرف شول. بیا بیرته ستانه شول خپل قوم یې اسلام ته راوباله، او پدې توګه ددوی په منځ کې اسلام خور شو، د جحه الوداع په وخت کې له همدې قبیلې نه سل کسان د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته راغلل.

**۵- کعب بن زهیر ابي سلمی** د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په حضور کې: کعب د شاعرانو له کورنۍ او ډیر مشهور او معروف شاعر وُ. ده به د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هجوه کوله، په آتم هجري کال کې چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له طائف نه ستون شو د کعب ورور بجیر بن زهیر خپل ورور کعب ته لیک ولیکه چې پکې لیکلي یې و: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د قریشو یو شمیر هغه کسان ووژل کوم چې دده هجوه

[1]. زاد المعاد ۳/ ۴۵، تفهیم القران ۲/ ۱۶۹ .

يې کړې وه او زيان يې ورسولی و او نور يې له مکې نه تښتيدلي دي، که خپل ژوند درته ګران وي نو د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته ورشه، ځکه که څوک توبه وباسي او خدمت ته يې حاضر شي هغه نه وژني، که دا نه کوې نو د خپل ژوند څه چاره دې کوه.

کعب هم خپل ورور ته ځواب وليکه، د دواړو تر منځ خطونه تبادله شول، په پای کې په کعب باندې ځمکه تنګه شوه، تيکان يې ورک شو، وويريد او مجبور شو مدينې ته لاړ شي. هلته د جهينه قبيلې د يوه تن کره ورغی د سهار لمونځ يې له هغه سره ادا کړ بيا هغه سړي اشاره ورته وکړه، نو د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته ورپاڅيد خپل لاسونه يې د هغه په مبارکو لاسونو کې کيښودل. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) لا نه و پيژندلی چې دا کعب دی، کعب وويل : يا رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)! کعب پناه درته راوړي، اسلام يې راوړی، ستا حضور ته راتلل غواړي امان درنه غواړي، که زه يې درته راولم، خپل حضور ته يې منې، توبه يې قبلوې؟! رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: هو. کعب وويل: زه پخپله کعب يم. يو انصاري پورته شو اجازه يې وغوښته چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) امر ورته وکړي چې د کعب سر پرې کړي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**دعه عنك، فإنه قد جاء تائباً نازعاً عما كان عليه**).پريږده هغه توبه ايستلی اسلام يې راوړی او تيره لاره يې بدله کړيده.

کعب پدې وخت کې خپله مشهوره قصيده وويله چې پيل يې داسې و:

**بانت سعاد فقلبي اليوم متبول — متيم اثرها لم يفد مكبول**

[سعاد را نه ليرې شوې زړه مې ورپسې نا آرام دی، زړه مې ورپسې کشال دی، د هغې د عشق په زنجير تړل شوې دی خو هغې يې هيڅ بدل او عوض ندی ورکړی.]

په همدې قصيده کې يې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مدح کړې او د خپلې پخوانۍ خطا بښنه يې غوښتې، وايي:

**نبئت ان رسول الله اوعدني — و العفو عند رسول الله مامول**

**مهلا هداك الذي اعطاك نافلةال — قران فيها مواعظ وتفصيل**

**لا تاخذني باقوال الوشاة و لم — اذنب ولو كثرت في الاقاويل**

لقـــد اقـــوم مقاما لو يقـــوم به ‌ ‌ ‌ ‌ ارى و اسمع ما لو يسمع الفيـــل
لظل يرعد الا ان يكـــون له ‌ ‌ ‌ ‌ من الـــرســـول باذن الله تنويل
حتى وضعـــت يميني ما انازعه ‌ ‌ ‌ ‌ في كـــف ذي نقمات قيله القيل
فلهو اخوف عندي اذا اكلمه ‌ ‌ ‌ ‌ و قيل انـــك منسوب و مسئول
من ضيغم بضراء الارض مخدره ‌ ‌ ‌ ‌ في بطـــن عثـــر غيل دونه غيل
ا ن الرســـول لنور يستضاء به ‌ ‌ ‌ ‌ مهـــند من سيوف الله مسلول

[خبر شوم چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) راته ګواښ کړیدی، خو عفوه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مامول ده، احتیاط، هغه خدای دې هدایت درته وکړي، چې قرآنکریم یې درته هدیه کړیدی، چې پکې نصیحتونه او د مسایلو تفصیلات دي، ما د چغلګرو په خبرو مه نیسه، زه بې ګناه یم که څه هم په هکله مې خبرې ډیرې شوې، زه پداسې ځای کې ولاړ یم داسې څه اورم او وینم که هلته فیل ولاړ وای او دا یې اوریدلي وای نو لړزیدلی به وای، او تر هغې پورې به نه ؤ آرام شوی تر څو چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د الله په امر ورته عفوه او مهرباني وکړي تر دې پورې چې لاس مې بې له کوم مخالفته د هغه چا په مبارکو لاسونو کیښودل، چې د انتقام پوره توان لري او خبرې یې پوره مردانه او په ځای دي، په هغه شیبو کې چې زه ورسره خبرې کوم، هغه وخت چې راته ویل کیږي دغه او هغه خبره دې را رسیدلې او پدې هکله پوښتنه درنه کیږي، په همدې وخت کې هغه د عثر نومې سیمې له زمرې نه ډیر ویرونکی راته ښکاري، پدې سیمه کې یوې خوا بلې خوا ته ګڼې ونې دي. او زیات ځنګلونه لري بیشکه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) داسې نُور دی چې نور ورنه ګټه اخلي، نور ورنه رڼا اخلي، او هغه د الله په تورو کې د هغه هندي تورې په شان دی چې د دښمن د مقابلې لپاره له تیکي نه ایستل شوې وي.]

وروسته یې د قریشو مهاجرینو صفت او ستاینه وکړه، ځکه چې دده د راتګ په وخت کې له دوی نه یوه هم دده په هکله نا مناسبه خبره ونکړه، د انصارو مدحه یې ونکړه بلکه طنز یې پرې وکړ ځکه له دوی نه یوه تن دده د مرګ اجازه غوښتې وه، ویلي یې دي:

يمشون مشي الجمال الزهر يعصمهم ‌ ‌ ‌ ‌ ضرب اذا عرد السود التنابيل

[قریش لکه د ښکلیو سپینو اوښانو په شان روان وي تورې وهونکي یې ساتنه کوي

کله چې هغوی را مخکې شي نو تور او کمزوري خلک لاره پرېږدي او تښتي.]
کعب له اسلام راوړلو نه وروسته، هغه وخت چې ایمان یې ښه په زړه کې ځای ونیو د انصارو صفت هم وکړ او د دوی په هکله یې تېره غلطي جبران کړه، هغه په یوه قصیده کې وایي:

من سره كرم الحياة فلا يزل في مقنب من صالحي الانصار
ورثوا المكارم كابرا عن كابر ان الخيــار هم بنو الاخيار

[څوک چې شرافتمندانه او محترم ژوند غواړي هغه به د انصارو په یوه ځانګه کې اوسیږي انصار پشت په پشت بزرګان او قدرمن دي، دوی غوره دي د غوره بندګانو زامن دي.]

**۶- د عذره قبیلې نمایندګان:** ددې قبیلې دوولس کسیز پلاوی د حمزه بن نعمان په ګډون د نهم هجري کال د صفر په میاشت کې حاضر شو. کله چې پوښتنه ترې وشوه تاسې د کومې قبیلې یاستئ؟ ویاند یې وویل: مونږ له بنو عذره قبیلې څخه یو، مونږ د قصي مادري ورونه یو، مونږ هغه څوک یوو چې د قصي ملاتړ مو کړی، خزاعه او بنو بکر مو له مکې نه ایستلي، مونږ د صله رحمۍ او خپلوۍ خاوندان یوو. نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تود هرکلی ورته ووایه، او د شام د فتحې زیری یې ورکړ، او له کاهنو (کوډګرو) ښځو نه له سوال کولو او د جاهلیت د زمانې په شان قربانۍ (ذبح) کولو نه یې منع کړل. د پلاوي غړي ټول په اسلام مشرف شول، څو ورځې یې په مدینه کې تیرې کړې، بیا خپلې مېنې ته ستانه شول.

**۷- د بلي پلاوی:** دغه هیات د نهم هجري کال په ربیع الاول میاشت کې مدینې ته راغی اسلام یې قبول کړ، درې شپې یې په مدینه کې تیرې کړې. د پلاوي مشر ابو الضبیب سوال وکړ چې آیا میلمه پالنه ثواب لري که نه؟ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: (**نعم، وكل معروف صنعته إلى غني أو فقــير فهــو صدقة**). هره نیکي له غني سره وي که له فقیر سره صدقه ده. نوموړي د میلمستیا د مودې په هکله پوښتنه وکړه؟ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (**ثلاثة أيام**). میلمستیا درې ورځې وي. ابو الضبیب سوال وکړ: ورک شوی پسه د چا

دی؟ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**هي لك أو لأخيك أو للذنب**). هغه يا ستا دی، يا ستا د ورور او يا د ليوه. د ورک شوي اوښ په هکله يې هم پوښتنه وکړه. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ځواب ورکړ: (**مالك وله؟ دعه حتى يجده صـــاحبه**). ته ورک شوې اوښ څه کوې، خوشې يې کړه تر څو مالک يې پيدا شي.

**۸- د ثقيف نمايندګان:** دا پلاوی د نهم هجري کال په رمضان مياشت کې له تبوک غزا نه وروسته مدينې ته راغی. ددې پلاوي د اسلام کيسه داسې ده: د ثقيف سردار عروه بن مسعود ثقفي د آتم هجري کال په ذي القعده کې له طائف غزا نه وروسته او مدينې ته له رسيدو نه مخکې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راغلی ؤ اسلام يې راوړ، بيرته خپل قوم ته ستون شو او هغوی يې هم اسلام ته راوبلل. دده تمه دا وه چې قوم به يې ايمان راوړي، ځکه د خپل قوم په منځ کې يې زيات محبوبيت درلود يو منل شوی سردار ؤ، خلکو ته له خپلو ښځو او اولادونو نه هم زيات ګران ؤ، نو ځکه يې دا ګمان و چې قوم به يې بلنه او خبره مني، خو هغوی دا ځل دده د اسلامي بلنې په ځواب کې نه يوازې منفي ځواب ورکړ بلکه د غشو باران يې پرې جوړ کړ تر څو د اسلام په ګناه شهيد شو.
لدينه وروسته ثقيف قبيله څو مياشتې همداسې سر ګردانه وه، بالاخره يې مشورې سره وکړې او پوه شول چې د مسلمانانو مقابله نه شي کولی، تصميم يې ونيو يو کس د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته وليږي. لومړی يې عبدياليل بن عمرو غوره کړ تر څو د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته ورشي، خو هغه وويريد او ويې ويل هسې نه له ده سره هم لکه د عروه په شان معامله وشي همدا وه چې د خپل قوم دا غوښتنه يې و نه منله او ورته ويې ويل: زه دا کار هغه وخت کولی شم چې څو نور کسان هم راسره ملګري کړئ! قوم دوه کسان له ثقيف او دری تنه له بني مالک نه ورسره ملګري کړل، پدې ترتيب سره شپږ کسان چې عثمان بن ابي العاص ثقفي هم ورسره ؤ د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته لاړل.
دوی چې مدينې ته ورسيدل، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) امر وکړ چې په جومات کې د ننه ورته يو ځای تيار شي تر څو هملته د قرآنکريم تلاوت واوري او مسلمانان د لمانځه په حالت کې وګوري.

د پلاوي غړي څه موده همدلته پاتې شول، وخت نا وخت به د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) زیارت ته راتلل، هغه به اسلام ته رابلل. په پای کې د هیئت مشر له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه د امن او سولې د داسې تړون سوال او غوښتنه وکړه چې پکې دوې ته د زنا، شراب څښلو، سود خوړلو، او لمونځ نه کولو اجازه وي، لوی بت (لات) یې مات نشي او نور بتان به هم دوی پخپل لاس نه ماتوي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د دوی دا یوه غوښتنه هم قبوله نکړه. هغوی بیا مشورې سره وکړې، بالاخره دې نتیجې ته ورسیدل چې له اسلام او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له پیروی او اطاعت نه پرته بله لاره او چاره نلري. همدا وه چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راغلل او مسلمانان شول، خو یوه غوښتنه یې وکړه چې لات بت دې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مات کړي ثقیف ته دې دا کار نه سپاري، دا غوښتنه یې ومنل شوه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لیک ورته ولیکه، عثمان بن ابي العاص یې امیر ورته وټاکه ځکه هغه له نورو نه زیات د اسلام او قرآنکریم له زده کړې سره مینه لرله. د وفد غړي به هر سهار د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راتلل او عثمان به یې له خپل سامان سره پریښوده، خو کله به چې دوی د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له حضور نه بیرته راتلل د غرمې له مخې به ویده کیدل، عثمان به د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راته او ورته ویل به یې د قرآنکریم تلاوت راته واوروه! د دین د احکامو په هکله به یې هم سوالونه کول او که به یې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ونه موند نو بیا به د همدې غرض لپاره د ابوبکر (رضي الله عنه) خدمت ته ورته. دا همغه برکتي او مؤمن شخص ؤ چې د ارتداد په زمانه کې د خپل قوم لپاره لوی رحمت ثابت شو، ځکه هغه وخت چې دې قوم اراده وکړه له اسلام نه واوړي ده ورته وویل: اې د ثقیف خلکو! تاسې وروستی قوم یاستئ چې اسلام مو راوړ، اوس په کفر کې له نورو نه مه مخکې کیږئ! قوم یې خبره ومنله او په اسلام ثابت پاتې شول.

پلاوی له مدینې نه ستون شو، کله چې خپل قوم ته ورسیدل حقیقت یې ورنه پټ کړ، ځو ورځې یې د خپل اسلام خبره ورته ونه کړه، خو دا مشوره یې ورکړه چې جنګ ته زړه ښه نکړي ځانونه یې غمجن او خفه ښکارول او دا یې ورته وویل چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له دوی نه د اسلام راوړلو غوښتنه کړیده، او

ورته ویلي یې دي چې زنا، شراب، سود او نور ناروا کارونه به پرېږدي، که نه نو جنګ به ورسره کوي.
ثقیفیان چې ډېر کبرجن خلک وو مغرور شول، دوې درې ورځې یې د جنګ اراده درلوده، خو وروسته یې په زړونو کې ویره پیدا شوه او د پلاوي غړو ته یې وویل: لاړ شئ او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د امر مطابق عمل وکړئ غوښتنې یې ومنئ. همدلته وه چې هغوی حقیقت ورته بیان کړ او هغه مطالب یې ورته وویل چې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره یې منلي وو. پدې ترتیب سره ثقیف قبیله هم په اسلام مشرفه شوه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خالد (رضي الله عنه) ته وظیفه ورکړه چې د یوه ګروپ په مشرۍ لاړ شي او لات دړې وړې کړي. مغیره بن شعبه ګرز یا یو غټ تبر واخیست او خپلو ملګرو ته یې وویل: تاسې به د ثقیف په باره کې خندوم، هماغه وه چې یو ځل یې تبر پورته کړ پر لات یې وار وکړ بیا یې ځان وغورځاوه او منډه یې کړه، د طائف خلکو پداسې حال کې چې لړزیدل وویل: خدای د مغیره ورک کړي، دا دی د لات منجورې وواژه.
مغیره راسم شو او وې‌ې ویل: خوار شئ، دا بت خو له ختو او تیږو نه جوړ شوی، بل څه ندی، وریسې یې په دروازه ګوزار وکړ ماته یې کړه، بیا یې په لوړ دیوال ور پورته شو، خلکو هم ورسره شروع وکړه دیوال یې ونړاوه، بت یې مات کړ، تهداب یې را لوڅ کړ هلته چې څه کالي، زیورات وو ټول یې را وایستل د ثقیف قبیلې خلک حیران دریان ولاړ وو.
خالد (رضي الله عنه) دا کالي او زیورات ټول د رسول (صلی الله علیه وسلم) حضور ته راوړل، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په همغه ورځ وویشل. د الله تعالی د نعمت او نصرت شکر یې وواېه، حمد او ثنا یې وویله.[1]

**۹- د یمن د پاچاهانو لیک:** رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) چې له تبوک نه راستون شو د حِمیر د پاچاهانو لیک ورته راغی. دغه مشران چې لیک یې راستولی و عبارت وو له: الحارث بن عبدکُلال، نعیم بن عبدکلال، النعمان، قَیل ذي رعین، هَمدان، او مُعافر وو. دوی مالک بن مره الرهاوي خپل نماینده وټاکه او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته یې ولیږه چې خبر ورکړي دوی په اسلام مشرف شوي او شرک یې پرې ایښی دی.

---
[1]. زاد المعاد ۲۶/۲ تر ۲۸ ابن هشام ۲/ ۵۳۷ تر۵۴۲.

**رسول الله** (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) **دوی ته اسلامي لارښوونې وکړې، د مومنانو مسوولیتونه او حقوق یې ورته په ګوته کړل.** او په همدې لیک کې یې دا ورته ځرګنده کېږه که معاهده کوونکي ټاکلی جزیه ورکېږي، نو د دوی لپاره د الله تعالی او رسول الله (صلی الله علیه وسلم) عهد او ژمنه ده. **یو ګروپ اصحاب یې د معاذ بن جبل** (رضي الله عنهم) **په مشرۍ د هغوی د رهنمایۍ او لارښوونې لپاره ولیږل.** معاذ (رضي الله عنه) یې د الکورة العلیا چې د عدن له خوا د السکون او سکاسك تر منځ واقع ده، مسئول وټاکه چې د قاضي، د جنګ د قوماندان، جزیې او صدقاتود راټولولو او امامت دنده یې لرله. او ابو موسی الاشعري (رضي الله عنه) یې الکورة السفلی ته واستاوه چیرته چې زُبید، مارب، زمع او الساحل قبیلې میشته وې. او دواړو ته یې داسې امر وکړ: **(یسرا ولا تعسرا، وبشرا ولا تنفرا، وتطاوعا ولا تختلفا).** [آساني کوئ او له سختۍ نه ډډه کوئ، زیری ورکوئ، تشویقوئ یې او زړونه یې مه بدوئ، یو له بل سره مرسته کوئ او اختلاف مه کوئ.]

معاذ (رضي الله عنه) تر هغې په یمن کې پاتې و، تر څو رسول (صلی الله علیه وسلم) رحلت وکړ. او ابو موسی الاشعري (رضي الله عنه) په حجة الوداع کې د رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) خدمت ته ورسید.

**۱۰- د همدان پلاوی:** دا پلاوی په نهم هجري کال کې له تبوک غزا نه وروسته را ورسید. **رسول الله** (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) **لیک ورته ولیکه او څه شیان یې چې دوی غوښتي وو ورکړل. مالک بن نمط یې د خپل قوم د مسلمانانو امیر وټاکه، او د نورو لپاره یې خالد بن ولید** (رضي الله عنه) **ورولیږه، چې اسلام ته یې را وبولي. هغه هلته شپږ میاشتې پاتې شو، هغوی یې اسلام ته رابلل، خو دوی اسلام ونه مانه، بیا رسول الله** (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) **د خالد په ځای علي** (رضي الله عنه) **مقرر کړ، خالد** (رضي الله عنه) **را ستون شو. علي** (رضي الله عنه) **د همدان خلکو ته ورغی د رسول الله** (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) **لیک یې ورته ولوست، اسلام ته یې را دعوت کړل، په همدې سره هغوی ټول په اسلام مشرف شول.**

**علی** (رضي الله عنه) **د خپلې کامیابۍ او همدان قبیلې د اسلام زیری رسول الله** (صلی

الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ولیږه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته چي دا لیک ورسید له خوشالۍ نه په سجده پریوت او کله یې چې مبارک سر له سجدې نه پورته کړ ویې فرمایل: (**السلام علی همدان، السلام علی همدان**).سلام پر همدان، همدان دې سلامت وي.

**۱۱- د بني فزاره نماینده ګان:** دغه پلاوی په نهم هجري کال کې له تبوک نه له راستنیدو وروسته د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته حاضر شو، شمیره یې څه د پاسه لس تنه وو چې راغلل په اسلام یې اعتراف وکړ او ورسره جوخت یې د خپلې بدې ورځې، قحطۍ او وچکالۍ نه شکایتونه وکړل. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) منبر ته پورته شو لاسونه یې پورته کړل، د باران دعا یې وکړه ویې فرمایل: (**اللهم اسق بلادك وبهائمك، وانشر رحمتك، وأحْيِ بلدك الميت، اللهم اسقنا غَيْثاً مُغيثاً، مريئًا مَرِيعاً، طَبَقاً واسعاً، عاجلاً غير آجل، نافعاً غير ضار، اللّهم سقيا رحمة، لا سقيا عذاب، ولاهَدْم ولا غَرَق ولا مَحْق، اللّهم اسقنا الغيث، وانصرنا على الأعداء**). یا لویه خدایه! خپل ښارونه او چارپایان سیراب کړه! رحمتونه دې نازل کړه، دا مړ (وچ) ملک بیرته ژوندی کړه، خدایه! داسې باران راباندې وکړه چې درد مو دوا کړي، آرامي راته راوړي، ګټه را ورسوي، ډیر پراخ وي، زر وي وروسته نه، ګټور وي، تاوان ونلري! لویه خدایه! د رحمت باران غواړو، نه د عذاب باران او نه داسې باران چې نړوونکی، ډوبونکی او له مینځه وړونکی وي! لویه خدایه! پر مونږ باران وکړې، او پر دښمن برلاسي او نصرت را په برخه کړې! [1]

**۱۲- د نجران پلاوی:** نجران د مکې جنوب د یمن لور ته اوه منزله لیرې پروت لوی ښار دی. نجران دري اویا (۷۳) کلي درلودل، سپور په تیز رفتار سره په یوه ورځ کې ورسیدلی شوای.[2]

دلته یو لک مسیحي جنګیالان هم وو. د نجران هیئت په نهم هجري کال کې مدینې ته راغی. پدې پلاوي کې ۶۰ کسان وو، چې ۲۴ یې سرداران وو، دری یې هغه وو چې د نجران مشرتابه یې په غاړه وه:

---

[1]. زاد المعاد ۳/ ۴۸

[2]. فتح الباري ۸/ ۹۴

الف: عاقب چې نوم يې عبدالمسيح وٚ، نوموړي د حکومت مشري په غاړه درلوده.
ب : سيد چې نوم يې ايهم يا شرحبيل وٚ، ده د سياسي او فرهنګي چارو مسئووليت درلود.
ج: اسقف چې نوم يې ابو حارثه بن علقمه وٚ او د ديني چارو رياست يا ديني مشرتابه ورسره وه.

دغه نمايندګان چې مديني ته راغلل له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره يې وکتل، يو له بل نه يې څه پوښتنې وکړې. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) اسلام ته راوبلل، قرآنکريم يې ورته تلاوت کړ، دوی د اسلام له منلو نه معذرت وغوښت، د عيسی (عليه السلام) په هکله يې دده نظر وغوښت.

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پدې ورځ ځواب ورنکړ تر څو دا مبارک آياتونه نازل شول: ((إِنَّ مَثَلَ عِيسَى عِنْدَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ خَلَقَهُ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ (٥٩) الْحَقُّ مِنْ رَبِّكَ فَلا تَكُنْ مِنَ الْمُمْتَرِينَ (٦٠) فَمَنْ حَاجَّكَ فِيهِ مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ وَنِسَاءَنَا وَنِسَاءَكُمْ وَأَنْفُسَنَا وَأَنْفُسَكُمْ ثُمَّ نَبْتَهِلْ فَنَجْعَلْ لَعْنَةَ اللَّهِ عَلَى الْكَاذِبِينَ)). (آل عمران: ٥٩- ٦١)

[بيشکه صفت د عيسی په نزد د الله د آدم د صفت او مثال په شان دی. الله پيدا کړ آدم له خاورو څخه بيا يې وويل ده ته بشر شه پسې بشر شو. حق هغه دی چې راغلی دی له جانب د رب ستا، نو مه کيږئ له شک کوونکو نه، نو هر څوک چې جګړه او مناقشه کوي له تا سره په باره د عيسی (عليه السلام) کې وروسته له هغه چې حاصل شو تا ته صحيح علم د عيسی په بندګۍ او نبوت کې نو ووايه اې محمده (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) راځئ چې راوبولو زامن زموږ او زامن ستاسې او ښځې زموږ او ښځې ستاسې او ځانونه خپل او ځانونه ستاسې بيا به التجا وکړو په دعا کې نو و به ګرځوو موږ (وبه وايو) لعنت د الله په دروغجنو باندې.]

چې سهار شو، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د همدې آيتونو په رڼا کې د عيسی (عليه السلام) په هکله خپل نظر وړاندې کړ بيا يې هغوی (نمايندګانو) ته يوه ورځ وخت ورکړ چې فکر او غور وکړي. وروسته دې کسانو د عيسی (عليه السلام) په هکله د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) رايه او نظريه ونه منله، اسلام يې هم را نهووړ.

بل سهار رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پداسې حال کې چې حسن او

حسین (رضي الله عنهما) یې پخپل چادر کې پټ کړي، فاطمه (رضي الله عنها) ورپسې شا ته روانه وه، راغی او له دې نصرانیانو نه یې وغوښتل چې راځئ اوس مباهله وکړو! (مباهله دې ته ویل کېږي چې ټول حاضر شي او بیا دعا او التجا وکړي چې الله دې دروغجن هلاک کړي).

هغوی چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) جدیت ولید، سره ګوښه شول خبرې یې سره وکړې، عاقب او سید ورته وویل چې مباهله نه کوو، ځکه که دا کار مو وکړ او هغه رېښتونی رسول وي، نو بیا به نه مونږ خیر وګورو او نه زمونږ راتلونکي نسلونه، ټول به هلاک شو، هیڅ به راته پاتې نه شي ټول به هلاک شو، بالاخره یې دا خبره سره غوټه کړه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به حکم ګرزوي. راغلل او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته یې عرض وکړ د فیصلې واک تا ته درکوو ته چې څه غواړې همغه به درکوو.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) جزیه وربانده وټاکله. جزیه دوه زره جوړې (جامې او کالي) وې چې زر به یې په رجب او زر نورې به یې په صفر میاشت کې ورکوي. دا شرط یې هم وربانده کېښود چې له هرو دوو حلو (جامو) سره به یوه اوقیه (۱۵۲ ګرامه سپین زر) هم ورکوي. ددې جزیې په مقابل کې یې دوی ته پوره دیني آزادي او د الله او رسول ذمه او ضمانت ورکړ او لیک یې ورته ولیکه.

دې نمایندګانو سوال وکړ چې یو امین شخص دوی ته واستوي. هماغه وه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ددې امت امین یعنې ابو عبیده بن جراح (رضي الله عنه) ورولیږه تر څو جزیه ورنه راوړي.

وروسته بیا د اسلام نور په نجران کې هم خور شو. سیرت لیکونکي وایي چې :

عاقب او سید هم نجران ته له رسیدو نه وروسته په اسلام مشرف شول.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دوهم ځل علي (رضي الله عنه) ته وظیفه ورکړه چې له دوی نه صدقې او جزیه راوړي، څرګنده ده چې صدقه له مسلمان څخه اخستل کېږي[1].

## ۱۳- د بني حنیفه قبیلې پلاوی: دا اوولس کسیز پلاوی چې مسیلمه الکذاب بن ثمامه بن کبیر بن حبیب بن الحارث هم ورسره ؤ په نهم هجري کال کې مدینې ته

[1]. فتح الباري ۸/ ۹۴_۹۵. زاد المعاد ۳۹/۳تر ۴۱د نجران د پلاوي د څرنګوالي په اړه مختلف روایات راغلي، تردې چې ځنې محققین وایي چې د نجران پلاوی دوه ځله راغلی و. او مونږ پدې هکله هغه نظر وړاندې کړ چې راجح راته معلوم شو.

راغلی[1].

د پلاوي غړي لومړی د يوه انصاري کره ورغلل، بيا د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته حاضر شول او اسلام يې راوړ. د مسيلمه الکذاب د اسلام په هکله مختلف روايتونه راغلي دي خو که دقت وشي دا څرګنديږي چې نوموړي اسلام نه و منلی، د تکبر، غرور، سرغړونې او قدرت غوښتنې څرګندونه يې کړې وه او د هيئت له نورو غړو سره د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته نه ؤ حاضر شوی. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په لومړي سر کې هڅه وکړه په قولي او فعلي نيکۍ او شفقت سره هغه راجلب کړي، خو کله يې چې وليدل چې نيکي اثر نه پرې کوي نو پخپل فراست سره يې د شر اثرات او نښانې پکې وليدلې.

لدينه مخکې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خوب ليدلی ؤ چې د ځمکې ټولې خزانې دده حضور ته راوړل شي او دوې کړې (د لاس حلقې) ورنه دده په مبارک لاس کې ولويږي. پدې سره رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ډير خفه شي او دا ډيرې ګرانې وربانديې تمامې شي، پدې وخت کې وحي ورته وشي چې پف يې کړه، کله يې چې پف کړې دواړه ورکې او ايسته شي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ددې خوب تعبير داسې وکړ چې دا دواړه (کړې يا بنګړي) به دوه دروغجن وي چې له ده نه وروسته به ظهور کوي.

او کله چې مسيلمه الکذاب دا تکبر او انکار وکړ او ويې ويل: که محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له ده نه وروسته واک ما ته راسپاري نو پيروي به يې وکړم پدې وخت کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پداسې حال کې هلته تشريف يووړ چې د خرما ونې يوه څانګه يې په لاس کې وه، شاعر يا خطيب يې ثابت بن قيس بن شماس هم ورسره و، له مسيلمه الکذاب او ملګرو سره يې ودريد خبرې يې ورته وکړې. په ځواب کې مسيلمه ورته وويل: که دې خوښه وي اوس به اختيار تا ته پريږدو، خو پدې شرط چې له تا نه وروسته واک زمونږ شي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**لو سألتني هذه القطعة ما أعطيتكها، ولن تعدو أمر اللّه فيك، ولئن أدبرتَ ليعقرنك اللّه، واللّه إني لأراك الذي أرِيتُ فيه ما رأيتُ، وهذا ثابت يجيبك عني**). که دغه د خرما څانګه يا پوستکی را نه وغواړې هم در به يې

[1]. فتح الباري ۸۷/۸.

نکړم، ته د خپل ځان په هکله د الله تعالی امر نه ش ې بدلولی، که د شا واړوله، انکار دې وکړ الله تعالی به دې مات کړي، قسم په خدای چې زه تا هغه شخص ګڼم د کوم په هکله چې ما خوب ليدلی، نور به دا ثابت زما په عوض ستا پوښتنې ځوابوي. دا خبره يې وفرمايله او ورنه لاړ.[1]

په پای کې همغه څه وشول چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې وړاند وينه کړې وه. مسيلمه چې بيرته يمامه ته ستون شو، سوچونه يې کول او بالاخره يې دعوه وکړه چې له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره په نبوت کې شريک کړی شويدی. په دروغو يې د نبوت دعوه وکړه، څه سجع ويل يې پيل کړل د خپل قوم لپاره يې د شرابو او زنا جواز ورکړ، لدې شر سره به يې دا شاهدي هم ويله چې محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د الله رسول دی. د بني حنيفه ځينې خلک پرې وغوليدل ددې دروغجن اطاعت يې وکړ، ورسره ملګري شول، خبره يې لويه شوه، تر دې حده چې د يمامه په رحمان مشهور شو.

مسيلمه لږ موده وروسته رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته ليک واستاوه چې پکې ليکلي يې وو: زه له تا سره په نبوت کې شريک کړای شوی يم، نيم واک زمونږ لپاره دی، او پاته نيم د قريشو لپاره. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې په ځواب کې ليک ورته وليکه چې دا آيت يې هم پکې ليکلی و: ((إِنَّ الأَرْضَ لِلَّهِ يُورِثُهَا مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ)) (الاعراف: ١٢٨) [ځمکه د الله تعالی ده، چا ته يې چې زړه وي همغه ته يې ورکوي عاقبت د متقيانو دی.][2]

له ابن مسعود نه روايت دی وايي چې: ابن نواحه او ابن اثال د مسيلمه الکذاب د قاصدانو په توګه د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راغلل، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمايل: (**أتشهدان أني رسول اللّه؟**) آيا پدې شاهدي وايئ او ايمان لرئ چې زه د الله رسول يم؟ دوی وويل: مونږ شاهدي وايو چې مسيلمه د الله رسول دی. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**آمنت باللّه ورسوله، لو كنت قاتلاً رسولاً لقتلتكما**). په الله او

---

[1] صحيح البخاري باب وفد بني حنيفة، و باب قصة الاسود العنسي٢/٦٢٧_٦٢٨. فتح الباري ٨/٨٧ تر٩٣.
[2] زاد المعاد ٣/ ٣١- ٣٢ .

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مې ایمان راوړی، که قاصد او نماینده مې وژلی، نو تاسې به مې حتماً وژلي وای.[۱]

مسیلمه الکذاب د هجرت په لسم کال د نبوت دعوه وکړه او په ۱۲ هجري کال د ربیع الاول په میاشت کې د ابوبکر (رضي الله عنه) د خلافت په وخت کې د یمامه په مشهوره جگړه کې د حمزه (رضي الله عنه) د قاتل وحشي په لاس ووژل شو.
دوهم دروغجن او د نبوت مدعي اسود عنسي وُ، چې په یمن کې را پیدا او بیا د فیروز له لاسه ووژل شو. فیروز د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له وفات نه یوه شپه او ورځ مخکې د اسود سر غوڅ کړ، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته د وحي په واسطه خبر راغی او بیا دغه خبر له یمن نه د ابوبکر (رضي الله عنه) دخلافت په دوران کې راورسید[۲].

**۱۴- د بني عامر بن صعصعه نمایندګان:** پدې ډله کې د خدای دښمن عامر بن طفیل او اربد بن قیس چې د لبید میرنی ورور کیده، خالد بن جعفر، جبار بن اسلم او نور شیطانان شامل وو. عامر هغه وحشي ظالم وُ چې د بئر معونه له اصحابو (رضي الله عنهم) سره یې غدر او خیانت کړی و او ۷۰ کسان یې په شهادت رسولي وو.
کله چې دې هیئت مدینې ته د تګ اراده وکړه لوی شیطان عامر بن طفیل او اربد توطئه جوړه کړه او پدې سره متفق شول چې په چل او فریب سره به رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په قتل رسوي مدینې ته چې ورسیدل، عامر له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره خبرې شروع کړې، اربد د شا له لوري را تاو شو او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) شا ته ودرید توره یې له تیکي را ایستله، لږ یې چې را وایستله نور یې لاس وچ شو او توره یې ونه شوای را ایستلی، او پدې ترتیب سره الله تعالی خپل رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وساته. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دواړو ته ښیرې وکړې، کله چې ستانه شول الله تعالی په اربد او اوښ یې تندر را نازل کړ دواړه یې وسیځل، عامر د یوې سلولي ښځې کره ورغی هلته یې په ستوني کې یوه غده (دانه) را پیدا شوه، او ویل به

[۱]. امام احمد، مشکاه المصابیح ۲/ ۳۴۷.
[۲]. فتح الباري ۹۳/۸.

یې: آیا د اوښ د غدې په شان غده؟! د سلولي ښځې په کور کې مرګ!!
بخاري روایت کوي چې عامر د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته راغی ویې ویل: د درېو شیانو وړاندیز کوم خوښه ستا کوم غوره کوې؟
لومړی دا چې د دښتې خلک به ستا او د کلیو او ښارونو ا وسید ونکي به زما وي، یا دا چې له تا نه وروسته به واک زما وي، او که نه نو د غطفان لښکرې چې زر آسونه او زر آسپې به وي پکې درباندې راولم.
لدینه وروسته هغه د یوې ښځې په کورکې په طاعون مرض اخته شو، او هلته به یې ویل: دا غده خو لکه د اوښ د غدې په شان ده، اوس به د همدې ښځې په کور کې مرم، آس مې راولئ، آس یې راغی پرې سپور شو او د آس په شا یې ساه ورکړه.

**۱۵- د تُجیب پلاوی:** دا وفد چې ۱۳ کسان وو پکې د خپل قوم له صدقو سره یو ځای راغی. د قرآنکریم او احادیثو زده کړه به یې کوله، له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه یې ډیر شیان وغوښتل او ډیرې پوښتنې یې ورنه وکړې.
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هغه ټول ورته ولیکل، ډیر پاتې نه شول، کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د تګ اجازه ورکړه، دوی لاړل او هغه ځوان یې ورته راولیږه چې له خپل سامان سره یې پرې ایښی ؤ.
ځوان راغی عرض یې وکړ: یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! صرف ددې لپاره راغلی یم چې له الله نه راته مغفرت او رحمت وغواړې، دا دعا راته وکړې چې الله د زړه غنا را کړي.
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) همدا دعا ورته وکړه. لدینه وروسته دا ځوان د بې حده زیات قناعت خاوند ؤ.
د ارتداد په وخت کې په اسلام ثابت او قایم پاتې شو، خپل قوم ته یې لارښوونه کوله هغوی هم په اسلام ثابت پاتې شول.
ددې پلاوي غړي په لسم هجري کال د حجه الوداع په وخت کې هم له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره مخامخ او په زیارت یې مشرف شویدي.

**۱۶- د طيئ وفد:** دا پلاوی چې زید الخیل هم پکې ؤ د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خدمت ته راغلل اسلام یې ومانه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د زید په هکله فرمایي: (**ما ذكر لي رجل من العرب بفضل، ثم جاءني**

**إلا رأيته دون ما يقال فيه ، إلا زيد الخيل، فإنه لم يبلغ كل ما فيه).** ما ته چې تر اوسه د عربانو د کوم شخص ښيګڼې يادې شوې بيا چې هغه راته راغلی نو ليدلي مې دي چې په هغه کې بيا دومره ښيګڼې نه وي لکه څومره چې ما اوريدلې وي، يوازې زيد الخيل داسې شخصيت دی چې ښيګڼې يې ډيرې زيــــاتې دي او ټولې ماته نه وې بيان شوې. او له همدې امله يې د زيد الخير نوم ورباندې کيښود.

پدې ترتيب سره په نهم او لسم هجري کال زيات پلاوي او نمايندګان مدينې ته راغلل. تاريخ او سيرت ليکونکو پدې لړ کې د يمن، ازد، د قضاعه له بني سعد نه هذيم، بني عامر بن قيس، بني اسد، بهراء، خولان، محارب، بني حارث بن کعب، غامد، بني منتفق، سلامان، بني عبس، مزينه، مراد، زبيد، کنده، ذي مره، غسان، بني عيش او نخع چې تر ټولو وروستی هيئت ؤ ياد کړيدی. د نخع پلاوی چې دوه سوه کسان وو د ۱۱ هجري کال د محرم په مياشت کې راغلی ؤ. نور زياتره هيئتونه په ۹ او ۱۰ کال کې راغلي وو، ددې هيئتونو مسلسل راتلل پدې دلالت کوي چې اسلامي دعوت په عربي جزيره باندې تسلط موندلی ؤ، د جزيرې ټولو اوسيدونکو مسلمانانو ته د قدر او احترام په سترګه کتل، هغوی پدې واقعيت باوري شوي وو چې د اسلام له اطاعت نه پرته بله لاره په مخکې نلري. مدينه منوره د عربي جزيرې په پايتخت او مرکز بدله شوې وه، خو دا هم نه شو ويلی چې اسلام په حقيقي معنی سره ددې ټولو خلکو په زړونو کې ځای نيولی و. ډير داسې کسان وو چې له خپلو مشرانو نه د پيروۍ په اساس يې اسلام منلی ؤ، زړونه يې د جاهليت، قتل او غارت له ميکروبونو نه بالکل نه وو صفا شوي، په بشپړه توګه د اسلام په قالب کې نه وو جوړ شوي، قرانکريم دې مطلب ته داسې اشاره فرمايي:

**((الأَعْرَابُ أَشَدُّ كُفْراً وَنِفَاقاً وَأَجْدَرُ أَلاَّ يَعْلَمُوا حُدُودَ مَا أَنزَلَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ (۹۷) وَمِنْ الأَعْرَابِ مَنْ يَتَّخِذُ مَا يُنفِقُ مَغْرَماً وَيَتَرَبَّصُ بِكُمْ الدَّوَائِرَ عَلَيْهِمْ دَائِرَةُ السَّوْءِ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ))** (التوبة: ۹۷- ۹۸).

[ترجمه: دغه باندېچيان عرب (کوچيان) په کفر او نفاق کې ډير کلک او د هغوی په هکله ددې خبرې امکانات زيات دي چې د هغه دين له حدودو نه بې خبره پاتې شي چې الله پخپل رسول (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نازل کړيدی پدې باندېچيانوکې داسې کسان شته چې د خدای په لار کې چې څه لګوي نو هغه پر خپل ځان باندې د زور قلنګ ګڼي او ستاسې په باب د زمانې د څرخ انتظار باسي، پداسې

حال کې چې د بدۍ څرخ پخپله پر دوی مسلط دی، الله اوريدونکی او عالم دی.]

وريسې بيا د نورو مدح او توصيف کوي فرمايي: ((**وَمِنْ الأَعْرَابِ مَنْ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَيَتَّخِذُ مَا يُنفِقُ قُرُبَاتٍ عِنْدَ اللَّهِ وَصَلَوَاتِ الرَّسُولِ أَلا إِنَّهَا قُرْبَةٌ لَهُمْ سَيُدْخِلُهُمْ اللَّهُ فِي رَحْمَتِهِ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ**)) (التوبة: ۹۹) [ترجمه: او له همدي بانډه چيانو څخه ځنې داسې دي چې په الله او ورځ د آخرت ايمان لري. او څه چې لګوي هغه الله ته د نژدې کېدو او له رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه د رحمت د دعا ګانو اخيستلو وسيله ګرځوي، هو هغه د هغو لپاره د نژديوالي وسيله ده، الله به هغوی په رحمت کې داخل کړي الله غفور او رحم کوونکی دی.]

خو هغه ښاريان چې په مدينه، مکه، ثقيف، همدا راز زيات شمير چې په يمن او بحرين کې وو د هغوی ايمان قوي و او د همدوی له ډلې نه د مسلمانانو سرداران، مشران او لوی صحابيان (رضي الله عنهم) دي[1].

---

[1]. دا د خضري خبرې دي محاضرات في تاريخ الامم الاسلامية ۱۴۴/۱. د ياد شويو پلاويو د تفصيلاتو لپاره دې کتابونو ته مراجعه وکړه: صحيح البخاري۱/۲،۱۳/۶۲۶تر۶۳۰. ابن هشام۲/۵۰۱تر۶۰۱. زاد المعاد۳/۲۶تر ۶۰. فتح الباري ۸/۸۳ تر ۱۰۳. رحمة للعالمين۱/۱۸۴ تر ۲۱۷.

# د اسلامي دعوت برى

# او

# اغیزې یې

مخکې لدینه چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ژوند د وروستنیو ورځو څیړنې او مطالعې ته یو ګام نور هم ورلنډ شو، غواړو په هغې ویاړمنې، عظیمې او بې ساري کارنامې څه نا څه رڼا واچوو کومه چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په لاس تر سره شوې. هغه یې د ژوند ثمره ده او په همغې سره یې له نورو رسولانو (علیهم السلام) نه امتیاز او برتري موندلې ده. او د همغې عظیمې کارنامې په وجه الله تعالی د دواړو کونینو سردار بللی، او د ړومبنیو او وروستنیو د سیادت تاج یې ور په سر کړی دی.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته د الله تعالی له لوري امر وشو:

((يَا أَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ (١) قُمْ اللَّيْلَ إِلاَّ قَلِيلاً)) (المزمل: ١– ٢) [اې نغښتونکیه د ځان په جامه کې! ودریږه لمانځه ته په شپه کې مګر خو په لږه شپه کې.]

((يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ (١) قُمْ فَأَنذِرْ)) (المدثر: ١–٢) [ترجمه: اې جامه کې نغښتونکیه! دریږه پورته شه او وویروه.]

د همدې الهي حکم د تعمیل لپاره رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) کلکه ملاوتړله، او له ٢٠ کلونو نه زیاته موده یې د ځمکې په مخ ددې عظیم امانت د ادا کولو په لار کې نه ستړې کیدونکې هلې ځلې وکړې. د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په غاړه د ټول بشریت مسؤولیت پروت وُ، د عقیدې او په بیلابیلو ډګرونو کې د جهاد دروند مسؤولیت يې درلود.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وظیفه درلوده د هغه ویده ضمیرونو په خلاف جهاد وکړي چې د جاهلیت په خرافاتو او باطلو تصوراتو کې ډوب شوي وو، د مادي شهواتو، هوسونو او غوښتنو په ځنځیرونو تړل شوي وو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) چې پدې وتوانید د څو غوره اشخاصو ضمیرونه د جاهلیت

له ډنډ او ځنځيرونو نه آزاد کړي، په خپل صف کې يې ودروي، او د اصحابو مقام تـه يې ورسوي، نو د بل ډول جهاد ډګر ته داخل شو. دا داسې جهاد ؤ چې يـو پـه بـل پسـې يې مختلفې مرحلې درلودې. دا جهاد د بې شميره او سوګند خوړلو دښمنانو په خلاف جهـاد او مبـارزه وه، هغـه دښمنـان چې پـه پـوره تـوان سـره يـې ددې هڅه کولـه د خيـر، راحت، هدايت او برکت دغه نوې ونه له بيخه وباسي او پرينږدي پـه ځمکـه کې ريښـې وغزوي او سيوري يې هرې خوا ته خواره شي. رسول الله (صلی الله عليـه و الـه و صـحبه و سلم) لا په عربي جزيره کې له جګړې نه بې غمه شوی نه و چې روميـانو يـې پـه خـلاف د جګړې اور بل کړ، او د مقابلې لپاره بې تياري ونيوله.

دا بايد له ياده و نه باسو چې د جهاد او مبارزې پـدې ټولـو مراحلـو کې د ويـده ضـمير په خلاف جګړه روانه وه. له ويده ضمير سره جګړه پـای نلري، دا طـولاني او هميشـنۍ جګړه ده، ځکه د دې جګړې مقابل لوری شيطان دی. شـيطان هيڅکلـه هـم د انسـان لـه اغوا، منحرف کولو څخه لاس نه اخلي، هغه تل هڅه کوي په انساني ضـمير خپـل واک قايم وساتي. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د الهـي دعـوت پـه ميـدان کې د غره په شان ثابت ولاړ ؤ، د جهاد او مقاومت لاره يې نيـولې وه، د ژونـد سـختيو ته يې اوږه ورکړې وه. د مادي امکاناتو د شتون او موجوديت پـه صـورت کې يې هـم د زهد او تقوی لاره خپله کړې وه. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سـلم) پخپلـو اصحابو (رضـي الله عـنهم) او نـورو انسـانانو د رحمت، امـن، برکت، او سـکون سـيوره غـوړولې وه. د رسـول الله (صـلی الله عليـه و الـه و صـحبه و سـلم) لاره د زحمـت، کـړاو، تکليف، صبر او مقاومت لار وه. هغه بـه د شـپې د خپـل رب عبـادت کـاوه د قرآنکـريم تلاوت به يې کاوه، او د خپل رب پـه وړانـدې بـه يـې د عجـز او تسـليمۍ سـر پـه سـجده ايښـود.[1] او د همـدې عظـيم عمـل، صـبر، سـتړيا لـه برکتـه يـې نـور خلـک لـه امـن او سوکالۍ نه برخمن کړي وو.

پدې ترتيب سره رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) لـه شـل کالـه نـه زياتـه مـوده جهـاد او جګـړه وکـړه. هـيڅ ډول خنـډ يـې مخـه ډب نـه شـوای کـړی، پـه پـای کې دعوت بريالی شو. دا يو بې ساري بريـاليتوب ؤ، خلـک ورتـه حيـران شـول. ټولـه عربـي جزيره د محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تـرواک لانـدې راغلـه، د جاهليـت جرړې له بيخه ووتلې، رنځور عقلونه روغ شول د بتانو عبـادت يـې پريښـود. هرې خـوا ته د توحيد نور خور شو په هره سيمه او هره دښته کې د توحيـد او آذان انګـازې پورتـه

[1]. دا د سيد قطب خبرې دي، فی ظلال القران ۲۹ /۱۶۸ .

شوي، د قرآن داعيان او قاريان شمال او جنوب ته لاړل قران به يې لوست او الهي احکام به يې پلي کول او پدې توګه هر چيرته د توحيد مدرسې جوړې شوې.
بيلابيلې او ګډې وډې قبيلې سره يو شوې، انسان د انسان له بـنـدګی نه آزاد شو، ټول د الله بندګان وګرزيدل. طبقاتي نظام ختم شو، هلته نور بادار او غلام، ظالم او مظلوم، حاکم او محکوم نه و، ټول خلک برابر او د يوه الله بندګان وو، ټول سره وروڼه وو، د جاهليت ټولې نښانې له مينځه لاړې. داسې يوه ټولنه جوړه شوه چې پکې عربي په عجمي، عجمي په عربي، تور په سره، سور په تور برتري نه درلوده، د برترئ معيار تقوی او دينداري وه ځکه انسانان ټول د آدم (عليه السلام) اولاده ده او آدم له خاورو نه پيدا شوی .
د اسلامي دعوت له برکته بې ساري عربي او انساني يووالی مينځته راغی، اجتماعي عدالت حاکم شو. بشريت نيکمرغه او سوکاله شو، د تاريخ مسير بدل شو، د ځمکې مخ بدلون وموند، فکر او افکار نوي شول. د اسلامي دعوت له پيل نه مخکې هر چيرته جاهليت حاکم ؤ، ضميرونه ويده وو، آرزوګانې ملوثې شوې وې، معيارونه لويدلي وو، د ظلم او جبر بازار ګرم ؤ. په ځينې ځايونو کې به عياشي او اسراف و، بل ځای به خلک له محروميت، فقر او لوږې نه ځوريدل. د کفر، طاغوت، او ګمراهئ پاچايي وه. که څه هم د آسماني اديانو ځينې نښانې وې، خو هر څه تحريف شوي وو او دينداري ډيره کمزورې او له زړونو نه وتلې وه. کله چې د اسلامي بلنې رول پيل شو، اسلام د ژوند په ډګر کې خپل ځای ونيو، بشريت او بشري دماغ له وهم، خرافاتو، بندګۍ، غلامۍ، فساد، انحلال، ګمراهۍ او بې لارۍ نه پاک شو، ظلم، سرکشي، بې نظمي، استبداد او طبقاتي نظام پای ته ورسيد، د عفت، پاکۍ، آزادۍ، ابتکار، نوښت، پوهې، يقين، باور، اعتماد عدالت، کرامت دايمي او مخلصانه کار، ترقۍ او ايمان نوې دنيا آباده شوه.(۱)
د همدې لوی او ژور بدلون له برکته په عربي جزيره کې د تاريخ او انساني ژوند نوی باب پرانيستل شو، او دا د جزيرې په تاريخ کې زرين باب او داسې خوځښت و چې تاريخ يې مثال نلري.

(1). دا هم د سيد قطب خبرې دي، چې د ما ذا خسر العالم بانحطاط المسلمين کتاب په مقدمه کې يې ليکلې دي.

# حجة الوداع

## د رسول الله (ﷺ) وروستی حج

د اسلامي بلنې کارونه پای ته ورسيدل، رسالت ادا شو، د الهي دين په اساس او د قرآنکريم د هداياتو په رڼا کې نوې ټولنه جوړه شوه. په عملي توګه عبادت يوازې د الله حق جوړ شو، د دروغجنو، بې وسه، او بې روحه خدايانو پاچايي ړنګه شوه، اسلام حاکميت وموند. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپله دنده په پوره توګه ادا کړه. په همدې وخت کې د غيبي خبر په اساس د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په زړه کې دې خبرې ځاې ونيو لکه چې نور يې په دنيا کې وخت مخ په پوره کيدو دی.

په لسم هجري کال يې چې معاذ (رضي الله عنه) يمن ته استوه ورته ويې فرمايل: (**يـا معاذ، إنك عسى ألا تلقاني بعد عامي هذا، ولعلك أن تمر بمسجدي هذا وقبري**).اې معاذه! کيدای شي راتلونکی کال ما و نه وينې، ښايي ته به راتلونکی کال زما په جومات او زما په قبر تير شې! ددې خبرې په اوريدو سره د معاذ (رضي الله عنه) اوښکې روانې شوې، او د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په فراق کې يې په زار زار وژړل.

د الله تعالی اراده داسې وه چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د خپل ۲۳ کلن دعوت، نه ستړې کيدونکو هلو ځلو، کړاوونو او زحمتونو ميوه وخوري. هغه ونې بار راوړې چې له ۲۰ کلونو زياته موده په وينو، اوښکو او خولو خړوبه شوې وه. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپل هدف ته ورسيد، د مکې په څنډو کې د عربي قبايلو له نمايندګانو او مشرانو سره ګوري، هغوی ټول ورته راغلي الهي احکام او لارښوونې ورنه زده کوي، په مقابل کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له هغوی نه دا اعتراف اخلي چې ده ورته دين او رسالت رسولی، الهي امانت يې په مکمله توګه دوی ته سپارلی، او امت ته يې نصيحت کړی او د ټولو خير يې غوښتی دی.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د حج اراده وفرمایله. اعلان وشو، بې شمیره خلک مدینې ته راغلل. ټولو دا تمه درلوده چې په رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پسې اقتدا وکړي، او یو ځای حج ورسره ادا کړي.[١]
همدا وه چې د شنبې په ورځ چې دذي القعدې میاشتې ځلور ورځې لا پاتې وې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د سفر تیاري ونیوله.[٢] خپل مبارک ویښتان یې ږومنځ کړل، تیل یې ووهل، لنګ او څادر یې واغوستل، د قربانۍ څاروي ته یې قلاده (غاړه کۍ) واچاوله، او له ماسپښین نه وروسته یې حرکت وکړ، چې له لمازدیګر نه مخکې ذي الحلیفه ته ورسید، هلته یې د لمازدیګر لمونځ قصر(دوه رکعته) وکړ. شپه یې هملته تیره کړه سهار یې اصحابو (رضي الله عنهم) ته وفرمایل: (أتاني اللیلة آت من ربي فقال: صَلِّ في هذا الوادي المبارك وقل: عمرة في حجة). د شپې د الله له لوري راتلونکی راته راغی او راته ویې ویل چې پدې مبارکه دره کې لمونځ وکړه او ووایه: حج او عمره.[٣]
رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له ماسپښین لمانځه نه مخکې غسل وکړ، بیا عائشې (رضي الله عنها) پخپل لاس خوشبویي وربانديې ووهله په مبارک بدن او سر یې داسې خوشبویې ور ووهله چې ذریره او مشک پکې ګډ و. په مبارکه ږیره یې د خوشبویۍ آثار له ورایه ښکاریدل چې ویې هم نه مینځل، بیا یې خپل لنګ او چادر واغوست بیا یې د ماسپښین لمونځ وکړ ورپسې یې د لمانځه په ځای د حج او عمرې دواړو په نیت احرام وتاړه تلبیه یې وویله. بیا د باندې ووت په قصوا نومې اوښه سپور شو تلبیه یې وویله، روان شو چې آزاد میدان ته ورسید هلته یې هم تلبیه وویله.
روان ؤ تر څو مکې ته ورلنډ شو، شپه یې په ذي طوی کې وکړه د سهار له لمانځه نه وروسته یې غسل وکړ او مکې ته داخل شو. دا د لسم کال د ذي الحجې ځلورمه د یکشنبې ورځ وه. په لارو کې یې اته ورځې تیرې شوې وې.
، کله چې مسجد حرام ته داخل شو د بیت الله شریف طواف یې وکړ، د صفا او مروه تر مینځ یې سعي وکړه، احرام یې خلاص نکړ ځکه چې د حج قران نیت یې کړې ؤ او د قربانۍ څاروي یې ورسره راوستلی و. له سعي نه وروسته یې د مکې په پورتنۍ سیمه

---

[1]. مسلم عن جابر باب حجی النبي ١/ ٣٩۴
[2]. فتح الباري ٨/ ١٠۴
[3]. بخاري عن عمر ١/ ٢٠٧

(حجون) کې واړول، او بیا یې د حج له طواف نه پرته د بیت الله بل طواف ونکړ. او له کومو کسانو سره چې د قربانۍ څاروي نه وو، هغوی ته يې امر وکړ چې لومړنی احرام یې یوازې د عمرې لپاره وګرزوي، یعنې له طواف او سعې نه وروسته باید احرام خلاص کړي، ځانونه له احرام نه وباسي، خو څرنګه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپله احرام نه ؤ خلاص کړی، نو اصحاب (رضي الله عنهم) په شک کې ولویدل متردد شول. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: (لو استقبلت من أمري ما استدبرت ما أهديت، ولولا أن معي الهدي لأحللت).که زه د خپلې معاملې په رابطه په هغه څه چې اوس وربانديې پوه یم مخکې پوه شوی وای، نو د قربانۍ څاروی به مې نه ؤ راسره راوستلی، که دا څاروی نه وای راسره، نو له احرام نه به مې ځان حلالاوه. په همدې امر سره هغو اصحابو (رضي الله عنهم) چې د قربانۍ څاروي نه وو ورسره ټولو اطاعت وکړ او احرام یې خلاص کړ.
د ترویه یعنې د ذي الحجې په اتمه رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د منی په طرف روان شو، هلته یې د ماسپښین، لمازدیګر، ماښام، لماخستن او سهار لمونځونه ادا کړل. د سهار له لمانځه وروسته یې لږ ځنډ وکړ تر څو لمر څوک وواهه بیا د عرفات په لور روان شو، هلته ورته خیمه وهل شوې وه، نو هملته یې تشریف یووړ، تر څو زوال وشو. امر یې وفرمایه چې او ښه یې (قصواء) آماده کړای شي، د میدان منځ ته راغی، شا و خوا ته یې یو لک څلویښت یا یو لک څلور څلویښت زره خلک را غونډ شوي وو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پدې وخت کې دا خطبه ولوستله:

(أيها الناس، اسمعوا قولي، فإني لا أدري لعلى لا ألقاكم بعد عامي هذا بهذا الموقف أبداً)[1]. (إن دماءكم وأموالكم حرام عليكم كحرمة يومكم هذا، في شهركم هذا، في بلدكم هذا. ألا كل شيء من أمر الجاهلية تحت قدمي موضوع، ودماء الجاهلية موضوعة، وإن أول دم أضع من دمائنا دم ابن ربيعة بن الحارث ــ وكان مسترضعاً في بني سعد فقتلته هُذَيْل ــ وربا الجاهلية موضوع، وأول ربا أضع من ربانا ربا عباس بن عبد المطلب، فإنه موضوع كله).(فاتقوا اللّه في النساء، فإنكم أخذتموهن بأمانة اللّه، واستحللتم فروجهن بكلمة اللّه، ولكم عليهن ألا يوطئن فرشكم أحداً

[1]. ابن هشام۲/۲۰۳.

تكرهونه، فإن فعلن ذلك فاضربوهن ضرباً غير مُبَرِّح، ولهن عليكم رزقهن وكسوتهن بالمعروف).

(وقد تركت فيكم ما لن تضلوا بعده إن اعتصمتم به، كتاب اللّه[1]).

(أيها الناس، إنه لا نبي بعدي، ولا أمة بعدكم، ألا فاعبدوا ربكم، وصلوا خمسكم، وصوموا شهركم، وأدوا زكاة أموالكم، طيبة بها أنفسكم، وتحجون بيت ربكم، وأطيعوا أولات أمركم، تدخلوا جنة ربكم[2]). (وأنتم تسألون عني، فما أنتم قائلون؟) قالوا: نشهد أنك قد بلغت وأديت ونصحت. فقال بأصبعه السبابة يرفعها إلى السماء، وينكتها إلى الناس: (اللهم اشهد) ثلاث مرات[3]. وكان الذي يصرخ في الناس بقول رسول اللّه صلى الله عليه وسلم ــ وهو بعرفة ــ ربيعة بن أمية ابن خَلَف[4].

اي خلكو! زما خبره واورئ، نه پوهيږم، ښايي له سږ كال نه وروسته نور تاسي پدې ځای كې د تل لپاره و نه وينم. ستاسې وينې او مالونه په تاسې باندې د تاسې پدې ښار كې د تاسې ددې مياشتې ددې ورځې د حرمت په شان حرام دي. خبر اوسئ چې د جاهليت ټول امور او شيان زما تر پښو لاندې ايښودل شوي، د جاهليت د زمانې وينې هدر او لغوه دي. لومړنۍ وينې چې زه يې له خپلو وينو نه هدر اعلانوم هغه د ابن ربيعه بن حارث وينې دي. (ابن ربيعه په بني سعد قبيله كې يوې دايې ته د شيدو خوړلو لپاره وركړل شوی وٶ او د هذيل قبيلې له لاسه په قتل رسيدلی وٶ). د جاهليت د زمانې د سود معاملې هم لغوه دي، او لومړنۍ د سود معامله چې زه يې ملغی اعلانوم هغه د عباس د سود معامله ده، هغه معامله ټوله لغوه او بې اعتباره ده. د ښځو په حق كې له الله نه وويرېږئ، ځكه تاسې هغوی د الهي امانت په اساس خپلې كړيدي، او د خدای په امر او كلمې سره مو د جنسي استفادې لپاره حلال ګرزولې دي،

---

[1] . مسلم ۳۹۷/۱.
[2] . معدن الاعمال، رواه ابن ماجة و ابن عساكر، رحمة للعالمين۲٦۳/۱.
[3] . مسلم۳۹۷/۱.
[4] . ابن هشام ٦۰٥/۲.

پر هغوی ستاسې حق دا دی چې ستاسې په کور او فرش کې داسې چا ته اجازه ورنکړي چې ستاسې نه خوښیږي، که دا کار یې وکړ، نو تادیبا یې ووهئ داسې وهل چې کلک او ډیر دردوونکي نه وي. او پر تاسې باندې د هغوی حق دا دی چې په ښه او مناسبه طریقه ورته خوراک او لباس برابر کړئ. ما تاسې ته داسې څه پرې ایښې دي چې که منګولې پرې ونښلوئ نو کله به هم ګمراه او بې لارې نه شئ، او هغه قرآنکریم دی.

اې خلکو! له ما نه وروسته نبي نشته، او له تاسې نه وروسته بل امت نشته. خبردار اوسئ، د خپل رب عبادت کوئ، پنځه وخته لمونځ ادا کوئ، د رمضان میاشت روژه نیسئ، پخپله خوښه د خپلو مالونو زکات ورکوئ. د بیت الله حج کوئ، د خپلو آمرینو اطاعت کوئ نو د خپل رب جنت ته به داخل شئ.

له تاسې نه زما په هکله پوښتنه کیږي، تاسې به څه وایئ؟ حاضرینو وویل: مونږ شاهدي وایو چې تا د الله دین مونږ ته رارسولی دی، خپل رسالت دې ادا کړیدی، نصیحت دې کړی او خیر دې غوښتی دی. بیا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپله ښه یعنې د شهادت ګوته چې د آسمان لوري ته یې نیولې وه او د خلکو خوا ته یې کږوله اشاره وکړه، او ویې فرمایل: اې خدایه! شاهد اوسه، اې خدایه شاهد اوسه! اې خدایه شاهد اوسه! رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) چې دا خبرې کولې، ربیعه بن امیه بن خلف هغه په لوړ آواز نورو خلکو ته رسولې.

د الله رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) چې خطبه ولوستله، دا آیت شریف نازل شو: {الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الإِسْلاَمَ دِينًا}. (المائده: ۳)

[ما خپل دین ستاسې لپاره بشپړ کړ، او خپل نعمت مې درباندې تمام کړ او اسلام مې ددین په حیث درته غوره کړ.] عمر (رضي الله عنه) چې دا آیت شریف واورید ویې ژړل، رسول (علیله السلام) پوښتنه ترې وکړه ولې ژاړې؟ ده وویل: په کمال پسې نقصان وي. ورته ويې فرمایل: (صدقت) رښتیا دې وویل.[1]

له خطبې وروسته بلال (رضي الله عنه) آذان او اقامت ووایه، د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په امامت د ماسپښین لمونځ ادا شو، ورپسې اقامت وویل شو او د لمازدیګر لمونځ ادا شو. ددې دواړو لمونځونو تر منځ یې بل هیڅ لمونځ

[1]. بخاري عن ابن عمر، رحمه للعالمین ۱/ ۲۶۵.

ونکړ. بیا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپله اوښه سپور شو او موقف (په عرفات د دریدو ځای) ته راغی د ا وښې (قصواء) خیټه یې د پرښو (تیږو) خوا ته کړه، حبل مشاه (د پلیو لارې) ته مخامخ داسې ودرید چې مخ یې قبلې ته وُ او تر لمر پریوتو پورې لاس په دعا ولاړ وُ. له لمر لویدو وروسته د مزدلفې په لور روان شو، اسامه (رضي الله عنه) یې له ځان سره سپور کړی وُ، په مزدلفه کې یې د ماښام او لماسختن لمونځونه په یوه آذان او دوو اقامتونو ادا کړل، او د دواړو تر منځ یې بل لمونځ ونکړ. بیا یې استراحت وکړ او تر سهاره ویده وُ. د سهار لمونځ یې ښه په رڼا کې له آذان او اقامت وروسته ادا کړ، بیا پخپله اوښه سپور شو او مشعر الحرام ته یې تشریف یووړ، هلته مخ په قبله ودرید، د الله ذکر یې کاوه (( **الله اکبر، لا الــه الا الله وحده لا شریك له**)) کلمه یې ویله، تر څو ښه رڼا شوه. بیا یې له لمر ختو نه مخکې د منی په طرف حرکت وکړ، فضل بن عباس (رضي الله عنه) یې له ځان سره په اوښه سپور کړی وُ. د محسر درې ته چې ورسیدل، اوښه یې لږ تیزه کړه ، لږ مخکې لاړ ، بیا يې لویې جمرې ته وتلې منځنۍ لاره ونیوله او جمره الاولی یا جمره العقبه ته چې هغه وخت یوه ونه هم ورسره وه ورسید. جمره یې په اوو وړو شګو وویشتله هر ځل به یې تکبیر وایه، او د درې له منځ نه به یې داسې ویشتله لکه څوک چې نښه ولي. بیا د ذبحې ځای ته راغی ۶۳ اوښان یې پخپل مبارک لاس ذبح کړل، نور یې علي (رضي الله عنه) ته وسپارل چې دده په نمایندګۍ یې ذبح او حلال کړي. پدې ترتیب سره علي (رضي الله عنه) ۳۷ اوښان حلال کړل او ټول ۱۰۰ اوښان برابر شول. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپله قربانۍ کې علي (رضي الله عنه) هم ورسره شریک کړ، بیا یې امر وکړ چې له هر اوښ نه یوه یوه ټوټه غوښه واخیستل شي، یو ځای پخه شي. همداسې وشول غوښه پخه شوه، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) او علي (رضي الله عنه) غوښه وخوړله او شوربا یې وڅښله. وروسته رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپله اوښه سپور شو او د طواف افاضه (د حج د وروروستي طواف) پخاطر مکې ته روان شو. د بیت الله شریف طواف یې وړکړ د ماسپښین لمونځ یې وکړ. بیا د زمزم اوبو ته ورغی، هلته یې ولیدل چې د عبدالمطلب اولاده خلکو ته اوبه ورکوي، ده ورته وفرمایل: (**انزعوا بني عبد المطلب، فلولا أن یغلبکم الناس علی سقایتکم لنزعت معکـــم**). اې د عبدالمطلب زامنو او اولادې! اوبه راوکاږئ، که ددې ویره نه وئ چې خلک به را ډیر شي ټول به اوبه

راوباسي نو ما به هم اوبه درسره را ایستلې وای! یعنې که زه اوبه را ایستل پیل کړم، نو اصحاب (رضي الله عنهم) به ټول همدې کار ته را وړاندې شي، بنو عبدالمطلب به نظم و نه شي ساتلئ او حاجیانو ته د اوبو ورکولو په شرف ګټلو کې به خلل واقع شي. هغوی یوه ډولچه رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته هم ورکړه چې اوبه یې ورنه وڅښلې.[1]

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د عید یعنې د ذي الحجې په لسمه ورځ له لمر ختلو نه وروسته پداسې حال کې چې پخپله شهباء نومې کچره سپور ؤ خطبه وویله، علي (رضي الله عنه) یې خبرې په لوړ آواز تکرارولې او خلکو ته یې رسولې خلک څوک ناست او څوک ولاړ وو.[2]

پدې خطبه کې یې هم د عرفات د خطبې ځنې مطالب بیان کړل.

بخاري او مسلم له ابوبکر (رضي الله عنه) نه روایت کوي وایي: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د عید په ورځ په خطبه کې داسې وفرمایل: (**إن الزمان قد استدار كهيئته يوم خلق الله السموات والأرض، السنة اثنا عشر شهراً، منها أربعة حرم، ثلاث متواليات، ذو القعدة وذو الحجة والمحرم، ورجب مُضَر الذي بين جمادي وشعبان**). زمانه خپل لومړني شکل ته اوښتې ده، د هغې ورځې په شان ده په کومه چې آسمانونه او ځمکه پیدا شول. کال دولس میاشتې دی، څلور میاشتې یې حرامې دي، دا څلور حرامې میاشتې درې مسلسلې یوه په بله پسې دي او هغه ذي العقده، ذي الحجه او محرم دي، څلورمه یې رجب مضر ده چې د جمادي او شعبان تر منځ ده. بیا یې وفرمایل: (**أي شهر هذا؟**) دا کومه میاشت ده؟ ابوبکر وایي مونږ وویل: الله او رسول ښه پوهیږي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هم چپ پاتې شو مونږ ګمان وکړ لکه چې دا میاشت په بل نوم نوموي، بیا یې وفرمایل: (**أليس ذا الحجة؟**) آیا دا د ذي الحجې میاشت نده؟ مونږ وویل: بلې همدا ذي الحجه ده. ویې فرمایل: (**أي بلد هذا؟**) دا کوم ښار دی؟ مونږ عرض وکړ الله او رسول ښه عالم دی. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) چپ شو، مونږ ګمان وکړ لکه چې بل نوم ورباندې ږدي. بیا یې وفرمایل: (**أليست البلدة؟**) آیا دا مکه نده؟ مونږ وویل: هو

---

[1]. مسلم عن جابر ۱/ ۳۹۷تر ۴۰۰.

[2]. ابو داود ۱باب اي وقت يخطب يوم النحر/ ۲۷۰

همدا مکه ده. بیا یې وفرمایل: (**فأي یوم هذا؟**) نن کومه ورځ ده؟ مونږ وویل: الله او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ښه پوهیږي. چپ و، ګمان مو کاوه لکه چې کوم نوم ورته لټوي. بیا یې وفرمایل: (**ألیس یوم النحر؟**) دا د نحر (قربانۍ) ورځ نده؟ مونږ وویل: هو، همدا د قربانۍ ورځ ده. بیا يې وفرمایل: (**فـإن دمـاءکم وأموالکم وأعراضکم علیکم حرام کحرمة یومکم هذا، في بلدکم هذا، في شهرکم هذا، (وستلقون ربکم، فیسألکم عن أعمالکم، ألا فلا ترجعوا بعدي ضلالاً یضرب بعضکم رقاب بعض، ألا هل بلغت؟) قالوا: نعم، قال: (اللهم اشهد، فلیبلغ الشاهد الغائب، فَرُبَّ مُبَلَّغ أوعي من سـامع**[1]). خبر اوسئ چې ستاسې وینې، مالونه، عزت او آبرو په تاسې باندې پدې ښار کې ددې میاشتې ددې ورځې د حرمت په شان حرام دي. تاسې به له خپل رب سره مخ کیږئ، هغه به ستاسې د عملونو پوښتنه کوي، خبر اوسئ! له ما نه وروسته بې لارې نه شئ داسې نه شئ چې یو د بل غاړې به پرې کوئ. خبر اوسئ آیا ما خپل امانت ادا کړ خبره مې ورسوله؟ دوی (اصحابو) وویل: هو تا تبلیغ وکړ، امانت دې ادا کړ. ویې فرمایل: اې الله ته شاهد اوسه، حاضرین دې دا خبره غائبو ته ورسوي، ډیر هغه کسان چې تبلیغ ورته رسول کیږي له اوریدونکو نه پوه او زیرک وي.

په بل روایت کې راځي چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پدې خطبه کې وفرمایل: (**ألا لا یجني جَانٍ إلا علی نفسه، ألا لا یجني جان علی ولده، ولا مولود علی والده، ألا إن الشیطان قد یئس أن یُعْبَد في بلدکم هذا أبداً، ولکن ستکون له طاعة فیما تحتقرون من أعمالکم، فسیرضی به**[2]).

خبردار! جاني (مجرم) یوازې د خپل ځان په حقه کې جنایت کوي (یعنې سزا د هغه چا لپاره ده چې جرم او ګناه وکړي) خبر اوسئ چې هیڅ جنایتکار پخپل زوی تجاوز او تیری نه کوي، او نه زوی په پلار ظلم او تیری کوي (ددې مطلب دا دې چې پلار د زوی او زوی د پلار په ګناه نه مجازات کیږي). خبر اوسئ ! شیطان لدینه بالکل نا امیده شوی چې بیا به یې ستاسې په دې ښار کې عبادت وشي، خو په هغه کارونو او

---

[1]، صحیح بخاري باب الخطبة ایام منی ۱/ ۲۳۴.

[2]. تر مذي ۲/ ۳۸_۱۳۵. ابن ماجه في الحج، مشکاة المصابیح ۲۳۴/۱.

امورو کې به چې تاسې يې واړه او بې ارزښته شميرئ د شيطان پيروي کيږي، او هغه به پدې هم خوشاله وي.

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د تشريق ورځې (د ذي الحجې ۱۱-۱۲- ۱۳) په منی کې تيرې کړې، خپل مناسک يې ادا کړل، خلکو ته يې د حج احکام وښودل. تل به يې د الله ذکر کاوه، د ابراهيم (عليه السلام) سنت يې را ژوندي کړل، د شرک نښانې يې له مينځه يوړې په ځينو ورځو کې يې خطبې هم وويلې.

ابو داود له سراء بنت نبهان نه روايت کوي وايي: رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ذي الحجې په دوولسم خطبه وويله او ويې فرمايل: (أليس هذا أوسط أيام التشريق[1]).آيا نن د تشريق د ورځو منځنۍ ورځ نده؟ دغه خطبه هم لکه دعيد د ورځې خطبې په شان وه چې د نصر سورت له نازليدو وروسته يې وويله. د عيد په څلورمه يعنې د ذي الحجې په ۱۳ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له منی نه روان شو، له ابطح نه لاندې را کوز شو او د بني کنانه په خيف کې يې واړول. د ورځې پاتې برخه او شپه يې هملته تيره کړه، د ماسپښين، لمازديګر، ماښام او لماسختن لمونځونه يې هملته ادا کړل. بيا لږه ويده شو، بيا په اوښه سپور شو مکې ته راغی د بيت الله طواف يعنې طواف وداع يې وکړ، اصحابو ته يې هم ددې طواف امر وکړ.

د حج د مناسکو د بشپړيدو وروسته يې خپلو سپرو يارانو ته د تګ حکم وکړ، او هغوی يې د مدينې په لور د تګ لپاره تشويق کړل، خو دا ددې لپاره نه چې لاړ شي او هلته آرام وکړي بلکه ددې لپاره چې لاړ شي او د الله په لار کې د جهاد او مبارزې لړۍ جاري او دوامداره وساتي.[2]

---

[1]. ابو داوُد ۱ باب اي يوم يخطب بمنی/ ۲۲۹.

[2]. د نبي (عليه السلام) د حج د تفصيلاتو لپاره دا کتابونه وګوره: البخاري کتاب المناسک ۱/ ۲۳۱. مسلم باب حجة النبي . فتح الباري ج ۳ و ۸/ ۱۰۳تر ۱۱۰. ابن هشام ۲/ ۲۰۱ تر۲۰۵. زاد المعاد ۱/ ۱۹۲_۲۱۸ تر ۲۴۰.

# وروستی پوځي تحرک

د روميانو طاغوت همداسې د ناروا لاره نيولې وه، له کبر نه يې حق ته غاړه نه اېښوده، د اسلام او مسلمان د ژوندي پاتې کيدو په حق يې اعتراف نه کاوه. بلکه څوک به چې په اسلام مشرفيدل هغه به يې وژل. لکه چې فروه بن عمرو الجذامي چې د روميانو له خوا د معان والی وُ او د اسلام په ګناه د روميانو له خوا ووژل شو.
د روميانو د دې کبر او غرور د ماتولو په نيت رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ۱۱ هجري کال په صفر مياشت کې يو لوی لښکر تيار کړ، اسامه بن زيد بن حارثه يې د لښکر قوماندان وټاکه . امر يې ورته وکړ چې د فلسطين داروم او بلقاء سيمو ته به ځي، تر څو روميان وويريږي، او هلته پولو کې پراته عربان جرات او حوصله پيدا کړي، او دا ورته ثابته شي چې د کليسا د واکدارانو مقابله ممکنه ده او داسې نده چې څوک يې د ظلم مخه نشي نيولی. او تر څو له خلکو سره دا تصور پيدا نه شي چې اسلام منل يعنې مرګ او ځان وژنه يعنې دا چې مسلمانان ځان په خطر کې و نه شميري بلکه مطمئن شي چې ددوی د دفاع لپاره اقدامات کيږي.
اصحابو د اسامه د قيادت په هکله څه خبرې وکړې ځکه هغه ډير کشر وُ خبره څه نا څه وځنډيده خو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**إن تطعنوا في إمارته، فقد كنتم تطعنون في إمارة أبيه من قبل، وايم الله، إن كان لخليقاً للإمــارة، وإن كان من أحب الناس إلي، و إن هذا من أحب الناس إلي بعــده**[1]). [تاسې که اوس دده د امارت په هکله اعتراض کوئ، لدينه مخکې مو دده د پلار د امارت په هکله هم نيوکې درلودې، پداسې حال کې چې قسم په خدای هغه د قيادت اهليت درلود، او زما ډير خوږ دوست وُ له ټولو نه راته ګران وُ، اوس همدا (اسامه) له ټولو نه راته نژدی او ګران دی.]
همدا وه چې خلک ټول راضي شول له اسامه نه راتاو شول، په لښکر کې يې راټول شول، تر څو جرف نومې سيمې ته ورسيدل. دغه ځای درې ميله د مدينې نه ليرې وُ

[1]. صحيح بخاري باب بعث النبي (ص) اسامه۲/ ۶۱۲

هلته يې واړول، خو څرنګه چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) رنځور وُ، د دوی زړونه د هغه خوا ته کشال وو له ډیره غمه مخکې لاړ نه شول، هملته یې الهي فیصلې نه انتظار یوست. بیا د الله اراده داسې وه چې همدا لښکر د ابوبکر (رضي الله عنه) د خلافت لومړنی لښکر و چې له مدینې نه د باندې واستول شو.[1]

---

[1]. ابن هشام ۲/ ۶۰۶

# له فاني دنيا نه رحلت

## د رحلت نښانې

کله چې دعوت بشپړ شو، اسلام حاکم او مسلط شو، د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په زړه کې له ژوند او فاني دنيا نه د رحلت آثار او احساس پیدا شو، دغه احساس دده مبارک په قول او عمل کې ښه څرګند و.

د لسم هجري کال د رمضان په میاشت کې یې شل ورځې په اعتکاف کې تیرې کړې، پداسې حال کې چې نور کلونه به یې یوازې لس ورځې اعتکاف کاوه. په همدې کال او همدې میاشت کې جبریل (علیه السلام) دوه ځله قرآنکریم ورته تکرار کړ او د حجه الوداع په مراسمو کې یې وفرمایل: (**إني لا أدري لعلی لا ألقاكم بعد عامي هذا بهذا الموقف أبداً**). ښایي له سږني کال نه وروسته د تل لپاره تاسې پدې ځاې کې و نه وینم. له جمره العقبه سره یې هم وفرمایل: (**خذوا عني مناسككم، فلعلي لا أحج بعد عامي هذا**). د حج مناسک له ما نه زده کړئ، ښایي زه بیا کله هم حج ونکړم. د تشریق په ورځو کې د ((النصر)) سورت وربانديې نازل شو، د همدې سورت له نازلیدو نه هغه پوه شوچې ژوند یې پای ته رسیدلی دی، نور د رخصتۍ وخت دی.

د ۱۱ هجري کال په صفر میاشت کې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) احد ته تشریف یووړ، شهیدانو ته یې داسې دعا وکړه لکه له ژوندیو او مړیو نه چې بیلیدونکی او تلونکی وي. بیا خپل منبر ته راغی ویې فرمایل: (**إني فرط لكم، وأنا شهيد عليكم، وإني والله لأنظر إلى حوضي الآن، وإني أعطيت مفاتيح خزائن الأرض، أو مفاتيح الأرض، وإني والله ما أخاف عليكم أن تشركوا بعدي، ولكني أخاف عليكم أن تنافسوا فيها**). زه ستاسې د کاراوان مشر او پر تاسې ګواه یم، قسم په خدای چې زه همدا اوس خپل حوض ته ګورم، ما ته د دنیا د ټولو خزانو کلیانې راکړل شویدي، (او یا د ځمکې کلیانې را کړل شویدي) زه لدینه ویره نلرم چې تاسې به

له ما نه وروسته مشرکان شئ، زما ویره لدینه ده چې په دنیا کې به یو له بل سره په سیالۍ او مقابله اخته شئ.[1]

یوه شپه نا وخته له کور نه ووت، بقیع ته یې تشریف یووړ هلته ښخو شویو مسلمانانو ته یې د مغفرت دعا وکړه ویې فرمایل: (السلام علیکـــم یـــا أهل المقابر، لِیَهْنَ لکم ما أصبحتم فیه بما أصبح الناس فیه، أقبلت الفتن کقطع اللیل المظلم، یتبع آخرهـــا أولها، والآخرة شر من الأولی)، وبشرهم قائلاً: (إنا بکم للاحقـــون). اې د قبرونو خاوندانو، سلام دې درباندې وي! په کوم حالت کې چې خلک دي د هغوی په نسبت ستاسې دا خپل حال مبارک شه، فتنې او فساد لکه د شپې د تیارو په شان داسې راغلې دي، یو په بل پسې را روانې دي، وروستۍ یې له لومړنۍ نه ډیره بده او خرابه ده. او همدلته یې هغوی ته د خپل ورتګ زیری هم ورکړ ویې فرمایل: موږ تاسې ته درتلونکي یوو.

## د ناروغتیا پیل

د ۱۱ هجري کال د صفر میاشتې په ۲۹ مه د دوشنبې په ورځ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په بقیع کې په یوه جنازه کې برخه درلوده. کور ته د ستنیدو په لار کې یې په مبارک سر درد شو، سختی تبې ونیو، دومره ګرم ؤ چې د لمدې شوې پټۍ په سر به یې هم حرارت محسوسیده. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ۱۱ ورځې د بیمارۍ په حالت کې خلکو ته لمونځ ورکاوه، د بیمارۍ ټوله موده یې ۱۳ یا ۱۴ ورځې وه.

## وروستۍ اونۍ

د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مرض زیات شو، زیات په تکلیف شو، له خپلو میرمنو نه به یې پوښتنه کوله : (أین أنا غداً؟ أین أنا غداً؟) سبا مې له چاسره نوبت دی؟ زه سبا له چا سره یم؟ درنې میرمنې یې په هدف پوه شوې اجازه یې ورکړه هر چیرته یې چې زړه وي همهلته دې پاتې شي. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پداسې حال کې چې د فضل بن عباس او علي (رضي الله عنهم) په اوږو

[1]. متفق علیه.

یې تکیه کړې وه د عائشې (رضي الله عنها) کور ته ورغی، مبارک سر یې تړلی و، مبارکې پښې یې پر ځمکه ښښیدلې او د عائشې (رضي الله عنها) کور ته ننوت او هملته یې د مبارک ژوند وروستۍ اونۍ تیره کړه.
عائشې (رضي الله عنها) به معوذتین (الفلق، الناس سورتونه) ورباندې لوستل او په هغه دعاګانو به یې دماوه کومې یې چې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه زده کړې وې. دا سورتونه به یې لوستل په رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به یې چپول او کوفول، او د برکت په نیت به یې مبارک بدن دده په خپل مبارک لاس مسح کاوه.

## له رحلت نه پنځه ورځې وړاندې

له وفات نه پنځه ورځې وړاندې د چارشنبې په ورځ د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په مبارک بدن سخت دردونه راغلل، مرض یې دومره ډیر شو چې د الله حبیب (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پرکاله شو، بیهوشې پرې راغله ویې فرمایل: (**هريقوا علي سبع قِرَب من آبار شتي، حتى أخــــرج إلى النــــاس، فأعهــــد إليهم**). اوبه راباندې واچوئ! له بیلابیلو څاه ګانو نه اوه ژیه اوبه راباندې تویې کړئ، تر څو وکولی شم خلکو ته ورشم وصیت ورته وکړم. دهمدې امر په اساس په یوه لګن کې کینول شو، اوبه ورباندې واچول شوې تر څو په خود راغی، ویې فرمایل: (**حسبكم، حسبكم**).بس دي، بس دي.

پدې سره یې لږ آرامي وشوه مرض یې کم شو، جومات ته یې پداسې حال کې تشریف یووړ چې مبارک سر یې تړلی وُ، په منبر کیناست، دا یې وروستی مجلس و، له حمد او ثنا وروسته یې خلکو ته وفرمایل: (**أيها الناس، إلي**). ای خلکو دلته راشئ! خلک ټول ورته راټول شول، بیا یې پخپلو خبرو کې وفرمایل: (**لعنة الله على اليهود والنصارى، اتخذوا قبور أنبيائهم مساجد**) ـــ **وفي رواية**: (**قاتل الله اليهود والنصارى، اتخذوا قبور أنبيائهم مساجد**) ـــ **وقال**: (**لا تتخذوا قبري وثناً يعبد**).

په يهودو او نصرانيانو دې د الله لعنت وي، چې د خپلو رسولانو له قبرونوڅخه يې جوماتونه جوړ کړيدي.[1] په بل روايت کې راځي چې ويې فرمايل: الله تعالی دې يهود او نصاری هلاک کړي، دوی د خپلو رسولانو له قبرونو نه جوماتونه جوړ کړيدي. بيا يې زياته کړه: زما له قبر نه بت مه جوړوئ چې عبادت يې وشي.[2] يعنې زما د قبر عبادت ونکړئ.

بيايې خپل مبارک نفس يا ځان د محاکمې او انتقام (قصاص) لپاره مخ کې کړ ويې فرمايل: (من كنت جلدت له ظَهْرًا فهذا ظهري فليستقد منه، ومن كنت شتمت له عِرْضاً فهذا عرضي فليستقد منه). که څوک مې په شا وهلي وي دا ده زما شا، زه حاضر يم انتقام دې واخلي، که چا ته مې بده خبره کړې وي، د هغه آبرو مې تويې کړې وي، دا دی زه حاضر يم له ما نه دې خپل وار واخلي. بيا له منبر نه راکوز شو د ماسپښين لمونځ يې وکړ. بيا بيرته منبر ته پورته شو، کيناست او خپله خبره يې تکرار کړه. د دښمنۍ او نورو په هکله يې خبره وکړه، پدې وخت کې يوه شخص وويل: زما په تا باندې درې درهمه دي! رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (أعطه يا فضل). اې فضل! درې درهمه ورکړه. بيا يې د انصارو په هکله وصيت وکړ ويې فرمايل: (أوصيكم بالأنصار، فإنهم كِرْشِي وعَيْبَتِي، وقد قضوا الذي عليهم وبقي الذي لهم، فاقبلوا من مُحْسِنهم، وتجاوزوا عن مسيئهم)، وفي رواية أنه قال: (إن الناس يكثرون، وتَقِلُّ الأنصار حتى يكونوا كالملح في الطعام، فمن ولي منكم أمراً يضر فيه أحداً أو ينفعه فليقبل من محسنهم، ويتجاوز عن مسيئهم). زه تاسې ته د انصارو په هکله د نيکۍ وصيت کوم، هغوی زما زړه او جګر دي، هغوی خپل مسووليت ادا کړيدی، خو حقوق يې پاتې دي، د هغوی د نيکو کارانو نيکۍ ومنئ او د ګنهګارانو له ګناه نه تير شئ. په بل روايت کې راځي چې ويې فرمايل: د خلکو شميره زياتيږي، خو انصار کميږي، بالاخره به دومره کم شي لکه مالګه په طعام کې. که له تاسو نه چا ته داسې دنده او کار وسپارل شو چې د ګټې او زيان رسولو توان يې درلود، نو د انصارو نيکي دې ومني او د مقصرينو له ګناه نه يې دې تير شي[3].

---

(1). بخاري ١/ ٢٢ - موطا الامام مالک ص ٣٢٠

(2). موطا الامام مالک ص ٢٥.

(3). بخاري ١/ ٥٣۶

بیا یې وفرمایل: (**إن عبداً خيره الله بين أن يؤتيه من زهرة الدنيا ما شاء، وبين ما عنده، فاختار ما عنده**). الله تعالی خپل یوه بنده ته اختیار ورکړیدی چې خوښه یې د دنیا له شان، شوکت، زیب او زینت نه چې څه غواړي اخلي او که هغه څه اخلي چې له الله سره دي، همدې بنده د دنیا په مقابل کې هغه څه خوښ کړل چې له الله تعالی سره دي.

ابو سعید الخدري وایي ددې خبرې په اوریدو سره ابوبکر (رضي الله عنه) په ژړا شو ویې ویل: یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! زمونږ مور او پلار له تا قربان شه، ټول دې له تا قربانوي. راوي وایي مونږ د ابوبکر ژړا ته حیران شوو، ځینو وویل: دې شیخ ته وګورئ، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د هغه بنده په هکله خبرې کوي چې الله تعالی د دنیا او آخرت په مینځ کې اختیار من کړیدی، خو دا شیخ یعنې ابوبکر (رضي الله عنه) رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته وایي میندې او پلرونه درنه قربانوو! ابو سعید (رضي الله عنه) وایي مونږ هغه وخت نه وو پوه شوي، وروسته پوه شوو چې همدا اختیار من شوی بنده پخپله رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وُ، او ابوبکر (رضي الله عنه) له مونږ نه ډیر پوهیده.[1]

بیا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: (**إن من أمنّ الناس علي في صحبته وماله أبو بكر، ولو كنت متخذاً خليلاً غير ربي لا تخذت أبا بكر خليلاً، ولكن أخوة الإسلام ومودته، لا يبقين في المسجد باب إلا سد، إلا باب أبي بكر**).

له ما سره د ملګرتیا او مالي همکارۍ له وجې نه تر ټولو زیات احسان او نیکي ابوبکر (رضي الله عنه) کړیده، که له الله پرته مې خلیل (دوست) نیولی، نو ابوبکر به مې خلیل وای، خو له هغه سره مې د ورورۍ او اسلام اړیکې دي، ددې جومات ټولې دروازې دې بندې شي، یوازې د ابوبکر (رضي الله عنه) دروازه دې خلاصه وي او نه دې بندیږي.[2]

---

(1). متفق علیه
(2). متفق علیه

## ځلور ورځې له رحلت نه مخکې

له رحلت نه ځلور ورځې وړاندې د پنجشنبې په ورځ د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مرض ډیر سخت شوی ؤ، په همدې حالت کې یې وفرمایل: **(هلمــوا أكتب لكم كتاباً لن تضلوا بعده)**. زرکوئ، راشئ چې یو لیک درته ولیکم، تر څو وروسته هیڅ گمراه او بې لارې نه شئ. په خونه کې څو کسه اصحاب ناست وو چې عمر (رضي الله عنه) هم پکې و، هغه وویل: په رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مرض زیات شوی، سخت په تکلیف دی، ستاسې سره قرآنکریم شته، همغه درته کافي دی. پدې سره د حاضرو اصحابو (رضي الله عنهم) تر مینځ اختلاف پیدا شو، غالمغال جوړ شو،ځینو ویل راوړئ چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) څه درته ولیکي، نورو د عمر (رضي الله عنه) قول تاییداوه، په همدې ترتیب شور جوړ شو او رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفرمایل: **(قوموا عـــني)**. لاړ شئ، رانه لاړ شئ.[1]

**وأوصى ذلك اليوم بثلاث: أوصى بإخراج اليهود والنصاري والمشركين من جزيرة العرب، وأوصى بإجازة الوفود بنحو ما كان يجيزهم، أما الثالث فنســـيه الـــراوي. ولعله الوصية بالاعتصام بالكتاب والسنة، أو تنفيذ جيش أسامة، أو هي: (الصـــلاة وما ملكت أيمانكم).**

په همدې ورځ رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) درې اوامر صادر کړل یعنې د دریو شیانو توصیه یې وکړه : امر یې وکړ چې یهود ، نصرانیان او مشرکان دې له عربي جزیرې نه اخراج شي، بل امر یې دا ؤ چې له نمایندګانو سره دې دده (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د سنت مطابق نیکه معامله کیږي او په ښې طریقې سره دې رخصتیږي، خو دریم امر یې د راوي هیر شویدی کیدای شي دریم امر په قرآنکریم او سنتو د عمل کولو په هکله وي او یا د اسامه د لښکر په هکله دده د حکم د تعمیل په اړه وي او یا د لمانځه د پابندۍ او غلامانو سره د نیکۍ په هکله وي.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د همدې پنجشنبې تر ورځې که څه هم ډیر په تکلیف ؤ خو د لمونځونو امامت یې کاوه پدې ورځ یې هم خلکو ته د ماښام لمونځ ورکړ، د والمرسلات عرفا سورت یې پکې تلاوت کړ.[1]

---

[1]. بخاري عن ام الفضل باب مرض النبي ٠علیه السلام) ٢/ ٦٣٧

[1]. متفق علیه

خو لماسختن یې بیماري ډیره زیاته شوه ونه توانید جومات ته تشریف یوسي. عائشه (رضي الله عنها) وایي: لماسختن رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پوښتنه وکړه : (أصلی الناس؟) آیا خلکو لمونځ کړیځ؟ مونږ ورته وویل: نه، یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! هغوی ستا انتظار باسي، ویې فرمایل: (ضعوا لي ماء في المخْضَب). په لګن کې لږ اوبه راته واچوئ، مونږ اوبه ورته واچولې، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) غسل وکړ او غوښتل یې لاړ شي خو بیهوشه شو، او کله چې په حال راغی ویې فرمایل: (أصَلَّی الناس؟) آیا خلکو لمونځ ادا کړیځ؟ دوهم او دریم ځل یې همداسې فرمایل، زمونږ ځواب به داسې ؤ چې نه یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هغوی ستا په انتظار ناست دي، ده به غسل وکړ هڅه به یې وکړه لاړ شي خو بیهوشي به وربانديې راغله، نو بالاخره یې ابوبکر (رضي الله عنه) ته خبر ولیږه چې امامت وکړي او په خلکو لمونځ ادا کړي. د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د مریضۍ په ورځو کې حضرت ابوبکر (رضي الله عنه) د ۱۷ لمونځونو امامت کړیدی.[۲]

عائشې (رضي الله عنها) درې، څلور ځلې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حضور ته عرض وکړ چې امامت له ابوبکر (رضي الله عنه) نه واخلې ځکه ویریده هسې نه خلک یې پلار په بدفالۍ او بدشګونۍ ونیسي، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورته وفرمایل: (إنکن لأنتن صواحب یوسف، مروا أبا بکر فلیصل بالناس).تاسې د یوسف (علیه السلام) ملګرې یاستئ، یعنې په زړه کې مو یو څه دي او په خوله بل څه وایئ، ابوبکر ته امر وکړئ چې خلکو ته لمونځ ورکړي. عائشې (رضي الله عنها) په خوله عرض وکړ، یا رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم)! ابوبکر چې ستا په ځای ودریږي له ډیرې ژړا نه خلکو ته قرآنکریم نه شي اورولئ، دا یې د خولې خبره وه خو په زړه کې یې دا هم وه چې که رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لدې مرض نه وفات شي هسې نه چې خلک د ابوبکر (رضي الله عنه) امامت په بدفالۍ ونیسي او همدا عقیده یې په زړه کې پخه شي، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) امر وکړ ابوبکر ته ووایئ چې د خلکو امامت وکړي.

---

[۲]. بخاري ۹۹/۱

## لــه رحلـت نــه دری ورځې وړانـدې

جابر (رضي الله عنه) وايي:له رحلت نه درى ورځې وړاندې مې له نبي (صلى الله عليه و سلم) نه واوريدل چې فرمايل يې: (**ألا لا يموت أحد منكم إلا وهو يحسن الظن بالله**).د تاسو هر يوه ته ښايي پداسې حال کې ومري چې په الله تعالى يې ګمان نيک وي.

## له رحلت نه يوه يا دوې ورځې وړاندې

د شنبې يا يکشنبې په ورځ د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) صحت څه نا څه ښه وُ، د دوو کسانو په مرسته يې جومات ته تشريف يووړ، پدې وخت کې ابوبکر (رضي الله عنه) خلکو ته د ماسپښين لمونځ ورکاوه، خو کله چې ابوبکر وليدل رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) تشريف راوړ کوښښ يې وکړ په شا شي، ولې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) اشاره ورته وکړه چې په شا نه شي او ويې فرمايل: ما د ابوبکر چپې خوا ته کينوئ، همغه وه چې د ابوبکر چـپې خوا ته کينول شو، ابوبکر (رضي الله عنه) به د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په لمانځه پسې اقتدا وکړه او دده مبارک تکبير به يې تکراراوه او خلکو ته به يې رساوه[1].

## له رحلت نه يوه ورځ مخکې

د يکشنبې په ورځ يعني له رحلت نه يوه ورځ مخکې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپل ټول غلامان آزاد کړل، اوه (۷) ديناره يې درلودل هغه يې هم صدقه کړل، خپله وسله يې هم مسلمانانو ته ورکړه. د شپې له خوا عـائشې (رضـي الله عنهـا) د چراغ لپاره تيل له کومې ګاونډۍ نه پور واخيستل، او په همدې وخت کې د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) زغره د ۳۰ صاعه تقريباً ۷۵ کيلو ګرامه وربشو په بدل کې له يوه يهودي سره ګرو وه.

## د رسول الله ﷺ د مبارک ژوند آخرينۍ ورځ

---

[1] . صحيح البخاري ۹۸/۱_۹۹.

انس بن مالک (رضي الله عنه) روایت کوي چې د دوشنبې په سهار ابوبکر خلکو ته لمونځ ورکاوه، ناڅاپه خلک متوجه شول چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د عائشې (رضي الله عنها) د کوټې پرده پورته کړې او دوی ته ګوري، دوی په لمانځه ولاړ وو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ددې حالت په لیدو سره تبسم وکړ، ابوبکر (رضي الله عنه) فکر وکړ چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) تشریف راوړي نو له خپل ځای نه په شا شو چې صف ته ورسیږي.

انس (رضي الله عنه) وایي: د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په لیدو سره مسلمانان دومره خوشاله شول چې نژدې وه لمونځ پریږدي، او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خدمت او پوښتنې ته ورشي، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پخپل مبارک لاس اشاره وفرمایله چې خپل لمونځ پوره کړي، بیا یې خپلې حجرې ته تشریف یووړ او پرده یې را کوزه کړه.[1]

لدینه وروسته په رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د بل لمانځه وخت رانغی. چې غرمه شوه رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خپله ګرانه لور فاطمه (رضي الله عنها) راوغوښتله پټ په غوږ کې یې څه ورته وویل: فاطمه (رضي الله عنها) په ژړا شوه، بیا یې بله خبره پټه ورته وکړه په هغې سره فاطمه (رضي الله عنها) په خندا شوه.

عائشه (رضي الله عنها) وایي: وروسته مې له فاطمې (رضي الله عنها) نه ددې موضوع په هکله وپوښتل، هغې راته وویل: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پټ راته وویل: زه رحلت کوم، له همدې مرض نه وفات کیږم، ما ددې خبرې په اوریدو سره وژړل، بیا یې راته وویل چې زما په کورنۍ کې به ته له ټولو نه لومړۍ په ما پسې راځې، زه پدې سره خوشاله شوم او ومې خندل.[2]

همدا راز رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) فاطمې (رضي الله عنها) ته زیری ورکړ چې ته د ټولې دنیا د ښځو سرداره یې[1] ځنې روایتونه پدې دلالت کوي چې له فاطمې (رضي الله عنها) سره د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دا خبرې او دا زیری د ژوند په وروستۍ ورځ نه بلکه وروستۍ اونۍ اواز کې و.

---

[1]. صحیح بخاري باب مرض النبي (علیه السلام) ۲/ ۶۴۰
[2]. بخاري ۲/ ۶۳۸
[1]. رحمة للعالمین ۱/ ۲۸۲.

فاطمی (رضي الله عنها) چې د خپل محبوب پلار دا مرض او درد وليد، چيغه يې کړه، وای، په پلار مې څه حال دی، څومره په تکليف دی؟ رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**ليس على أبيك كرب بعد اليوم**). ستا پلار به له نن نه وروسته هيڅ غم او درد ونهويني.(۲)

بيا يې حسن او حسين (رضي الله عنهما) راوغوښتل دواړه يې مچې کړل او د دوی په هکله يې د نيکۍ وصيت وکړ، بيا يې خپلې ميرمنې راوغوښتلې ټولو ته يې وعظ او نصيحت وکړ، هماغه وه چې درد او مرض يې زيات شو، په بدن کې يې د هغو زهرو اثر ښکاره شو چې په خيبر کې يې خوړلي وُ، فرمايل به يې: (**يا عائشة، ما أزال أجد ألم الطعام الذي أكلت بخيبر، فهذا أوان وجدت انقطاع أبْهَرِي من ذلك السم**). اې عائشه! د هغه طعام درد احساسوم کوم مې چې په خيبرکې خوړلی وُ، فکر کوم چې د ملا رګ مې له هغه زهرو نه پرې شويدی.(۳)

پر مبارک مخ يې څادر پروت و، چې په تنګ شو څادر يې ايسته کړ او خلکو ته يې د وصيت او نصيحت په توګه چې همدا يې وروستی نصيحت و، وفرمايل: (**لعنة الله على اليهود والنصارى، اتخذوا قبور أنبيائهم مساجد ـ يحذر ما صنعوا ـ لا يبقين دينان بأرض العرب**). پر يهودو او نصرانيانودې د الله لعنت وي، د خپلو نبيانو قبرونه يې په عبادتخانو بدل کړي،ـ لدينه مطلب د خلکو منع کول وـ په عربي سيمه کې دوه دينونه ته پاتې کيږي. او خلکو ته يې د نصيحت په توګه فرمايل: (**الصلاة، الصلاة، وما ملكت أيمانكم**[4]). د لمانځه او هغو غلامانو خيال ساتئ چې تر لاس لاندې مو دي. همدا فرموده يې د ځان کندن په وخت کې څو ځله تکرار کړه.

## ځنکدن

د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ځنکدن را لنډ شو، عائشې (رضي الله عنها) ځانته را تکيه کړ، تکيه يې وربانديې کړې وه. له همدې امله به عائشې

(۲). صحيح بخاري ۲/ ۶۴۱ .
(۳). صحيح بخاري ۲/ ۶۳۷ .
[4]. نفس المصدر.

(رضي الله عنها) هميشه ويل: پر ما باندې د الله تعالى له رحمتونو او نعمتونو څخه يو دا دى چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) زما په کور کې، زما د نوبت په ورځ او زما د غاړې او لمنې تر مينځ وفات شوى، او الله تعالى د ده(صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د وفات په وخت زما د خولې لاړې د هغه له مبارکو لاړو سره ګډې کړې. عبدالرحمن بن ابوبکر (رضي الله عنهما) زما کور ته راغى، په لاس کې يې مسواک و، رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په ما باندې تکيه کړې وه، متوجه شوم چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د هغه د مسواک په لور ګوري، پوه شوم چې مسواک غواړي، عرض مې وکړ: مسواک درته واخلم؟ ده په اشاره سره پوه کړم چې هو. ما هغه مسواک ورنه واخيست، د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) لپاره کلک ؤ عرض مې وکړ درته نرم يې کړم؟ په مبارک سر يې اشاره وکړه، چې هو. ما ورته نرم کړ او ورمې کړ هغه ډير ښه استعمال کړ.

په يوه روايت کې دا هم راغلي چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) په ډيره ښه طريقه مسواک وواهه، له خوا سره يې د اوبو منګى ايښې و، دواړه لاسونه به يې پکې غوټه کړل او پر مبارک مخ به يې راکش کړل او فرمايل به يې: (**لا إله إلا الله، إن للموت سكرات...**) **الحديث.** [**له يوه الله پرته بل د عبادت وړ نشته، بيشکه چې مرګ سختۍ لري.**][1] کله چې رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) مسواک استعمال کړ، مبارک لاس يا ګوته يې پورته کړه سترګې يې چت ته ونيولې مبارکې شونډې يې وخوځيدې، عائشې (رضي الله عنها) غوږ ورته ونيو او وايې وريدل چې فرمايي: ((**مع الذين انعمت عليهم من النبيين و الصديقين و الشهداء و الصالحين و حسن اولئك رفيقا اللهم اغفر لي و ارحمني و الحقني بالرفيق الاعلى اللهم الرفيق الاعلى**))[2] [**له هغو کسانو سره چې نعمت دې ورکړى له انبياوو (عليهم السلام)، صديقانو، شهيدانو او صالحينو نه، هغوى ډير غوره ملګري دي اې خدايه! عفوه راته وکړې، رحم راباندې وکړې او ما له رفيق اعلى سره يو ځاى کړې، اې خدايه رفيق اعلى درنه غواړم.**] دا و ر و ستۍ کلمه يې درى ځله تکرار کړله مبارک لا س يې په اړخ ولويد او له رفيق اعلى سره يو ځاى شو. ((**انا لله و انا اليه راجعون**))

---

[1]. بخاري باب مرض النبي ٠ عليه السلام) ۶۴/۲.

[2] بخاري همغه باب .او اخر ما تكلم به النبي (عليه السلام)۲۳۸/۲تر ۲۴۱.

دغه وخت د د وشنبې ورځ غرمه مهال د سختې ګرمۍ وخت وُ، د هجرت یوولسم کال د ربیع الاول ۱۲ نیټه وه. د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مبارک عمر ۶۳ کاله او څلور ورځې و.

## پر اصحابو (رضي الله عنهم) د غمونو انبارونه

د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د رحلت دردونکی خبرخور شو د مدینې په اوسیدونکو قیامت جوړ شو، په سترګو یې تپه تیاره شوه. انس (رضي الله عنه) وایي: ما مدینې ته د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د راتګ له ورځې نه بله زیاته روښانه او نیکمرغه ورځ نده لیدلې، او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د وفات له ورځې نه مې بله زیاته تیاره او د ر د ونکې ورځ نده لیدلې.[1]

کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) رحلت وکړ فاطمې (رضي الله عنها) وویل: وای پلار جانه! ستا غم جبریل (علیه السلام) ته ژاړو![2]

## د عمر (رضي الله عنه) دریځ

عمر (رضي الله عنه) د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د وفات د خبر په اوریدو سره له خود نه ووت دا یې نه شوای منلی، حیران وُ، دهشت اخیستی وُ.

ویل به یې: ځینې منافقان ګمان کوي چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) رحلت کړیدی، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) رحلت ندی کړی، بلکه خپل رب ته ورغلی لکه موسی بن عمران (علیه السلام) چې خپل رب ته ورغلی و او ۴۰ ورځې له خپل قوم نه غایب شوی و، دا وروسته له هغې چې وویل شول مړشویدی خو هغه بیرته ورته راغی، قسم په خدای چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هم بیرته راځي، او د هغو کسانو لاسونه او پښې به پرې کوي چې ګمان کوي او وایې وفات شویدی[1].

---

[1]. الدارمي. مشکاة المصابیح ۵۴۷/۲.

(2). بخاري باب مرض النبي (علیه السلام) ۲/ ۲۴۱

[1]. ابن هشام ٦٥٥/٢.

## د ابوبکر (رضي الله عنه) دریځ

ابوبکر (رضي الله عنه) د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د رحلت په وخت کې له مدینې نه د باندې په سنح نومې کلي کې ؤ، په آس سپور راغی مخامخ جومات ته داخل شو له چا سره يې خبرې نه کولې، د عائشې (رضي الله عنها) کور ته ورغی او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له مبارک سر سره ودرېد. پر هغه مبارک یمني لیکه دار چادر غوړول شوی و، چادر يې له مبارک مخ نه پورته کړ، مبارک مخ يې مچې کړ، ویې ژړل او ویې ویل: مور او پلار مې له تا قربان، الله تعالی تا ته دوه ځله مرګ نه درکوي، کوم مرګ يې چې درته ټاکلی ؤ هغه درته راغی. بیا د باندې راووت. هلته عمر (رضي الله عنه) له خلکو سره په مناقشه بوخت ؤ ابوبکر وویل: اې عمره! کېنه. عمر نه کیناست خلک ټول له عمر نه ابوبکر ته راغلل، ابوبکر وویل: اما بعد: چا چې د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) عبادت کاوه هغه دې پوه شي چې محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفات شو، او څوک چې د الله عبادت کوي هغه دې پوه شي چې الله د محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خدای ژوندی دی مرګ نه لري. الله تعالی فرمايي: ((**وَمَا مُحَمَّدٌ إِلاَّ رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ أَفَإِيْن مَاتَ أَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلَى أَعْقَابِكُمْ وَمَنْ يَنْقَلِبْ عَلَى عَقِبَيْهِ فَلَنْ يَضُرَّ اللَّهَ شَيْئاً وَسَيَجْزِي اللَّهُ الشَّاكِرِينَ**)) (آل عمران: ۱۴۴)

[نه دی محمد (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مګر یو رسول د الله په تحقیق سره له ده نه مخکې ډېر رسولان تېر شویدي آیا نو که مړ شي محمد یا شهید کړی شي نو بیرته به وګرځئ تاسې به پوندو خپلو (کفر ته) او هر څوک چې بیرته وګرځیده په پوندو خپلو (کفر ته) نو الله ته به هیڅ زیان ونه رسوي او ژر به جزا ورکړي الله شکر ګزارو ته.]

ابن عباس (رضي الله عنهما) وايي: کله چې ابوبکر دا آیت تلاوت کړ خلک داسې شول لکه چې دا آیت همدا اوس نازل شوی وي، او پدې سره ټولو همدا آیت شریف تلاوت کاوه. ابن مسیب وايي: عمر (رضي الله عنه) وویل: په خدای قسم کله چې ابوبکر دا آیت تلاوت کړ، بالکل بې حسه شوم، په لاره نه شوای تلی، پښې مې بې سیکه شوې او دا آیت مې چې ولوست په ځمکه ولویدم او پوه شوم چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وفات شوی دی.[1]

[1]. بخاري ۲/ ۶۴۰_۶۴۱.

## تجهيز، تکفين او تدفين

د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) لـه تجهيز او تدفين نـه مخکې د خلافت په اړه اختلاف پيدا شو، د انصارو او مهاجرينو تر مينځ بحث او مناقشه پيل شوه. دوی په سقيفه بني ساعده کې راټول شوي وو، د خلافت پـه هکلـه يې ډير بحث وکړ په پای کې يې په اتفاق سره ابوبکر (رضي الله عنه) د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خليفه وټاکه. د خلافت پـه هکلـه دا بحث او مناقشه د دوشنبې تر ماښام پورې جاري وه، پدې شپه هم د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تجهيز او تدفين و نه شو.

سهار شو پر رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) باندې هماغه يمني چادر غوړيدلی ؤ، کورنۍ يې دروازې ورپسې بندې کړې وې، د سه شنبې په ورځ يې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) تـه غسل ورکړ، خو جامې يې همداسې پـه غاړه کې وې. عباس. علي، د عباس زامنو فضل او قثم (رضي الله عنهم) رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته غسل ورکړ. لـه دوی سره شقران چې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ازاد شوی غلام ؤ، اسامه بن زيد، اوس بن خولي(رضي الله عنهم) هم ملګري وو. عباس، قثم او فضل بـه پـه يوه اړخ او بل اړخ اړاوه، اسامه او شقران اوبه وربانـدې اچولی او علي (رضي الله عنهم) به غسل ورکاوه، اوس (رضي الله عنه) د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مبارک جسد پـه خپله سينه تکيه کړی ؤ.

وروسته يې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په دريو يمني کتاني جامو کې ونغښت، پدې کې کميس او عمامه (لنګی) نه وه[۲] دا جامې يې کفن وې.

بيا د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د دفن کولو په هکله سره مخالف شول، تر څو ابوبکر (رضي الله عنه) وويل: ما لـه رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه اوريدلي چې فرمايي: (**ما قبض نبي إلا دفن حيث يقبض**).هر پيغمبر په هغه ځای کې دفن کيږي چيرتـه چې وفات شوی وي. پـه همدې اساس ابو طلحه انصاري (رضي الله عنه) د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) هغـه بستره چې پرې وفات شوی ؤ پورته کړه او ترينه لاندې ځای ژور شو او قبر ورتـه جوړ

[۲]. متفق عليه. بخاري ۱۲۹/۱. مسلم ۲۰۲/۱.

شو. قبر يې لحد وُ، خلک به لس لس تنه راتلل او په رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به يې لمونځ کاوه، د لمانځه امام يې نه وُ. لومړی د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) کورنۍ او خپلوانو لمونځ پرې وکړ، ورپسې مهاجرينو، بيا انصارو، له نارينه و نه وروسته ښځو، ورپسې ماشومانو په رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) لمونځ ادا کړ. پدې ډول د سه شنبې ورځ هم تیره شوه او د چارشنبې شپه را داخله شوه. عائشه (رضي الله عنها) وايي: مونږ تر هغې پورې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له دفن کولو نه خبر نه وو تر څو د چارشنبې په نيمايي شپه کې مو د بيلچو آواز واورید.[1]

---

[1]. مختصر سيره الرسول للشيخ عبدالله النجدي ص ۴۷۱. د نبي (علیه السلام) د رحلت په هکله دا کتابونه وګوره: بخاري باب مرض النبي (علیه السلام)، فتح الباري، صحيح مسلم، مشکاة المصابيح باب وفاة النبي (علیه السلام). ابن هشام ۲۴۹/۲ تر ۲۶۵. تلقيح فهوم اهل الاثر ص ۳۸_۳۹. رحمة للعالمين ۲۷۷/۱ تر ۲۸۲. مونږ عام تاريخونه له وروستي مصدر نه اخستي دي.

# مبارکه نبوي کورنۍ

۱- له هجرت نه مخکې په مکه کې نبوي کورنۍ عبارت وه له: رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او خديجه (رضي الله عنها) . د واده په وخت کې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ۲۵ کلن او خديجه (رضي الله عنها) ۴۰ کلنه وه، او تر څو چې ژوندۍ وه رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) بل واده ونکړ.
له خديجې (رضي الله عنها) نه د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) لوڼې او زامن پيدا شول، خو زامن يې يو هم ژوندی پاتې نه شو. او لوڼې يې عبارت دي له: زينب، رقيه، ام کلثوم او فاطمه (رضي الله عنهن). زينب (رضي الله عنها) له هجرت نه مخکې د خپلې ترور (خاله) له زوی ابو العاص بن الربيع سره واده کړی ؤ. رقيه او ام کلثوم يې يوه په بله پسې عثمان (رضي الله عنهم) ته په نکاح ورکړې وې، فاطمه چې له علي (رضي الله عنه) سره يې د بدر او احد په مينځ کې واده کړې ؤ. د فاطمې (رضي الله عنها) اولادونه حسن، حسين، زينب او ام کلثوم (رضي الله عنهم) وو.
رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د خپل امت په نسبت له نورو امتيازاتو او ځانګړتياوو نه علاوه يو امتياز دا درلود چې له څلور نه له زياتو ښځو سره نکاح ورته روا وه. ددې امر تر شا ډير حکمتونه او رازونه پټ وو. نو رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له ۱۳ ښځو سره نکاح کړې وه، د رحلت په وخت کې يې نهه (۹) ميرمنې ژوندۍ وې. دوې دده مبارک په ژوند کې وفات شوې وې چې يوه خديجه او بله ام المساکين زينب بنت خزيمه (رضي الله عنهما) وه، او دوې ميرمنې يې داسې وې چې ورسره يو ځای شوی نه و.
دلته د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د نورو بيبيانو نومونه او ژوند په لاندې ډول وړاندې کوو:

۲- سوده بنت زمعه (رضي الله عنها): رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د بعثت په لسم کال د خديجې (رضي الله عنها) له وفات نه څو ورځې وروسته واده ورسره کړی ؤ. سوده مخکې د خپل تره له زوی سکران سره واده کړی ؤ، وروسته هغه

وفات شو، کونډه شوه او بیا یې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره د ګډ ژوند شرف تر لاسه کړ.

**۳**- عائشه بنت ابی بکر (رضي الله عنهما): رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورسره د بعثت په یوولسم کال له سوده سره له واده نه یو کال وروسته د شوال په میاشت کې یعنې له هجرت نه دوه کاله او پنځه میاشتې مخکې نکاح کړې وه، چې دغه وخت عائشه (رضي الله عنها) (۶) کلنه وه، بیا له هجرت نه اوه میاشتې وروسته کله چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) عمر **۵۶** کاله او د عائشې (رضي الله عنها) عمر (**۹**) کاله وُ په مدینه کې د لومړي هجري کال د شوال په میاشت کې واده وکړ. عائشه یوازینۍ پیغله ده چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ورسره واده کړی، نورې میرمنې یې ټولې کونډې وې. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له عائشې سره ډیره مینه درلوده، عائشه (رضي الله عنها) له نورو نه ډیره هوښیاره، فقیهه او عالمه میرمن وه.

**۴**- حفصه بنت عمر (رضي الله عنهما): د نوموړې میړه خنیس بن حذافه سهمي د بدر او احد تر مینځ مړ شو، نو وروسته په دریم هجري کال کې یې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره د نکاح شرف وګاټه.

**۵**- زینب بنت خزیمه (رضي الله عنها): دغه بي بي له بني هلال بن عامر بن صعصعه کورنۍ ښځه وه. له فقیرانو او بیوزلانو سره یې ډیره همدردي لرله، نیکي به یې ورسره کوله او له همدې کبله په ام المساکین د مسکینانو په نوم مشهور وه. لومړې يې له عبدالله بن جحش (رضي الله عنه) سره واده کړی و، هغه د احد په غزا کې په شهادت ورسید، او د هجرت په څلورم کال رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نکاح ورسره وکړه، خو له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره له واده نه دوې یا درې میاشتې وروسته وفات شوه.

۶- ام سلمه هند بنت ابي اميه (رضي الله عنها): لومړنی میړه يې ابو سلمه (رضي الله عنه) ؤ، هغه د څلورم هجري کال په جمادي الاخر کې وفات شو، نو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په همدې کال د شوال په میاشت کې واده ورسره وکړ.

۷- زینب بنت جحش (رضي الله عنها) بن رئاب چې له بني اسد بن خزیمه قبیلې څخه وه. د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د عمه لور هم کیدله، لومړی یې له زید بن حارثه (رضي الله عنه) سره واده وکړ. وروسته زید طلاقه کړه، او الله تعالی رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته داسې حکم وکړ: ((فَلَمَّا قَضَى زَيْدٌ مِنْهَا وَطَراً زَوَّجْنَاكَهَا)) [وروسته له دینه چې زید ورسره یو ځای شو مونږ هغه تا ته په نکاح در کړه.]
پدې هکله د احزاب سورت څو آیتونه نازل شول، پدې آیتونو کې د نسبتي زوی (پسر خواندگی) مسئله ښه توضیح شویده چې وروسته به اشاره ورته وکړو. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د پنځم هجري کال په ذي القعده کې له زینب سره واده وکړ.

۸- جویریه بنت حارث (رضي الله عنها): حارث د بني مصطلق کورنۍ سردار ؤ، جویریه له غزا نه وروسته اسیره شوه، لومړی د ثابت بن قیس بن شماس په برخه ورسیده، هغه مکاتبه ورسره وکړه یعنې د پیسو په مقابل کې یې د آزادۍ موافقه ورسره وکړه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پیسې ورکړې آزاده شوه او د شپږم هجري کال په شعبان میاشت کې یې واده ورسره وکړ.

۹- ام حبیبه رمله بنت ابي سفیان (رضي الله عنها): نوموړې د عبیدالله بن جحش ښځه وه. دواړو حبشې ته هجرت وکړ، خو میړه یې هلته مرتد شو، مسیحي شو او هملته مړ شو، ام حبیبه پخپل دین قایمه وه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په اووم هجري کال د محرم په میاشت کې د عمرو بن امیه ضمري په لاس نجاشي ته لیک ولیږه چې له ام حبیبه سره یې د واده هیله پکې څرګنده کړې وه، نو هغه یې هملته د نکاح عقد وتاړه او له شرحبیل بن حسنه (رضي الله عنه) سره یې ورته راولیږله.

۱۰- صفيه بنت حيي بن اخطب (رضي الله عنها): صفيه په خيبر کې د مسلمانانو په اسارت کې ولويده، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) هغه د ځان لپاره غوره کړه، آزاده يې کړه او په ۷ هجري کال کې د خيبر له فتحې وروسته نکاح ورسره وکړه.

۱۱- ميمونه بنت حارث (رضي الله عنها): دا د عباس (رضي الله عنه) د ښځې ام الفضل لبابه بنت حارث (رضي الله عنها) خور وه. رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په عمره القضاء کې يعنې د اووم هجري کال په ذي القعده کې له احرام نه له حلاليدو وروسته نکاح ورسره وکړه.

دا وې هغه يوولس ميرمنې چې له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره يې د نکاح او واده شرف حاصل کړی ؤ. خديجه او ام المساکين (رضي الله عنهما) د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په ژوند وفات شوې، خو نهه (۹) نورې ميرمنې د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د رحلت په وخت کې ژوندۍ وې او دوې ښځې داسې وې چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د نکاح عقد ورسره تړلی و، خو واده يې ورسره و نه شو، هغه يوه له بني کلاب او بله له کنده کورنۍ ښځه وه چې په جونيه سره يې شهرت درلود. پدې هکله د روايتونو تر مينځ څه اختلاف شته چې د تفصيلاتو بيانول يې ضروري نه شميرو.

د وينځو په هکله ويلی شو چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له دوو وينځو سره يو ځای شوی و چې يوه يې ماريه قبطي (رضي الله عنها) وه چې د مصر مقوقس ورکړې وه او له هغې ښځه يې يو زوی درلود چې نوم يې ابراهيم ؤ. ابراهيم ماشوم ؤ چې وفات شو، د وفات نيټه يې د لسم هجري کال د شوال ۲۸ يا ۲۹ تاريخ ؤ چې د ۶۲۲م کال د جنوري له ۲۷ مې سره سمون خوري. بله وينځه يې ريحانه بنت زيد نضري يا قرظي (رضي الله عنها) وه چې د بني قريظه په غزا کې په اسارت ونيول شوه، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) هغه د ځان لپاره غوره کړه. ځينې روايتونه وايي چې ريحانه د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ميرمن وه چې له اسارت نه وروسته يې آزاده او په نکاح کړې وه، خو ابن قيم لومړنۍ خبرې او روايت ته ترجيح ورکوي. ابو عبيده دوې نورې ميرمنې هم د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ميرمنو په ډله کې شاملوي چې يوه يې جميله وه چې په اسارت

نیول شوې وه او بله هغه وینځه وه چې زینب بنت جحش (رضي الله عنها) رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته ورکړې وه.[1]

که د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مبارک ژوند ته په ځیر وکتل شي، نو دا به له ورایه ښکاره شي چې لدې دومره ودونو نه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هدف د جنسي غریزې اشباع کول نه ؤ ځکه رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ځوانۍ لومړنې تقریبا دیرش کاله له یوې ځلوینبت کلنې ښځې (خدیجه (رضي الله عنها)) او بیا سوده (رضي الله عنها) سره تیر کړیدي.

د ځوانۍ عمر یې له همدې زړو میرمنو سره تیر شویدی، نو آیا دا معقوله ده چې له ځوانۍ نه وروسته د پخوالي په عمر کې دې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) جنسي قوت دومره زیات شوې وي چې یو بل پسې (۹) نهه ودونه وکړي؟ که واقعیت ته وکتل شي او د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د ژوند مراحل تر نظر تیر شي، نو دا په ډاګه شي چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د هر واده شا ته هغه لوی مقاصد وو چې د عامو ودونو له مقاصدو نه ډیر لوی وو، دا ودونه د مادي غرض لپاره نه بلکه د ډیرو سترو اهدافو پخاطر وو.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پرخپلو څلورو یارانو کوم چې د الله او اسلام په لار کې یې ډیر مشکلات ګاللي او په آزموینه کې بریالي وتلي وو ډیر عنایت او شفقت کړی له هغوی سره یې خپلې اړیکې ډیرې ټینګې ساتلې، او د همدې اړیکو د لا زیات ټینګیدو پخاطر یې له عائشه بنت ابوبکر (رضي الله عنهما) او حفصه بنت عمر (رضي الله عنهما) سره واده وکړ، رقیه او وروسته ام کلثوم یې عثمان، او فاطمه یې علي (رضي الله عنهم) ته په نکاح ورکړې.

هغه وخت عربانو خپلوي او دوستي ډیره پالله، خپلوانو ته یې زیات احترام درلود، په دوستۍ سره د قبایلو تر مینځ اړیکې مضبوطیدلې، دښمنۍ او جګړې ورباندې پای ته رسیدلې، او له خپلوانو سره دښمني او جګړه د شرم او بې ننګۍ خبره بلل کیدله.

له همدې امله رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) وغوښتل د خپلوۍ او ودونو له لارې ځینې قبیلې د ځان کړي، له همدې لارې له اسلام سره د هغوی دښمني او عداوت ختم کړي. ام سلمه (رضي الله عنها) له بني مخزوم قبیلې څخه وه، ابوجهل او خالد هم له همدې قبیلې څخه وو، له ام سلمه (رضي الله عنها) سره له واده نه وروسته خالد د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په خلاف د احد د غزا

---

[1]. زاد المعاد ۱/ ۲۹

په شان سخته دښمني او کلک دريځ نه درلود ، بلکه څه وخت وروسته پخپله خوښه مسلمان شو. همدا راز ابو سفيان له هغې نه وروسته چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې لور ام حبيبه نکاح کړه د مسلمانانو په خلاف جګړه ونکړه. له جويريه او صفيه سره له واده نه وروسته د يهودانو دوې قبيلې بني مصطلق او بني نضير هم پداسې عمل لاس ندی پورې کړی چې په دښمنۍ دلالت وکړي بلکه جويريه خو د خپل قوم لپاره تر ټولو نه زياته برکتي ښځه وه ځکه لدې سره له واده نه وروسته اصحابو (رضي الله عنهم) د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د خپلوۍ د درناوي په خاطر د هغې د قوم سل کورنۍ آزادې کړې او ټولو به ويل: دوی د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) خپلوان دي بايد آزاد شي، څرګنده ده چې دې احسان او نيکۍ د هغوی پر زړونو ډيره مثبته اغيزه درلوده.

د اسلام او مسلمانانو په خلاف د دښمنۍ د کمولو او له مختلفو قبايلو سره د دوستۍ له ټينګولو نه علاوه د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د ودونو ستر هدف دا ؤ چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) غوښتل له خپلو ميرمنو نه د داعيانو او معلمانو کار واخلي، ځکه هغه (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) پدې مکلف ؤ چې دا له تمدن، فرهنګ او ثقافت نه ليرې او پردی قوم داسې وروزي چې د ژوند په ټولو آدابو او اخلاقو سمبال وي. هغه (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نوې ټولنه جوړوله، او د ټولنې حاکمو اصولو دا اجازه نه ورکوله چې نارينه او ښځينه دې سره ګډ وي، او دا ممکنه نه وه چې د عربي ټولنې ښځې دې خپل نوي اسلامي فرهنګ او ثقافت مخامخ له نارينه وو نه زده کړي. ښځې د ټولنې يوه مهمه برخه وه او د هغوی پوهه، روزنه او ښوونه لکه د نارينه وو په شان ضروري او لازمي وه، بناءً رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مجبور وو ددې لوی عمل د ادا کولو پخاطر د ښځو د روزنې او ښوونې پخاطر د مختلفو عمرونو درلودونکې ښځې غوره کړي، د مختلفو عمرونو او مختلفو صلاحيتونو خاوندانې ښځې په نکاح کړي، هغوی په اسلام او اسلامي اخلاقو وروزي، د دين احکام ور زده کړي او داسې معلمانې ورنه جوړې کړي چې وکولې شي په بريااليتوب سره ښارې او بانډه والې ميرمنې وروزي، هغوی ته د اسلام پيغام ورسوي، زړو او ځوانو ښځو ته اسلامي آداب او اخلاق په عملي توګه ور زده کړي او ښځو ته د تبليغ دنده ادا کړي. د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) قدرمنو ميرمنو (رضي الله عنهن) د اسلام د مبلغانو رول ادا کړی، هغوی په ډيره ښه توګه د رسول الله (صلی الله عليه و اله و

صحبه و سلم) کورني او ژوندني حالات ښځو ته انتقالول، هغوی به په ټولو امورو کې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه زده کړه کوله او بیا به یې نورو ښځو ته ښوونه کوله. دا دنده هغو بیبیانو ډېره ښه ادا کړیده چې ډېر عمر ژوندۍ وې لکه عائشه (رضي الله عنها)، نوموړې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) زیات شمیر مبارک اقوال او سپیڅلي اعمال نورو ته رسولي دي.

د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یو واده داسې وٌ چې په هغه سره د جاهلي دور یو زوړ عادت او رواج مات شو، په عربانو کې زوی نیول (پسر خواندګی) رواج درلود. پسر خوانده به د اصلي او نسبي زوی په شان ټول حقوق درلودل او په هر څه کې به د نسبي زوی په شان معامله ورسره کیدله. دا رواج دومره خور شوی و چې له مینځه وړل یې آسانه او ساده کار نه وٌ، څرګنده ده چې دې رواج د طلاق، نکاح، میراث او نورو معاملاتو په برخه کې له اسلامي احکامو سره تعارض درلود، پدې عادت او رواج کې نور ډېر داسې مفاسد او فتنې پټې وې چې اسلام د هغو د له مینځه وړلو لپاره راغلي و. د همدې جاهلي عادت د ابطال او له مینځه وړلو لپاره الله تعالی خپل رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته امر وکړ چې له زینب بنت جحش سره نکاح وکړي. زینب (رضي الله عنها) د زید ښځه وه، زید د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پسر خوانده وٌ یعنې هغه یې په فرزندۍ یا زوی توب نیولی وٌ. زید چې له زینب سره واده وکړ، له واده نه وروسته د دواړو تر مینځ د ګډ ژوند شرایط نه وو برابر، اختلاف یې سره درلود، نو زید اراده وکړه طلاقه يې کړي. دا داسې وخت وٌ چې کافران له هرې خوا نه پر مسلمانانو د حملې په حال کې وو، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د مشرکانو، یهودانو او منافقانو له تبلیغاتو نه ویریده، او دا تشویش یې درلود چې هسې نه دښمنان لدینه هم دده په خلاف د یوې تبلیغاتي وسیلې په توګه کار واخلي، نو خوښه یې نه وه چې زید خپله ښځه زینب طلاقه کړي. مترددوٌ او څرګنده ده چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دا تردد او تمایل له هغه عزم او عزیمت سره پوره برابري نه درلوده، کوم چې له امله يې د الله تعالی له خوا را استول شوی و. الله تعالی پدې مساله کې عتاب ورته وکړ او ویې فرمایل: (وَإِذْ تَقُولُ لِلَّذِي أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِ وَأَنْعَمْتَ عَلَيْهِ أَمْسِكْ عَلَيْكَ زَوْجَكَ وَاتَّقِ اللَّهَ وَتُخْفِي فِي نَفْسِكَ مَا اللَّهُ مُبْدِيهِ وَتَخْشَى النَّاسَ وَاللَّهُ أَحَقُّ أَنْ تَخْشَاهُ)) (الاحزاب: ۳۷)

[او كله چې تا وويل هغه (زيد) ته چې انعام كړی ؤ الله پر هغه او انعام كړی ؤ تا پر هغه (په آزادولو سره) چې خپله ښځه وساته او وويرېږه له الله تـه حال دا چې پټولـه تـا پـه زړه كې هغه خبره چې الله يې ښكاره كوونكی ؤ او ته ويريـدې لـه خلكـو نـه او الله ډېـر لايـق دی چې ويره ورنه ولرې.]

په پاي كې زيد هغه طلاقه كړه او له عدت نه وروسته رسول الله (صلى الله عليه و الـه و صحبه و سلم) واده ورسره وكړ. دا نكاح هغه وخت وشوه چې بني قريظه محاصره شـوي وو. دا نكاح د الله په امر وشوه او الله دا وربانـدې واجبـه كـړې وه هـيڅ اختيـار او مجـال يې نه ؤ وركړی، رسول الله (صلى الله عليـه و الـه و صـحبه و سـلم) پـدې هكلـه هـيڅ بلـه لاره او اختيار نه درلود. الله تعـالى فرمـايي: ((فَلَمَّا قَضَى زَيْدٌ مِنْهَا وَطَراً زَوَّجْنَاكَهَا لِكَيْ لا يَكُونَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ حَرَجٌ فِي أَزْوَاجِ أَدْعِيَائِهِمْ إِذَا قَضَوْا مِنْهُنَّ وَطَراً وَكَانَ أَمْرُ اللَّهِ مَفْعُولاً)) (الاحزاب: ٣٧) [كله چې پوره كړ زيد له هغـې ( زينـب) نـه خپل غرض (او طلاقه يې كړه او عدت يې پوره شو) نو په نكاح دركړه مونږ تـا تـه دغـه (زينـب) د پـاره ددې چې نـه وي پـر مؤمنـانو سـختي او ويـال پـه نكـاح كولـو د ښځو د ادعياوو کې كله چې تمام كړي دوی خپل غرض ورنه او د الله امر نافذ دی.]

ددې حكم تر شا دا حكمت پروت ؤ تر څو پدې سره د فرزندی او پسر خواندګۍ په نامـه مشهور شوی جاهلي دود له مينځه يوسي، الله تعـالى دې تـه اشـاره فرمـايي: ((ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ هُوَ أَقْسَطُ عِنْدَ اللَّهِ)) (الاحزاب: ٥)

[وبولئ تاسې دغه ادعياء (پسر خواندګان) پلرونو د دوی ته دغه ډېر غوره دی په نـزد د الله.]

((مَا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَا أَحَدٍ مِنْ رِجَالِكُمْ وَلَكِنْ رَسُولَ اللَّهِ وَخَاتَمَ النَّبِيِّينَ)) (الاحزاب: ٤٠) [ندی محمد (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) حقيقي پلار د هيڅ يو تن له سړيو ستاسې نه، ليكن رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) او خاتم د رسولانو دی.]

ډېر عادتونه او رواجونـه داسـې وي چـې پـه تشـه خبـره او قـول سـره نـه پرېښـودل كيـږي، بلكه د هغه له مينځه وړل له قول سره عملي مثال ته هم ضرورت لري. همديته ورته يوه پيښه د عمرة الحديبيه په وخت كې هم وشوه هغه مسلمانان او اصحاب (رضي الله عنهم) چې د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د پزې اوبـه هـم ځمكـې

ته نه پریږدي بلکه د عروه بن مسعود ثقفي په خوله هغه را اخلي او په بدن یې موښي، د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د اوداسه د اوبو په را اخیستلو کې یو له بل سره مقابله کوي، همدوی وو چې له خپل ګران رهبر سره یې د مرګ بیعت کړی، په همدې ډله کې ابوبکر، عمر او نور یاران وو، همدغو اصحابو (رضي الله عنهم) ته چې له تړون نه وروسته امر کیږي لاړ شئ خپل د قربانۍ څاروي حلال کړئ، ځانونه له احرام نه خلاص کړئ، وینو چې په قولي امر سره یو هم د حکم تعمیل نه کوي، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ددې صحنې په لیدو سره غمګین او خوابدی کیږي، خو کله چې ام سلمه (رضي الله عنها) مشوره ورکړه چې لومړی خپله قرباني ذبح کړي، له هیچا سره څه خبره ونکړي، نو بیا به ټول همدا کار عملي کوي. همداسې وشول رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) چې خپله د قربانۍ څاروی حلال کړ، اصحاب (رضي الله عنهم) ټول پاڅیدل د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) متابعت یې وکړ. د همدې مثال په رڼا کې د قولي او عملي حکم تر مینځ توپیر معلومولی شو، او وینو چې عملي حکم څه ډول اغیزه او اثر لري.

له زینب بنت جحش (رضي الله عنها) سره د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له نکاح نه وروسته منافقانو ډیر زهرجن تبلیغات وکړل، ډیرې شبهې یې را ولاړې کړې، تردې حده چې ځینې کمزوري مسلمانان ترې متاثر هم شول، پدې وخت کې یو بل مشکل دا ؤ چې له زینب سره واده د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پنځم واده کیده، او مسلمانانو ته خو له څلورو نه د زیاتو ودونو جواز نه و، نو دلته دوه مشکله وو: لومړی دا چې دا د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پنځم واده کیده، بله دا چې زید د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) پسر خوانده ؤ چې د جاهلي عادت مطابق د هغه له طلاقې شوې ښځې سره واده نه ؤ ورته روا. د همدې مشکلاتو د حل لپاره الله تعالی د احزاب سورت څو آیتونه را نازل کړل دا موضوع ګانې یې ښې وڅیړلې او مسلمانانو ته یې وښودله چې پسر خواندګي په اسلام کې اصل نلري او بله دا چې الله تعالی خپل رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته د ودونو په هکله داسې امتیاز ورکړیدی چې بل چا ته نشته، دده لپاره له څلورو نه زیات ودونه روا دي، او د لوړو اهدافو پخاطر الله تعالی خپل رسول (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته دا ځانګړتیا ورکړیده.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له امهات المؤمنین (رضي الله عنهن) سره ډیر د شرف، عزت اطمینان، احسان او نیکۍ ژوند وکړ. ټولې بیبیانې د

شرف، قناعت، صبر، تواضع، خدمت او حق پيژندني نمونه وې، که څه هم رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ډير د محروميت ژوند تيراوه. انس (رضي الله عنه) وايي: فکر نه کوم چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به تر وفاته نرمه ډوډۍ خوړلې وي او يا يې دې پخپلو سترګوکباب شوی پسه ليدلی وي[1].

عائشه (رضي الله عنها) وايي: ډير ځله داسې کيدله چې دوې، دوې مياشتې به مسلسل او د دريمې مياشتې تر رابره کيدو پورې به د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په کور کې اور نه بليده. عروه ورته وويل: ژوند مو په څه تيراوه؟ عائشه وفرمايل: په اوبو او خرما[2]. پدې هکله ډير روايات را نقل شويدي.

لدې اقتصادي مشکلاتو سره سره د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ميرمنو هيڅ اعتراض نه درلود، قانع وې، يوازې يو ځل يې له خپل ژوند او سخت حالت نه شکايت وکړ، خو پدې کې هم لوی حکمت پروت و دا د احکامو د تشريع علت شو، او په همدې مناسبت دا آيت نازل شو:

((يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لأَزْوَاجِكَ إِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا فَتَعَالَيْنَ أُمَتِّعْكُنَّ وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحاً جَمِيلاً (٢٨) وَإِنْ كُنْتُنَّ تُرِدْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَالدَّارَ الآخِرَةَ فَإِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْمُحْسِنَاتِ مِنْكُنَّ أَجْراً عَظِيماً)). (الاحزاب: ٢٨– ٢٩)

[اې نبي! ووايه ته ښځو خپلو ته که چيرې تاسې غواړئ همدغه ژوندون د دنيا او ښايست ددې بې ارزښته ژوندون، نو راشئ چې فايده در ورسوم او خوشې کړم تاسې په نيکۍ سره او که اراده لرئ د الله او د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) او د آخرت پس بيشکه الله تيار کړی دی د صالحينو د تاسې لپاره ډير لوی اجر.]

دې عظيمو ميرمنو د شرف او عزت په حکم ټولو دنيا ته شا کړه، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) يې له هر څه نه غوره وباله يوې هم دا خوښه نکړه چې د دنيا مال او متاع دې وغواړي.

ددې ميرمنو تر مينځ سره لدې چې شميره يې ډيره وه، داسې څه مشکل ندې پيښ شوی کوم چې معمولاً د بنو تر مينځ واقع کيږي، خو کله نا کله به د انساني کمزورۍ له امله څه ستونزې پيښيدلې. او چې کله څه غلطي ور نه شوې الله تعالی عتاب

[1] . صحيح البخاري ٢/٩٥٢.
[2] . نفس المصدر والصفحة.

ورته کړی او دوی بیا هغه ندی تکرار کړی. الله تعالی فرمايي: (**يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ**). (التحريم:۱) د پنځم ايت تر پايه [اې رسوله ولې حراموې هغه څه چې الله درته حلال کړي دي.]

په پای کې وايم چې د ميرمنو د تعدد په هکله بحث ته ضرورت نشته ځکه ددې مسئلې يعنې د ښځو د تعدد زيات مخالفين هغه کسان دي چې د غربي تمدن نمايندګي کوي، خو که د اروپا او غربي نړۍ ژوند ته وګورو د هغوی هغه مشکلات او ستونزې تر نظر تيرې کړو، هلته کيدونکي هغه جرايم او جنايات وګورو چې وربانديې راغلي، هغه بدبختۍ او مصيبتونه وشميرو کوم چې له همدې اصل (تعدد) نه د انحراف او انکار له امله وربانديې رالويدلي دي، نو بيا ددې ضرورت نه پاتې کيږي چې ددې نظر د ابطال په هکله نور استدلال وشي، د اروپايانو او ټولو غربيانو عملي ژوند ددې لپاره ښه دليل دی چې تعدد مشکل او نقص نه بلکه ضرورت او حل دی.

# د رسول الله (ﷺ) صفات او اخلاق

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د داسې جسماني او اخلاقي کمال، جمال او ښکلا خاوند ؤ چې په ژبه يې وصف او بیان نه شي کیدلی. زړونه دده په محبت او دوستۍ ودان و، هره سینه يې له قدر او درناوي ډکه وه، خلکو دده له عظمت او کرم نه ځانونه قربانول. د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په شان قدر او منزلت د هیچا نه ؤ او نه دی او نه به په راتلونکي کې شي، چا چې ژوند ورسره کړی دده د مینې او محبت بندیوان شوی، اصحابو (رضي الله عنهم) دومره مینه ورسره درلوده چې پخپله يې مرګ قبلاوه خو دا يې نه غوښتل د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) یو نوک خوږ شي.

له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سره د خلکو د مینې او محبت یو علت دا ؤ چې هغه (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د دومره کمال خاوند ؤ چې هر څوک يې خپلولی شوای. په راتلونکو کرښو کې به په مختصره توګه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د جمال او کمال په هکله را نقل شوي روایات تر نظر تیر کړو، خو مخکې لدینه چې ددې عظیم لارښود د کمال او ښکلا په هکله څه ووایو پدې اعتراف کوو چې مونږ په هیڅ صورت هم د هغه (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) حق په قلم او ژبه سره نه شو ادا کولی.

## د رسول الله ﷺ اخلاقي کمال او شمایل

کله چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د هجرت په سفر کې د ام معبد خزاعي له خیمې نه تیر شو، له ام معبد سره يې ملاقات وشو، نوموړې خپل میړه ته دده (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) صفات بیان کړل او پدې هکله يې داسې وویل: یو شخص مې ولید چې ډیر ښکلی او باوقاره ؤ، ځلیدونکی مخ او غوره اخلاق يې درلودل، نه مریض ؤ او نه يې اندامونه غیر متناسب وو، ډیر ښکلی او برابر ؤ. زړه راښکونکی سر او مخ يې درلودل، توري سترګې، لوړ آواز، اوږده غاړه، ګڼه ږیره،

اوږده بانه، نښتي نرۍ وروځي او اوږده تور ويښتان يې درلودل، چې چپ به ؤ ځانګړی وقار يې درلود او که خبرې به يې کولې عظمت او لوړوالی به يې له واريه ښکاريده. له ليرې نه ډير با هيبته او درونډ ښکاريده او لـه نژدې نه ډير خوږ، شيرين زبانه ؤ، خبرې يې لنډې او مقبولې وې، نه يې زياتې خبرې کولې او نه لـه اندازې نه کمې، خبرې يې لکه ملغلرې وې. د متوسطې ونې خاوند ؤ نه ډير لوړ او نه ډير ټيټ ؤ، د داسې يوې ځانګې په شان ؤ لکه چې د دوو ځانګو تر مينځ واقع شي او له دوارو نه وتلې او غوره وي، ملګرو يې ډيره مينه ورسره درلوده، چې ده به خبرې کولې ملګري به يې چوپ وو، امر به يې چې وکړ ټول به يې تعميل ته ولاړيدل، امر يې منل کيده، نه بد خوی ؤ او نه ظالم . (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم)(۱)

علي بن ابي طالب (رضي الله عنه) د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په وصف کې وايي: نه ډير بې اندازې لوړ او نه ډير ټيټ ؤ، متوسطه ښکلې ونه يې درلوده، ښه چار شانه ؤ، ويښتان يې نه ډير نرم ؤ او نه ډير تاو تاو، مبارک مخ يې غوښن نه ؤ ګرد او سور رنګه ؤ، سترګې يې غټې بادامي، بانه يې اوږده او ګڼ، اوږې يې پلنې، له ټټر نه تر ګيډې يا نامه پورې يې نري ويښان وو، نور جسم يې ويښتان نه درلودل د لاسونو او پښو ګوتې يې غوښنې وې، د تګ په وخت کې به د مخې لور ته مايل ؤ تا به ويل چې په ځوړ کوزيږي، که چا ته به يې التفات او توجه کوله نو په ټول بدن سره به ورته ملتف کيده.

د دوارو اوږو تر مينځ يې د نبوت مهر ؤ، له ټولو نه زيات مهربان او ښښونکی ؤ، د زياتې حوصلې درلودونکی ؤ چا به چې ژوند ورسره تير کړ، معرفت به يې ورسره حاصل شو، نو ډيره مينه به يې ورسره پيدا کيدله، چا به يې چې صفت کاوه ويل به يې: دده په شان شخص مې نه مخکې ليدلی او نه وروسته.(۲)

په بل روايت کې له علي (رضي الله عنه) نه رانقل شوي چې وايي: د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) مبارک سر لوی او په غوښو ډک ؤ له ټټر نه ترنامه پورې يې ويښتان وو، د تګ په وخت کې به د مخې خوا ته مايل ؤ ته به وايې لکه چې په ځوړ کوزيږي.(۳) جابر بن سمره (رضي الله عنه) وايي: د رسول الله (صلی الله عليه و

(1). زاد المعاد ۲/ ۴۵

(2). ابن هشام ۱/ ۴۰۱_۴۰۲. جامع الترمذي مع شرحه تحفة الاحوذي ۳۰۳/۴.

(۳). المصدر الاخير.

اله و صحبه و سلم) مبارکه خوله لويه وه، په سترګو کې يې لږ څه سوروالی و، پونډې يې ډنګرې او بې غوښې وې.[۴]

ابو طفيل (رضي الله عنه) وايي: رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سپين، نمکين، ښکلی او د متوسط قامت او معتدل بدن خاوند و[۱].

انس بن مالک (رضي الله عنه) وايي: د رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) لاسونه غټ او پلن وو، رنګ يې ښکلی و نه ډير بې نمکه سپين او نه ډير ګندمي (غنم رنګه) و، پداسې حال کې وفات شو چې په سر او ږيره کې يې له شلو نه زيات سپين ويښتان نه وو.[۲] او وايي: په مبارکو شقيقو کې يې سپين والی و. او په بل روايت کې وايي: په مبارک سر کې يې ځای ځای سپين ويښتان وو[۳].

ابو جحيفه وايي: ما يې تر لاندينۍ شونډې لاندې سپين والی ليدلی[۴]. عبدالله بن بسر (رضي الله عنه) وايي: په مبارکه زنې يې څو تاره سپين ويښتان وو[۵].

براء (رضي الله عنه) وايي: رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) چار شانه و، اوږې يې پلنې وې، ويښتان يې د غوږو تر نرميو پورې اوږده وو، ما هغه په سرو جامو کې ليدلی، چې دده د ښکلا په شان ښکلا مې نده ليدلې. [۶]

رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) په لومړيو کې له اهل کتابو سره د موافقت پخاطر خپل مبارک ويښتان له مخې نه شا ته ږومنځول، خو وروسته يې ويښتان په دوو برخو ويشل.[۷]

براء وايي: رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له ټولو نه زيات خوش اخلاقه او ښکلی و.[۸] پوښتنه ترې وشوه چې آيا مخ يې لکه د تورې په شان داسې ځليده؟ ويې ويل: نه، د تورې په شان نه بلکه مخ يې لکه د سپوږمۍ په شان ځليده. په بل روايت کې راځي چې مخ يې ګردی و[۹].

---

(٤). صحيح مسلم ٢/ ٢٥٨.

(١). صحيح مسلم ٢/٢٥٨..

(٢). صحيح بخاري ١/ ٥٠٢.

(٣). بخاري، مسلم ٢/٢٥٩.

(٤). بخاري ٥٠١_٥٠٢.

٥ .نفس المصدر ١/٥٠٢.

(٦). نفس المصدر.

(٧). صحيح بخارى ١/٥٠٣.

(٨). نفس المصدر ١/٥٠٢. مسلم ٢/٢٥٨..

(٩). بخاري ١/٥٠٢. صحيح مسلم ٢/٢٥٩.

الرُبیع بنت معوذ (رضي الله عنها) وایي: د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مخ ته به دې چې وکتل تا به ویل لمر ته ګورم.[۱۰]

جابر بن سمره (رضي الله عنه) وایي: یوه شپه مې چې سپوږمۍ بره راختلې وه رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته وکتل، بیا مې سپوږمۍ ته وکتل، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) سرې جامې اغوستې وې، ومې کتل چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مې په سترګو کې له سپوږمۍ نه زیات ښکلی او ځلیدونکی ښکاریده[۱].

ابو هریره (رضي الله عنه) وایي: له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه زیات ښکلی شی مې ندی لیدلې، تا به ویل لمر یې په مخ کې شعلې وهي، ځوک مې هم په تګ کې له رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) نه تیز ندی لیدلې، داسې به روان و تا به ویل لکه چې ځمکه یې تر پښو لاندې منډې وهي، مونږ به ورپسې ستړي شوو خو هغه به نه ستړی کیده.[۲]

کعب بن مالک (رضي الله عنه) وایي: د خوشالۍ په وخت کې به د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مخ داسې شعلې وهلې تا به ویل د سپوږمۍ ټوټه ده[۳].

یو ځل د عائشې (رضي الله عنها) په کور کې خولې شو، مبارک مخ یې داسې په ځلا شو چې عائشې (رضي الله عنها) یې په هکله د ابو کبیر هذیلي دا شعر ووایه:

و اذا نظرت الی اسرة وجهه    برقت کبرق العارض المتهلل[۴]

[چې د مخ لیکو ته یې وګورې نو داسې ځلیږي لکه ځلیدونکې وریځ چې د آسمان په څنډو کې ځلیږي.] ابوبکر (رضي الله عنه) به چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته وکتل نو ویل به یې:

امین مصطفی بالخـــیر یدعو    کضوء البـــدر زایله الظلام[۵]

[امین دی مصطفی (غوره شوی) د نیکۍ لور ته بلنه کوي، لکه د څوارلسم سپوږمۍ داسې ځلیږي چې هیڅ تیاره پکې نشته.]

(۱۰). رواه الدارمي. مشکاة المصابیح ۵۱۷/۲.

[۱]. ترمذي في الشمائل ص ۲. الدارمي. مشکاة المصابیح ۵۱۸/۲.

(13) جامع الترمذي مع شرحه تحفة الاحوذي ۳۰۲/۴. مشکاة المصابیح ۵۱۸/۲.

[۲]. ترمذي

[۳]. بخاری ۱/ ۵۰۲.

[٤]. رحمه للعالمین. ۱/ ۱۷۲.

[٥]. خلاصه السیر ص ۲۰.

عمر (رضي الله عنه) به يې په وصف کې د مثال په توګه د زهير هغه شعر وايه چې د هرم بن سنان په هکله يې ويلی و:

لو کنت من شئ سوى البشر  كنت المضئ ليلة البدر

[که ته له بشر نه پرته بل څه وای، نو پخپله رڼا به د څوارلسم سپوږمۍ په شان شپه رڼا کوله] بيا به يې ويل رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) همداسې ؤ[١].

رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) به چې په قهر شو مخ به يې رنګين شو تا به ويل په مخ يې د انار دانې ماتې شوې دي[٢].

جابر بن سمره (رضي الله عنه) وايي: پونډې يې نرۍ وې، له تبسم نه لوړه خندا يې نکوله که به مو ورته کتل ګمان به مو کاوه چې سترګې يې په رنجو تورې کړيدي پداسې حال کې چې په حقيقت کې به يې رانجه نه واستعمال کړي.[٣]

ابن عباس (رضي الله عنهما) وايي: د مخې د دواړو غاښونو تر مينځ يې کمه فاصله وه، خبرې به يې چې کولې تا به ويل د غاښونو له منځ نه يې نور راوځي[٤].

ښکلې غاړه يې درلوده لکه سپين زر داسې به ځليده، ګڼ باڼه او ګڼه ږيره يې درلوده، تڼه يې پراخه وه، ورو ځې يې سره وصل وې، لوړه پزه، او ګلالی مخ يې درلود. له ټټر نه تر نامه پورې يې ويښتان وو، دا ويښتان لکه د يوې څانګې په شان وو، په بدن يې نور ويښتان نه وو، يوازې متې او اوږې يې له ويښتانو ډکې وې. سينه او خېټه يې برابره، پراخه سينه، غټ غټ بندونه او پلن لاسونه يې درلودل، مناسب قامت يې درلود، خېټه يې له لوړې نه ډيره وړه وه، پښې يې له ځمکې نه لوړې وې (موزه پای ؤ) اندامونه يې موزون او قوي وو، په ډيره تواضع او وقار به روان ؤ.[٥]

انس (رضي الله عنه) وايي: داسې ابريشمي او وريښمينه ټوټه مې نده ليدلې چې د رسول الله (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) له لاسونو نه زياته نرمه وي، او نه مې دده (صلى الله عليه و اله و صحبه و سلم) د مبارک بدن د ښکلي بوی په شان خوشبويي ليدلې. په بل روايت کې راځي چې: داسې مشک او عنبر مې ندي بوی کړي

---

[١]. خلاصة السير ص ٢٠.

[٢]. مشکاة المصابيح ٢٢/١. الترمذي ابواب القدر ٣٥/٢.

[٣]. الترمذي. مع شرحه تحفة الاحوذي ٣٠٢/۴.

[۴]. رواه الدارمي. مشکاة المصابيح ٥١٨/٢.

[٥]. خلاصه السير ١٩ – ٢٠.

چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د بدن له مبارک بوی نه زیاته خوشبویي ولري.[۶]

ابو جحیفه (رضي الله عنه) وایي: د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) دواړه لاسونه مې ونیول په خپل مخ مې کیښودل ومې لیدل چې له واورې نه یخ او له مشکو نه زیات خوشبودار وو.[۱]

جابر بن سمره (رضي الله عنه) وایي: د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خولې له ټولو عطرو نه زیاتې خوشبوداره وې. جابر (رضي الله عنه) وایي: زه ماشوم وم، رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) مې غومبوري ته لاس راووړ، د شفقت لاس یې پرې راکاږه، ومې ولیدل چې مبارک لاسونه یې یخ او داسې خوشبودار وو تا به ویل همدا اوس یې د عطار له خلتې نه را ایستلي دي.[۲]

انس وایي: خولې یې لکه ملغرلې داسې وې .ام سلیم (رضي الله عنها) وایي: د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د مطهر بدن ښکلی بوی یا خولې له غوره عطرو نه هم غوره وې[۳].

جابر (رضي الله عنه) وایي: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به چې په کومه لاره لاړ، که بل څوک به په همدې لاره لاړل، نو د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له مبارک بوی نه به پدې پوهیده چې رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په همدې لاره تللی دی یعنی دد ه له خوشبویی نه پدې پوهیده چې هغه پدې لاره تللی دی، دده خوشبویې او یا دده د خولو خوشبویي به د دوی د لارې رهنما وه.[۴]

د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د دواړو اوږو تر منځ د کوترې د هګۍ په اندازه د نبوت مهر لګیدلی ؤ رنګ یې د مبارک بدن د رنګ په شان ؤ، د چپې اوږې خوا ته پدې نرم هډوکي ؤ، او د نخود په اندازه دانې غوندې وربانديې شګکاریدلې[۵].

---

(۶). صحیح بخاري ۱/ ۵۰۳. صحیح مسلم ۲۵۷/۲.

(۱). صحیح بخاري ۱/ ۵۰۲

(۲). مسلم ۲/ ۲۵۶

۳. نفس المصدر.

(۴)الدارمي، مشکاه المصابیح ۵۱۷/۲ .

۵. صحیح مسلم ۲۵۹/۲_۲٦۰.

## غوره اخلاق او روحاني کمال

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د بې ساري فصاحت او بلاغت خاوند وٴ سليسې، روانې، لنډې، با معنی او بې تکلفه خبرې يې څانګړتيا وه.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ته جوامع الکلم و الحکم ورکړل شوی و، يعنې د داسې بياني کمال در لودونکی و چې زيات مفاهيم به يې په ډېرو لنډو ټکو کې بيانول او د ډېر زيات حکمت او کمال خاوند وٴ.

د عربانو په مختلفو لهجو ښه پوهيده او له هرې قبيلې سره به يې به د همغې قبيلې پخپله لهجه خبرې کولې، په حاضر جوابۍ کې لکه د کوچيانو (بانډه والو) په شان وٴ، د کلماتو په نظم، غوراوي او استعمال کې لکه د ښار اوسيدونکی داسې وٴ په الهي مرستې سره چې د وحي په صورت کې ورته راتله د زيات حلم، حوصلې، مهربانۍ او ښېښې خاوند وٴ د قدرت په وخت کې عفوه، د مشکلاتو په وړاندې صبر او مقاومت هغه صفتونه وو چې الله تعالی ور باندې لورولي وو. انسان که هر څومره حليم او برده بار شي خو بيا هم کله نا کله له سختۍ نه کار اخلي، خو رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) داسې حليم وٴ چې که هر څومره به اذيت او زيان به ورواوښت د صبر او حوصلې لمن يې نه پرېښوده، د هر جاهل په وړاندې يې له حلم نه کار اخيست.

عائشه (رضي الله عنها) وايي: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به کــه د دوو کارونو تر مينځ د اختيار او واک حق درلود، نو هغه کار به يې غوره کاوه چې آسانه به وٴ، خو دا په هغه صورت کې چې آسانه کار به ګناه نه وه، ځکه هغه (صلی الله علیه وسلم) له ګناه نه تر ټولو زيات پاک او ليرې وٴ. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) کله هم خپل انتقام له چا نه ندی اخيستی، خو د شريعت مخالفت يې نه شوای زغملی، او پدې صورت کې به يې د الله لپاره انتقام اخيست[1]. هغه له قهر نه ډېر ليرې، رضا او نـرمۍ ته ډېر نژدې وٴ.

رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له ټولو نه زيات سخي او کريم وٴ، داسې بخششونه به يې ورکول تا به ويل لکه چې له فقر نه بالکل ويره نلري. ابن عباس (رضي الله عنهما) وايي: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له ټولو نه

[1]. صحيح بخاري ۱/ ۵۰۳

زیات سخي و، په رمضان کې به چې جبریل ورته راتـه سـخاوت یې نـور هـم زیاتیـده. د رمضان په میاشت کې به هره شپه جبریل ورته راته قرآنکریم بـه یـې ورتـه تـلاوت کـاوه. رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د خیر او نیکۍ په کـارونو کـې د سـهار له نسیم نه زیات مهربانه لطیف او خوځنده و.[1]

جابر (رضي الله عنه) وایي: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) هیڅکله هم د چا د سوال په ځواب کې (لا) نه ندي ویلي.[2]

په شجاعت، له نورو سره مرسته، همکارۍ او تعـاون کـې سـاری نلـري. د عمـل پـه ډګـر کې یې په اثبات رسولې چې له هر چا نه د زیات غیـرت او شـجاعت خاونـد و، پداسـې مواقعو کې یې مقاومت کړی چې بل چا هلته د مقاومت وس نه درلود، په ډیرو سـختو حالاتو او شیبو کې به د غره په شان په ځای ولاړ و، نه یوازې په شا تګ به یـې نـه کـاوه بلکه مخ په وړاندې به روان و. داسې قهرمان او پهلوان بـه نـه وي چـې یـو او یـا څـو ځلـه یې له میدان نه عقب نشیني نه وي کړې، خو رسول الله (صـلی الله علیـه و الـه و صحبه و سلم) پخپـل ژونـد کـې عقب نشـیني او پـه شـا تـګ نـدی کـړی. علـي (رضـي الله عنـه) وایي: کله بـه چـې جګـړه ښـه ګرمـه شـوه، سـترګې بـه سـرې شـوې، مونـږ بـه د رسـول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) خوا ته ورتلو او دده په حمایت کـې بـه مـو ځانونـه ساتل، هیڅوک به هم له رسول الله (صلی الله علیـه و الـه و صـحبه و سـلم) نـه دښمـن تـه زیات ورلنډ نه و.[3]

انس (رضي الله عنه) وایي: یـوه شـپه د مـدینې خلکـو د خطـر احسـاس وکـړ، غـږ یـې تـر غوږو شو، یوه ډله خلک په غږ پسې ووتـل، د لارې پـه اوږدو کـې یـې رسـول الله (صـلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) ولید چې بیرته را روان دی، د ابو طلحه په شا توري آس سپور دی، له ټولو نه مخکې په هغه غږ پسې ورو تلی و، توره یې په غاړه کې پرته وه او فرمایل یې: ((مه ویریږئ، مه ویریږئ)).[4]

په حیا او چشم پوشۍ کې له ټولو نه لوړ او مخکې و، ابو سعید خدري (رضي الله عنه) وایي: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) له مستورې پیغلې نـه زیاتـه حیـا

---

[1]. بخاري ۱/ ۵۰۲.
[2]. بخاری ۱/ ۵۰۲.
[3]. الشفا ۱ للقاضي عیاض ۱/ ۸۹.
[4]. مسلم ۲/ ۲۵۲، بخاري ۱/۴۰۷.

درلوده. له کوم شي نه به يې چې نفرت کيده او بد به يې ورنه راغلل نو د کراهت نښانې به يې په مخ کې ښکاره کيدلې.[٥]
چا ته به يې مخامخ ډير نه کتل، بلکه مبارکې سترګې به يې يوې او بلې خوا ته اړولې، ځمکې ته به يې له آسمان نه ډير کتل، ډير غور، تدبر او تفکر به يې کاوه، کوم څه به چې د چا نه خوښيدل هغه به يې نه يادول، چا ته به يې چې نصيحت کاوه او يا به يې چې د چا عيب بياناوه، نو نوم به يې نه ورته اخيست بلکه ويل به يې: د هغه چا حال به څه وي چې داسې او هسې کارونه کوي. د فرزذق د لانديني قول تر ټولو غوره مصداق و:

**يغضي حياء و يغضى من مهابته ‌ ‌ ‌ فـــلا يكلـــم الا حين يبتسم**

**[خپلې سترګې له حيا نه ښکته پداسې حال کې چې له هيبت نه يې د نورو سترګې ښکته کيږي، يوازې هغه وخت خبرې ورسره کيږي چې په شونډو يې تبسم وي.]**
رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د زيات عدل، عفت، صدق، امانت او استقامت درلودونکی و.
دښمنان له دوستانو نه مخکې دده په امانت، صداقت او عفت اعتراف کوي، له اسلام نه مخکې په امين مشهور شوی و ټولو به خپل امانتونه له ده سره ايښودل. او ټولو به د حکم په توګه مراجعه ورته کوله.
امام ترمذي روايت کوي چې ابو جهل رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ته وويل: مونږ تا دروغجن نه شميرو بلکه دا څه دې چې راوړي هغه دروغ بولو، همدا وه چې الله تعالی دا آيت نازل کړ[١]:
((فَإِنَّهُمْ لا يُكَذِّبُونَكَ وَلَكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ)) (الانعام: ٣٣) **[هغوی تا دروغجن نه ګڼي بلکه دا ظالمان د الله آيتونه نه مني.]**
هرقل (هيراکليوس) له ابوسفيان نه پوښتنه وکړه: آيا تاسو له محمد (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) نه مخکې لدينه چې د نبوت دعوه وکړي دروغ اوريدلي؟ ابو سفيان ځواب ورکړ: نه.
رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ډير متواضع او بې کبره شخص و، دا يې نه خوښيدل چې خلک لکه د شاهانو په شان معامله ورسره وکړي او ورته پورته

---

[٥]. صحيح بخاري ١/ ٥٠۴ .
[١]. مشکاه المصابيح٢/ ٥٢١ .

شي. د فقيرانو پوښتنه به يې کوله، مرسته به يې ورسره کوله، د غلامانو دعوت او بلنه به يې قبلوله او د اصحابو (رضي الله عنهم) په مينځ کې به د عادي شخص په توګه ناست و.

عائشه (رضي الله عنها) وايي: رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) به خپلې (پڼې) بوټونه پخپله ګنډل (پيوندول)، جامې به يې هم ګنډلې او پيوندولې، پخپل کور کې به يې پخپل لاس کار کاوه. هغه لکه د نورو انسانانو په شان يو انسان و، جامې به يې ګنډلې، ميږې به يې لوشلې او خپل خدمت به يې پخپله کاوه.[1]

حضرت نبي (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) ډير با وفا، د زيات صله رحم خاوند، مشفق، مهربانه او رحيم انسان و؛ له هر چا نه په غوره اخلاقو کې وړاندې و. بده خبره يې نده کړې، په چا يې لعنت ندی ويلی په بازار کې يې هم غالمغال ندی جوړ کړی. په هره نيکۍ کې د کمال درجې ته رسيدلې و. د بدۍ ځواب يې په بدۍ نه ورکاوه، تل به يې نورو ته عفوه، بښنه کوله، دا يې هم نه و خوښ چې نور خلک دې شا ته ورپسې روان وي. په خوراک، جامه او پوښاک کې به يې د خپل ځان او غلامانو تر مينځ توپير نه کاوه، اوف قدرې يې هم نه ويل. د غلام او خادم کارونه به يې هم پخپله کول، کله يې هم خادم او غلام ته سخته خبره نده کړې ورباندې په غوسه شوی ندی، په تقصير يې رټلی ندی. مسکينان يې خوښيدل ناسته ولاړه يې ورسره درلوده، جنازې ته به يې حاضريده، او فقيرانو ته يې په کمه سترګه نه کتل.

يو ځل رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) د يوه سفر په دوران کې امر وکړ چې يو پسه دې حلال او پوخ شي! يو کس پسه راونيو ذبح کاوه يې، بل د پخولو بند و بست وکړ، رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) وفرمايل: (**وعلـي جمـع الحطب**)، **فقالوا: نحن نكفيك. فقال: (قد علمت أنكم تكفوني ولكني أكره أن أتميز عليكم، فإن الله يكره من عبده أن يراه متميزاً بين أصحابه)، وقام وجمع الحطب.** زه به خس او خاشاک راټول کړم. اصحابو (رضي الله عنهم) ورته وويل: مونږ يې ستا په ځای راټولوو. ده ورته وفرمايل: زه پوهيږم چې تاسې زما په عوض دا کار کوئ، خو زه دا نه خوښوم، چې ځانته دا امتياز ورکړم، ځکه الله تعالی دا نه خوښوي چې يو بنده دې د نورو په مينځ کې ځانته په امتياز قايل وي. **دا يې وفرمايل پاڅيد** او خس يې راټول کړل.[2]

---

[1]. مشکاة ٢ المصابيح/ ٥٢٠ .

[2]. خلاصه السير ص ٢٢ .

غوره به وي دلته د هند بن ابي هاله له خولې نه د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) صفت واورو:
هغې به ویل: رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) به همیشه غمګین ښکاریده، ډیر تفکر او تدبر به یې کاوه، څه خاص آسایش او سهولیات یې نه درلودل، بې ضرورته به یې خبرې نه کولې، زیات به خاموش وُ، خبره به یې چې پیل کړه پای ته به یې رسوله، بې تکلفه خبرې به یې کولې، خوله به یې دې خوا اخوا نه کوله زیات مفاهیم به یې په لنډو ټکو کې بیانول، خبره به یې مکمله او بشپړه وه، ډیر نرم او شیرین وُ، بدخویه او سخت معامله نه وُ. نعمت به که هر څومره وړوکی و لوی یې شمیره. د هیڅ شي (خوراک) یې بد نه ګڼل، څه به یې چې خوړل نه به یې ستایل او نه به یې بدي بیانوله، که به حق تر پښو لاندې شو دومره به په غوسه شو چې هیڅوک یې مخې ته نه شوی دریدلای. د حق لپاره به یې انتقام اخیست، د خپل ځان لپاره نه په غوسه کیده او نه یې شخصي انتقام اخیست. اشاره به یې چې کوله نو په ټول لاس سره به یې کوله د تعجب په وخت کې به یې مخ بـــلې خوا ته اړاوه که به خوشاله و نو سترګې به یې ښکته وې، خندا یې یوازې تبسم وه، او غاښونه به یې لکه ملغلرې داسې ځلیدل.
یوازې هغه خبرې به یې کولې چې ضروري به وې، اصحاب به یې سره یو کول، نه دا چې هغوی سره بیل او تیت کړي. د هر قوم مشر ته به یې د مشر په سترګه کتل او هغه به یې د خپل قوم مسوول ټاکه. ځان به یې د نورو له شر نه محفوظ ساته. د خپلو اصحابو (رضي الله عنهم) خوښه به یې مراعاتوله، د خلکو د حالاتو په هکله به یې له خلکو نه پوښتنې کولې، تل به یې له اعتدال نه کار اخیست او اختلاف یې نه کاوه. ددې له امله چې نور څوک غفلت ونکړي د هیڅ غفلت اجازه یې نه ورکوله، د هر ډول حالاتو د مقابلې لپاره پوره تیار وُ د حق په لار کې یې هیڅ کوتاهي نه کوله او د نورو په حق یې کله هم تجاوز ندی کړی.
ملګری یې هغه وُ چې غوره خیر غوښتونکی به وُ، د نورو غمخور او مرستندوی دده په وړاندې ډیر محترم او د لوړ مقام خاوند و. تل به یې د الله ذکر کاوه د ځان لپاره یې ځانګړی ځای نه و غوره کړی، مجلس ته به چې ورغی هلته به کیناست چیرته به چې ځای خالي وُ، او همدا یې امر هم وُ. ټولو ته یې په یوه سترګه کتل د هر چا د حقوقو رعایت یې کاوه چا به چې د ضرورت په وخت کې کیناوه، او یا به یې ودراوه نو تر هغې پورې به ورسره ناست او یا ولاړ وُ تر څو به د هغه ضرورت رفع شو، د هغه سوال

ته به يې په پوره صبر غوږ نيوه او په ډيره ښه طريقه به يې ځواب ورکاوه. اصحاب (رضي الله عنهم) نورو سترګې يې په وړاندې برابر وو، هغه ډير ورته نژدی وۀ چې د زياتې تقوی درلودونکی به وۀ، مجلس يې د حلم، صبر، حيا، امانت او صداقت مجلس وۀ، هلته به غالمغال نه وۀ، يو له بل سره به همکاري او نرمي کيدله. د لوی او مشر درناوی به کيده او په فقير او محتاج به رحم کيده، د بې وسه لاس نيوی به کيده. تل به خوښ و، خوش اخلاقه او مهربانه وۀ، هيڅ بدخويه، بدګفتاره، سخت زړی او غالمغالي نه وۀ، له دريو شيانو نه يې ځان پاک ساتلی وۀ : له ريا نه، بل له زيات خوراک، زياتو خبرو، او دريم له بې هدفه کار نه.

د چا بدي يې نه بيانوله، بد يې نه ورته ويل، عيبونه يې نه پسې راپلټل، بې ثوابه خبره يې نه کوله، خبرې به يې چې کولې د مجلس ملګري به يې ټول متوجه کيدل غوږ به يې ورته نيوه، خبره به يې نه اخلالوله، بل چا به چې خبره ورته کوله غوږ به يې ورته اينښود او تر هغې پورې به چوپ وۀ تر څو به د هغه خبره خلاصه شوه. د خندا په خبره به يې خندل د تعجب په وخت کې به يې تعجب کاوه د نورو د نامناسبې خبرې په مقابل کې به يې له زغم او صبر نه کار اخيست. فرمايل به يې: د حاجتمند حاجت پوره کړئ. د نيکۍ په بدل کې به يې له چا نه د شکرانې تمه نه کوله.[1]

خارجه بن زيد (رضي الله عنه) وايي: رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) له ټولو نه د زيات وقار درلودونکی وۀ، په آسانۍ او بې ضرورته به يې خبره نه کوله. زياتره به خاموش وۀ، د نا مناسبې خبرې په اوريدو سره به يې مخ ګرزاوه. خندا يې د تبسم تر حده وه. خبرې يې په اندازه برابرې وې، نه به يې زياتې کولې او نه له حده کمې، دده په وړاندې به اصحابو (رضي الله عنهم) هم يوازې تبسم کاوه، او دده په درناوي کې به يې په زوره نه خندل[2].

لنډه دا چې رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) هغه کامل انسان وۀ چې مثال نه لري، الله تعالی هغه ته ادب ورکړی وۀ او الله تعالی د هغه د غوره او لوړو اخلاقو په اړه فرمايي: ((وَإِنَّكَ لَعَلى خُلُقٍ عَظِيمٍ)) (القلم: ٤) [ته د لويو اخلاقو خاوند يې.]

همدا د کمال صفات او ځانګړتياوې وې چې خلک يې له رسول الله (صلی الله عليه و اله و صحبه و سلم) سره نژدې کړي وو، د همدې صفاتو له برکته يې د هر چا په زړه کې

---

(1) الشفا للقاضي عياض ١/ ١٢١تر ١٢۶. - شمائل الترمذي .

٢ . نفس المصدر ١٠٧/١.

ځای او لوړ مقام درلود. د همدې غوره اخلاقو په وجه هغه داسې یو رهبر وُ چې زړونه ورپورې تړلي وو، د همدې کمالاتو په سبب هغه خپل مغرور، خود خواه او سرکش قوم د ځان کړ، او همغه جاهل خلک داسې شول چې ډله ډله د الله تعالی په دین مشرفیدل او اسلام ته یې غاړه ایښودله.

دا صفتونه مو چې یاد کړل دا د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د کمالاتو او غوره اخلاقو یوه ډیره کوچنۍ نمونه ده، د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) په عظمت او حقیقت پوهیدل او د هغه بیانول یو ناممکن کار دی. د داسې یو انسان صفت به څوک وکړای شي چې اخلاق یې قرآن کریم وي. بیشکه چې د رسول الله (صلی الله علیه و اله و صحبه و سلم) د عظمت حقیقت بیانول د چا له وسه ندي پوره.

**اللهم صل على سيدنا محمد و على آل سيدنا محمد كما صليت على سيدنا ابراهيم و على آل سيدنا ابراهيم انك حميد مجيد. اللهم بارك على سيدنا محمد و علـــى آل سيدنا محمد كما باركت على سيدنا ابراهيم و على آل سيدنا ابراهيم انك حميـــد مجيد.**

سلطان محمود صلاح
پیښور – حیات آباد
۱/۷/ ۲۰۰۲م = ۱۰ /۴/ ۱۳۸۱ هـ ش

د مراجعې پای
د جمعې ورځ ۴/۸/ ۲۰۰۶ م.

# د کتاب مراجع

١. اخبار الكرام باخبار المسجد الحرام، شهاب الدين احمد بن محمد الاسدي المكي (١٩٢٢هـ) المطبعة السلفية بنارس الهند ١٣٩٢هـ/١٩٧٢م.
٢. الادب المفرد، محمد بن اسماعيل البخاري (٢٥٢هـ) طبع استنابول ١٣٠٤هـ.
٣. الاعلام، خير الدين الزركلي. الطبعة الثانية القاهرة ١٩۴۵م.
۴. البداية والنهاية، اسماعيل بن كثير الدمشقي مطبعة السعادة مصر ١٩٣٢م.
۵. بلوغ المرام من ادلة الاحكام، احمد بن حجر العسقلاني (٧٧٣_٨۵٢هـ) المطبع القيومي كانفور الهند١٣٢٣ هـ.
٦. تاريخ ارض القرآن، السيد سليمان الندوي (١٣٧٣ هـ) معارف پريس اعظم كده، الهند ١٩۵۵م (الطبعة الرابعة).
٧. تاريخ اسلام، شاه اكبر خان نجيب آبادي مكتبة رحمت يوبند يوبي الهند.
٨. تاريخ الامم و الملوک، ابن جرير الطبري المطبعة الحسينية المصرية.
٩. تاريخ عمر بن الخطاب، ابو الفرج عبدالرحمن بن الجوزي مطبعة التوفيق الادبية بمصر.
١٠. تحفة الاحوذي، ابو العلى عبدالرحمن الماركفوري (١٣٣۵هـ_١٩٣۵م) جيد برقي پريس دهلي الهند ١٣۴٢_١٣۵٣هـ.
١١. تفسير ابن كثير، اسماعيل بن كثير الدمشقي دار الاندلس بيروت.
١٢. تفهيم القرآن، الاستاذ السيد ابو الاعلى المودودي ، مركزي مكتبة جماعت اسلامي الهند.
١٣. تلقيح فهوم الاثر، ابو الفرج عبد الرحمن بن الجوزي (۵٩٧ هـ) جيد برقي پريس دهلي الهند.
١۴. جامع الترمذي ، ابو عيسى محمد بن عيسى بن سورة الترمذي (٢٠٩_٢٧٩هـ) المكتبة الرشيدية دهلي الهند.
١۵. الجهاد في الاسلام، (اردو)، الاستاذ السيد ابو الاعلى المودودي،

اسلامک پبليکشنز لميټد لاهور پاکستان.
۱۲.خلاصة السير، محب الدين ابو جعفر احمد بن عبدالله الطبري ۲۷۴هـ دهلي پرنټنګ پريس دهلي الهند ۱۳۴۳هـ.
۱۷.رحمة للعالمين، محمد سليمان المنصور فوري (م ۱۹۳۰م) حنيف بک ډيپو دهلي.
۱۸.رسول اکرم کي سياسي زندګي (اردو) الدکتور حميد ال،له پاريس سالم کمپني ديوبنديو_ بي الهند ۱۹۲۳م.
۱۹.الروض الانف، ابو القاسم عبد الرحمن بن عبد الله السهيلي (۵۰۸- ۵۸۱ هـ) المطبعة الجمالية بمصر ۱۳۳۲هـ_۱۹۱۴م.
۲۰.زاد المعاد، شمس الدين ابو عبد الله محمد بن بکر بن ايوب المعروف بابن القيم (۶۹۱_ ۷۵۱) المطبعة المصرية الطبعة الاولی ۱۳۴۷_ ۱۹۲۸م.
۲۱.سفر التکوين.
۲۲.سنن ابن ماجة، ابو عبد الله محمد بن يزيد بن ماجة القزويني، (۲۰۹_۲۷۳هـ).
۲۳.سنن ابي داؤد، ابو داؤد سليمان بن الاشعث السجستاني (۲۰۲_۲۷۵هـ) ج ا المطبع المجيدي کانفور الهند ۱۳۷۵هـ، ۲ المکتبة الرحيمية ديوبند يو بي الهند.
۲۴. سنن النسائي، ابو عبدالرحمن احمد بن شعيب النسائي (۲۱۵_۳۰۳ هـ) المکتبة السلفية لاهور پاکستان.
۲۵.السيرة الحلبية، ابن برهان الدين.
۲۶.السيرة النبوية، ابو محمد عبدالملک بن هشام بن ايوب الحميري، ۲۱۳ او ۲۱۸هـ) شرکة مکتبة و مطبعة مصطفی البابي الحلبي و اولاده بمصر المطبعة الثانية ۱۳۷۵ هـ_۱۹۵۵م.
۲۷. شرح شذور الذهب، ابو محمد عبد الله جمال الدين بن يوسف المعروف بابن هشام الانصاري (۷۰۸_۷۶۱) مطبعة السعادة بمصر.
۲۸. شرح صحيح مسلم، ابو زکريا محيي الدين يحيی بن شرف النووي (۶۷۶ هـ) المکتبة الرشيدية دهلي الهند ۱۳۷۶هـ.
۲۹. شرح المواهب اللدنية، الزرقاني نسخة عتيقة مخرومة الاوائل.

۳۰. الشفا بتعريف حقوق المصطفى، القاضي عياض، مطبعة عثمانية استانبول ۱۳۱۲هـ.
۳۱.صحيح البخاري، محمد بن اسماعيل البخاري (۲۵۶ هـ) المكتبة الرحيمية (ديوبند الهند) ۱۳۸۴ _۱۳۸۷هـ.
۳۲. صحيح مسلم، مسلم بن الحجاج القشيري المكتبة الرشيدية دهلي الهند ۱۳۷۶هـ.
۳۳.صحيفة حبقوق.
۳۴. صلح الحديبية، محمد احمد باشميل (الطبعة الثانية) دار الفكر ۱۳۹۱هـ _۱۹۷۱م.
۳۵.الطبقات الكبرى، محمد بن سعد مطبعة بريل ليدن ۱۳۲۲ هـ.
۳۶.عون المعبود شرح ابي داؤد، ابو الطيب شمس الحق العظيم آبادي (الطبعة الاولى الهندية).
۳۷. غزوة احد، محمد احمد باشميل (الطبعة الثانية).
۳۸. غزوة بدر الكبرى، محمد احمد باشميل (الطبعة الثانية) ۱۳۷۶ هـ _ ۱۹۷۶م.
۳۹. غزوة خيبر، محمد احمد باشميل (الطبعة الثانية) دار الفكر ۱۳۹۱_۱۹۷۱.
۴۰. غزوة بني قريظة، محمد احمد باشميل (الطبعة الاولى) ۱۳۷۶ هـ_۱۹۶۶م.
۴۱.فتح الباري، احمد بن علي بن حجر العسقلاني (۷۷۳_۸۵۲) المطبعة السلفية و مكتبتها الروضة القاهرة.
۴۲. فقه السيرة، محمد الغزالي، دار الكتاب العربي بمصر الطبعة الثانية ۱۳۷۵ هـ=۱۹۵۵م.
۴۳. في ظلال القرآن، سيد قطب، دار احياء العربي بيروت لبنان الطبعة الثالثة.
۴۴. القرآن الكريم.
۴۵. قلب جزيرة العرب، فؤاد حمزة، المطبعة السلفية و مكتبتها، الروضة بمصر۱۳۵۲ هـ_۱۹۲۳م.
۴۶.ما ذا خسر العالم بانحطاط المسلمين، السيد ابو الحسن علي الحسني الندوي، الطبعة الرابعة مكتبة دار العروبة القاهرة ۱۳۸۱ هـ_۱۹۶۱م.
۴۷.محاضرات تاريخ الامم الاسلامية، الشيخ محمد الخضري بک، المكتبة

التجارية الكبرى بمصر، الطبعة الثامنة ١٣٨٢ هـ.
٤٨. مختصر سيرة الرسول، شيخ الاسلام محمد بن عبد الوهاب التميمي النجدي (م ١٢٢٠) مطبعة السنة المحمدية القاهرة الطبعة الاولى ١٣٧٥ هـ _١٩٥٦م.
٤٩.مختصر سيرة الرسول، الشيخ عبد الله بن محمد النجدي آل الشيخ (م بمصر ١٢٤٢هـ
٥٠. مدارک التنزيل، النسفي.
٥١. مرقاة المفاتيح ج٢، الشيخ ابو الحسن عبيد الله الرحماني المباركفوري نامي پريس لكنهو الهند ١٣٧٨ هـ_١٩٥٨م.
٥٢.مروج الذهب، ابو الحسن علي المسعودي مطبعة الشرق الاسلامية القاهرة.
٥٣. المستدرک، ابو عبد الله محمد الحاكم النيسابوري دائرة المعارف العثمانية حيدر آباد الهند.
٥٤. مسند احمد، الامام احمد بن محمد حنبل الشيباني ٢٢٤ هـ.
٥٥. مسند الدارمي، ابو محمد عبد الله بن عبد الرحمن الدارمي ١٨١_ ٢٥٥ هـ.
٥٦. معجم البلدان، ياقوت الحموي.
٥٧.مشكاة المصابيح، ولي الدين محمد بن عبد الله التبريزي، المكتبة الرحيمية ديوبند يوبي الهند.
٥٨.المواهب اللدنية، القسطلاني المطبعة الشرفية ١٣٣٢ هـ، ١٩٠٧م.
٥٩. موطا الامام مالک، الامام مالک بن انس الاصبحي (م١٦٩هـ) المكتبة الرحيمية ديوبند يوبي الهند.
٦٠.وفاء الوفا، علي بن احمد السمهودي.